| مضمون | صفحه |
| --- | --- |


ماشوم سره مينه كولو سره روژه نه ماتيږي ........ ۵۱۱
په روژه كې تروشو اوبو سره اودس كول ........ ۵۱۱
په روژه كې د ترخو اوبو استعمال ........ ۵۱۱
روژه كې اودس كولو كې احتياط كوئ وهم مه كوئ ........ ۵۱۲
زهريله شي خوړولو سره روژه نه ماتيږي ........ ۵۱۲
د ميرګي دورې سره روژه نه ماتيږي ........ ۵۱۲
روژه دار نوكر كه په خپل افسرباندې اوبه وڅښي :نو د هغه د روژې څه حكم دى؟ ........ ۵۱۲
په رمضان كې روژه نه نيونكي افسر له پاره اوبه وغيره راوړل ........ ۵۱۳
روژه داره ښځه د روځې چاته ډوډۍ پخولى شي؟ ........ ۵۱۴
د روژو او لمونځونو قضاء كونكي آيا آينده نفل وكړي اوكه قضاء وكړي؟ ........ ۵۱۴
آيا په رمضان كې د شوي خرچ حساب نه كيږي؟ ........ ۵۱۴


## ❖ د قضا روژو بيان ❖


د بالغيدونه وروسته كه روژې پاتې شي نوڅه وكړل شي ؟ ........ ۵۱۵
د څو كلنو قضا روژې څنګه ونيول شي؟ ........ ۵۱۵
قضا روژې كه په ذمه وي؛ نو ايا نفلي روژې نيول كيداى شي؟ ........ ۵۱۵
ايا قضا روژې د مشهورونفلي روژو په ورځو كې نيولى شو؟ ........ ۵۱۶
دپاتې شويو روژو قضاء دې راوړي، كه نه ........ ۵۱۶
د مرګ په وخت كې دې دفديې وصيت وكړي ........ ۵۱۶
(دحيض دورځو)دروژو قضا شته او د لمانځه نه شته ........ ۵۱۶
دحيض د ورځو د روژو يوازې قضاشته كفاره نه شته ........ ۵۱۷
د(نفاس)د ختمېدو نه وروسته قضاروژې ونيسئ ........ ۵۱۷
د نفلي روژې د ماتولو قضا شته كفاره نه شته ........ ۵۱۷
له عذر پرته نفلي روژې ماتولو كې ګناه شته؟ ........ ۵۱۸
تندرست بنده د قضا روژوفديه نه شي وركولى ........ ۵۱۸
د بل له طرف نه قضا روژې او لمونځ نه شي ادا كيداى ........ ۵۱۹
د غروب نه مخكې په غلطي روژې ماتولوباندې يوازې قضالازميږي ........ ۵۱۹
په غلطي د وخت نه مخكې روژه ماتولو باندې قضا ده، كفاره نه شته ........ ۵۲۰
د ساه بندي دوايي د روژې په حالت كې ........ ۵۲۱
استعمالولو سره روژه ماتيږي. قضاء لازمه ده ........ ۵۲۱

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |


د ماشوم متوب د ماتې کړې روژې قضاء نه شته، بلکه دا چې ترڅو پورې ........ ۵۲۱
د دوه میاشتو د روژو نیولو طاقت وي، فدیه ورکول جائز نه دي ........ ۵۲۱


❖ د قضا روژو فدیه ❖


کمزوری یا ناروغ کس د روژو فدیه ورکولی شي ........ ۵۲۲
د ډیرې زیاتې ناروغې ښځې د روژو له پاره فدیه ورکول جائز دي ........ ۵۲۲
که د قضا راوړلو طاقت نه لري؛ نو څه وکړي؟ ........ ۵۲۳
که چاته قی ورځي، روژو سره څه وکړي؟ ........ ۵۲۳
د روژې فدیه څومره، چاته او کله ورکړل شي ؟ ........ ۵۲۴
د روژو فدیه خپل اولاد یا لمسیو ته ورکول جائزنه دي ........ ۵۲۴
د مدرسې غریبو طالبانو ته د روژو فدیه ورکړئ ........ ۵۲۵
د قضا روژو فدیه یو مسکین ته په یو وخت ورکول جائزدي ........ ۵۲۵
د مرحومینو د قضا شویو روژو فدیه ورکول ډیر زیات ضروري دي ........ ۵۲۶
بې وزله مریض د روژې فدیه څنګه اداکړي؟ ........ ۵۲۸
ایا د مړي له طرف نه د هغه ولي روژه نیولی شي؟ ........ ۵۲۸
ایا د وفات شوي له طرف نه د کفارې روژې نیول کېدای شي؟ ........ ۵۲۹
ایا د بل چا له طرف نه روژه نیول جائز دي؟ ........ ۵۲۹
روژې نیولو سره که د ګیس تکلیف پیدا شي؛ نو ایا روژه ماتول روادي ؟ ........ ۵۲۹
د ګردو د ناروغ که روژه نه شي نیولی؛ نو څه وکړي؟ ........ ۵۳۰
په کټ باندې پرته ښځه د هغې نه پاتې شویو روژو ........ ۵۳۰
سره به څه کیږي ځکه چې هغه وفات شوې ده ........ ۵۳۰
که په روژه نیولو سره د ګردې تکلیف زیاتیږي؛ نو ایا پرینښودل یې جائز دي؟ ........ ۵۳۱
که د روژې نیولو نه وروسته یې دوایي وخوړه؛ نو ایا کفاره به هم وي؟ ........ ۵۳۱
له چت نه د ماشوم په غورځیدو سره د مور حالت خطرناك ........ ۵۳۲
شو، هغې روژه ماته کړه؛ نو یوازې قضا واجب ده ........ ۵۳۲
د بلډ پریشر او شوګر مریض که روژې نه شي نیولی؛ نو څه به کوي؟ ........ ۵۳۳


❖ د روژې ماتولو کفاره ❖


د روژې ماتونکي په باره کې د کفارې مسائل ........ ۵۳۴
د رمضان د روژې په ماتولو باندې کفاره ده، له مسئلې ناخبرې هیڅ عذر نه دی ........ ۵۳۵
که چا قصدا د رمضان روژه ماته کړه؛ نو قضا او کفاره لازم ده ........ ۵۳۶

| مضمون | صفحه |
|---|---|
| قصدا خوراک څښاک کولو سره قضا او کفاره دواړه لازمیږي | ۵۳۶ |
| درانجو او تیل لګونکي په دې ګمان چې روژه یې ماته شوه خوراک او څښاک کول | ۵۳۶ |
| روژه ماتونکی کس به څومره کفاره اداکوي؟ | ۵۳۷ |
| روژه کې په کوروالي کفاره لازمیږي | ۵۳۷ |
| د روژې په دوران کې که ښځې خاوند صحبت وکړ، نو کفاره په دواړو لازمیږي | ۵۳۸ |
| قصداً روژه ماتونکي باندې کفاره لازمیږي | ۵۳۹ |
| د ناروغۍ له وجې که د کفارې روژې په مینځ | ۵۳۹ |
| کې پاتې شي نو پوره روژې به بیانیول وي | ۵۳۹ |
| ښځه به د کفارې روژې مسلسلې څنګه نیسي؟ | ۵۳۹ |

## ❖ نفل او نذر روژې ❖

| | |
|---|---|
| د نفلي روژې نیت یې د شپې نه وکړ، خو د عذرله وجې یې ونه شوه نیولی | ۵۴۰ |
| د نذر د روژو شرعي څه حیثیت دی؟ | ۵۴۰ |
| نفلي روژه ماتولو سره یوازې قضا لازمیږي | ۵۴۱ |
| که څوک دنذر روژې نه شي نیولی نو څه وکړي؟ | ۵۴۱ |
| د مجبوري له وجې دنذر روژې پرېښودل | ۵۴۲ |
| د نذر روژې په بل چا نیول جائزنه دي | ۵۴۲ |
| د نذر روژې نه نیول ګناه ده | ۵۴۳ |
| د جمعې ورځ د روژې له پاره خاص کول | ۵۴۳ |
| آیا د جمعة المبارک روژه نیول یوازې په رمضان کې جائز ده؟ | ۵۴۴ |
| آیا یواځې د جُمعې په ورځ روژه نیول صحیح دي؟ | ۵۴۴ |
| خاص دجُمعې په ورځ روژه نیول موجب فضیلت نه دی | ۵۴۴ |
| دجُمعة الوداع د روژو ثواب | ۵۴۵ |
| آیا دجُمعة الوداع روژه نیولو سره تیرې روژې معاف کیږي؟ | ۵۴۵ |
| د جمعة الوداع د روژې حکم هم د نورو روژو په شان دی | ۵۴۵ |
| د رجب، شعبان او رمضان د روژو نیولو عهد کول | ۵۴۶ |
| د رجب او د شعبان د روژو شرعي حیثیت | ۵۴۷ |
| د رمضان د روژو قضاء دنهم لسم محرم د نفلي روژو سره یوځای نیول | ۵۴۸ |
| رسول الله ﷺ له وحې پرته د عاشورا روژه ولې ونیوه؟ | ۵۴۸ |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

## ❖ د اعتکاف مسائل ❖


د اعتکاف مختلف مسائل ........ ۵۵۰
د اعتکاف درې قسمه دي او د نيت الفاظ په ژبې ويل ضروري نه دي ۵۵۳
د آخري عشرې نه پرته اعتکاف مستحب دې ........ ۵۵۳
اعتکاف له پاره هرمسلمان کېناستی شي ........ ۵۵۴
د کوم عمر خلکو له اعتکاف کول پکاردي؟ ........ ۵۵۴
معتکف د تقرير له پاره بل مسجد ته تلل ........ ۵۵۵
که معتکفه ښځه د مجبورۍ له وجې په نهمه ورځ پاڅي؛ نو قضاء به څنګه راوړي؟ ........ ۵۵۵
د اعتکاف په دوران د ښځو د حيض ورځې شروع کېدل ........ ۵۵۵
واده او ناواده دواړه قسمه ښځې اعتکاف ته کيناستلی شي ........ ۵۵۵
آيا سړی په کور کې اعتکاف ته کيناستلی شي؟ ........ ۵۵۶
د ښځو اعتکاف هم جائزدی ........ ۵۵۶
کوم جومات کې چې د جُمعې لمونځ نه کيږي هلته هم اعتکاف جائزدی ........ ۵۵۷
قرآن شريف نه مکمل کولو والا هم اعتکاف کولی شي ........ ۵۵۷
په يو جومات کې چې څومره کسان وغواړي اعتکاف کولی شي ........ ۵۵۷
معتکف په پوره جومات کې کېناستی او څملاستی شي ........ ۵۵۷
د اعتکاف له پاره څادرونه لګول ضروري نه دي ........ ۵۵۸
د اعتکاف په دوران کې خبرې کول ........ ۵۵۹
د اعتکاف په دوران کې مطالعه کول ........ ۵۵۹
د اعتکاف په دوران کې قوالي اوريدل، تلويزون کتل او دفتري کارکول ........ ۵۵۹
مُعتکف د جومات په کونج کې کېناستل ........ ۵۶۰
اويوازې د سُنتي لرې کولو له پاره غسل کول ........ ۵۶۰
آيا په اعتکاف کې غسل کولی شو؟ ........ ۵۶۰
د اعتکاف په دوران کې د علماء کرامو غيبت کول ........ ۵۶۱
آيا د جومات په خاص کونج کې اعتکاف کونکی بل ځای کيناستلی يا څملاستلی شي؟ ۵۶۱
په مسنون اعتکاف کې په مسجد کې دننه حجامت ........ ۵۶۲
د معتکف له پاره د غسل حکم ........ ۵۶۲
له عذر پرته اعتکاف ماتونکی د عظيم دولت نه محروم شو مګر قضا نشته ........ ۵۶۳
د نذر اعتکاف که پوره نه شي نو څه کول پکاردي؟ ........ ۵۶۴

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |
| ❖ د روژې متفرق مسائل ❖ | |
| په رمضان کې د شپې د جماع د اجازې آیت نازلیدل | ۵۶۵ |
| روژه دار دې فضولیات پریږدي | ۵۶۶ |
| په روژه کې تلویزون کتل | ۵۶۷ |
| ایا د ماشومانو روژه نیول ضروري دي؟ | ۵۶۸ |
| د مازیګر او ماښام ترمینځه روژه نیول څنګه دي؟ | ۵۶۸ |
| د مازیګر نه تر ماښام پورې د روژې نیولو شرعي حیثیت | ۵۶۹ |
| د مازیګر او ماښام ترمینځه روژه او د لسم محرم روژه نیول څنګه دي؟ | ۵۶۹ |
| پنځه ورځې روژې نیول حرام دي | ۵۷۰ |
| ایا امیرغریب اورشته دار باندې د روژه ماتي کولوثواب برابردی؟ | ۵۷۰ |
| د حضور ﷺ د روژه ماتي معمول | ۵۷۰ |
| د تماکو د کاروکونکي د روژې حکم | ۵۷۱ |
| د روژه دارپه جومات کې ویده کیدل | ۵۷۱ |
| د روژې په حالت کې باربار غُسل کول | ۵۷۱ |
| ناپاک کس که پیشمنی وکړي نو آیا روژه به وشي؟ | ۵۷۱ |
| د ناپاکي په حالت کې روژه نیول | ۵۷۲ |
| د شوال شپږ روژو سره به د رمضان قضاروژې ادانه شي | ۵۷۲ |
| ښځې خپلې قضاء روژې په شوال کې نیولی شي | ۵۷۳ |
| خو د شوال د روژو ثواب به ورته نه ملاویږي | ۵۷۳ |
| داسې علاقه چې شپږ میاشتې ورځ اوشپږ میاشتې شپه وي روژه څنګه ونیول شي؟ | ۵۷۳ |
| پیشمني نه وروسته ویده کیدل | ۵۷۴ |
| د لاوډ سپیکرپه ذریعه د پیشمني او روژه ماتي اطلاع ورکول صحیح دي | ۵۷۴ |
| مؤذن دې روژه ماته کړي او اذان دې وکړي | ۵۷۴ |
| د عرب ملکونونه په راتلو باندې د دیرشونه زیاتې روژې نیول | ۵۷۴ |
| آیا پاکستان والا به هم د سعودی عرب په حساب روژې نیسي؟ | ۵۷۵ |
| چې په سعودی عرب کې روژه شروع کړي او اختر په | ۵۷۵ |
| کراچۍ کې ولمانځي نو آیا زیاته روژه به نیسي؟ | ۵۷۵ |
| د رمضان په ختمیدو باندې چې کوم ملک ته ورسیږئ د هغه ځای پیروي کوئ | ۵۷۶ |
| د وړوکي اختر خوشحالي ولې لمانځل کیږي؟ | ۵۷۶ |
| که روژه ماته شي نو بیا دې هم ټوله ورځ د روژه دارپه شان اوسیږي | ۵۷۷ |
| د ناروغ تراویح او روژه | ۵۷۷ |

بسم الله الرحمن الرحيم

# ❖ د خطبې متعلق باقی مسئلې ❖

## د جُمعې د خطبې اوریدو نه پرته د جُمعې لمونځ ادا کول

**سوال:** د خطبې اوریدو نه مخکې لمونځ نه کیږي او ځینې خلک وایي چې په کوم جومات کې خطبه نه وي، هلته د جُمعې لمونځ نه کیږي اوکه سړی ناوخته جومات ته اورسیږي اوپه بل جومات کې هم د جماعت وخت باقي نه وي په دې صورت کې چې کله جومات ته اورسیږي او هلته جمعه دریدلې وي، هغه خطبه اوریدلې نه ده؛ نو ایا د امام سره د جُمعې لمونځ ادا کولی شي؟ او ایا لمونځ یې کیږي اوکه نه؟

**جواب:** دا خو صحیح ده چې د جُمعې لمونځ د خطبې نه پرته نه کیږي[۱]، خو کوم سړی چې په داسې وخت کې راغلی چې خطبه ختمه شوې وه،د هغه لمونځ کیږي،[۲] ( اګر چې په ناوخته راتلو باندې د سزا مستحق دی)،بلکې د جُمعې د لمانځه یو یا دواړه رکعتونه پاتې شي او په التحیات کې راتلو سره شریک شو، بیا به هم هغه د جُمعې دوه رکعتونه کوي.[۳]

## د جُمعې د خطبې په دوران کې سنت کول

**سوال:** دلته په سعودي عرب کې د جُمعې په ورځ اکثر خلک د جُمعې د خطبې په دوران کې سنت کوي، ایا دا جائز دي؟ او خطیب حضرات هم ورته څه نه وایي؟

**جواب:** زموږ په نزد جائز نه دي، [۴] د هغوی په نزد جائز دي.

---

[۱] وشرائط ......المصر والجماعة والخطبة......الخ (فتح القدير ج:۱ص:۴۰۸باب صلاة الجمعة)_

[۲] ولايشترط كونهم ممن حضر الخطبة كذا فى فتح القدير (عالمگيرى ج:۱ص:۱۴۸الباب السادس عشر) _

[۳] فى الدرالمختار:ومن ادركهافى التشهد اوسجود سهو على القول به فيها يتمها جمعة ......الخ وفى ردالمحتار:ولهما انه مدرك للجمعة فى هذه الحالة حتى تشترط له النية الجمعة وهى ركعتان (الدرالمختارمع الردالمحتار ج:۲ ص:۱۵۸) ايضًا:من ادرك الامام فى يوم الجمعة فى التشهد اوفيما سواه صلى مادرك معه وقضى مافاتاه فى قول ابى حنيفة وابى يوسف ......الحجة للقول الاول :قول النبى صلى الله عليه وسلم: ما ادركتم فصلوا ومافاتكم فاقضوا ومعلوم ان المراد مافاتكم من صلاة الامام ......الخ (شرح مختصرالطحاوى ج:۲ص:۱۱۸كتاب الصلاة)_

[۴] اذاخرج الامام فلاصلاة ولاكلام الى تمامها(شامى ج:۲ص:۱۵۸باب الجمعة مطلب فى شروط وجوب الجمعة)

## د خطبې دوران کې سنت کول

**سوال:** د جُمعې د خطبې دوران کې هیڅ قسمه لمونځ کول صحیح نه دي، خو د یو سړي وینا ده چې د خطبې دوران کې چې کله امام کیني؛ نو هغه وخت که یو سړی د امام د دوباره اودریدو نه مخکې د لمانځه نیت وکړي؛ نو هیڅ باک نه شته؟

**جواب:** د خطبې دوران کې لمونځ کول صحیح نه دي،که د خطبې د شروع کولو نه یې مخکې نیت تړلی وي؛ نو هغه دې د مختصر قرات سره پوره کړي، د دواړو خطبو دوران کې د امام د کیناستو په وخت نیت تړل صحیح نه دي، په درمختار کې دي:

"**اذا خرج الامام فلا صلوة ولا كلام الى تمامها،ولو خرج وهو فى السنة او بعد قيامه لثالثة النفل يتم فى الاصح ويخفف القراة**" (شامی طبع جدیدجلد:۲ صفحه:۱۵۸)[۱]

## د جُمعې د خطبې دوران کې دوه رکعته کول یوازې د یو صحابي له پاره استثنی وه

**سوال:** چې د جُمعې خطبه شروع وي؛ نو انسان به دوه رکعته کوي اوکه نه؟

**جواب:** دا مسئله د امامانو ترمینځه اختلافي ده،د امام صاحب رحمه الله په نزد ناجائز ده[۲]،په دې سلسله کې چې کوم حدیث راځي د امام صاحب په نزد هغه هم د هغه صحابي له پاره خاص و او رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه د خاطره خطبه درولې وه.[۳]

---

[۱] اذاخرج الامام فلاصلاة ولاكلام الى تمامها(شامى ج:۲ص:۱۵۸باب الجمعة مطلب فى شروط وجوب الجمعة)

[۲] واذا خرج الامام يوم الجمعة ترک الناس الصلوة والكلام حتى يفرع من خطبته قال: وهذا عند ابى حنيفة (هداية ج:۱ص: ۱۷۱،ايضًا:مختصرالطحاوى ج:۲ص:۱۳۰كتاب الصلاة باب صلاة الجمعة)_

[۳] عن جابر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم وهويخطب اذا جاء احدكم يوم الجمعة والامام يخطب فليركع ركعتين وليتجوز فيهما٠رواه مسلم (مشكوة ص:۱۲۳باب الخطبة والصلاة) وفى حاشية المشكوة وقوله فليركع ركعتين حملها ......الشافعية على تحية المسجد فانها واجبة عندهم وكذا عند احمد وعند الحنفية لمالم تجب فى غير وقت الخطبة لم تجب فيه بطريق الاولى وهو مذهب مالک وسفيان الثورى وعليه جمهور الصحابة والتابعين كذاقال النوى وتاوله بان المراد اراد ان يخطب بقرينة الاحاديث الدالة على وجوب حرمة الصلوة فى وقت الخطبة وقدثبت فى الصحيحين انه ٠جاء رجل الى النبى صلى الله عليه وسلم وهو يخطب بذاک الرجل الداخل وقيل كانت هذه القصة قبل ان يشرع فى الخطبة وقيل كانت الخطبة بغير الجمعة (مشكوة ص:۱۲۳حاشيه نمبر ۱۱باب الخطبة والصلاة الفصل الاول)_

## د جمعي د خطبې دوران کې نفل او خبرې کول

**سوال:** اکثر د جُمعې په لمانځه کې ګورو چې امام صاحب خطبه ورکوي او ځيني خلک سنت يا نفل کوي او ځينې په خپل مينځ کې خبرې کوي، څوک هم په ادب سره نه کيني څنګه يې چې خوښه وي پښې خورې کړي او کيني په دې مسئله باندې د احاديثو په رڼا کې جواب راکړئ او د ناستې متعلق هم وليکئ چې کله امام صاحب خطبه شروع کړي؛ نو چې څنګه مو خوښه وي کينو يا د التحيات شکل کې کينو؟

**جواب:** د خطبې دوران کې نفل کول حرام دي[1]،سنت موکده که يې د خطبې نه مخکې شروع کړي وي؛ نو د خطبې دوران کې دې پوره کړي او لږ دې مختصر کړي، د خطبې دوران کې هر قسمه خبرې کول هم حرام دي، په حديث کې دي:"چې چا د جمعې په ورځ د خطبې دوران کې د بل د خاموش کولو له پاره د "خاموش" لفظ هم وويل: هغه لغوه کار وکړ[2]او دا هم ارشاد دی چې:"کوم سړی چې د جُمعې په ورځ يو لغوه کار وکړي، د هغه د جُمعې ثواب ضائع شو."[3]

په ځينې جوماتونو کې د خطبې دوران کې د چندې له پاره جولۍ ګرځول کيږي دا هم ناجائز ده[4]او په دې سره د جُمعې ثواب ضائع کيږي د خطبې دوران کې د ناستې څه خاص طريقه نه ده مقرره، څنګه چې ورته اساني وي، خو پښو خورولو سره کيناستل د ادب خلاف دي، ددې نه ځان ساتل پکار دي[5]او ګونډو درولو سره په هغو باندې سر کيښودل هم صحيح نه دي په دې سره خوب راځي.

## د خطبې په دوران کې تحية الوضوء يا تحية المسجد ادا کول

**سوال:** د خطبې په دوران کې تحية الوضوء يا تحية المسجد ادا کيږي؟

---

[1] اذا خرج الامام فلا صلاة ولاكلام الى تمامها (شامي ج:٢ص:١٥٨) ،ايضًا:ومن دخل المسجد يوم الجمعة والامام يخطب جلس ولم يركع وذالک لقول الله تعالى :واذا قرى القرآن فاستمعوا له وانصتوا ،فروى انهانزلت فى شان الخطبة ،ومن جهة السنة .....قال (ابن عمر)سمعت النبى صلى الله عليه وسلم يقول: اذا دخل احدكم المسجد والامام على المنبرفلاصلاة له ولاكلام حتى يفرغ الامام(مختصرالطحاوى ج:٢ص:١٣١باب صلاة الجمعة)

[2] عن ابى هريرة رضى الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذاقلت لصاحبک يوم الجمعة انصت والامام يخطب فقد لغوت ،متفق عليه (مشكوة ص:١٢٢باب التنظيف والتكبير)۔

[3] عن عبدالله بن عمرو رضى الله عنهما قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :يحضرالجمعة ثلاثة نفر،فرجل حضرها بلغو فذلک حظه منها......الخ (مشكوة ص:١٢٣باب التنظيف والتكبير)۔

[4] ويحرم فى الخطبة مايحرم فى الصلاة حتى لاينبغى ان ياكل اويشرب والامام فى الخطبة كذا فى الخلاصة (عالمگيرى ج:١ص:١٤٧الباب السادس عشرفى صلاة الجمعة)۔

[5] اذا شهد الرجل عندالخطبة ان شاء جلس محتبيًا اومتربعًا اوكماتيسر......ويستحب ان يقعد كمايقعدفى الصلاة (عالمگيرى ج:١ص! ١٤٨الباب السادس عشرفى صلاة الجمعة)۔

**جواب:** د خطبې په دوران کې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد تحیة الوضوء یا تحیة المسجد اداکول جائز نه دي.[۱]

## د خطبې په مینځنی وقفه کې دعا کول

**سوال:** زموږ د محلې د امام صاحب وینا ده چې د جُمعې د خطبې په مینځنی وقفه کې په زړه کې پرته د ژبې د خوزولو او پرته د لاس پورته کولو دعا غوښتل جائز دي او د یو لمونځ کونکي وینا ده چې دا جائز نه دي او د علماء کرامو نه مو اوریدلي دي چې دا وخت د دعا د قبولیت وخت دی.

**جواب:** د جُمعې د خطبو په مینځنی وقفه کې د لاس پورته کولو او ژبې د خوزولو نه پرته په زړه کې دعا غوښتل جائز دي، دا د دعا د قبولیت وخت دی، خو په ژبې سره د دعا کولو اجازه نه شته.[۲]

## د خطبې دوران کې له اذان نه وروسته دعا کول

**سوال:** د جُمعې د خطبې دوران کې له اذان نه وروسته دعا کول پکار دي اوکه نه؟ او د خطبې دوران کې دعا غوښتل پکار دي اوکه نه؟

**جواب:** دامام په منبر باندې د ناستې نه وروسته د ذکر او دعا اجازه نه شته. بلکې خاموش اوسیدل او د خطبې اوریدل واجب دي، له دې وجې دې د جُمعې د اذان جواب ورنه کړل شي، د خطبې دوران کې که دعا وکړل شي د امام په دعا دې په زړه کې امین وویل شي.[۳]

## د جُمعې د خطبې نه مخکې تسمیه په لوړ اواز سره ولې نه لوستل کیږي؟

**سوال:** د جمعې خطبه په لوړ اواز بسم الله لوستلو سره ولې شروع نه کیږي؟

---

[۱] واذا خرج الامام یوم الجمعة ترک الناس الصلوة والکلام حتی یفرغ من خطبته قال وهذا عندابی حنیفة (هدایة ج:۱ص:۱۷۱) ،ایضًا: ومن جهة السنة....قال (ابن عمر) سمعت النبی صلی الله علیه وسلم یقول: اذا دخل احدکم المسجدوالامام علی المنبرفلاصلاة له ولا کلام حتی یفرغ الامام (شرح مختصرالطحاوی ج:۲ص:۱۳۰،۱۳۱)

[۲] وقال البقالی فی مختصره :واذا شرع فی الدعاء لایجوز للقوم رفع الیدین ولاتامین باللسان جهرًا فان فعلوا ذلک اثموا وقیل اساءوا ولا اثم علیهم ،والصحیح هوالاول وعلیه الفتوی (شامی ج:۲ص:۱۵۸باب الجمعة)

[۳] واذا خرج الامام فلا صلاة ولا کلام ......سواء کان کلام الناس اوالتسبیح اوتشمیت العاطس ......الخ (عالمگیری ج:۱ص:۱۴۷) ،قال ابوجعفر:ومن دخل المسجد یوم الجمعة والامام یخطب جلس ولم یرکع وذالک لقول الله تعالی : واذا قری القرآن فاستمعوا له وانصتوا ،فروی انها نزلت فی شان الخطبة ،ومن جهة السنة ......قال (ابن عمر)سمعت النبی صلی الله علیه وسلم یقول: اذا دخل احدکم المسجد والامام علی المنبرفلاصلاة له ولا کلام حتی یفرغ الامام (شرح مختصر الطحاوی ج:۲ص:۱۳۰،۱۳۱باب صلاة الجمعة طبع دارالسراج بیروت)۔

**جواب:** همدغه شان نقل شوي دي.[۱]

## د جُمعې خطبه د مسنونې طريقې خلاف لوستل

**سوال:** د جُمعې خطبه به د درود او سلام نه پرته وشي او که نه؟ د جواز په صورت کې به په ثواب کې فرق راشي او که نه؟ مثلاً: چې په لومړۍ خطبه کې سورت فيل او په دويم کې سورت قريش ولوستل شي؛ نو د جُمعې خطبه به ادا شي او که نه؟

**جواب:** د خطبې فرض به ادا شي، خو د سنت خلاف ده او دا ښکاره ده چې کله خطبه د سنت خلاف ده؛ نو په ثواب کې به فرق راځي.

## د خطبې نه مخکې د امام سلام ويل

**سوال:** د خطبې نه مخکې د امام په منبر باندې سلام لوستل نقل دي يا بدعت دي يا د ائمه اربعه په نزد جائز دي؟

**جواب:** په درمختار کې يې د سلام ترک کول په سنتو کې شمار کړي دي او د امام شافعي رحمه الله قول دی چې کله په منبر کيني؛ نو سلام دې کوي.[۲]

## په خطبه کې د خلفاء راشدينو ذکر ضروري دی

**سوال:** په ځينې جوماتونو کې عالمان (خطيبان) چې د جُمعې په لمانځه کې کومه خطبه ورکوي د هغه په دويمه برخه کې چې د خلفاء راشدينو نومونه ذکر کيږي هغه نه ذکر کوي.

**جواب:** په خطبه کې د خلفاء راشدينو ذکر د خير کار دی، دا د اهل سنت شعار دی، له دې وجې د خلفاء راشدينو ذکر پريښودل ډير نامناسب دي.[۳]

## د جُمعې د خطبې دوران کې د درود شريف لوستلو حکم

**سوال:** د جُمعې د خطبې دوران کې د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو رضي الله عنهم مبارک نومونه راځي؛ نو درخواست دادی چې په دې دوران کې په خاموشي سره خطبه واوريدل شي يا درود شريف او (رضي الله عنه) وويل شي؟

---

[۱] الخطبة تشتمل على فرض وسنة فالفرض شيئان الوقت ......والثانى ذكر الله تعالى وكفت تحميدة اوتهليلة اوتسبيحة هذا اذاكان على قصد الخطبة..الخ (عالمگيرى ج:۱ص:۱۴۷،الباب السادس عشر فى صلاة الجمعة)

[۲] ومن السنة ......ترک السلام من خروجه الى دخوله فى الصلاة وقال الشافعى اذا استوى على المنبرسلم ......الخ(درمختارمع ردالمحتار ج:۲ص:۱۵۰باب الجمعة)۔

[۳] ويندب ذكر الخلفاء الراشدين...الخ (شامى ج:۲ص:۱۴۹با ب الجمعة مطلب فى قول الخطيب ...الخ)

**جواب:** د خُطبې دوران کې په ژبه باندې درود شريف لوستل جائز نه دي، خاموش اوسيدل پکار دي، چې درسول الله ﷺ ذکر راشي: نو په زړه کې دې پرته د ژبې خوځولو نه درود شريف ولولي[1]،که په صحابه کرامو رضي الله عنهم باندې هم په زړه کې رضي الله عنهم ولولي؛ نو هيڅ باک نه شته، خو په ژبه دې نه وايي.

**سوال:** د جُمعې د لمانځه نه مخکې چې کومه خطبه په عربي کې لوستل کيږي، د دې په مينځ کې يو ايت داسې هم راځي چې په هغه کې درود شريف لازمي وي، زما د معلوماتو مطابق د خطبې دوران کې هيڅ قسمه تسبيح او لمونځ جائز نه دی؛ نودرود شريف دې هم ونه لوستل شي، ځکه چې په دې آيت کې خطيب په خطبه کې درود ولولي، په لوړاواز کوم چې د ټولو لمونځ کونکو له طرف درود شي، له دې وجې لمونځ کونکو ته د درود لوستلو ضرورت نه شته، خو ما اکثر کتلي دي چې خلک په لوړ اواز سره درود شريف لوستل شروع کړي حال دا چې په خطبه کې د خاموشي حکم دی.

**جواب:** اوريدونکي دې په خپل زړه کې درود شريف لولي، دخطبې دوران کې په لوړ اواز سره درود لوستل جائز نه دي.[2]

## د جُمعې د خطبې د اذان نه واخله تر د دوه رکعته فرض کولو پورې د نياوي خبرې کول

**سوال:** په اردو کې د بيان کړي وعظ نه وروسته په عربي کې د خطبې د اذان نه واخله د جُمعې تر دوه رکعته فرض ادا کولو پورې په دې دوران وقفه کې که د مسجد امام د لمانځه د اقامت نه لږ وخت مخکې د دنيادراي څه خبره وکړي؛ نو ايا هغه د جُمعې په ادا کولو کې د څه قسم شرعي نقطې يا حدود باندې د اوښتلو والاخو نه دی؟ ځکه چې په عربي کې خطبه هم مسلسل د جُمعې د لمانځه يوه برخه ده په دې دوران کې ځينې نور مسائل هم بيانول پکار دي اوکه نه؟ وضاحت وکړئ.

**جواب:** دجُمعې دخطبې په دوران کې خبرې کول يا په څه قسم عبادت کې مشغوليدل منع دي، خطبه اوريدل واجب دي، خوپه وقفه کې امام څه ضروري شرعي مسئلې بيانولی شي.[3]

---

1 ]قوله ولا الكلام ......وكذلک اذا ذكر النبى صلى الله عليه وسلم لايجوز ان يصلوا عليه بالجهربل بالقلب وعليه الفتوى (ردالمحتارعلى الدرالمختارج:٢ ص:١٥٨باب الجمعة مطلب فى شروط وجوب الجمعة)۔

2 ] ايضاً)۔

3 ]ايضاً پورتنۍ حواله، نيز: ويحرم فى الخطبة مايحرم فى الصلاة حتى لا ينبغى ان ياكل اويشرب والامام فى الخطبة (عالمگيرى ج:١ص:١٤٧كتاب الصلاة الباب السادس عشرفى صلاة الجمعة طبع رشيديه)

## د خطبې په دوران کې د رسول الله ﷺ په نوم راتلو با ندې درود شریف ولولي که خاموشي پاتې شي؟

**سوال:** د جُمعې د لمانځه په خطبه کې چې کله مولوي صاحب درود شریف لولي: نو د هغه په جواب کې اکثر لمونځ کونکي هم په لوړ اواز سره درود شریف لوستل شروع کړي، حال دا چې خطبه په خاموشي سره اوریدل واجب دي، د خطبې په دوران کې په لوړ اواز سره دورد لوستل کیږي اوکه نه؟ حال داچې درسول الله ﷺ نوم مبارک راشي؛ نو درودشریف لوستل د ثواب او خیراو برکت باعث دی.

**جواب:** د خطبې په دوران کې د وینا اجازه نه شته، له دې وجې درود شریف په زړه کې لوستل پکار دي، په ژبې سره نه. [1]

## د خطبې په دوران کې دعا غوښتل او د دویم اذان جواب ورکول

**سوال:** ځینې خلک د جُمعې د دواړو خطبو په دوران کې چې کله امام د لومړۍ خطبې نه وروسته د لږ ساعت له پاره کیني، دواړه لاسونه اوچتولو سره دعا غواړي، همدغه شان د امام په منبر باندې د کیناستو نه وروسته د کیدونکي دویم اذان نه وروسته لاسونه اوچتولو سره دعا غواړي، پوښتنه داده چې ایا دا طریقه صحیح ده؟

**جواب:** د امام په منبر باندې د کیناستو نه وروسته د ذکر او دعا اجازه نه شته، بلکې خاموش اوسیدل او د خطبې اوریدل واجب دي، له دې وجې دې نه د جُمعې د اذان جواب ورکول کیږي او نه دې د خطبې په دوران کې دعا غوښتل کیږي، د امام په دعا باندې دې په زړه کې آمین وایي. [2]

## په خطبه کې د خطیب لاسونه تړلو سره دریدل

**سوال:** د جُمعې د خطبې د ویلو په وخت خطیب داسې لاسونه وتړي، لکه په لمانځه چې ولاړ وي؟ اوریدلي مې دي دا ادب یوازې د الله پاک د دربار (لمانځه) دی.

---

[1] كذالک اذا ذكرالنبی صلى الله عليه وسلم لايجوزان يصلواعليه بالجهر بل بالقلب (ردالمحتارج:١ص:١٥٨)

[2] واذا شرع فی الدعاء لايجوز للقوم رفع اليدين ولاتامين باللسان جهرًا فان فعلوا ذلك اثموا (شامی ج٢ ص١٥٨) قال ابوجعفر: ومن دخل المسجد يوم الجمعة والامام يخطب جلس ولم يركع ،وذالک لقول الله تعالى :واذا قرى القران فاستمعوا له وانصتوا ،فروى انهانزلت فی شان الخطبة ......اذا دخل احدكم المسجد والامام على المنبر فلا صلاة له ولا كلام حتى يفرغ الامام، (الحديث) وايضاً: اتفقوا على ان من كان قاعداً فی المسجد حتى ابتداء الخطبة لم يركع كذالک الداخل ،كما لم يختلف الداخل والجالس فی منع الكلام ،والعلة الجامعة بينهما كونه ماموراً باستماع الخطبة فی الحالين (شرح مختصرالطحاوی ج:٢ص:١٣١)

**جواب:** په خطبه کې لاسونه پریښودو سره دریدل پکار دي.

## د جُمعې د خطبې د اذان جواب ورکول

**سوال:** د جُمعې په لمانځه کې د سنتو نه مخکې یو اذان کیږي او دویم د سنتو نه وروسته، په دواړو
کې د کوم اذان جواب ورکول پکار دي؟

**جواب:** جمعه کې د خطبې د اذان جواب نه شي ورکول کیدای. [١]

## د جُمعې په ورځ د وعظ په دوران کې د الله پاک ذکر کول او درود شریف لوستل

**سوال:** ایا د جُمعې په لمانځه کې د وعظ په دوران کې د الله پاک ذکر او درود شریف لوستل صحیح دي؟

**جواب:** د وعظ په دوران کې وعظ طرف ته متوجه کیدل پکار دي، دغه وخت کې څه لوستل صحیح نه دي.[٢]

## د جُمعې د خطبې په دوران کې خاموشي او د لاوډسپیکر استعمال

**سوال:** د جُمعې د خطبې په دورانِ کې مکمل خاموشي اختیارول او دا چې د سلام د جواب پورې د نه ورکولو احکامات دي، په مسجد کې موجود خلک خو ترڅه حده پورې ددې پابندي کولی شي، خو هر کله چې مولوي صاحب د اذان په لاؤډ سپیکر باندې خطبه لولي؛ نو په دې صورت کې په کورونو کې موجود په زرګونو سړي اوښځې، په سړکونو باندې تیریدونکي او په بازارونو کې اخیستونکي اوخرڅونکي خلک، د لمونځ تیاري کونکي او په مختلفو کارونو کې مصروف خلک، واضح او صفا طریقې سره د خطبې د اواز اوریدو باوجود دهغه په احترام کې خاموشي نه شي اختیارولی، پوښتنه دا ده چې دغه شان د اذان په لاؤډ سپیکر باندې لوستلو سره د هغه د احترام نه کیدو په صورت کې به د دې وبال د چا په سر

---

[١] قال: وینبغی ان لا یجب بلسانه اتفاقًا فی الاذان بین یدی الخطیب...الخ (درمختار ج:٢ص:٣٩٩باب الا ذان)

[٢] واذا شرع فی الدعاء لایجوز للقوم رفع الیدین ولاتامین باللسان جهرًا فان فعلوا ذلك اثموا (شامی ج٢ ص١٥٨) قال ابوجعفر: ومن دخل المسجد یوم الجمعة والامام یخطب جلس ولم یرکع ،وذالک لقول الله تعالی :واذا قری القران فاستمعوا له وانصتوا ،فروی انهانزلت فی شان الخطبة ......اذا دخل احدکم المسجد والامام علی المنبر فلا صلاة له ولا کلام حتی یفرغ الامام، (الحدیث) وایضاً: اتفقوا علی ان من کان قاعداً فی المسجد حتی ابتداء الخطبة لم یرکع کذالک الداخل ،کما لم یختلف الداخل والجالس فی منع الکلام ،والعلة الجامعة بینهما کونه ماموراً باستماع الخطبة فی الحالین (شرح مختصرالطحاوی ج:٢ص:١٣١)

وي؟ ايا د مولوي صاحب يا د هغه کسانو چې د هغوی غوږونو ته اواز ورځي او هغوی د احترام کولو نه قاصر وي؟ معلومول دادي چې دغه شان په لاوډ سپيکر باندې د جُمعې د خطبې د لوستلو څه مقصد دی؟

**جواب:** مسئله دا ده چې په اول اذان باندې هر قسم کاروبار بندول او د جُمعې د لمانځه له پاره تلل واجبيږي، د جُمعې د لمانځه نه وروسته په کاروبار کې مشغول پاتې کيدل حرام دي[1] له دې وجې په بازارونو کې د کاروبار کونکو په باره کې تاسو له د پريشانه کيدو ضرورت نه شته، د اذان جمعه اوريدو نه وروسته د جُمعې د لمانځه له پاره نه تلل خپله دومره لويه ګناه ده چې درې جُمعې په داسې کولو باندې په زړه د منافقت مهر لګيږي، چې د توبې نه پرته ترمرګه پورې نه ختميږي، [2] داسې خلک که د کاروبار له وجې د جُمعې خطبه نه اوري؛ نو په دې کې قصور د هغوی د نفاق دی، نه د خطبې د اواز.

هر چې د جمعې د تياري کونکو تعلق دی؛ نو ايا دجمعې تياري د خطبې شروع کولو نه وروسته کيږي؟ د جُمعې تياري خو دا ده چې انسان کم نه کم د خطبې د شروع کولو نه مخکې خو په مسجد کې موجود وي، په حديث کې راځي چې د جُمعې په ورځ باندې ملائکې د مسجد په دروازه باندې کيني او په اول، دويم، دريم او څلورم وخت کې د راتلونکو نومونه په ترتيب باندې ليکي او کله چې امام د خطبې له پاره ووځي؛ نو هغوی خپلې رجسټرې کيږدي او د ذکر (خطبې) په اوريدو مشغولې شي، ګويا د خطبې د شروع کيدو نه وروسته چې کوم خلک راځي، د هغوی د نومونو اندراج په هغه صحيفو کې نه کيږي او د هغوی حاضري نه لګيږي[3]، له دې وجې د جُمعې د لمانځه تياري د خطبې پورې موخر کول غلط او بد دي، مګر دا چې د څه خاص عذر له وجې داسې وشي؛ نو معذوري ده.

هر چې د کور د ښځو تعلق دی دهغوی په ذمه دجُمعې لمانځه ته تلل او د خطبې اوريدل فرض

---

[1] ]ويجب السعى وترک البيع بالاذان الاول (عالمگيرى ج:١ص:١٤٩)٠ايضًا:قال :ابوجعفر:واذا زالت الشمس يوم الجمعة جلس الامام على المنبر ،واذن الموذن بين يديه وامتنع الناس من الشراء والبيع واخذوا فى السعى الى الجمعة ......الخ ٠قال ابوبكر بن احمد :وذالک لقول الله عزوجل :يايهاالذين امنوا اذا نودى للصلوة من يوم الجمعة فاسعوا الى ذكر الله وذروا البيع ،فانتظمت الآية المعانى ،الاذان للجمعة ولزوم السعى اليها ،وترک الاشتغال بالبيع (شرح مختصر الطحاوى ج:٢ص:١١٤باب صلاة الجمعة)

[2] ]عن ابى الجعدالضمرى وكانت له صحبة ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: من ترک ثلاث جمع تهاونا بها طبع الله على قلبه (ابوداود ج:١ص:١٥٩باب التشديد فى ترک الجمعة)

[3] ]وعنه (اى ابى هريرة)قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :اذا كان يوم الجمعة وقفت الملائكة على باب المسجد يكتبون الاول فالاول ......فاذا خرج الامام طوّوا صحفهم ويسمعون الذكر ٠متفق عليه (مشكوة ج:١ص:١٢٢)كتاب الصلاة ،باب التنظيف والتكبير،الفصل الاول ،طبع قديمى خانه)

نه دي[۱]، خو که په کورونو کې د خطبې اواز راځي او هغوی د هغه په احترام کې خاموشي اختیار کړي؛ نو د هغوی له پاره هم د سعادت او رحمت سبب دی، په سړکونو باندې تیریدو سره د خلکو په غوږونو کې که د جمعې د خطبې اواز راځي: نو په سړکونو باندې د هغوی چغې سورې وهلو سره تلل د عیب خبره ده، کوم چې د انساني وقار خلاف ده.

خلاصه دا چې تاسو چې څومره امور ذکر کړي دي، په هغو کې یوه خبره هم داسې نه شته چې هغه په لاوډسپیکر باندې د خطبې ورکولو نه مانع وي، خو که د خطبې اواز د مسجد پورې محدود وي؛ نو غوره ده.

## د جُمعې د خطبې دوران کې آمین ویل صحیح نه دي

**سوال:** دلته د جُمعې په خطبه کې د دویمې خطبې په دوران کې چې کله خطیب صاحب د دعا کلمات وایي؛ نو تقریبا ټول خلک په لاس اوچتولو سره په ورو اواز سره آمین وایي، ایا دا عمل جائز دی؟

**جواب:** د خطبې دوران کې په ژبه باندې آمین ویل صحیح نه دي په زړه کې دې وایي.[۲]

## د خطبې دوران کې سلام کول او جواب ورکول حرام دي

**سوال:** که په جومات کې امام د جُمعې خطبه لولي او یو سړی راشي سلام وکړي؛ نو په جومات کې ناستو خلکو ته د هغه د سلام جواب ورکول پکار دي؟

**جواب:** د خطبې دوران کې سلام کول او د هغه جواب ورکول دواړه حرام دي.[۳]

## د خطبې دوران کې خبرې او د اذان جواب ورکول

**سوال:** په شریعت کې د خطبې څه احکام دي؟ او د خطبې د اذان په ژبې سره جواب ورکول جائز دي؟ په تفصیل سره جواب راکړئ!

**جواب:** د خطبې دوران کې خبرې کول تر دې چې ذکر کول هم منع دي، د خطبې د اذان جواب هم په زړه کې ورکول پکار دي په ژبې سره نه.[۴]

---

۱ ]لاتجب الجمعة على العبيد والنسوان والمسافرين والمرضى ،كذا فى محيط السرخسى (عالمگیری ج:۱ ص:۱٤٤ كتاب الصلاة ،الباب السادس عشرفى صلاة الجمعة)

۲ ] واذا شرع فى الدعاء لايجوز للقوم رفع اليدين ولاتامين باللسان جهرًا فان فعلوا ذلک اثموا ( شامی ج:۲ص:۱۵۸ باب الجمعة مطلب فى شروط وجوب الجمعة)_

۳ ] واذا خرج الامام فلا صلوة ولاكلام.....او رد السلام.....الخ (عالمگیری ج:۱ص:۱٤۷ كتاب الصلاة)

٤ ] قال ابوجعفر:ومن دخل المسجد يوم الجمعة والامام يخطب جلس ولم يركع ،وذالک لقول الله تعالى :واذا قرى القرآن فاستمعوا له وانصتوا فروى انها نزلت فى شان الخطبة ،ومن جهة السنة ......قال (ابن عمر)سمعت النبى صلى الله عليه وسلم يقول: اذا دخل احدكم المسجد والامام على المنبر..[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

## د خطبې دوران کې چنده ورکول او اخيستل جائز نه دي

**سوال:** د جُمعې د خطبې دوران کې اسلام په خبرو کولو باندې سخته پابندي لګولې ده، خو په ځينو جوماتونو کې عين د خطبې دوران د لمونځ کونکو نه چنده اخيستل کيږي او صندوقچې په زوره زوره وهلو سره "د جومات چنده" اواز اوچتيږي، چې په دې سره د لمونځ کونکو توجه د لمانځه نه بل خوا شيّ او لمونځ کونکي خلک د چندې په ورکولو کې مصروف شي، ايا دا طريقه صحيح ده؟ ايا د جومات په انتظاميه باندې ګناه شته؟ ايا په چنده ورکونکو باندې به هم ګناه وي کوم چې د خطبې نه توجه واړوي؟

**جواب:** د جمعې د خطبې دوران کې چې څنګه سلام او کلام جائز نه دی، دغه شان چنده جمع کول هم جائز نه دي انتظاميه، چنده اخيستونکي او چنده ورکونکي ټول ګناهګار دي.[۱]

## د جُمعې خطبه يو ه ولوستله او لمونځ بل ورکړ

**سوال:** مخکې ورځو کې زه د لمونځ کولو له پاره لاړم، د جُمعې خطبه او د جُمعې لمونځ بيل بيل مولوي صاحب ورکړ، ايا په داسې طريقه باندې جمعه ورکول صحيح دي؟ د اسلام په رڼا کې ددې جواب راکړئ!

**جواب:** غوره داده چې کوم سړی خطبه ولولي هماغه لمونځ هم ورکړي، خو که بل چا لمونځ ورکړ؛ نو بيا هم جائز ده.[۲]

## په خطبه او لمانځه کې د خلکو رعايت ساتل پکار دي

**سوال:** څنګه چې ما کتلي دي چې ځينې علماء په لمونځونو کې او په خاص ډول د جُمعې په لمانځه کې اوږد قرات کوي او د لمانځه نه وروسته اوږدې دعا ګانې کوي، ايا دا طريقه غلطه نه ده؟ ځکه چې په جومات کې داسې خلک دريږي چې په هغوی کې د چا ضروري کار وي يا د چا په اندام تکليف وي، د قرآن او سنت په رڼا کې وضاحت وکړئ!

**جواب:** خطبه او لمونځ دومره اوږدول نه دي پکار چې خلک تنګ شي[۳] او په وروسته دعا کې خلکوته اختيار دی که شريکيږي او که نه شريکيږي له دې وجې که دچا ضرورت وي؛ نو تللی شي

---

....بقيه د تير مخ].. فلاصلاة له ولاكلام حتى يفرغ الامام (شرح مختصر الطحاوى ج:۲ص:۱۳۰،۱۳۱باب صلاة الجمعة)_

۱ ] ايضاً)_

۲ ] ولاينبغى ان يصلى غير الخطيب كذا فى الكافى ،واذا حدث الامام بعد الخطبة فاستخلف رجلا ان شهد الخليفة الخطبة جاز والا فلا (عالمگيرى ج:۱ص:۱۴۷كتاب الصلاة ،الباب السادس عشر فى صلاة الجمعة)_

۳ ]تخفيف الخطبتين بقدر سورة من طوال المفصل ويكره التطويل ......الخ (عالمگيرى ج:۱ص:۱۴۷)_

## د جُمعې لمونځ په دويم ځل کول

**سوال:** يو سړی په څو جوماتونو کې په يوه ورځ د جُمعې لمونځ (دوه رکعته فرض) د مجبوري په حالت کې کولی شي اوکه نه؟ يعنې زيد په مسجد طوبی کې دوه رکعته فرض (د جُمعې) کولو نه وروسته په مسجد قباء کې بيا دوه رکعته د جُمعې فرض لمونځ کولی شي اوکه نه؟

**جواب:** يو لمونځ دوباره کول جائز نه دي، خو د نفلو په نيت باندې په دويم جماعت کې شريکيدلی شي.[۱]

## د جُمعې د لمانځه د سنتو نيت به څنګه کوي؟

**سوال:** د جُمعې لمونځ چې د ماسپښين د لمانځه قائم مقام دی په دې کې لومړی د څلور رکعتو سنتو نيت څنګه کيږي؟ په نيت کې به هغه وخت د جُمعې نوم اخيستل کيږي يا د ماسپښين؟ دغه شان د جُمعې د دوه فرضو نه وروسته څلور رکعته سنت او دوه رکعته سنت او دوه رکعته نفل دي، ددې دنيت کولو په وخت د جمعې نوم اخيستل پکار دي اوکه نه؟ ددې د نيت هم صحيح طريقه وليکئ!

**جواب:** د جُمعې نه مخکې او وروسته سنتو ته د جُمعې سنت ويل کيږي او د جُمعې د سنتو نيت کيږي، هسې خو سنت د مطلق لمانځه په نيت سره هم ادا کيږي، په دې کې د وخت نوم اخيستل هم ضروري نه دي.[۲]

## ايا د جُمعې د سنتو له پاره د جُمعې تعيين ضروري دی؟

**سوال:** د جُمعې د سنتو له پاره د جُمعې تعيين تاسو ضروري ليکلی دی، حال دا چې د فقه په کتابونو کې وضاحت موجود دی چې د سنتو له پاره دمطلق لمانځه نيت کافي دی، تاسو د حوالې وضاحت وکړئ.

**جواب:** د جُمعې تعيين ما ضروري نه دی ليکلی، سائل پوښتنه کړې وه چې دجُمعې په سنتو کې دجُمعې نيت پکاردی که د ماسپښين؟ ددې په جواب کې ماليکلي و چې "د جُمعې د سنتو نيت وي د ماسپښين د سنتو نيت نه" پاتې شوه دا چې د سنتو د صحت له پاره د نيت تعيين شرط دی اوکه نه؟ دا ځانته مسئله ده د دې جواب دا دی چې" سنت پرته د تعيين نه هم

---

۱ ] ويصلى المتنفل خلف المفترض ،لان الحاجة فى حقه الى اصل الصلوة وهو موجود فى حق الامام فيتحقق البناء (هداية ج:۱ص:۱۲۷ كتاب الصلاة باب الامامة)_

۲ ] (وكفى مطلق نية الصلاة) وان لم يقل الله (لنفل وسنة)راتبة (وتراويح)على المعتمد اذ تعينها بوقوعها وقت الشروع. وفى الشامية :(قوله وكفى الخ)اى بان يقصد الصلاة بلاقيد نفل اوسنة اوعدد (قوله لنفل) هذا بالاتفاق (قوله وسنة) ولوسنة فجر.....(قوله على المتعمد)اى من قولين مصححين(ردالمحتارمع الدرالمختار ج:۱ ص:۴۱۷ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب فى حضورالقلب والخشوع ،طبع ايچ ايم سعيد كراچى)

ادا کیږي، د نیت تعین د دې له پاره شرط نه دی.[1]

## د جُمعې نه مخکې څلور رکعته کول څنګه دي؟

**سوال:** زه او زما دوست حرم شریف ته د جُمعې د لمانځه له پاره لاړو، چې کله موږ ورسیدو؛ نو جمعه ولاړه و، څلور رکعته سنت کوم چې د جُمعې د دوه رکعتو فرض نه مخکې ادا کیږي په باره کې زما او زما د ملګري ترمینځه تکرار راغی، زه وایم چې دا څلور رکعته سنت به کیږي، زما دوست وایي چې نه به کیږي.

**جواب:** د ماسپښین او د جمعې نه مخکې څلور رکعته سنت موکده دي که مخکې موقع ملاو نه شي؛ نو وروسته یې کول ضروري دي.[2]

## د سنت قبل الجمعة ثبوت

**سوال:** دې وخت کې زه په دمام کې کار کوم او د جُمعې څلور سنت کوم چې به مخکې په پاکستان کې کېدل، دلته وایي چې مخکې نه کیږي، د زوال وخت وي، دلته په پوښتنه کولو باندې څوک وایي چې وکړه هیڅ باک نه شته، څوک وایي مه یې کوه، په هر حال څه تسلي بخش جواب ملاو نه شو، له دې وجې تاسو د دې حل لیکلو سره راولیږئ چې څه وکړل شي؟

**جواب:** د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو رضی الله عنہم نه قبل الجمعة سنت کول ثابت دي، د دې تفصیل د اعلاء السنن په اووم جلد کې موجود دی.[3]

## د جُمعې په لمونځ کې اوږد قرأت کول

**سوال:** د جُمعې په لمانځه کې ډېر کسان داسې هم راشي چې ناروغ یا معذور وي، د دې نه پرته هم ډېرې مجبوري کیدای شي، د جُمعې په ورځ باندې دلته یو امام صاحب د لمانځه امامت کوي، خو الله پاک ته پته ده چې د کوم پروفیسر مضمون دی چې هغوی دا هم پته نه شته چې د امامت څه اداب دي؟ د قراءت د فن نه بالکل ناخبره کیدو سره سره اوږد قراءت فرمایي او په کوم انداز یې چې لولي؛ نو ماته معلومه نه ده چې زما لمونځ کیږي او که نه کیږي؟ ځکه چې د هغوی غلط لوستل اوږده اوږده سورتونه په غلط انداز باندې د زیر او زبر په غلطیانو

---

1 ]ثم ان كانت الصلاة نفلاً يكفيه مطلق النية ،وكذالک اذا كانت سنة فی الصحيح ،هداية ،والتعيين افضل واحوط ......والمعتبر فی النية عمل القلب لانها الارادة السابقة للعمل اللاحق فلا عبرة للذكر باللسان (اللباب فی شرح الكتاب ج:١ص:٧٨باب شروط الصلاة التی تتقدمها ،طبع قديمی ،ايضًا: ردالمحتار ج:١ص:٤١٧باب شروط الصلاة)

٢ ] بخلاف سنة الظهر وكذا الجمعة انه يتركها ويقتدی ثم ياتی بها فی وقته .......الخ (شامی ج:٢ص:٥٨)۔

٣ ]عن ابی عبدالرحمان السلمی قال:كان عبدالله يامرنا ان نصلی قبل الجمعة اربعًا وبعدها اربعًا (اعلاء السنن ج:٧ص:٧) ، ايضاً تفصيل دپاره اوګورئ:اعلاء السنن ج:٧ص:٧نه ١٥پورې باب النوافل والسنن

سره لوستلو باندې زما ذهن ډير ګډوډ شي، د جُمعې په لمانځه کې بهر په انګړ کې ګرمي او هغه هم سخته، خلک ولاړ دي او هغوی د اوږدو سورتونو کوشش فرمايي. يوه ورځ خو زما مخکې يو مشر سړی باندې چکر راغی او راپريوت. ايا د داسې امام د پوه کولو څه طريقه شته؟ د حديث نبوي ﷺ په رڼا کې بيان وفرمايئ چې د جُمعې د لمانځه له پاره څه حکم دی؟ او د غلط قرآن لوستلو څه عذاب دی؟ او ددې څوک ذمه دار دي؟

**جواب:** قرآن د غلط لوستونکي امامت جائز نه دی،[۱] او په لمونځ کې د کمزورو او ناروغانو د رعايت کولو حکم دی، د رسول الله ﷺ واضح ارشاد دی چې کوم سړی امام وي هغه دې لمونځ مختصر کوي، ځکه چې په هغوی کې به څوک ناروغ هم وي، څوک به پکې کمزوري وي، څوک به حاجتمن وي.[۲]

## د جُمعې په وروستيو سنتو کې وقفه کيدل پکار دي

**سوال:** د جُمعې د لمانځه نه وروسته ددعا د ختميدو سره فورا څه خلک په جومات کې سنت لوستل شروع کړي او تلونکو ته د يو منټ وقفه هم نه ورکوي او که څوک څومره بچ کيدو سره بهر ته د تلو کوشش کوي؛ نو په هغه پسې خبرې کوي.

**جواب:** دَ جُمعې د لمانځه نه وروسته تلونکو ته مهلت ورکول پکار دی، د چا څه اهم ضرورت وي او د هغه له پاره دريدل ممکن نه وي او په يو مسلمان پسې خبرې کول خو ډيره بده خبره ده،کوم خلک چې داسې کوي هغوی د "نيکي برباد او ګناه لازم" مصداق دي.[۳]

## د جمعة الوداع په باره کې

**سوال:** د جمعة الوداع د فضيلت څه وجوهات دي؟ حال دا چې په رمضان المبارک کې خو هرې جُمعې ته په خپل ځان کې يو خصوصيت او فضيلت حاصل دی. مهرباني وکړئ په دې سلسله کې تفصيلي جواب راکړئ چې ددې د اهميت اندازه وشي.

**جواب:** په عوامو کې د رمضان المبارک اخري جُمعه ډيره په اهميت سره مشهوره ده او دې ته جُمعة الوداع ويل کيږي، خو په احاديثو کې د اخري جُمعې څه خصوصي فضيلت نه دی ذکر شوی، بلکې دا وينا به صحيح وي چې د اخري جُمعې يا جمعة الوداع کوم تصور چې په موږ کې رواج دی په احاديثو کې د هغه څه ذکر نه شته دا معلومه نه ده چې د رمضان د اخري

---

۱ ]اذا ام امی امیا وقارئا فصلاة الجمیع فاسدة عند ابی حنیفة رحمه الله تعالی (عالمگیری ج:۱ص:۵۸)

۲ ]عن ابی هریرة رضی الله عنه یقول: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :اذا صلی احدکم للناس فلیتخفف فان فی الناس الضعیف والسقیم وذا الحاجة (مسلم ج:۱ص:۱۸۸باب امر الآئمة بتخفیف الصلاة فی تمام)

۳ ] عن عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده .....الخ ( مشکوة ص:۱۲کتاب الایمان الفصل الاول)_

جمعې نوم "اخري جمعه" یا "جمعة الوداع" د کله نه جاري شو؟ او دا نوم ولې کېښودل شو؟ کیدای شي ددې وجه دا وي چې د مشکوة شریف په یوحدیث کې راځي چې:"د رمضان المبارک دختمیدونه وروسته(یعنې د اختر د ورځې نه) د بل رمضان المبارک پورې جنت ښکلي کول شروع کړل شي."[1]

دا روایت کمزوری دی، خو د دې حدیث مطابق ګویا د جنت او اهل جنت نوی کال د وړوکي اختر له ورځې شروع کیږي او په رمضان المبارک باندې ختمیږي. له دې وجې ګویا د جنت دتقویم مطابق ګویا رمضان المبارک د کال اخري میاشت ده او دا جُمعه د کال اخري جُمعه ده(والله اعلم)او دا هم ممکنه ده چې د اخري جُمعې نه وروسته د رمضان المبارک په ختمیدو کې د هفتې نه د کمو ورځو وقفه پاتې شي، له دې وجې اخري جُمعه ګویا د رمضان د میاشت د جدایي او رخصتیدو علامت دی او هیڅ پته نه لګیږي چې بیا دا مبارک وختونه چا ته نصیب کیږي، د ځینې خلکو عادت دی چې هغوی د اخري جُمعې په خطبه کې د رمضان المبارک جدایي او رخصت ډیر په غمژن انداز کې بیانوي، خو فقهاء کرامو د اخري جُمعې په خطبه کې د جدایي او رخصت مضمون بیانولو ته مکروه ویلي دي، مولانا زوار حسین مجددي نقشبندي په خپل کتاب"زبدة الفقه" کې لیکي:

"د رمضان المبارک د اخري جُمعې په خطبه کې د رخصت او جدایي مضمونونه بیانول د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو رضی الله عنهم او سلف صالحینو نه ثابت نه دي، اګر چې في نفسه مباح دي، خو ددې بیانول ضروري ګڼل او نه بیانونکي ته بد ویل غلطه خبره ده، نور هم پکې ډیر نقصانونه دي، ددې نقصانونو له وجې ددې کلماتو پرېښودل لازمي دي چې ددې نقصاناتو اصلاح وشي." (زبدة الفقه:ج:۲ص:۲۰۶)

## که د جُمعې په ورځ اختر وي؛ نو د جمعې لمونځ به هم کیږي

**سوال:** د تیر وړوکي اختر په موقع باندې یو مولانا صاحب یو مسئله بیان کړه چې د دوه اخترونو د جمع کیدو په صورت کې (چې جمعه او اختر په یو ورځ راشي) چې کوم خلک د اختر لمونځ ونکړي په هغوی باندې هیڅ ګناه نه شته، ددې مسئلې د بیانولو نه وروسته عامو

[1] ]عن ابن عمر رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم قال: ان الجنة تزخرف رمضان من راس الحول الی حول قابل قال فاذا کان اول یوم من رمضان هبت ریح تحت العرش من ورق الجنة....الخ (مشکوة ص:۱۷۴ الفصل الثالث) وفی المرقاة :ولایبعد ان یجعل راس الحول مما بعد رمضان ولعله اصطلاح اهل الجنان وبناسبه کونه یوم عید وسرور ودقت زینة وحبور ثم رایت ابن حجر قال لعل المراد هنا بالحول بان تبتدی الملائکة فی تزوینها اول شوال وتستمرالی الاول رمضان ففتح ابوابها.....قال ابن خزیمة فی القلب من جرید بن ایوب یعنی احد رواته شیء قال المنذری وجری بن ایوب البجلی واه والله اعلم اقول وللحدیث شاهد آخرمن حدیث ابن عباس رضی الله عنهما آخرجه ابوالشیخ فی کتاب الثواب والبیهقی ایضًا:قال المنذری ولیس فی اسناده ممن اجمع علی ضعفه فاختلاف طرق الحدیث یدل علی ا نه له اصلاً (مرقاة شرح المشکوة ج:۲ص:۵۰۱)_

خلکو ددې رعایت نه ښه فائده پورته کړه، یعنې اختر یې ښه په شوق ولمانځه او د جُمعې د لمانځه له پاره رانغلل، خو کوم خلک چې د لمانځه زیات پابند وو، هغوی راغلل. خو هغه وو څومره؟ د لمونځ کونکو تعداد په شلو کسانو کې محدود پاتې شو، حال دا چې عموما دلته یو لوی رش وي ددې لمونځ کونکو په زړونو کې یو شک پیدا شو چې د هغه د لرې کولو کوشش وشو او تر اوسه پورې چې د کوم عالم نه پوښتنه شوې ده، هغه په دې مسئله باندې رد کړې دی، یوازې دا نه، بلکې ځینې کتابونه هم وکتل شول په هغو کې زیاته هم دا رایه په نظر راغله چې په لمانځه کې رخصت نه شي ورکول کیدای او امام ابوحنیفه رحمه الله هم په واضح ډول سره د دې بیان شوې مسئلې خلاف په نظر راځي. هغه د جُمعې او د اختر د لمانځه د فرضیت واجبیت د برقرار ساتلو په حق کې دی.

**جواب:** د اختر لمونځ واجب دی[۱]او د جُمعې لمونځ فرض عین دی[۲]، یو واجب د فرض عین قائم مقام څنګه کیدای شي؟ بیا د اختر د لمانځه وخت د زوال نه مخکې دی[۳]او جُمعه د زوال نه وروسته فرض کیږي، کوم لمونځ چې دزوال نه مخکې ادا شو هغه د جُمعې قائم مقام څنګه کیدای شي؟[۴] له دې وجې د جمهور امامانو په نزد د جُمعې لمونځ ساقط نه دی، امام ابوحنیفه، امام مالک او امام شافعي رحمهم الله د دې قائل دي، د کومو روایاتو نه چې دا شک راځي چې د اختر په لمانځه سره د جُمعې لمونځ ساقطیږي هغه د ښار والا په باره کې نه ده، بلکې د باندې د خلکو له پاره ده[۵]یعنې د کلي کوم خلک چې د اختر د لمانځه له پاره ښار ته راغلي وي، هغوی که د جُمعې د لمانځه نه مخکې تلل غواړي؛ نو تللی شي (هغوی به کور ته تلو سره د ماسپښین په وخت د ماسپښین لمونځ کوي)، ددې له وجې په ځینو روایاتو کې خو ددې ښکاره وضاحت موجود دی او په ځینو کې اګر چې وضاحت نه شته، خو هغه هم په دې باندې حمل دی، په هرحال د هغه امام صاحب فتوا بالکل غلطه او غیر ذمه داره ده د خلکو د جُمعې د پریښودو ګناه به د هغه په سر وي.

---

۱ ] وتجب صلاة العیدین علی اهل الامصار کماتجب الجمعة (بدائع الصنائع ج:۱ص:۲۷۵کتاب الصلاة)_

۲ ] ان الجمعة فریضة محکمة بالکتاب والسنة والاجماع یکفرجاحدها (فتح القدیر ج:۱ص:۴۰۷)

۳ ] وقت صلاة العیدین حین تبیض الشمس الی ان تزول (بدائع الصنائع ص: ۲۷۶کتاب الصلاة)_

۴ ] قال: ولاتجزئ الجمعة الا فی وقت الظهر وذالک لان فرض الجمعة لماکان مجملاً فی الکتاب مفتقرًا الی البیان ،ثم لم یرد عن النبی صلی الله علیه وسلم فعلها الا فی وقت الظهر صارفعله لها علی هذا الوجه علی الوجوب (شرح مختصرالطحاوی ج:۲ص:۱۲۲،۱۲۳کتاب الصلاة وقت الجمعة)_

۵ ]قال: اکثرالفقهاء :تجب الجمعة لعموم الآیة والاخبارالدالة علی وجوبها ،ولانهما صلاتان واجبتان فلم یسقط احدهما بالاخری قال ابن عبدالبر سقوط الجمعة بالعید مهجور وعن علی رضی الله عنه ان ذلک فی اهل البادیة ومن لاتجب علیه الجمعة (معارف السنن ج۴ ص۴۳۲، ایضاً اعلاء السنن ج۸ ص۷۴. باب اذا اجتمع العید والجمعة لاتسقط الجمعة به)_

## ایا ښځه په کور کې د جُمعې لمونځ کولی شي؟

**سوال:** که یوه ښځه په خپل کور کې یوازې پاتې کیږي او هغه د جُمعې لمونځ پرته د امام، پرته د خطبې اوپرته د لمونځ کونکي نه وکړي؛ نو ایا د هغه لمونځ وشو؟

**جواب:** د جُمعې د لمانځه له پاره خطبه او جمعه شرط ده[1] او دا دواړه شیان د سړیو پورې خاص دي، له دې وجې ښځه یو ځای کیدو سره هم د جُمعې لمونځ نه شي ادا کولی او ځانته ښځه یې خو په طریقه اولی نه شي لوستلی[2]، دې ښځې ته پکار دي چې په کور کې د ماسپښین لمونځ وکړي، ګني د ماسپښین د لمونځ پرېښودو ګناه به د هغوی په سر باندې وي، ځینو ښځو باندې د بزرګي هیضه راشي او د خپلې بزرګي د ښودلو له پاره داسې د شریعت خلاف خبرې ښایي.

## د ښځو د جُمعې او اختر لمونځ

**سوال:** ایا ښځوته دجُمعې او اخترلمونځ کول پکاردي؟ زه داسې جُمعه کوم : اول څلور رکعته فرض قضا کوم چې د تېرلو نه مخکې زما نه شوي دي، (قضاء لمونځ زه د هر لمانځه نه مخکې ادا کوم) بیا څلور سنت، څلور فرض، دوه رکعته د جُمعې لمونځ، دوه نفل، دا صحیح دي؟

**جواب:** اختر او جُمعه د ښځو په ذمه نه شته،[3] خو که هغه د اختر او جُمعې په لمانځه کې شریکې شي؛ نو د هغوی د جُمعې او اختر لمونځ به ادا شي[4] څنګه چې تاسو جُمعه کوئ دا غلطه ده، د جُمعې او اختر لمونځ ځانته نه کیږي، تاسو د ماسپښین په شان لمونځ د جُمعې په ورځ هم ادا کوئ.[5]

## ښځه به په کور کې جُمعه په جمعې سره ادا کوي او که د ماسپښین لمونځ؟

**سوال:** ښځه که په مسجد کې د جُمعې لمونځ نه شي ادا کولی؛ نو بیا به ایا په کور کې د

---

[1] ولوجوها ......شرائط ......المصر والجماعة والخطبة ......الخ (فتح القدیر ج:۱ص:۴۰۸)۔

[2] واحترز بالرجال عن النساء والصبیان فان الجماعة لاتصح بهم وحدهم لعدم صلاحیتهم للامامة فیهابحال بحرعن المحیط (ردالمحتارج:۲ص:۱۵۱باب الجمعة مطلب فی قول الخطیب ......الخ (ایضاً بدائع الصنائع ج:۱ص:۲۶۲)۔

[3] ولاتجب الجمعة علی المسافرولا امراة ......فان حضروا فصلوا مع الناس اجزاهم عن فرض الوقت لانهم تحملوه فصاروا کالمسافراذا صام (هدایة ج:۱ص:۱۶۹باب صلاة الجمعة ایضًا: حلبی کبیر ص:۴۷۲فصل فی صلاة الجمعة)

[4] ایضاً۔

[5] واحترز بالرجل عن النساء والصبیان فان الجمعة لاتصح بهم وحدهم لعدم صلاحیتهم للامامة فیها بحال ،بحرعن المحیط(ردالمحتارج:۲ص:۱۵۱باب الجمعة مطلب فی قول الخطیب،ایضًا:بدائع الصنائع ج:۱ص:۲۶۲)

جُمعې لمونځ جمعې سره کوي یا که د ماسپښین لمونځ ورته په جمعې سره کول پکار دي یا ځانته لمونځ؟

**جواب:** ځانته ښځه د جُمعې لمونځ نه شي ادا کولی، هغوی ته د ماسپښین لمونځ ځانته ځانته کول پکار دي.[1]

## ایا ښځې د جُمعې په لمونځ کې شرکت کولی شي؟

**سوال:** ښځې په جومات کې د جُمعې لمونځ امام صاحب سره په جمعې اداکولی شي او که نه؟

**جواب:** د ښځو جوماتونو ته جمعې سره لمونځ کولو له پاره تلل د زمانې د فساد اود فتنې د ویرې له وجې مکروه دي. [2]

## واړه ماشومان مسجد ته راوستل چې د خلکو لمونځ خرابوي

**سوال:** عام ډول سره دا کتل شوي دي چې د جمعې لمونځ کونکي خپل ځان سره د دوه نیم درې کلونو پورې ماشومان او ماشومانې هم مسجد ته راولي، ګویا څه میله یا تماشه کتلو ته راغلي دي، دا ماشومان د مسجد د ادابو او د لمانځه نه قطعي ناخبر وي، لهذا د لمانځه په دوران کې ماشوم د خپلو حرکتونوله وجې د نورو د لمانځه په ادا کولو کې خلل پیدا کوي، پوښتنه داده چې دا واړه ماشومان مسجد ته راوستل پکار دي اوکه نه؟ او که د هغوی له وجې د چا په لمانځه کې کوتاهي یا خامي واقع شي؛ نو د هغه جزا او سزا په چا باندې لازمیږي؟ په ماشوم، که د هغه په راوستونکي او که په لمونځ کونکي باندې؟

**جواب:** دومره واړه ماشومان مسجد ته راوستل نه دي پکار، د دې نه منع راغلې ده، که د داسې ماشومانوله وجې د خلکو لمونځ خرابیږي؛نوپه راوستونکوباندې به دهغه وبال وي.[3]

## ایا د جُمعې په ورځ با ندې زوال نه وي؟

**سوال:** په اول اګست د جُمعې په ورځ په اخبار کې "ستاسو مسائل او د هغو حل" کې یو سوال و چې ایا د جُمعې په ورځ باندې د زوال په وخت سنجده یا قضاء لمونځ ناجائز دی؟ ستاسو جواب و چې : هو! ناجائز دي، تاسو ته په ادب سره عرض دی چې ما په یو کتاب کې لوستلي و چې د جُمعې په ورځ زوال نه وي، وجه یې دا لیکلې وه چې هره ورځ چې د دوزخ اور کله تیزول کیږي؛ نو هغه ته زوال وایي او د جُمعې په ورځ باندې د دوزخ اور نه شي تیزولی، له دې وجې

---

[1] ]ایضًا_

[2] ]ویکره حضورهن الجماعة ولوجمعة وعید ووعظ مطلقًاولوعجوزًا لیلاً علی المذهب المفتی به ......الخ (ردالمحتارمع الدرالمختار ج: ١ص: ٥٦٦باب الامامة)

[3] ]روی عبدالرزاق ......عن معاذ بن جبل رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: جنبوا مساجدکم صبیانکم ومجانینکم وشرائکم..الخ(حلبی کبیرفصل فی احکام المساجدص: ٦١١طبع سهیل اکیدمی)

د جُمعې په ورځ باندې زوال نه وي، د دې خبرې تصحیح وکړئ چې څه ما لوستلي دي هغه صحیح دي او که نه؟ او ایا دا خبره صحیح ده چې د زوال وخت همیشه یو شان نه وي؟ ایا د زوال په وخت یوازې نفل لمونځ ناجائز دی؟ یا که د قرآن تلاوت، سجده تلاوت اود جنازې لمونځ هم ناجائز دی؟

**جواب:** دا خبره غلطه ده چې د جُمعې په ورځ زوال نه وي، د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد چې څنګه په نورو ورځو کې د نصف النهار په وخت لمونځ جائز نه دی، سجده تلاوت جائز نه ده، همدغه شان د جُمعې په ورځ هم جائز نه دي. [۱]

## په لاوډ سپیکر باندې د لمونځ او خطبې شرعي حکم

**سوال:** دلته په ځینو مساجدو کې د جُمعې په خطبه کې د لاوډ سپیکر په استعمالولو باندې په سختۍ سره پابندي کیږي، بالخصوص د رایونډ په تبلیغي مرکز کې چیرته چې په هر لمانځه کې په زرګونو کسان وي او د جُمعې په لمانځه کې خو زما د اندازې مطابق څلور پنځه زره کسان شاملیږي او د وړاندې دوه صفونو نه وروسته وروستي صفونو کې نه د خطبې اواز راځي او نه د امام صاحب د تکبیراتو او نه د قراءت. ایا په لاوډ سپیکر باندې خطبه او لمونځ جائز نه دی؟ که واقعي داسې وي؛ نو د ټول ملک علماء کرام چې د دې استعمال کوي کوم شی چې ناجائز دی، د هغه په عدم جواز باندې ټول متفقه فیصله او عمل ولې نه کوي؟ او د دې د ناجائز کیدو څه وجه ده؟ بله دا چې که دا ناجائز وي؛ نو ایا د علماء کرامو فرض نه جوړیږي چې حرمین شرفین (زادهما الله شرفا) علماء کرام هم د دې د عدم جواز قائل کړي کوم چې د لاوډ سپیکر نه هم وړاندې لاړل او د هغوی اواز موږ د حرم شریف نه براه راست اورو.

**جواب:** په لاوډ سپیکر باندې خطبه او لمونځ دواړه جائز دي، په دې کې هیڅ شبه نه شته، خوځینې اکابرینو ته په دې کې شبهه وه، له دې وجې هغوی په دې کې احتیاط کوي[۲] د رایونډ د حضراتو به هم غالبا هم دا موقف وي چې په کوم شي کې دځینې حضراتو شبه ده هغه ولې استعمال کړل شي، دا قسم اختلافات ختمول ګران وي، له دې وجې د داسې اختلافاتو د ختمولو په ذکر کې د پریوتلو ضرورت نه شته.

## د ښار نه لرې تلونکي باندې د جُمعې لمونځ شته

**سوال:** یومسلمان لمونځ کونکی که د جمعة المبارک د لمانځه پرواه نه کولو سره چیرته لاړ شي او هلته د جُمعې لمونځ نه کیږي، یعني ښکار کولو له پاره او هغه ته معلومه هم وي چې

---

[۱] ثلاث ساعات لاتجوز فیها المکتوبة ولاصلاة الجنازة ولاسجد التلاوة ......وعند الانتصاف الی ان تزول ......الخ (عالمگیری ج:۱ص:۵۲ کتاب الصلاة الباب الاول فی المواقیت ومایتصل بها)

[۲] تفصیل دپاره اوګورئ: آلات جدیده ص:۳۴،از حضرت مولانامفتی محمد شفیع رحمة الله علیه_

نن د جُمعې ورځ ده او د جُمعې لمونځ کول دي، بيا هم هغه د جُمعې د لمانځه له پاره ايسار نه شي، يعنې قصدا يې قضاء کړي.

**جواب:** جمعه پرېښودو سره تلل خو بده خبره ده، خو که څوک سهار د ښار نه بهر لاړو؛ نو په هغه باندې جُمعه فرض نه ده.[۱]

## د جُمعې په ورځ د سهار په لمانځه کې مخصوص سورتونه لوستل

**سوال:** زمونږ امام صاحب هره جُمعه دسهار لمانځه کې سجده تلاوت لولي، په لومړي رکعت کې سجده کوي او د دواړو رکعتونو نه وروسته سلام اړوي، داترکومه حده جائز دی؟

**جواب:** د جمعې په ورځ (د سهار په لمانځه کې) په اول رکعت کې (سورة الم تنزيل) او په دويم رکعت کې (سورة دهر) لوستل د رسول الله ﷺ معمول مبارک و، له دې وجې سنت دادي، خو کله کله دې نور سورتونه هم ولوستل شي.[۲]

## د جُمعې په لمانځه کې که د امام اودس مات شي؛ نو څه به کوي

**سوال:** که د جُمعې په لمانځه کې د امام اودس مات شي؛ نو هغه به څه کوي؟ واضحه دې وي چې د ځينې جاهل لمونځ گزارو نه د امام د وهلو ويره هم وي؟

**جواب:** څوک دې خليفه کړي او خپله دې د اودس کولو نه وروسته په جمعه کې شامل شي.[۳]

## ﴿ ارحم امتي بامتي ابوبکر الخ ﴾ حديث په ترمذي کې دی

**سوال:** اکثر خطباء د جُمعې په خطبه کې يو حديث شريف لولي : ﴿ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ: أَرْحَمُ أُمَّتِي بِأُمَّتِي أَبُو بَكْرٍ ، وَأَشَدُّهُمْ فِي أَمْرِ اللهِ عُمَرُ ، وَأَصْدَقُهُمْ حَيَاءً عُثْمَانُ ، وَأَقْضَاهُمْ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ ﴾ پوښتنه داده چې په همدې حديث کې په دې سند سره ﴿ واقضاهم على ﴾ الفاظ راغلي دي او ايا دا حديث همدغه شان د جُمعې په خطبه کې لوستل کيدای شي؟

**جواب:** دا حديث ترمذي کې دی او امام ترمذي رحمه الله ورته ﴿ حسن صحيح ﴾ ويلي دي.[۴]

---

[۱] لاتجب الجمعة على المجانين ......والمسافرين والمرضى ......الخ (بدائع الصنائع ج:۱ص:۲۵۸طبع سعيد)

[۲] عن ابي هريرة رضى الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم انه كان يقرأ فى الفجريوم الجمعة بالم تنزيل وهل اتى (مسلم ج:۱ص:۲۸۸كتاب الجمعة)

[۳] سبق الامام حدث سماوى غيرمانع للبناء ......ولوبعد التشهد ......استخلف ......مالم يجاوز الصفوف لوفى الصحراء ......ومالم يخرج من المسجد......الخ (شامي ج:۱ص:۶۰۱باب الاستخلاف)

[۴] عن انس رضى الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: ارحم امتى....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

## که په خېټه کې درد وي يا د متيازو تقاضا وي؛ نو څه وکړي؟

**سوال:** د جُمعې د خطبې په دوران کې که يو سړي ته د هوا يا د متيازو سخت شدت محسوس شي، اوس که هغه سړی د قضاء حاجت نه فارغ کيدو سره د اودس کولو پورې وخت ولګوي: نو د جُمعې لمونځ ترې کيږي او وروسته به بيا د ماسپښين لمونځ کوي، پوښتنه دا ده چې که هغه سړی د خېټې هوا، او د متيازو سختی کنټرول کولو سره د جُمعې لمونځ د جماعت سره ادا کړي يا که د فراغت نه وروسته په سکون سره د ماسپښين لمونځ کول غوره دي؟ بله داچې د متيازو د سخت شدت په وخت لمونځ کول مکروه تنزيهي دي که مکروه تحريمي؟

**جواب:** که د وړو يا غټو بولو سخته تقاضا وي: نو اول د هغه نه فارغ کيدل ضروري دي. وروسته که جُمعه ملاو نه شي؛ نو د ماسپښين لمونځ دې وکړي، د داسې سختې تقاضې په وخت کې لمونځ مکروه تحريمي دی.[1]

## د جمعې او لمانځه نه وروسته اجتماعي دعا نه کول څنګه دي؟

**سوال:** زموږ د محلې په مسجد کې د لمانځه نه وروسته امام صاحب اجتماعي دعا نه کوي، نه د جُمعې د لمانځه نه وروسته داسې کوي، په دې حوالې سره بيان کړئ چې د شريعت څه حکم دی؟

**جواب:** کوم مشائخ چې موږ ليدلي دي، هغوی به د فرضو نه وروسته مختصر دعا کوله او مفتي کفايت الله رحمه الله په دې باندې (**النفائس المرغوبة**) نومې رساله هم ليکلې ده، چې بيله هم چاپ شوې وه او د هغوی په کتاب کفايت المفتى کې هم شته ، د هغه کتاب دريم جلد صفحه (۲۷۸) دې وکتل شي.

---

...بقيه د تير مخ].. بامتى ابوبكر،واشدهم فى امرالله عمر، واصدقهم حياءً عثمان ......رواه احمد والترمذى ،وقال :هذا حديث حسن صحيح ،ورروى عن معمرعن قتادة مرسلاً وفيه واقضاهم على(مشكوة ص:٥٦٦باب مناقب العشرة رضى الله عنهم،الفصل الثانى)

[1] وصلاته مع مدافعته الاخبثين اى البول والغائط قال: فى الخزائن سواء كان بعد شروعه اوقبله فان شغله قطعها ان لم يخف فوت الوقت واتمها اثم ......وماذكره من الاثم صرح به فى شرح المنية ،وقال لادائها مع الكراهة التحريمة (ردالمحتارعلى الدرالمختار:١ص:٦٤١مطلب فى الخشوع باب مايفسد الصلاة ومايكره فيها طبع سعيد كراچى)، ايضًا: وتكره ......(ومدافعًالاحد لاخبثين)البول والغائط (اوالريح) ولو حدث فيها ،لقوله عليه السلام لايحل لاحد يومن بالله واليوم الآخر ان يصلى وهو حاقن حتى يتخفف ( مراقى الفلاح على هامش الطحاوى ص:١٩٧باب يفسد الصلاة فصل فى المكروهات)

# ❖ د اخترونو لمونځ ❖

## د اخترونو د لمانځه نيت

**سوال:** د اختر دلمانځه نيت څنګه کيږي؟

**جواب:** د اختر دلمانځه نيت داسې کيږي چې زه دوه رکعته د وړوکي اختر يا لوی اختر واجب لمونځ سره د واړو(ټولو) تکبيرونو (زوايد) ادا کوم.[۱]

## له عذر پرته په جومات کې د اختر لمونځ کول مکروه دي

**سوال:** د اختر لمونځ په جومات کې کول څنګه دي؟

**جواب:** له عذر پرته د اختر لمونځ په جومات کې کول مکروه دي.[۲]

## د اختر لمونځ په مسجد کې کول ولې مکروه دي؟

**سوال:** ستاسو د کتاب "ستاسو مسائل او د هغو حل" په دويم جلد کې د شايع شوې مسئلې مطابق چا تاسو نه پوښتنه کړې ده، چې د اختر لمونځ په مسجد کې کول څنګه دي؟ تاسو جواب ورکړی دی چې له عذر پرته د اختر لمونځ په مسجد کې کول مکروه دي. زه په دې تفصيل باندې ځان پوهول غواړم چې له څه وجې د اختر لمونځ په مسجد کې کول مکروه دي؟

**جواب:** مسجد د پنځو لمونځونو له پاره جوړ شوی دی او د رسول الله ﷺ په زمانه کې د اختر او د جنازې د لمونځونو له پاره بيل ځايونه وو، له ضرورت پرته به دا لمونځونه په مسجد کې نه شو کيدلی او ضرورت دادی مثلاً باران وي او يو داسې ځای نه وي چې په هغه کې انسان د اختر لمونځ وکړي، يا بل داسې عذر وي، د دې عذر په بناء باندې د اختر لمونځ کول په مسجد کې صحيح دی، په حرمين شريفين کې دومره مجمع وي چې د دې مجمع بل ځای ته منتقل کول د ناممکن په درجه کې دي، له دې وجې هلته دواړو ځايونو کې د اختر او د جنازې لمونځ په مسجد کې ادا کيږي او دا پوره عذر دی.[۳]

---

۱ ] وكيفية صلاتها اى العيدين ان ينوى عند اداء كل منهما صلاة العيد بقلبه ويقول بلسانه اصلى صلاة العيد لله تعالى ......الخ (مراقى الفلاح على هامش الطحطاوى ص:۲۹۰ باب العيدين، ميرمحمد كتب خانه)۔

۲ ] الخروج الى الجبانة فى صلاة العيد سنة وان كان يسعهم المسجد الجامع على هذا عامة المشائخ وهوالصحيح (عالمگيرى ج:۱ص:۱۵۰،الباب السابع عشرفى صلاة العيدين)۔

۳ ] وفيه الخروج الى المصلى فى العيد وان صلاتها فى المسجد لاتكون الاعن ضرورة ( فتح البارى ج:۲ص:۵۷۲،كتاب العيدين باب الخروج الى المصلى طبع قديمى كتب خانه)

## د اختر لمونځ په عیدګاه کې کول غوره دي که په مسجد کې

**سوال:** ایا د اختر لمونځ په عیدګاه کې کول غوره دي او که په مسجد کې؟ دویمه خبره دا ده چې که د یو سړي کور ته نژدې په مسجد کې د اختر لمونځ په (۲۰ ۲) باندې دی او په عیدګاه کومه چې په زیاته فاصله باندې ده، هلته هم په دې وخت کې دی، نو ددې سړي له پاره کوم ځای کې کول افضل دي؟

**جواب:** د اختر لمونځ په عیدګاه کې کیږي، له څه خاصې مجبوري پرته په مسجد کې د اختر لمونځ کول مکروه دي، تاسو عیدګاه ته ځئ اګر چې هر څومره سفر وي.[۱]

## د ښځو له پاره د اخترونو لمونځ په کور کې ادا کول

**سوال:** ښځې دوړوکي یالوی اخترلمونځ جمعې سره یا ځانته په کورکې ادا کولی شي اوکه نه؟

**جواب:** د اختر لمونځ دښځو په ذمه نه شته او د هغوی په جمعې سره یا انفرادي ډول د اختر لمونځ کول صحیح نه دي.[۲]

## د ښځو د اختر له پاره عیدګاه ته تلل

**سوال:** ایاښځې عیدګاه ته د اختر له پاره تللی شي؟

**جواب:** د ښځو تلل مکروه دي.[۳]

## د قبولیت ورځ به د کوم ملک د اختر وي؟

**سوال:** مسئله دا ده چې د ځمکې په مخ باندې اخترونه په مختلفو ورځو باندې لمانځل کیږي چې په دې کال اختر په سعودي عرب کې درې ورځې مخکې وشو، له دې وجې تاسو مهرباني وکړئ او دا بیان کړئ چې د قبولیت ورځ به د کوم ملک په اختر باندې وي؟

**جواب:** په کوم ملک کې چې په کومه ورځ باندې اختر وي، په هغه ورځ به هلته د هغه برکتونه هم حاصلیږي، لکه څنګه چې کوم ځای د سهار وخت وي هلته د هغه بَرکت هم حاصلیدای شيَ او د سهار لمونځ به هم فرض وي.

---

[۱] الخروج الی الجبانة فی صلاة العیدسنة وان کان یسعهم المسجد الجامع علی هذا عامة المشائخ وهو الصحیح (عالمگیری ج:۱ص: ۱۵۰الباب السابع عشرفی صلاة العیدین)

[۲] اعلم ان صلوة العید واجبة علی من تجب علیه الجمعة هذا هو الصحیح من المذهب ......الخ (حلبی کبیر ص:۵٦۵)

[۳] ویکره حضورهن الجماعة ولو جماعة وعید ووعظ ملطقًا ولوعجوزًا لیلاً علی المذهب المفتی به ......الخ (الدرالمختارباب الامامة ج:۱ص:۵٦٦)

## په رمضان کې د یو ملک نه بل ملک ته تلونکی به کله اختر کوي؟

**سوال:** بکر د سعودي نه بیرته پاکستان ته راغی، هلته روژه دوه ورځې مخکې قائمه شوه، اوس په داسې حالت کې چې په پاکستان کې به اته ویشت روژې کیږي او د هغه به دیرش روژې شي، اوس به هغه د سعودي مطابق اختر کوي یا د پاکستان مطابق؟ دا هم واضحه کړئ چې بکر د سعودي عرب مطابق روژه ونیوله چې په کومه ورځ هلته اختر و په هغه ورځ اختر کولی شي او که نه؟ هغه روژې کومې چې زیاتې شي هغه به په کوم حساب کې شمیرل کیږي؟

**جواب:** اختر خو به چې هغه په کوم ملک (مثلا پاکستان) کې موجود دی، د همدې مطابق کوي، خو د هغه روژې پوره شوې دي، له دې وجې چې دلته راتلو سره کومې روژې نیسي هغه به نفلي شمیرل کیږي.[1]

## له پاکستان نه سعودي عرب ته تلونکی سړی به په سعودي کې په کومه ورځ اختر کوي؟

**سوال:** یو سړی د پاکستان نه سعودي عرب ته لاړ، د هغه دوه روژې کمې شوې، اوس به هغه د سعودي د میاشتې مطابق اختر کوي او کومې روژې چې کمې شوې هغه به وروسته نیسي یا خپلې روژې پوره کولو نه وروسته به د سعودي عرب نه دوه ورځې وروسته د پاکستان مطابق اختر کوي؟

**جواب:** اختر به د سعودي عرب مطابق کوي او کومې روژې چې پاتې شي د هغو به قضاء راوړي.[2]

## که د اختر په لمانځه کې د مقتدي نه تکبیرونه لاړ شي؛ نو لمونځ به څنګه پوره کوي؟

---

۱ ] ولوصام رائی هلال رمضان واکمل العدة لم یفطر الامع الامام لقوله علیه الصلاة السلام صومکم یوم تصومون وفطرکم یوم تفطرون (رواه الترمذی قال فی البدائع المحققون قالوا لا روایة فی وجوب الصوم علیه وانما الروایة انه یصوم وهو محمول علی الندب احتیاطًا ( شامی ج:۲ص:۳۸٤کتاب الصوم ،مبحث فی صوم یوم الشک)_

۲ | ایضا)_

**سوال:** داختر په لمانځه کې که دمقتدي راتګ ناوخته شي اوپه داسې صورت کې ترې زايد تکبيرونه لاړشي؛ نومقتدي به زايد تکبيرونه څنګه ادا کوي؟ او که پوره رکعت لاړشي؛ نو څنګه به يې ادا کوي؟

**جواب:** که امام د تکبيرونو نه فارغ شوی وي، که قرات يې شروع کړی وي اوکه نه وي. وروسته راتلونکی مقتدي دې د تکبير تحريمه نه وروسته زايد تکبيرونه هم ولولي او که امام صاحب رکوع ته تللی وي او دا ګمان يې وي چې تکبيرونه کولو نه وروسته به د امام سره په رکوع کې شامل شي؛ نو د تکبير تحريمه نه وروسته دې په ولاړه ولاړه باندې درې تکبيرونه ووايي او رکوع ته دې لاړ شي او که دا خيال يې وي چې په دومره وخت کې به امام د رکوع نه اوچت شي؛ نو تکبير تحريمه ويلو نه وروسته دې رکوع ته لاړ شي او په رکوع کې دې د رکوع د تسبيحاتو په ځای له لاس پورته کولو پرته تکبيرات ولولي، او که د هغه تکبيرونه لا نه وو پوره شوي چې امام د رکوع نه سر اوچت کړ؛ نو کله چې امام د سلام اړولو نه وروسته خپل رکعت پوره کړي؛ نو لومړی دې قرات وکړي، بيا دې تکبيرونه ولولي له دې نه وروسته دې د رکوع تکبير ويلو سره رکوع ته لاړ شي.[1]

## داختر په لمانځه کې که له امام نه غلطي وشي؛ نو څه به کوي؟

**سوال:** که د وړوکي يا غټ اختر د لمونځ کولو دوران کې له امام نه څه غلطي وشي؛ نو لمونځ به په دويم ځل کيږي اوکه سجده سهوه به کوي؟

**جواب:** که غلطي داسې وي چې په هغه باندې لمونځ نه فاسديږي؛ نو د لمونځ راګرځولو ضرورت نه شته او فقهاء کرامو ليکلي دي چې په اخترونو کې که رش زيات وي؛ نو سجده سهوه دې نه کوي چې په دې سره به په لمانځه کې ورانی پيدا شي.[2]

## که داختر تکبيرونه ترې هير شي؛ نو؟

**سوال:** د اخترونو په لمانځه کې که له امام نه شپږ تکبيرونه هير شي او ددې نه کم يا زيات تکبيرونه ولولي او ددې ورته وروسته احساس وشي؛ نو ايا لمونځ ماتول پکار دي يا جاري ساتل پکار دي؟

**جواب:** د لمانځه په اخر کې دې سجده سهوه وکړل شي په دې شرط چې مقتديانو ته معلومه

---

[1] ولو ادرک الموتم الامام فی القيام بعد ماکبر کبر فی الحال برای نفسه لانه مسبوق ولوسبق برکعة يقرا ثم يکبرلئلا يتوالی التکبير فلو لم يکبرحتی رکع الامام قبل ان يکبوا الموتم لايکبرفی القيام ولکن يرکع ويکبرفی الرکوع علی الصحيح (الدرالمختار مع الرد ج:٢ص:١٧٤باب العيدين)۔

[2] ان مشائخنا قالوا لاسجد للسهو فی العيدين والجمعة لئلا يقع الناس فی الفتنة (عالمگيری ج:١ص:١٢٨)

شي چې سجده سهوه شروع ده[1] او که د مجمعې د زیاتیدو له وجې نه د وراني ویره وي: نو سجده سهوه دې هم پریښودل شي[2]

## که د اختر په تکبیراتو کې ترې یو تکبیر هیر شي؛ نو د لمانځه حکم

**سوال:** که د اختر په ورځ د اختر په لمانځه کې د شپږو زیاتي تکبیرونو نه یو تکبیر هیر شي او په اول رکعت کې د درې تکبیرونو په ځای دوه تکبیرونه ووایي: نو ایا د اختر دا لمونځ به وشي؟ په تفصیل سره ولیکئ.

**جواب:** د اختر شپږ تکبیرونه واجب دي، که هغه هیر شي؛ نو سجده سهوه واجبیږي[3]. فقهاء فرمایي چې په جمعه او اخترونو کې چې کله مجمع زیاته وي او په سجده سهوه کولو سره د انتشار پیدا کیدو ویره وي؛ نو په دې صورت کې دې سجده سهوه هم پرېښودل شي.[4]

## چې د اختر لمونځ یو امام وکړي او خطبه بل څوک ورکړي؛ نو څه حکم دی؟

**سوال:** یو امام د اختر لمونځ ورکوي، خطبه بل څوک لولي، دا څنګه ده؟

**جواب:** جائز ده.[5]

## له خطبې پرته د اختر د لمانځه حکم

**سوال:** که یو امام د اختر د لمانځه خطبه لوستل هیر کړي یا یې ونه وایي؛ نو ایا د اختر لمونځ به یې وشي؟ که وشي؛ نو د خطبې د پریښودلو څه حکم دی؟

**جواب:** د اختر خطبه سنت ده، له دې وجې اختر د سنت خلاف شو.[6]

---

1] ومنها تکبیرات العیدین قال: فی البدائع اذا ترکها......فانه یجب علیه السجود..الخ (ایضًا: ج:۱ص:۱۲۸)

2 ] والمختارعند المتاخرین ان لایسجد للسهو فی الجمعة والعیدین لتوهم الزیادة من الجهال کذا فی السراج وغیره بحرولیس المراد عدم جوازه بل الاولی ترکه کیلا یقع الناس فی فتنة ابوسعود عن العزمیة ومثله فی الایضاح لابن کمال (ردالمحتار ج:۲ص:۱۵۷باب الجمعة ،مطلب فی شروط وجوب الجمعة)_

3]ومنها تکبیرات العیدین قال: فی البدائع اذا ترکها......فانه یجب علیه السجود ..الخ(ایضًا: ج:۱ص:۱۲۸)

4 ] ان مشائخنا قالوا لاسجد للسهو فی العیدین والجمعة لئلا یقع الناس فی الفتنة (عالمگیری ج:۱ص:۱۲۸)
ایضاً:ومنها تکبیرات العیدین قال:فی البدائع اذا ترکها.....فانه یجب علیه السجود .الخ(ایضًا: ج:۱ص:۱۲۸)

5 ]وفی القنیة واتحاد الخطیب والامام لیس بشرط علی المختار هر وفی الذخیرة لوخطب صبی عاقل وصلی بالغ جازلکن الاولی الاتحاد کما فی شرح الآثار(مراقی الفلاح مع حاشیة طحطاوی ص:۲۷۶طبع میرمحمدکتب خانه)

6 ] فانها (ای الخطبة) سنة بعد الصلاة وتجوز الصلاة بدونها وان خطب قبل الصلاة جاز ویکره (عالمگیری ج:۱ص:۱۵۰الباب السابع عشرفی صلاة العیدین)۰وفی المراقی (ص:۲۸۸)فتصح صلاة العیدین بدونها ای الخطبة لکن مع الاشارة لترک السنة)_

## دا ختر په لمانځه کې خطبه، دعا او غاړه ورکول

**سوال:** ایا په اختر کې غاړه ورکولو سره ملاویدل سنت دي؟

**جواب:** دا سنت نه دي، یوازې د خلکو جوړ شوی رسم دی، دا د دین خبره ګنیل او نه کونکو باندې ملامتیا ویل بدعت دی.[۱]

**سوال:** خطبه د اخترله لمانځه مخکې لوستل کیږي اوکه لمانځه نه وروسته؟ دعا د لمانځه نه وروسته که خطبې نه وروسته کول پکار دي؟

**جواب:** د اختر خطبه د لمانځه نه وروسته وي[۲] دعا ځینې خلک د لمانځه نه وروسته کوي اوځینې د خطبې نه وروسته د دواړو ګنجائش شته د رسول اللهﷺ صحابه کرامو او د امت د فقهاء کرامو نه په دې باره کې څه نقل نه دي.

## دا ختر د لمانځه نه پاتې کیدونکی سړی به څه کوي؟

**سوال:** که یو سړی د وړوکي اختر یا لوی اختر لمونځ د جمعې سره ونه کړای شي؛ نو ایا هغه په کور کې دا لمونځ ادا کولی شي؟ یا ددې لمانځه په بدل کې یو سړي ته خوراک وغیره ورکړل شي؛ نو ایا لمونځ به پوره شي اوکه نه؟

**جواب:** د اختر دلمانځه قضاء نه شته،[۳] نه ددې څه کفاره ادا کیدای شي، یوازې استغفار دې وشي.

## د لوی اختر په ورځو کې د تکبیرات تشریق حکم

**سوال:** تکبیرات تشریق به کله لوستل کیږي؟

**جواب:** د ذی الحجې په نهم تاریخ د سهارنه تر د دیارلسم تاریخ د مازدیګر پورې د هر لمانځه نه وروسته هر بالغ سړي او ښځې باندې تکبیرات تشریق واجب دي، تکبیرتشریق دادي چې په لږ اوچت (لوړ)اواز سره دا تکبیرونه ولوستل شي: "**الله اکبر، الله اکبر، لا اله الا الله، والله اکبر، الله اکبر، ولله الحمد**".[۴]

---

۱] انه تکره المصافحة بعد اداء الصلاة بکل حال......الخ (شامی ج:٦ص:٣٨١)ایضًا: بانها (البدعة) ما احدث علی خلاف الحق الملتقی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم من علم اوعمل اوحال بنوع شبهة واستحسان وجعل دینًاقویمًاوصراط مستقیمًا (ردالمحتارج:١ص:٥٦٠ کتاب الصلاة)۔

۲]اعلم ان الخطبة سنة وتاخیرها الی مابعدالصلاة سنة ایضًا (حاشیه الطحطاوی علی المراقی ص:٢٨٨باب العیدین)

۳ ]ولایصلیها وحده ان فاتت مع الامام ولوبالافساد اتفاقًا فی الاصح (شامی ج:٢ص:١٧٥)۔

٤ ]وفی الدر:ویجب تکبیرالتشریق فی الاصح......صفته :الله اکبرالله اکبرلا اله الا الله والله اکبر الله اکبرولله الحمد ......عقب کل فرض ......من فجرعرفة وآخره الی عصرالعید....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## تکبیرات تشریق په کومو ورځو کې لوستل کیږي؟

**سوال:** تکبیرات تشریق چې د عیدالاضحی په ورځو کې لوستل کیږي، د نهم تاریخ نه ترد دیارلسم تاریخ د مازدیګره پورې، مثلا: په نهم تاریخ باندې هفته ده؛ نودهفتې دسهار د لمانځه نه واخله ترد چارشنبې د مازدیګره پورې، یعنې د مازدیګر دلمانځه نه وروسته هم تکبیرات تشریق لوستل پکار دي؟

**جواب:** بالکل! د نهم تاریخ دسهار نه د دیارلسم تاریخ ترمازدیګر پورې تکبیرات تشریق لوستل کیږي.[1]

## ایا د جُمعې په ورځ اختر په مسلما نانو بوج وي؟

**سوال:** د تیرو څو ورځو نه دا مسئله د بحث لاندې ده چې د جُمعې د ورځې اختر په حاکم یا په عوامو باندې ډیر بوج وي؟

**جواب:** د قرآن اوحدیث او د مشرانو د ارشاداتو نه ددې خیال څه سند نه پیدا کیږي، له دې وجې دا خیال غلط او وهم پرستي ده، جُمعه په خپله اختردی اوکه د جُمعې په ورځ اختر هم شي؛ نوګویا په اختر کې اخترشو، الله دې نه کړي چې کله اخترهم دمسلمانانوله پاره درونډ شي.

## په اختر کې د غیر مسلم سره د اختر مبارکي څنګه ده؟

**سوال:** په اختر کې که د یو خاص غیر مسلمې فرقې کسان د اخترمبارکي له پاره زموږ طرف ته رامخکې شي؛ نو ایا موږ هغوی سره اخترمبارکي کولای شو؟

**جواب:** اخترمبارکي د دوستي علامه ده او د الله پاک د دښمنانو سره دوستي حرامه ده؛ ځکه د دښمن دوست هم دښمن وي.[2]

---

...بقیه د تیر مخ]..وقالا بوجوبه فورکل فرض مطلقًا ولومنفردًا اومسافرًا اوامراة لانه تبع للمکتوبة ......وعلیه الاعتماد ......الخ وفی الشرح :لانه تبع للمکتوبة فیجب علی کل من تجب علیه الصلاة المکتوبة بحر (الدرالمختارمع ردالمحتار‌ج:۲ص:۱۸۰باب العیدین ،ایضًا عالمگیری ج:۱ ص:۱۵۲، البحرالرائق ج:۲ص:۱۷۹)۔

۱ ] واما وقته فاوله عقیب صلاة الفجرمن یوم عرفة وآخره فی قول ابی یوسف ومحمد رحمهما الله تعالی عقیب صلاة العصرمن آخرایام التشریق ،هکذا فی التبیین والفتوی والعمل فی عامة الامصاروکافة علی قولهما (عالمگیری ج:۱ص۱۵۲،الباب التاسع عشرفی صلاة العیدین)

۲ ] یایها الذین امنوا لا تتخذوا الیهود والنصری اولیآء بعضهم اولیآء بعض ،ومن یتولهم منکم فانه منهم ،ان الله لایهدی القوم الظالمین ،،(المائدة ۵۱) یایها الذین امنوا لاتتخذوا عدوی وعدوکم اولیاء تلقون الیهم بالمودة وقد کفروا بما جاءکم من الحق ،،(الممتحنة:۱)۔

## د اختر په ورځ (ماشوما نوته) د پیسو ورکولو رسم

**سوال:** د اختر په ورځ (ماشومانو ته) د پیسو ورکولو رسم جائز دی اوکه نه ؟ او ایا ورکونکي باندې به خو څه ګناه نه وي؟

**جواب:** د اختر په ورځ که پیسې ورکول اسلامي عبادت یا سنت نه ګڼل کیږي اویوازې د خوشالي نه داسې کیږي؛ نو په دې کې هیڅ باک نه شته.

# ❖ د تراویح لمونځ ❖

## د تراویحو شروع له کوم وخت نه وشوه؟

**سوال:** د تراویحو شروع له کوم وخت نه وشوه؟ ایا دشل رکعته تراویحو لمونځ کول افضل دي؟

**جواب:** د تراویحو شروع، خود حضور ﷺ نه وشوه، مګر حضور ﷺ له دې ویرې چې چیرته فرض نه شي، د دریو ورځونه زیات له جمعې سره ونه کړلې، صحابه کرامو رضی الله عنهم به یوازې یوازې اداکولې، کله دوه دوه او څلور وڅلور وکسانو به جمعې سره هم کولې، دحضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کې دعامې جمعې رواج شو اوله هغه وخت نه دتراویح شل رکعته رارواني دي اوشل رکعته تراویح سنت موکد دي.[1]

## د روژې او تراویحو په خپل مینځ کې څه تعلق دی؟

**سوال:** د روژې اوتراویحو په خپل منیځ کې څه تعلق دی؟ ایا دروژی نیولوله پاره ضروري ده چې تراویح وکړل شي؟

**جواب:** درمضان المبارک په میاشت کې دورځې عبادت روژه ده اود شپې عبادت (تراویح) اوپه حدیث شریف کې ددواړو اداکولوحکم ورکړل شوی دی، ارشاد دی:

**جعل الله صیامه فریضة وقیام لیلة تطوعاً.** (مشکوة ص:۱۷۳) **ترجمه:** الله تعالی ددې میاشتې مبارکې روژې فرض کړي دي اود شپې قیام یې نفلي عبادت جوړکړی دی.

---

۱ ] الاصل فیه ماروی ان النبی صلی الله علیه وسلم خرج لیلة فی شهر رمضان فصلی بهم عشرین رکعة ،واجتمع الناس فی الثانیة فخرج فصلی بهم فلماکانت الثالثة کثرالناس فلم یخرج ،وقال عرفت اجتماعکم لکنی خشیت ان یفترض علیهم فکان الناس یصلونها فرادی الی ایام عمربن الخطاب رضی الله عنه ،ثم تقاعدوا عنها فرای ان یجمعهم علی امام واحد فجمعهم علی ابی بن کعب ،وکان یصلی بهم خمس ترویحات یجلس بین کل ترویحتین فکانت جملتها عشرین رکعة (شرح العنایة علی هامش فتح القدیر ج:۱ص:۳۳٤وایضا الاختیار لتعلیل المختارج:۱ص:٦٨،وایضا الفقه الحنفی وادلته ج:۱ص:۲٤۲دزیات تفصیل دپاره :نماز مسنون کلان، تالیف: مولانا عبدالحمید سواتی رحمه الله، اوګورئ!)۔

ددې له وجې دواړه عبادتونه کول ضروري دي، روژه فرض ده او تراويح سنت مؤکده دي.[1]

## ايا له رمضان پرته تراويح د تهجدو لمانځه ته ويل شوي؟

**سوال:** اياغيررمضان کې تراويح، دتهجدولمانځه ته ويل شوي دي؟ اودا دتهجدولمونځ څورکعته دی؟ دقرآن اوحديث په رڼا کې جواب راکړئ!

**جواب:** تهجدبيل لمونځ دی، چې په رمضان اوغيررمضان دواړوکې مسنون دی، تراويح يوازې درمضان عبادت دی، تهجداوتراويح ته يو لمونځ نه شي ويل کيدای[2] دتهجدو رکعتونه دڅلورونه تردولسو پورې دي درميانه درجه داتورکعتوده، ددې له وجې اتو رکعتوته ترجيح ورکړل شوې ده[3] لس او دولس رکعتو پورې هم ثبوت شته.

## کوم کس چې د روژې طاقت نه لري هغه دې هم تراويح وکړي

**سوال:** که يوکس دناروغي له وجې درمضان روژې ونه نيسي؛ نوهغه څه وکړي؟ اوداهم وفرمايئ چې د داسې کس ددتروايح به څه کيږي هغه تراويح وکړي اوکه نه؟

**جواب:** کوم کس چې دناروغي له وجې دروژونيوطاقت نه لري، هغه ته د روژو نه نيولواجازه ده، د تندرست کيدونه وروسته دې دروژو قضا راوړي[4] اوکه ناروغي داسې وي چې دهغې نه دښه کيدو اميد نه وي، نو دهرې روژې په بدله کې دې دصدقه فطر د مقدار برابر فديه

١ ] عن ابی سلمة بن عبدالرحمان قال: حدثنی ابی ان رسول الله صلی الله عليه وسلم ذکرشهر رمضان فقال: شهرکتب الله عليکم صيامه وسننت لکم قيامه .......الحديث (ابن ماجه ص:٩٤نسائی ج:١ ص:٣٠٨کتاب الصيام ،مسنداحمد ج:١ص:١٩١مستدرک حاکم ج:١ص:٤٤٠)_

٢ ]تفصيل دپاره اوګورئ: خيرالفتاوی ج:٢ص:٥٧٢الی ٥٧٨)_

٣ ]اقل التهجد رکعتان واوسطه اربع واکثره ثمان (شامی ج:٢ص:٢٥کتاب الصلاة ،مطلب فی صلوة الليل)، وايضًا وفی رواية :ان صلاته بالليل خمس عشرة رکعة کما قال النووی فی شرح مسلم فاکثره خمس عشرة برکعتی الفجر اهـ وفی آخری سبع عشرة تردد فيهما المحدثون ،روی ابن المبارک من حديث طاوس مرسلاً :کان يصلی صلی الله عليه وسلم سبع عشررکعة من الليل اهـ آخرجه العراقی فی تخريج احاديث الاحياء وفی التلخيص (ص:١١٦) وفی حواشی المنذری قيل اکثر ماروی فی صلاته الليل سبع عشرة وهی عدد رکعات اليوم والليلة اه (معارف السنن للعلامة البنوری ج:٤ص:١٣٣) بيان اکثر صلوته بالليل واقل ماثبت طبع المکتبة البنورية کراچی)_

٤ ]قال تعالی :شهر رمضان الذی فيه القرآن ......فمن شهد منکم الشهر فليصمه ومن کان مريضًا اوعلی سفرفعدة من ايام آخر،يريدالله بکم اليسر ولايريد بکم العسر ،،الآية (البقره :١٨٥) ايضًا: اومريض خاف الزيادة يوم العذر ......الفطر......وقضو لزومًا......الخ (درمختارمع الشامی ج:٢ص:٤٢٢فصل فی العوارض) ايضًا:قال ومن خاف ان تزاد عينه وجعًا اويزاد حمًا شدة الفطر وقضی ،وذالک لقول الله تعالی :ومن کان مريضًااوعلی سفرفعدة من ايام آخر، يقتضی ظاهره اباحة الافطارلکل مريض (شرح مختصر الطحاوی ج٢ ص٤٤٦، طبع دارالسراج بيروت)_

ورکوي[1] اوکه دتراویحو کولوطاقت لري؛ نوتراویح ضرورکول پکار دي، تراویح مستقل عبادت دی، دانه ده چې څوک روژې نیسي هم هغه دې تراویح کوي.[2]

## تراویح جمعې سره کول څنګه دي؟

**سوال:** تراویح جمعې سره کول څنګه دي؟ که په جومات کې دجمعې سره ونه کړل شي؛ نوڅه ګناه خوبه نه وي؟

**جواب:** په رمضان شریف کې په جومات کې په جمعې سره تراویح کول سنت کفایه دي،که یوجومات دتراویح دجمعې نه خالي پاتې شي؛ نوټول محلې والابه ګناه ګاروي.[3]

## د وترو او تراویحو ثبوت

**سوال:** زموږ په کلي کې څه اهل حدیث حضرات موجوددي چې هیمشه په لمونځ ګزارو کې دا واویلا کوي چې دوترو اوتراویحو په باره کې دنبي کریم ﷺ په حدیث کې چیرته هم دشلو ذکر موجود نه دی، تراویح حضرت عمر رضي الله عنه ایجادکړي دي، موږته دحضور ﷺ په سنت باندې عمل کول ضروري دي، موږ تراوسه پورې شل رکعته تراویح کړي دي، هرکله چې زموږ دادعوه ده چې دصحابه کرامو رضي الله عنهم عمل دنبي ﷺ داحادیثوخلاف نه شي کیدای.

**جواب:** داهل حدیث حضراتوځینې مسئلې عجیبه دي، چې په هغه کې دوی دټول امت مسلمه نه خلاف کړې ، په هغو کې یوه ددریو طلاقو مسئله ده، دحضرت عمر رضي الله عنه نه واخله تر جمهورامت اوائمه اربعه مسلک دی چې په یومجلس کې درې طلاقه به هم درې طلاقه شماریږي[4]خو شیعه ګانو اواهل حدیث ته په دې مسئله کې دامت مسلمه سره اختلاف دی،دویمه مسئله دشل رکعته تراویحو ده، دحضرت عمر رضي الله عنه ددورنه واخله ترنن پورې په ټولوجوماتونوکې شل رکعته تراویح کیږي اوټول امامان دکم نه کم په شلو رکعتونو باندې متفق دي، هرکله چې اهل حدیثو ته په دې کې اختلاف دی.[5]

---

۱ ]المریض اذا تحقق الیاس من الصحة فعلیه الفدیة لکل یوم من المرض اه (شامي ج:۲ص:۴۲۷)۔

۲ ] (التراویح سنة موکدة)لان النبی صلی الله علیه وسلم اقامها فی بعض اللیالی ،وبین العذر فی ترک المواظبة وهو خشیة ان تکتب علینا وواظب علیها الخلفاء الراشدون وجمیع المسلمین من زمن عمربن الخطاب الی یومنا هذا ......الخ (الاختیارلتعلیل المختار ج:۱ص:۶۸کتاب الصلاة باب النوافل)۔

۳ ] قال بعضهم انها سنة علی سبیل الکفایة اذا قام بها بعض اهل المحلة فی المسجد بجماعة سقط عن الباقین ولو ترک اهل المسجدکلهم اقامتها فی المسجد بجماعة فقداساوا واثموا(بدائع الصنائع ج:۱ص:۲۸۸کتاب الصلاة)

٤ ](قوله ثلاثة متفرقة) ......وذهب جمهورالصحابة والتابعین ومن بعدهم من ائمة المسلمین الی انه یقع ثلاث (شامیة ج:۳ص:۲۳۳کتاب الطلاق ،طبع ایچ ایم سعید)۔

٥ ] واکثر اهل العلم علی ماروی عن علی وعمر وغیرهما من اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم عشرین رکعة وهو قول سفیان الثوری وابن المبارک والشافعی وقال الشافعی....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## اته رکعاته تراویح کول څنګه دي؟

**سوال:** اوس هرکله چې درمضان میاشت ده اوپه رمضان کې تراویح هم کیږي، زموږ کوروالې وایي چې تراویح دشل رکعته نه کمې نه دي کول پکار، هرکله چې ډیرخلک وایي چې اته رکعته تراویح هم جائزدي او دولس هم جائزدي، اوس تاسووایئ چې ایا اته رکعته تراویح کول جائزدي اوکه نه؟

**جواب:** دحضرت عمر رضي الله عنه دزمانې نه واخله تراوسه پورې شل رکعته تراویح را روانې دي اوپه دې مسئله کې دهیڅ امام اومجتهد اختلاف نه شته، ټول دشلوقایل دي، البته اهل حدیث حضرات اته کوي، نوکوم کس چې ددې مسلک وي هغه دې اته کوي، مګر د نورو مسلمانانو له پاره اته رکعته کول صحیح نه دي، ګني دسنت موکده پریښودنکي به شي اودترک سنت عادي ګڼل ګناه ده.[1]

## د تراویح په سنت رسول کیدو باندې اعتراض غلط دی

**سوال:** دتراویح لمونځ دشریعت مطابق درسول الله ﷺ سنت دی، خو ماچې دجسټس (قاضي) قدیرالدین احمدصاحب (ریټایرډ) یومضون په عنوان ،،دورحاضراوراجتهاد،، تاریخ (۲-۷-۱۹۸۵)،،نوائې وقت کراچی، ولوست؛ نوحیران شوم، چې دتراویح دلمانځه شروع تراجتهاد لاندې حضرت عمر رضي الله عنه کړې وه،که داصحیح وي؛ نوتاسو ووایئ چې دتراویح لمونځ درسول الله ﷺ سنت څنګه شو؟

**جواب:** دتراویح لمونځ ته اجتهادویل دجسټس (قاضي) صاحب غلط اجتهاد دی، دتراویح د لمونځ ترغیب په خپله دحضور ﷺ نه ثابت دي[2] او تراویح په جمعې سره کول هم د حضور ﷺ نه ثابت دي، خو ددې ویرې نه چې چیرته په امت باندې فرض نه شي، حضور ﷺ د جمعې اهتمام ترک کړ اوحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې ددې ویره پاتې نه وه،ځکه هغه دجمعې سنت

---

...بقیه د تیر مخ]..  وهکذا ادرکت ببلدنا مکة یصلون عشرین رکعة ......الخ (جامع الترمذی ج:۱ ص:۹۹ باب ماجاء فی قیام شهر رمضان ،طبع رشیدیه دهلی)۔

۱ ] وفی ردالمحتار:لکن فی التلویح ترک السنة المؤکدة قریب من الحرام یستحق حرمان الشفاعة لقوله علیه الصلاة والسلام من ترک سنتی لم ینل شفاعتی اه ۰ وفی التحریر ان تارکها یستوجب التضلیل واللوم اه. والمراد ترک بلا عذرعلی سبیل الاصرارکما فی شرح التحریر لابن امیرالحاج....الخ (ردالمحتار ج:۱ ص:۱۰٤ مطلب فی السنة وتعریفها)

۲ ]کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یرغب فی قیام رمضان من غیر ان یامرهم فیه بعزیمة.فیقول:من قام رمضان ایمانًاواحتسابًاغفرله ماتقدم من ذنبه ۰فتوفی رسول الله صلی الله علیه وسلم والامرعلی ذالک (جامع الاصول ج:۹ص:۴۳۹ بروایت: بخاری، مسلم، ابوداود، ترمذی، نسائی، موطا)۔

جاري کړل.[1]

ددې نه پرته دخلفاء راشدینو رضي الله عنهم داقتداء لازم کیدل د شریعت یومستقل اصل دی اوکه بالفرض دتراویحو لمونځ دحضرت عمر رضي الله عنه په اجتهادسره شوی وی؛ نو ټولوصحابه کرامو په اتفاق سره قبول کړاوخلفاء راشدینوپرې عمل وکړ، ددې نه وروسته دهیڅ یوکس له پاره داجماع صحابه اوسنت خلفاءراشدینو د مخالفت ګنجائش پاتې نه دی، همدغه وجه ده چې داهل حق نه یوکس هم دتراویح دسنت کیدونه منکرنه دی.[2]

## د شل رکعاته تراویحو ثبوت د صحیح حدیث نه

**سوال:** دشلورکعتوتراویح ثبوت دصحیح حدیث په حوالې سره ولیکئ!

**جواب:** موطاامام مالک رحمه الله **باب ماجاء في قيام رمضان** ..کې دیزیدبن رومان رحمه الله نه روایت دی: ،،**كان يقومون فى زمان عمر بن الخطاب فى رمضان بثلث وعشرين ركعة**.،

اوامام بیهقی رحمه الله ،(ج:۲ص۲۹۶)[3] دحضرت سائب بن یزید صحابي رضي الله عنه نه په صحیح سندسره نقل کړی دی.(نصب الرایه:جلد۲ص۱۵٤)[4]

ددې حدیثونونه ثابته شوه چې دحضرت عمر رضي الله عنه دزمانې نه دشلو رکعتوتراویح معمول راروان دی اودغه نصاب دالله تعالی او دهغه درسول صلی الله علیه وسلم په نزدمحبوب اوغوره دی، له

---

۱ ] والاصل فيه ماروى ان النبى عليه الصلوة السلام خرج ليلة فى شهر رمضان ،فصلى بهم عشرين ركعة ،واجتمع الناس فى الثانية فخرج فصلى بهم ،فلماكانت الثالثة كثرالناس فلم يخرج ،وقال :عرفت اجتماعكم ،لكنى خشيت ان يفترض عليهم فكان الناس يصلونها فرادى الى ايام عمربن الخطاب رضى الله عنه ،ثم تقاعدوا عنها فراى ان يجمعهم على امام واحد فجمعهم على ابى بن كعب ،وكان يصلى بهم خمس ترويحات يجلس بين كل ترويحتين فكانت جملتها عشرين ركعة (شرح العناية على هامش فتح القدير ج:۱ ص:۳۳٤ وايضًا: الاختيار لتعليل المختار ج:۱ص:٦۸)_

۲ ] عن العرباض بن سارية رضى الله عنه قال:صلى بنا رسول الله صلى الله علية وسلم ثم اقبل علينابوجهه فقال ......فانه من يعش منكم بعدى فسيرى اختلافًا كثيرًا ،فعليكم بسنتى وسنة الخلفاء الراشدين المهديين تمسكوا بها وعضوا عليها بالنواجذ! واياكم ومحدثات الامور!فان كل محدثة بدعة وكل بدعة ضلالة_ رواه احمد وابوداود والترمذى وابن ماجة (مشكوة ص:۳۰ باب الاعتصام بالكتاب والسنة)_

۳ ] عن السائب بن يزيد قال:كانوا يقومون على عهد عمربن الخطاب رضى الله عنه فى شهر رمضان بعشرين ركعة عن يزيد بن رومان قال كان الناس يقومون فى زمن عمربن خطاب رضى الله عنه فى رمضان بثلاث وعشرين ركعة ويمكن الجمع بين الروايتين فانهم كانوا يقومون باحدى عشرة ثم كانوايقومون بعشرين ويوترون بثلاث ،والله اعلم (سنن بيهقى ج:۲ص:٤۹٦ كتاب الصلاة)_

٤] رواه البيهقى فى..المعرفة...عن السائب بن يزيد،قال:كنانقوم فى زمن عمربن الخطاب بعشرين ركعة والوتر، انتهى قال النووى فى الخلاصة ،،اسناده صحيح (نصب الراية ج:۲ص:۱۵٤ كتاب الصلاة ،طبع دارالمعرفة)

دې وجې صحابه کرامو رضي الله عنهم خصوصاً خلفاء راشدینو په باره کې دا بدګماني نه شي کیدای چې هغوی ددین په معامله کې په څه داسې خبره متفق کیدای شي چې دالله تعالی اودرسول الله ﷺ د منشاء خلاف وي.

حضرت حکیم الامت شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله فرمایي:

,, ومعنی اجماع که برزبان علماء دین شنیده باشی این نیست که همه مجتهدین لایشذ فرد در عصر واحد برمسئله اتفاق کنند،زیرا که این صورتي ست غیرواقع بل غیرممکن عادی،بلکه معنی اجماع حکم خلیفه است بچیزي بعدمشاوره ذوی الرای یابه غیرآن ،ونفاذ آن حکم تا انکه شائع شدودر عالم ممکن گشت .قال النبی ﷺ **علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین من بعدی**.الحدیث،،(ازاله الخفاء ص:۲۶)

**ترجمه**:,, داجماع لفظ به تاسودعالمانوله خولې نه اوریدلی وي، ددې مطلب دانه دی چې په یوه زمانه کې ټول مجتهدین په یوه مسئله اتفاق وکړي اوپه دې شان دهغه نه یوهم بهرنه وي، ځکه چې داصورت نه یوازې چې واقع نه دی، بلکې عادتاهم ممکن نه دی، بلکې داجماع مطلب دادی چې خلیفه اواهل رایه حضرات په مشورې سره یاد مشورې نه پرته دڅه شي حکم وکړي اوهغه نافذکړي، تردې پورې چې هغه مشهورشي اوپه دنیاکې مستحکم شي، دحضور ﷺ ارشاد دی چې لازم ونیسئ زماسنت اوزمانه وروسته دخلفاء راشدینو سنت...

تاسو غوروکړئ چې په شلورکعتوتراویحوکې همدغه معامله راپیښه شوله، چې خلیفه راشدحضرت عمر رضي الله عنه دا اُمت په شلو رکعتو باندې راجمع کړ اومسلمانانوددې اهتمام وکړ، تردې پورې چې دشاه صاحب الفاظ کې،،شایع شده ودرعالم ممکن گشت،،همدغه وجه ده چې اکابرو عالمانو له شل رکعته تراویحو څخه په ،،اجماع،،سره تعبیر کړی دی.

ملک العلماء کاساني رحمه الله فرمایي: ,,**ان عمر رضي الله عنه جمع اصحاب رسول ﷺ فی شهر رمضان علی ابی بن کعب رضي الله عنه فصلی بهم فی کل لیلة عشرین رکعة ولم ینکر علیه احد فیکون اجماعا منهم علی ذالک**،،(بدائع الصنائع:ج۱ص۲۸۸،مطبوعه ایچ ایم سعید کراچی)

**ترجمه**: حضرت عمر رضي الله عنه درسول ﷺ صحابه د روژې په میاشت کې دابی بن کعب رضي الله عنه په اقتدا باندې راجمع کړل اونوموړي به هغوی ته هره شپه شل رکعته تراویح کولې اوددې نه. چاانکارونه کړ؛ نو دهغوی له طرف نه په شلورکعتوتراویح باندې اجماع وشوه.،،

اوموفق ابن قدامة الحنبلي،المغنی (ج:۱ص۸۰۳) کې فرمایي: ,,**وهذا کالاجماع**،،اوهمدغه وجه ده چې ائمه اربعه ؛امام ابوحنیفه رحمه الله امام مالک رحمه الله ،امام شافعی رحمه الله،اوامام احمدبن حنبل رحمه الله؛ په شلو رکعتو تراویح باندې متفق دي، څنګه چې دهغوی دفقهې دکتابونونه واضحه

ده[1]، دائمه اربعه اتفاق په خپله ددې خبرې دلیل دی چې کوم مسائل دخلفاء راشدینونه په تواترسره منقول راروان دي اوزما رایه داده چې کوم مسائل دخلفاء راشدینونه مسلسل نقل دي او دهغه وخت نه واخله اوس وخت پورې امت محمدیه ﷺ پری عمل کول ثابت دي، ددې ثبوت ته دڅه دلیل یابرهان ضرورت نه شته، بلکې ددې متواترنقل اومسلسل عمل دسلو ثبوتونو نه یوثبوت دی، ,,آفتاب آمد دلیلِ آفتاب،،

## د شلو رکعتو تراویحو د عین سنت کیدو پوره علمي بحث

**سوال:** زمونږ یودوست وایي چې دتراویحو اته رکعته هم سنت دي، ځکه چې په صحیح بخاري کې دي چې دحضرت عایشې رضي الله عنها نه کله پوښتنه وشوه، چې: دحضور ﷺ لمونځ به په رمضان کې څنګه و؟ نو هغې وفرمایل چې: حضور ﷺ به په رمضان اوغیررمضان کې د اتورکعتونه زیات نه کول اوداچې دحضرت جابر رضي الله عنه نه صحیح روایت دی چې حضور ﷺ اته رکعته تراویح اووترادا کړل.

ددې په خلاف چې کوم روایت دشلو رکعتود کولونقل کیږي هغه په اتفاق سره ضعیف دی، هغه دادهم وایي چې حضرت عمر رضي الله عنه هم د یوولس رکعتوحکم کړی و، څرنګه چې موطاامام مالک رحمه الله کې دصائب بن یزید رضي الله عنه نه روایت دی اوددې خلاف دشلو رکعتوچې کوم روایت دی اول خوصحیح نه دی اوکه صحیح هم وي؛ نوکیدای شي چې اول هغوی دشلو رکعتود کولوحکم ورکړی وي بیاچې کله ورته معلوم شوي و چې حضور ﷺ اته رکعته کړي دي؛ نودسنت مطابق داتو رکعتود کولوحکم یې ورکړی و، پ هرحال اته رکعته تراویح دحضور ﷺ اودخلفاء راشدینو سنت دي، کوم کسان چې شل رکعته کوي هغوی دسنتوخلاف کوي، تاسووفرمایئ چې زمونږ ددوست داخبره ترکوم حده صحیح ده؟

**جواب:** ستاسو دوست دخپل موقف وضاحت کړی دی اوزه درته دخپل موقف وضاحت کوم، په دې کې کوم یوموقف صحیح دی؟ ددې فیصله په خپله وکړئ، زه خپل تحریرپه څلوربرخو تقسیموم:

(۱)....تراویح دنبي ﷺ په زمانه کې. (۲)....تراویح دعمرفاروق رضي الله عنه په زمانه کې.
(۳)....تراویح دصحابه کراموا وتابعینوپه دورکې.(۴).....تراویح دڅلوروامامانوپه نزد.

## ۱:.....تراویح د نبي ﷺ په زمانه کې

حضور ﷺ په ګڼو احادیثو کې دقیام رمضان ترغیب ورکړی دی، دحضرت ابوهریره رضي الله عنه حدیث دی:

---

۱ ]په آئنده جواب کښ د حضرت شهیدرحمه الله په قلم سره دڅلو امامانومذهب مدلل مفصل طورباندې اوګورئ)۔

،،كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يرغب فى قيام رمضان من غيران يأمرهم فيه بعزيمة فيقول: من قام رمضان ايمانا واحتسابا غفرله ما تقدم من ذنبه. فتوفى رسول الله صلى الله عليه وسلم والامرعلى ذلک،ثم كان الامرعلى ذلک فى خلافة ابى بكروصدرًا من خلافة عمر..٠ (جامع الاصول: ج٩،ص ٤٣٩ بروايت بخارى ومسلم ،ابوداود،ترمذى نسائى ومؤطا)

**ترجمه**: رسول ﷺ به دقيام رمضان ترغيب ورکولو، له دې پرته چې قطعيت سره حکم وکړي اوفرمايل به يې: چاچې ايمان سره اودثواب په نيت سره درمضان قيام وکړ، دهغه تيرګناهونه معاف شول، دامعامله همدغه شان وه چې حضور ﷺ وفات شو، بيادحضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه په دورکې همدغه صورت حال و اودحضرت عمر رضی الله عنه دخلافت په شروع کې هم.

اوبه يوبل حديث کې دي: ،،ان الله فرض صيام رمضان وسننت لكم قيامه.فمن صامه وقامه ايمانا واحتسابا خرج من ذنوبه كيوم ولدته امه،، (جامع االاصول:ج٩:ص ٤٤١بروايت نسائى)

**ترجمه**: بې شکه الله تعالى په تاسوباندې درمضان روژې فرض کړې دي اوماستاسوله پاره دې کې قيام سنت ګرځولى دى؛ نوچاچې دايمان دجذبې اودثواب په نيت سره صيام اوقيام وکړ، هغه به دخپلوګناهونونه داسې ووځي څنګه چې په کومه ورځ دخپلې موردخيټې نه پيداشوى و.

دحضور ﷺ نه دتراويحو لمونځ په جمعې سره اداکول دډيرواحاديثونه ثابت دي مثلاً:

۱.....حديث عائشه رضی الله عنها، په کوم کې چې په درې شپوکې دلمونځ کولوذکردى، په لومړۍ شپه کې تردريمې برخې پورې، په دويمه شپه دنيمې شپې پورې، دريمه شپه کې ترسهار پورې، (صحيح بخارى:ج۲،ص ۳۶۹)[۱]

۲.....حديث ابي ذر رضی الله عنه، په کوم کې چې د(۲۳)شپې دريمې برخې پورې، ۲۵شپې دنيمې پورې او په ۲۷شپه داول فجرپورې دقيام ذکردى.(جامع الاصول:ج:۶ص:۱۲۰ بروايت ترمذى،ابوداود،نسائى)[۲]

---

۱ ] ان عائشة اخبرته ان رسول الله صلى الله عليه وسلم خرج ليلة من جوف الليل فصلى فى المسجد وصلى رجال بصلاته فاصبح الناس فتحدثوا فاجتمع اكثر منهم فصلى فصلوا معه فاصبح الناس فتحدثوا فكثراهل المسجد من الليلة الثالثة فخرج رسول الله صلى الله عليه وسلم فصلى فصلوا فلما كانت الليلة الرابعة عجز المسجد عن اهله حتى خرج لصلوة الصبح فلما قضى الفجراقبل على الناس فتشهد ثم قال:امابعد فانه لم يخف على مكانكم ولكنى خشيت ان تفترض عليكم فتعجزوا عنها٠فتوفى رسول الله صلى الله عليه وسلم والامرعلى ذالک (صحيح البخارى ج:۱ص:۲۶۹)۔

۲ ] ابوذرالغفار رضى الله عنه قال: صمنامع رسول الله صلى الله عليه وسلم رمضان فلم يقم بناحتى بقى سبع من الشهر،فقام بناحتى ذهب ثلث الليل ،ثم لم يقم بنافى السادسة وقام بنا فى الخامسة حتى ذهب شطرالليل ......ثم لم يقم بناحتى بقى ثلاث ليال من الشهر ،فصلى بنا فى الثالثة ،ودعااهله ونسائه فقام بناحتى تخوفناالفلاح ،قلت :ومالفلاح ؟قال السحور (جامع ا لاصول ج:۶ص:۱۲۰،۱۲۱طبع دارالبيان بيروت)۔

۳..... حديث نعمان بن بشير رضی الله عنه، ددې مضمون بعينه دحديث ابي ذر رضی الله عنه دی. (نسائي: ج۱: ص۲۳۸)[۱]

۴..... حديث زيدبن ثابت رضی الله عنه، په دې کې يوازې ديوې شپې ذکر دی.(جامع الاصول: ج:۶، ص:۱۱۹، بروايت بخاري و مسلم،ابوداود،نسائي،)[۲]

۵..... حديث انس رضی الله عنه، په دې کې هم ديوې شپې ذکردی.(صحيح مسلم:ج ۱ص ۳۵۲)[۳]

خوحضور صلی الله علیه وسلم ددې په جمعې سره اداکولوباندې هميش والى ونه فرمايه اوددې ويرې اظهار يې وفرمايلو چې چيرته په تاسوفرض نه شي اوپه خپل ډول سره په کورونوکې دکولوحکم يې وفرمايلو.(حديث زيدبن ثابت رضی الله عنه وغيره)[۴]

په رمضان المبارک کې به دحضور صلی الله علیه وسلم مجاهده ډيره زياتېده، په خاص ډول اخري عشره کې خوبې دټولې شپې قيام معمول و، په يو ضعيف روايت کې داهم راغلي دي چې دحضور صلی الله علیه وسلم په لمونځونو کې به اضافه وشوله.(فيض القديرشرح جامع الصغير ج۵،ص ۱۳۲ وفيه عبدالباقي بن قانع،قال الدارقطني،يخطئ كثيرا)[۵]

په هيڅ يوصحيح روايت کې دانه راځي چې حضور صلی الله علیه وسلم په رمضان المبارک کې دتراويح دلمونځ جماعت کړی دی، په هغې کې يې څومره رکعتونه وکړل، دحضرت جابر رضی الله عنه نه نقل دي چې يوازې يوه شپه حضور صلی الله علیه وسلم اته رکعته وکړل.(مواردلظمان ص:۲۳۰، قيام الليل مروزی ص:۱۵۷ مكتبه سبحانيه، مجمع الزوائد ج:۳ ص:۱۷۲ بروايت طبراني وابويعلى)[۶]

---

۱ ] ابوطلحة قال:سمعت النعمان بن بشيرعلى منبرحمص يقول:قمنامع رسول الله صلى الله عليه وسلم فى شهررمضان ليلة ثلاث وعشرين الى ثلث الليل الاول ،ثم قمنامعه ليلة خمس وعشرين الى نصف الليل ،ثم قمنامعه ليلة سبع وعشرين حتى ظننا ان لا ندرک الفلاح وكانوا يسمونه السحور (نسائى ج:۱ص:۲۳۸باب قيام شهررمضان)۔

۲ ] زيد بن ثابت رضي الله عنه قال......وقال عبدالاعلى :فى رمضان ،فخرج رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلى فيها قال:فتتبع اليه رجال ،وجاووا يصلون بصلاته ،قال:ثم جاووا ليلة ،فحضروا (جامع الاصول ج:٦ص:۱۱۸)۔

۳ ] عن انس قال:كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلى فى رمضان فجئت فقمت الى جنبه وجاء رجل فقام ايضًا حتى كنارهطا فلما حس النبى صلى الله عليه وسلم انا خلفه جعل يتجوز فى الصلوة ثم دخل رحله فصلى صلاة لايصليها عندنا (صحيح مسلم ج:۱ص:۳۵۲باب النهى عن الوصال ،طبع قديمى كتب خانه)۔

٤ ] زيدبن ثابت رضى الله عنه قال......فخرج اليهم رسول الله صلى الله عليه وسلم مغضبا، فقال لهم :ما زال بكم صنيعكم حتى ظننت انه سيكتب عليكم فعليكم بالصلاة فى بيوتكم (جامع الاصول ج:٦ص:۱۱۸طبع دارالبيان)۔

٥ ] كان اذا دخل رمضان تغيرلونه ،وكثرت صلاته ،وابتهل فى الدعاء واشفق لونه (فيض القديرشرح جامع الصغيرج:٥ص:۱۳۲حديث نمبر:۲٦۸۱طبع بيروت)۔

٦ ] عن جابربن عبدالله رضى الله عنهما قال: صلى بنا .... [ بقيه حاشيه په راروانه صفحه

مګرپه دې روایت کې عیسی بن جاریه متفرد دی، چې دا داهل حدیث په نزدضعیف اومجروح دی، دجرح اوتعدیل امام یحیی بن معینؒ دده په باره کې فرمايي: لیس بذاک.. یعني هغه قوي نه دی اودا هم فرمايي، عنده مناکیر،، دهغه سره ډیرمنکر روایتونه دي، امام ابوداود او امام نسايي هغه ته ،،منکرالحدیث،، ویلي دي، امام نسايي هغه متروک ښودلی دی، ساجي اوعقیلي دهغه ذکرپه ضعفاوو کې کړی دی، ابن عديؒ فرمايي چې دهغه حدیثونه محفوظ نه دي.(تهذیب التهذیب ج:٨ ص ٢٠٧،میزان الاعتدال ج:٣ ص:٣١١)[1]

**خلاصه**: داده چې داراوي په دې حدیث کې متفرد هم دی اوضعیف هم، ددې له وجې دا روایت منکردی اوبیاپه دې روایت کې یوازې دیوې شپې دواقعې ذکردی، هرکله چې داویره ده چې حضور ﷺ دې اتو رکعتونونه مخکې یاوروسته یوازې څومره رکعتونه کړي دي، څنګه چې دحضرت انس رضي الله عنه په روایت کې ذکردي.[2]

(مجمع الزوائد ج:٣ ص:١٧٣،بروایت طبرانی ،وقال رجاله رجال الصحیح)

**دویم روایت**: دمصنف ابن ابي شیبهؒ،(ج:٢ ص ٣٩٤،اوسنن کبری بیهقی،ج:٢ ص:٤٩٢،مجمع الزوائد ج:٣ ص:١٧٢) کې دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما دی چې: حضور ﷺ په رمضان کې شل رکعته او وتر کول،، مګرددې په سند کې ابوشیبه ابراهیم بن عثمان راوي کمزوری دی، ددې له وجې دا روایت دسندپه لحاظ سره صحیح نه دی[3] مګرڅنګه چې مخکې به معلوم شي چې دحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې دامت عمل ددې مطابق وشو.

**دریم حدیث**: دحضرت عایشې صدیقې رضي الله عنها دی، دکوم چې سوال کې حواله ورکړل شوې ده، مګرپه دې کې دتراویحو ذکرنه شته، بلکې دهغه لمونځ ذکردی چې په رمضان اوغیررمضان

...بقیه د تیر مخ]..رسول الله صلی الله علیه وسلم فی شهررمضان ثمانی رکعات واوتر (موارد الظمآن ج:٣ص:٢٢٦طبع بیروت)_

١ ] عیسی بن جاریة الانصاری المدنی ....قال ابن ابی خیثمة عن ابن معین لیس بذالک ......وقال الدوری عن ابن معین عنده مناکیر......وقال الآجری عن ابی داود منکرالحدیث ......وذکر الساجی والعقیلی فی الضعفاء وقال ابن عدی احادیثه غیر محفوظة (تهذیب التهذیب لابن حجرج:٨ص:٢٠٨،میزان ج:٣ص:٣١١)

٢ ] عن انس رضی الله عنه: النبی صلی الله علیه وسلم کان یصلی باللیل فی رمضان ،فجاء قوم وصلی ،وکان یخفف ،ثم یدخل بیته فیصلی ،ثم یخرج فیخفف (مجمع الزوائد ج:٣ ص:٣٠٤باب قیام رمضان ،طبع دارالمعرفة بیروت)_

٣ ]عن ابن عباس رضی الله عنهما قال: کان النبی صلی الله علیه وسلم یصلی فی شهررمضان فی غیرجماعة بعشرین رکعة والوتر ،تفرد به ابوشیبة ابراهیم بن عثمان العبسی الکوفی وهوضعیف (سنن البیهقی واللفظ له ج:٢ ص:٤٩٦باب ماروی فی عدد رکعات القیام فی شهر رمضان ،ایضًا:مصنف ابن ابی شیبة ج:٢ص:٣٩٤مجمع الزوائد ج:٣ص:٣٠٤)_

کې همیشه کول کیږي[۱] ددې له وجې دتراویحو درکعتونوپه تعین کې ددې نه هم مددنه ملاویږي.

حضرت شوکاني رحمه الله نیل الاوطارکې لیکي:

,,والحاصل ان الذی دلت علیه احادیث الباب ومایشا بهها هومشروعیة القیام فی رمضان والصلوٰة فیه جماعة وفرادی فقصرالصلوة المسماة بالتروایح علی عددمعین وتخصیصها بقراءة مخصوصة ولم یرد به سنة،، (نیل الاطار:ج ٤ص ٦٤).

**ترجمه**: حاصل داچې ددې باب حدیثونه اوددې په شان حدیثونه چې په کومه خبره دلالت کوي هغه داده چې په رمضان کې قیام کول اوباجماعت یایوازې کول مشروع دي؛ نوتراویح په څه خاص عددسره منحصرکول اوپه دې کې خاص مقداردتلاوتِ مقررول داسې خبره ده چې په سنت کې نه ده راغلې،،

۲.....دحضور ﷺ اوحضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه په زمانه کې د تراویحو باقاعده دجمعې اهتمام نه و، بلکې خلکوبه یوازې یادوړو، وړوتولګو په شکل کې اداکولې، دټولونه مخکې حضرت عمر رضي الله عنه دوی په یوامام باندې راجمع کړل.(صحیح بخاری ج۱:ص ۲۶۹،باب فضل من قام رمضان)[۲]

اودا دخلافت فاروقي رضي الله عنه ددویم کال (۱۴هجري) واقعه ده.(تاریخ الخلفاء ص ۱۲۱،تاریخ ابن اثیر ج:۱ ص ۱۸۹)[۳]

دحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې به څومره رکعتونه کیدل؟ ددې ذکردحضرت سائب بن یزید صحابي رضي الله عنه په حدیث کې دي، حضرت سائب رضي الله عنه نه داحدیث درې شاګردان نقل کوي:

۱: حارث بن عبدالرحمان بن ابي ذباب. ۲: یزیدبن خصیفه.

۳: محمد بن یوسف، ددې درې واړو د روایت تفصیل په لاندې ډول دی:

(۱) دحارث بن عبدالرحمن روایت علامه عیني رحمه الله په شرح بخاری کې دحافظ عبدالبرپه حوالې سره نقل کوي:

,,قال ابن عبدالبر: وروی الحارث بن عبدالرحمان بن ابی ذباب عن السائب بن یزید قال:کان

---

۱ ]عن ابی سلمة بن عبدالرحمن انه سال عائشة کیف کانت صلوة رسول الله صلی الله علیه وسلم فی رمضان؟ فقالت: ما کان یزید فی رمضان ولا فی غیره علی ا حدی عشرة رکعة یصلی اربعاً فلا تسال عن حسنهن وطوهن، ثم یصلی اربعاً ماتسال عن حسنهن وطوهن ،ثم یصلی ثلاثاً ......الخ(بخاری ج:۱ص:۲۶۹باب فضل من قام رمضان)_

۲ ] عن عبدالرحمن بن عبدالقاری انه قال:خرجت مع عمربن الخطاب لیلة فی رمضان الی المسجد فاذا الناس اوزاع متفرقون یصلی الرجل لنفسه ویصلی الرجل فیصلی بصلاته الرهط ،فقال عمر:انی اری لوجمعت هولاء علی قاری واحدلکان امثل،ثم عزم فجمعهم علی ابی بن کعب (بخاری ج:۱ص:۲۶۹باب فضل من قام رمضان)

۳ ] ففی سنة اربع عشرة ......وفیها جمع الناس علی صلاة التراویح (تاریخ الخلفاء ص:۱۰٤،فصل فی خلافته رضی الله عنه)_

**القيام على عهد عمر بثلث وعشرين ركعة. قال ابن عبد البر: هذا محمول على ان الثلث للوتر**(عمدة القاري ج:۱۱ ص:۱۲۷)

**ترجمه:** ابن عبدالبر وايي چې حارث بن عبدالرحمان بن ابی ذباب دحضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه نه نقل کړي دي چې: دحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې به (۲۳) رکعته تراويح کيدلې.
ابن عبدالبر وايي چې په دې کې شل رکعته تراويح اودرې رکعته دوترو و.

۲.....دحضرت سائب دويم راوي يزيدبن خصيفه درې شاګردان دي: ابن ابي ذئب، محمدبن جعفراوامام مالک اودادرې واړه په اتفاق سره شل رکعته روايت کوي.

**الف**.....ابن ابی ذئب روايت امام بيهقي رحمه الله په سنن کبری دلاندينې سندسره مروي دی:

**اخبرنا ابوعبدالله الحسين بن محمدالحسين بن فنجويه الدينوری بالدامغان، ثنا احمدبن محمدبن اسحاق السنی، البانا عبدالله بن محمدبن عبدالعزيز البغوی، ثنا علی بن الجعد انبأنا ابن ابی ذئب عن يزيد بن خصيفة عن السائب بن يزيدقال: كانوا يقومون على عهدعمربن الخطاب رضي الله عنه فی شهر رمضان بعشرين ركعة، قال: وكانوا يقرءون بالمئين، وكانوا يتوكون على عصيهم فی عهدعثمان بن عفان رضي الله عنه من شدة القيام**،،(سنن کبری:ج:۲ ص:۴۹۶)

،يعنې ابن ابي ذئب ،يزيدبن خصيفه نه اوهغه دحضرت سائب رضي الله عنه نه روايت کوي چې دحضرت عمر رضي الله عنه په دورکې په رمضان کې خلکوشل رکعته کول اودحضرت عثمان رضي الله عنه په دور کې دشدت قيام له دوجې به يې په امساګانوباندې تکيه لګوله، ددې سندته امام نووي رحمه الله، امام عراقي رحمه الله اوحافظ سيوطي رحمه الله صحيح ويلي دي ـ
(اثارالسنن ص:۵۲۱ طبع مکتبه امداديه ملتان تحفة الاحوذی ج:۲ ص:۷۵)

**ب**.... دمحمدبن جعفرروايت دامام بيهقي رحمه الله په دويم کتاب معرفة السنن والا ثارکې د لاندينې سندسره مروي دی:

**اخبرنا ابوطاهر الفقيه، ثنا ابوعثمان البصری، ثنا ابواحمد محمدبن عبدالوهاب، ثنا خالد بن مخلد، ثنا محمدبن جعفر حدثنی يزيدبن خصيفة عن السائب بن يزيدقال: كنا نقوم فی زمن عمر بن الخطاب بعشرين ركعة والوتر**،،(نصب الراية:ج:۲ص:۱۵٤)

،يعنې محمدبن جعفر، يزيدبن خصيفه نه اوهغه دسائب بن يزيد رضي الله عنه نه روايت کوي چې: موږ خلکوبه دحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې شل رکعته او وترکول،،
ددې سندته امام نووي رحمه الله په خلاصه کې، علامه سبکي رحمه الله په شرح منهاج کې اوعلامه علي قاري رحمه الله په شرح موطاکې صحيح ويلي دي.(آثارالسنن:ج:۲ص:۵٤،تحفة الاحوذی ج:۲ ص:۷۵)[1]

---

۱ ] واستدل لهم ايضاً بماروى البيهقی فی سننه عن السائب بن يزيد ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

ج:... دیزیدبن خصیفه نه دامام مالک رحمه الله روایت حافظ رحمه الله په فتح الباري کې اوعلامه شوکاني رحمه الله په نیل الاوطار کې ذکرکړی دی.

حافظ رحمه الله لیکي: ''وروی مالک من طریق یزیدبن خصیفة عن السائب بن یزید عشرین رکعة،، (فتح الباری ج:٤ ص:۲۵۳ مطبوعه لاهور)

**ترجمه:** اوامام مالک رحمه الله نه یزیدبن خصیفه په طریق سره حضرت سائب بن یزید شل رکعته نقل کړي دي.

اوعلامه شوکاني رحمه الله لیکي: **وفی المؤطا من طریق یزیدبن خصیفة عن السائب بن یزیدانها عشرین رکعة،،** (نیل اولاطار ج۳ ص:۵۳،مطبوعه عثمانیه ،مصر۱۳۵۷ هـ)

**مالک عن یزیدبن خصیفه عن السائب بن یزید،،** سندبعینه په صحیح بخاري(ج:۱ص:۳۱۲) باندې موجودی، خودا روایت ماته دموطاپه موجوده نسخه کې ملاونه شو، ممکن ده چې دموطاپه څه نسخه دحافظ له نظرنه تیرشوي وي، یاپه غیرموطاکې وي اودعلامه شوکاني: **وفی المؤطا،،** ویل دسهوې له وجې سره وي **فلیفتش،،**

۳:......دحضرت سائب دریم شاګردمحمدبن یوسف په روایت کې دهغه دشاګردانوپه مینځ کې اختلاف شوی دی:

**الف**.....دامام مالک رحمه الله وغیره روایت دی چې حضرت عمر رضي الله عنه ابی اوتمیم داري ته دیولسو رکعتو کولو حکم ورکړی و، څنګه چې په موطاامام مالک رحمه الله کې دي.(موطا امام مالک ص:۹۸ مطبوعه نورمحمد کراچی)[۱]

**ب**...... ابن اسحاق دهغوی نه ددیارلسو روایت کوي(فتح الباری ج:٤ ص:۲۵٤)[۲]

**ج** :...اوداودبن قیس اودنورحضرات دهغوی نه دیویشتو رکعتونقل کوي.(مصنف عبدالرزاق ج:٤ ص:٤٦٠)[۳]

---

...بقیه د تیر مخ].. قال:کنانقوم فی زمان عمربن الخطاب بعشرین رکعة والوتر وصح اسناده السبکی فی شرح المنهاج وعلی القاری فی شرح الموطا (تحفة الأحوذی ج: ۲ص:۷۵ واللفظ للتحفة ،وایضًافی آثارالسنن ج:۲ص:٥٤طبع حقانیه ملتان)۔

۱ ] مالک عن محمد بن یوسف عن السائب ابن یزید انه قال:امرعمر بن الخطاب ابی بن کعب وتمیم االداری ان یقومالناس باحدی عشرة رکعة (موطاامام مالک ص:۹۸طبع نورمحمد کتب خانه)۔

۲۰ ] واخرج من طریقً محمد بن اسحاق حدثنی محمدبن یوسف عن جده السائب بن یزیدقال:کنانصلی زمن عمرفی رمضان ثلاث عشرة (فتح الباری ج:٤ص:۲۵٤طبع دارنشرالکتب الاسلامیة لاهور)۔

۳ ] عبدالرزاق عن داود بن قیس وغیره عن محمد بن یوسف عن السائب بن یزید :ان عمر جمع الناس فی رمضان علی ابی بن کعب وعلی تمیمی الداری ،علی احدی وعشرین رکعة ،یقرون بالمئین وینصرفون عند فروع الفجر (باب قیام رمضان ،مصنف عبدالرزاق ج:٤ص: ۲٦۰،طبع مکتبة رشیدیه کوئته)۔

ددې تفصیل نه معلومه شوه چې دحضرت سائب دوه شاګردان اویزیدبن خصیفه اود یزید درې شاګردان په دې متفق دي چې حضرت عمر رضی الله عنه په شلورکعتو باندې خلک راجمع کړي وو، هرکله چې دمحمدبن یوسف روایت مضطرب (شکي) دی، ځینې په دې کې یولس نقل کوي اوځینې دیارلس اوځینې یویشت داصول حدیث په قاعدې سره مضطرب حدیث دلیل نه دی، لهٰذا دحضرت سائب رضی الله عنه حدیث هماغه دی کوم چې حارث اویزیدبن خصیفه رضی الله عنه نقل کړی دی اوکه دمحمدبن یوسف مضطرب اومشکوک حدیث په څه درجه کې قابل لحاظ وګڼل شي؛ نود دواړو ترمینځه د مطابقت هماغه صورت متعین دی کوم چې امام بیهقي رحمه الله ذکرکړی دی، په یولسو څو ورځې عمل وبیا استقرار په شلو باندې وشو، امام بیهقي رحمه الله ددې دواړو روایتونو دذکرکولو نه وروسته لیکي:

،،ویمکن الجمع بین الروا یتین،فانهم کانوا یقومون بأحدی عشرة ثم کانوا یقومون بعشرین ویوترون بثلث،،(سنن کبری ج۲ ص:۴۹۶)

**ترجمه:** په دواړو روایتونو کې مطابقت ممکن دی، ځکه چې هغو خلکو اول یولس کول، ددې نه وروسته شل رکعته تراویح اودرې وترې کول.

دامام بیهقي رحمه الله داقول چې په عهدفاروقي رضی الله عنه کې دصحابه کرامو اخري عمل. په کوم باندې چې استقرار وشو. شل رکعاته تراویح و، په دې باندې ګڼ شمیر شواهد موجوددي:

**اول**.....امام مالک رحمه الله چې دمحمدبن یوسف نه دیولسو روایت نقل کوي په خپله دهغه خپل مسلک شل یاشپږدیرش رکعته تراویح و، څنګه چې په څلورم بحث کې به راشي، ددې نه واضحه ده چې دا روایت په خپله دامام مالک په نزدهم مختاراو غوره نه دی.

**دویم**.....ابن اسحاق چې دمحمدبن یوسف نه دیارلس روایتونه نقل کوي هغه هم دشلو روایت ته اثبت (زیات قوي) وايي علامه شوکاني رحمه الله دشلو واله روایت لاندې دهغوی قول نقل کړی دی:

،،قال ابن اسحاق وهذا اثبت ما سمعت فی ذلک،، (شوکانی:نیل الاوطار،ج:۳ص:۵۳)

**ترجمه:** ابن اسحاق وايي چې: دتراویح درکعتونو تعدادپه باره کې چې ماڅه واوریدل په هغو دټولو نه زیات ثابت همدغه تعداد دی.

**دریم**..... اوداچې دمحمدبن یوسف دیولسو واله روایت په تایدکې بل څه روایت موجودنه دی، هرکله چې دحضرت سائب بن یزید رضی الله عنه دشلو واله روایت په تایدکې نورهم روایتونه موجوددي، لکه چې اول دیزید بن رومان روایت دی:

،،کان الناس یقومون فی زمان عمر بن الخطاب رضی الله عنه فی رمضان بثلاث وعشرون رکعة،،(موطا امام مالک رحمه الله،ص:۹۸ مطبوعه نورمحمدکراچی،سنن کبری ج:۲ ص:۴۹۶،قیام الیل ص:۹۱ طبع جدید ص:۱۵۷)

**ترجمه:** خلکو دحضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کې (۲۳) رکعته کول،(شل تراویح اودرې وتر)،،

دا روایت د سند په لحاظ سره ډیر زیات قوي دی، مګر مرسل دی، ځکه چې یزید بن رومان د حضرت عمر رضي الله عنه زمانه نه وه موندلې، البته حدیث مرسل (کله چې ثقه او لائق اعتبار سند سره مروي وي) امام مالک رحمه الله، امام ابوحنیفه رحمه الله، امام محمد رحمه الله او د جمهورو عالمانو په نزد مطلقا حجت دی، البته د امام شافعي رحمه الله په نزد باندې حدیث مرسل د حجت کیدو دلیل له پاره دا شرط دی چې د هغه تاید په بل څه مسند یا مرسل سره شوي وي، د یزید بن رومان د زیر بحث روایت تاید په نورو ګڼو روایاتو کې موجود دی، له دې وجې په اتفاق اهل علم حجت دی.

دا بحث خو په عام مراسیل باب و نو کې و، د موطا د مراسیلو په باره کې د اهل حدیث فیصله دا ده چې هغه ټول صحیح دي.

امام الهند شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله په حجة الله البالغه کې لیکي:

**قال الشافعی اصح الکتب بعد کتاب الله موطا مالک واتفق اهل الحدیث علی ان جمیع مافیه صحیح علی رای مالک ومن وافقه واما علی رأی غیره فلیس فیه مرسل ولا منقطع الا قد اتصل السند به من طریق آخری جرم انها صحیحةٍ من هذا الوجه وقد صنف فی زمان مالک موطات کثیرة فی تخریج احادیثه ووصل منقطعه مثل کتاب ابن ابی ذئب وابن عیینة والثوری ومعمر**.(حجة الله البالغه ج:۱ ص:۱۳۳ مطبوعه منیریه)

**ترجمه**: امام شافعي رحمه الله وایي چې کتاب الله نه وروسته اصح الکتب موطا امام مالک دی او د اهل حدیثو په دې باندې اتفاق دی، چې په دې کې څومره روایتونه دي هغه ټول د امام مالک او د هغه د موافقینو په رایه صحیح دي او د نورو په رایه په دې کې مرسل او منقطع روایت داسې نه شته چې په نورو طریقو سره د هغه سند متصل نه وي؛ نو په دې لحاظ سره هغه ټول په ټوله صحیح دي او د امام مالک په زمانه کې د موطا د حدیثونو د تخریج له پاره او د دې منقطع د متصل ثابتولو له پاره ډیرې موطاګانې تصنیف شوې، لکه د ابن ابی ذئب، ابن عیینه، ثوري او معمر کتابونه.،،

او بیا په شلو رکعتو باندې اصلي استدلال، خود حضرت سائب بن یزید رضي الله عنه د روایت نه دی، د کوم د صحیح کیدو تصریح چې تیره شوې ده او د یزید بن رومان روایت بطور تاید بیان شوی دی.

۲.....د یحیی بن سعید انصاري روایت دی چې:

**،،ان عمر بن الخطاب امر رجلا ان یصلی بهم عشرین رکعة،،**(مصنف ابن ابی شیبه ج:۲ ص:۳۹۳)

**ترجمه**: حضرت عمر رضي الله عنه یو کس ته حکم وکړ چې هغه دې خلکو ته شل رکعته وکوي.

دا روایت هم د سند په لحاظ سره قوي، مګر مرسل دی.

۳.....د عبدالعزیز بن رفیع روایت دی: **کان ابی بن کعب یصلی بالناس فی رمضان بالمدینة عشرین رکعة ویوتر بثلث**.(مصنف ابن شیبه ج:۲ ص:۳۹۳)

**ترجمه**: حضرت ابي بن کعب رضي الله عنه به خلکوته په مدينه کې په رمضان کې شل رکعته تراويح اودرې وترکول، ،

۴.....دمحمدبن کعب قرظي روايت دی چې: **كان الناس يصلون فى زمان عمر بن الخطاب فى رمضان عشرين ركعة يطيلون فيها القراءة ويوترون بثلث**.(قيام الليل ص:۹۱،طبع جديد ص:۱۵۷)

**ترجمه**: خلکوبه دحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې په رمضان کې شل رکعة کول اوپه هغه کې به يې اوږد قرات کولواودرې وتربه يې کول،

داروايت مرسل دی اوپه قيام الليل کې ددې سند نه دی ذکرشوی.

۵.....په کنزالعمال کې په خپله دحضرت ابي بن کعب رضي الله عنه نه نقل دي چې:

**ان عمر بن الخطاب امره ان يصلى بالليل فى رمضان فقال: ان الناس يصومون النهار ولا يحسنون ان يقراوا فلوقرات عليهم بالليل: فقال: ياامير المومنين، هذاشئ لم يكن، فقال: قدعلمت ولكنه حسن، فصلى بهم عشرين ركعة**،،(كنزالعمال طبع جديدبيروت ج:۸ ص:۴۰۹ حديث :۲۳۴۷۱)

**ترجمه**: حضرت عمر رضي الله عنه هغه ته حکم وکړ چې هغه دې په رمضان کې خلکوته دشپې لمونځ ورکوي ، حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل چې: خلک د ورځې روژه نيسي، مگربه ښې طريقې په لوستلو باندې نه پوهيږي؛ نوکاش،تادشپې دوی ته قرآن اورولی، ابي بن کعب ورته عرض وکړ: يا اميرالمومنين! دا يو داسې شی دی چې مخکې نه دی شوی، ويې فرمايل: داخوماته معلومه ده، خودابنه شي دی، ابي رضي الله عنه خلکوته شل رکعته ورکول،...

**څلورم**:.....دپورتنوروايات‌وپه رڼاکې اهل علم ددې قايل دي چې حضرت عمر رضي الله عنه خلک په شلو رکعتو باندې راجمع کړل اوحضرات صحابه کرام رضوان الله اجمعين دهغه موافقت وکړ، ځکه چې دااجماع په شان و، دلته ديوڅواکابروارشادات ذکرکيږي:

امام ترمذي رحمه الله ليکي: **واختلف اهل العلم فى قيام رمضان فراى بعضهم ان يصلى احدى واربعين ركعة مع الوتروهوقول اهل المدينة والعمل على هذا عندهم بالمدينة واكثراهل العلم على ماروى عن على وعمروغيرهما من اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم عشرين ركعة وهوقول سفيان الثورى وابن المبارک والشافعى،وقال الشافعى: وهكذا ادركت ببلدنا بمكة يصلون عشرين ركعةً**،،(سنن ترمذی ج:۱ ص:۹۹)

**ترجمه**:.....په تراويحو کې دااهل علم اختلاف دی، ځينې له وترو سره د يوڅلويښتوقايل دي، دااهل مدينه همدغه قول دی اودهغوی په مدينه طيبه کې په دې همدغه شان عمل دی اواکثراهل علم د شلو رکعتوقايل دي، چې حضرت علي رضي الله عنه ،حضرت عمر رضي الله عنه اونورصحابه کرام رضي الله عنهم نه مروي دي، سفيان ثوري رحمه الله ،عبدالله بن مبارک رحمه الله اودشافعي رحمه الله همدغه قول

دی، امام شافعي رحمه الله فرمايي چې ما په خپل ښار مکه کې خلک په شلورکعتو کولو باندې ليدلي دي،،

۲......علامه زرقاني مالکي رحمه الله شرح موطا کې دابوالوليد سليمان بن خلف القرطبي الباجي المالکي (متوفی ۴۹۴ھ) نه نقل کوي: قال الباجي: **فامرهم اولا بتطويل القراءة لانه افضل، ثم ضعف الناس فامرهم بثلث وعشرين فخفف من طول القراءة واستدرک بعض الفضيلة بزيادة الركعات.،،**(شرح زرقانی علی الموطا ج:۱ ص:۲۳۹)

**ترجمه:** باجي رحمه الله وايي چې: حضرت عمر رضی الله عنه اول هغوی ته د اوږدو رکعتونو حکم ورکړی و اوهغه افضل دی، بيايې دخلکوکمزوري محسوس کړه؛ نود(۲۳)رکعتوحکم يې ورکړ، په اوږد قرأت کمي اوپه رکعتونوکې اضافه وکړله اودفضيلت تلافي يې وکړه.

**،،قال الباجي: وكان الامر على ذلک الى يوم الحرة فثقل عليهم القيام فنقضوا من القراءة وزادوا الركعات فجعلت ستا وثلاثين غير الشفع والوتر.،،**(زرقانی شرح موطا ج:۱ ص:۲۳۹)

**ترجمه:** باجي رحمه الله فرمايي چې: يوم حره پورې دشلورکعتو دستور و، بيا په هغوی ولاړه ګرانه شوه؛ نوپه قرات يې کمي وکړ اوپه رکعتونو کې يې نوره اضافه وکړله اودوترونه پرته (۳۶)رکعته شول.،

۳......علامه زرقاني رحمه الله داخبره دحافظ ابن عبدالبر رحمه الله (۳۶۸ھ، ۴۶۳ھ) ابومروان عبدالملک بن حبيب القرطبي المالکي رحمه الله (متوفي ۲۳۷ھ) نه نقل کړې ده.(زرقانی شرح موطا ج:۱ ص:۲۳۹)

۴......حافظ موفق الدين ابن قدامه المقدسي الحنبلي رحمه الله(متوفي ۶۲۰ھ) په المغنی کې ليکي: **،،ولنا ان عمر رضی الله عنه لما جمع الناس على ابي بن كعب كان يصلى لهم عشرين ركعة،**

**ترجمه:** زموږ دليل دادی چې حضرت عمر رضی الله عنه خلک په ابي بن کعب رضی الله عنه باندې راجمع کړل او نوموړي به هغوی ته شل رکعته کول.،،

ددې سلسلې روايات او دا چې دحضرت علي رضی الله عنه داثر ذکرکولونه وروسته ليکي:

**وهذا كالاجماع.،،** **ترجمه:** اودادصحابه داجماع په شان ده.،،

بيا د مديني والا په (۳۶)باندې دعمل په ذکرکې ليکي: **ثم لوثبت ان اهل المدينة كلهم فعلوه لكان ما فعله عمر واجمع عليه الصحابة فى عصره اولى بالاتباع.**

**قال بعض اهل العلم انما فعل هذا اهل المدينة لانهم ارادوا مساواة اهل مكة، فان اهل مكة يطوفون سبعا بين كل ترويحتين فجعل اهل المدينة مكان كل سبع اربع ركعات، وما كان عليه اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم اولى واحق.،،**(ابن قدامه، المغنی مع الشرح الكبير ج:۱ ص:۷۹۹)

بيا که ثابته شي چې دمديني ټولو خلکو(۳۶)رکعته کول؛ نوبياهم چې کوم کارحضرت عمر رضي الله عنه وکړ او په کوم چې دهغه په دورکې صحابه رضوان الله اجمعين اجماع وکړله دهغوی پيروي کول به اولی وي.

ځينې اهل علم وويل چې: داهل مدينې مقصدپه عمل کې د اهل مکې برابري کول و، ځکه چې اهل مکه به ددوترويحو په مينځ کې طواف کاو، اهل مدينه دطواف په ځای ددووترويحو مينځ کې څلور رکعتونه مقررکړل، په هرحال درسول الله صلی الله عليه وسلم دصحابه وو چې کوم معمول و هماغه اولی اوبرحق دی،،

۵.....امام محي الدين نووي رحمه الله (متوفي ۶۷۶هـ)په شرح مهذب کې ليکي: ،،**واحتج اصحابنا بمارواه البيهقي وغيره بالاسنادالصحيح عن السائب بن يزيد الصحابي رضي الله عنه قال كانوا يقومون على عهدعمر بن الخطاب رضي الله عنه في شهر رمضان بعشرين ركعة. الحديث**(المجموع شرح مهذب ح: ٤ ص:٣٢)

**ترجمه**:.....زموږ اصحابوددې نه دليل نيولی دی چې امام بيهقي رحمه الله او نورو حضراتو دسائب بن يزيدصحابي رضي الله عنه نه په صحيح سندسره روايت کړی دی چې خلکوبه دحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې رمضان المبارک کې شل رکعته کول،،

مخکې ديزيدبن رومان رضي الله عنه دروايت ذکرکوي اوداامام بيهقي رحمه الله تطبيق يې ذکرکړی دی او دحضرت علي رضي الله عنه اثريې ذکرکړی دی او داهل مدينه په فعل باندې هماغه توجيه کړې ده چې ابن قدامه رضي الله عنه په عبارت کې تيره شوې ده.

۶.....علامه شهاب الدين احمدبن محمدقسطلاني شافعي رحمه الله (متوفي ۹۲۳هـ) شرح بخاري کې ليکي: **وجمع البيهقي بينهما بانهم كانوا يقومون باحدى عشرة ثم قاموا بعشرين واوتروا بثلث وقدعدوا ماوقع في زمن عمر رضي الله عنه كالاجماع**.،، (ارشادالساری ج:٣ ص:٤٢۶)

**ترجمه**: اوامام بيهقي رحمه الله دادواړه روايتونه داسې راجمع کړل چې هغه اول يولس کول اوبيايې شل تراويح اودرې وتر شروع کړل اودحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې چې کوم دمعمول جاري شوهغه عالمانو په شان داجماع حساب کړ.

۷.....علامه شيخ منصوربن يونس بهوتي حنبلي(متوفي۱۰۴۶هـ) په کشف القناع عن متن الاقناع،، کې ليکي: ،،**وهي عشرون ركعة لماروى مالك عن يزيدبن رومان قال:كان الناس يقومون في زمن عمر في رمضان بثلث وعشرين ركعة...وهذا في مظنة الشهرة بحضرة الصحابة فكان اجماعا**،،

(كشف القناع عن متن الاقناع ج:١ ص:٣٩٢)

**ترجمه**: تراويح شل رکعته دي، امام مالک رحمه الله ديزيد بن رومان رحمه الله نه نقل کړي دي چې خلکودحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې په رمضان کې (۲۳) رکعته کول....

اوحضرت عمر رضي الله عنه دصحابه وو په موجودګي کې دشلوحکم ورکول دعام شهرت موقع وه، ددې له وجې دا اجماع شوه.،،

۸:......مسندالهند شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله په حجة الله البالغه کې ليکي:

**وزادت الصحابة ومن بعدهم فى قيام رمضان ثلثة اشياء: الاجماع له فى مساجدهم. وذلک لانه يفيد التيسير على خاصتهم وعامتهم، واداؤه فى اول الليل مع القول بأن صلاة آخرالليل مشهودة وهى افضل كمانبه عمر رضي الله عنه لهذاالتيسيرالذى اشرنا اليه، وعدده عشرون ركعة.،،**(حجة الله البالغه ج:۲ ص:۱۸) **ترجمه**:اوصحابه کرام رضي الله عنهم اودهغوی نه وروسته حضراتو په قيام رمضان کې ددرېوشيانواضافه وکړه:

۱:......دتراويحو له پاره په جوماتونوکې راجمع کيدل، ځکه چې دې سره عام اوخاص ته آساني حاصلېږي.

۲:...په اوله شپه کې اداکول، سره له دې چې په اخره شپه کې دفرشتو حاضري کيږي اوهغه افضل دی، څنګه چې حضرت عمر رضي الله عنه په دې باندې خبرداری وفرمايلو، مګرپه اوله شپه کې اختيارول هم ددې اساني له پاره و، دکومې طرف ته چې موږ اشاره وکړه.

۳:......دشلورکعتوتعداد.

## ۲....تراويح دصحابه کرامو رضى الله عنهم او تابعينو رحمهم الله په دورکې

دحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې دشلورکعتوتراويح معمول شروع شو؛نووروسته هم دکم ازکم شلو معمول و،دځينوصحابه وو رضي الله عنهم او تابعينونه دزياتوروايات خونقل دي؛ خودچانه هم د اتو روايت نشته.

۱:......دحضرت سائب رضي الله عنه روايت پورته تيرشوی دی،چې په هغه کې هغوی دحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې دشلودمعمول ذکر کولو سره په همدې باره کې عهدعثماني رضي الله عنه ذکرکړی دی.

۲:......دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه وفات دحضرت عثمان دزمانې په آخره کې وشو،هغوی به هم شل رکعاته کولې.(قيام الليل ص:۹۱ طبع جديد ص:۱۵۷)[1]

۳......**عن ابى عبدالرحمان السلمى عن على رضي الله عنه انه دعاالقراء فى رمضان فامرمنهم رجلايصلى بالناس عشرين ركعة وكان على يوتربهم.،،** (سنن كبرى بيهقى ج:۲ ص:۴۹۶)

**ترجمه**:ابوعبدالرحمان سلمي وايي چې:حضرت علي رضي الله عنه په رمضان کې قاريان راوغوښتل، په هغوی کې يوکس ته يې حکم وکړچې شل رکعته وکړي،اووتربه حضرت علي رضي الله عنه په خپله ورکول.،،

---

۱]قال الاعمش كان عبدالله بن مسعودرضى الله عنه يصلى عشرين ركعة ويوتربثلاث..الخ (قيام الليل ص:۹۱)

په دې سندکې په حمادبن شعيب باندې محدثينوكلام كړى دى،خوددې ګڼ شميرګواهان موجوددي.
دابوعبدالرحمان سلمي داراويت شيخ الاسلام حافظ ابن تيميه رحمه الله په منهاج السنة كې ذكركړى دى اوددې نه يې داستدلال كړى دى چې حضرت علي رضي الله عنه دحضرت عمر رضي الله عنه جارى شوې تراويح په خپل دورخلافت كې باقى وساتلې.(منهاج السنة ج:٤ ص:٢٢٤)[1]

حافظ ذهبى رحمه الله په ,,**المنتقى مختصرمنهاج السنة**(المنتقى ص:٥٤٢) كې دحافظ ابن تيميه رحمه الله دا استدلال له ردكولوپرته ذكركړى دى، ددې نه واضحه ده چې ددوى دواړوپه نزد دحضرت علي رضي الله عنه په دورخلافت كې دشلوركعتوترواېحومعمول جاري و.

۴:...... **عن عمروبن قيس عن ابى الحسناء ان علياامررجلا يصلى بهم فى رمضان عشرين ركعة**(مصنف ابن ابى شيبه ج:٢ ص:٣٩٣)

**ترجمه**:عمروبن قيس،دابوالحسناء نه نقل كوي چې حضرت علي رضي الله عنه يوسړي ته حكم وكړچې خلكوته په رمضان كې شل ركعته وركړي.،،

**۵**:......**عن ابى سعدالبقال عن ابى الحسناء ان علي بن ابى طالب رضي الله عنه امررجلا ان يصلى بالناس خمس ترويحات عشرين ركعة وفى هذا الاسنادضعف**.،،(سنن كبرى بيهقى ج:٢ ص:٤٩٥)

**ترجمه**:ابوسعدالبقال،دابوالحسناء نه نقل كوي چې حضرت علي رضي الله عنه يوكس ته حكم وكړ چې خلكوته پنځه ترويحې يعنې شل ركعته وركړي،امام بيهقى رحمه الله فرمايي چې:ددې په سندكې ضعف دى.

علامه ابن التركماني رحمه الله، الجواهرالنقي كې ليكي چې:ظاهره خو داده چې ددې دسند ضُعف دابوسعد بقال له وجې دى چې متكلم فيه راوي دى، خو دابن ابى شيبه روايت كوم چې پورته ذكر شو ددې متابع موجوددى،چې هغه سره دضعف تلافي كيږي.(ذيل سنن كبرى ج:٢ ص:٤٩٥)

۶:......**عن شتيربن شكل وكان من اصحاب على رضي الله عنه انه كان يومهم فى شهررمضان بعشرين ركعة ويوتر بثلث**.،،(سنن كبرى ج:٢ ص:٤٩٦،قيام الليل ص:٩١ طبع جديد ص:١٥٧)[2]

**ترجمه**: شتير بن شكل،چې دحضرت علي رضي الله عنه دصحابه وو څخه و،په رمضان كې خلكوته شل

---

١ ] وعن ابى عبدالرحمن السلمى ان عليًا دعا القراء فى رمضان فامر رجلاً منهم يصلى بالناس عشرين ركعة (منهاج السنة ج:٣ص:٢٢٤،طبع المكتبة السلفية لاهور) وفيه ايضًا:ان هذا لوكان قبيحًامنهيًا عنه لكان على ابطله لما صارامير المومنين وهو بالكوفة فلماكان جاريًا فى ذالك مجرى عمر دل على استحباب ذالك۔

٢ ] قلت :الاظهر ان ضعفه من جهة ابى سعد سعيدبن المرزبان البقال فانه متكلم فيه فان كان كذالك فقد تابعه عليه غيره قال ابن شيبة فى المصنف ثنا وكيع عن الحسن بن صالح عن عمرو بن قيس عن ابى الحسناء ان عليًاامررجلاً يصلى بهم فى رمضان عشرين ركعة (ذيل سنن الكبرى ج:٢ص:٤٩٥طبع دارالكتب العلمية)۔

رکعته تراويح اودرې وتره لوستل.،

امام بيهقى رحمه الله دا اثرنقل کړى دى، وفى ذلک قوة.،اوپه دې کې قوت دى،اوبيادې په تايدکې هغوى دعبدالرحمان سلمي ذکرکړى دى،چې پورته تيرشوى دى.[1]

۷.....عن ابي الخصيب قال:كان يومنا سويدبن غفلة فى رمضان فيصلى خمس ترويحات عشرين ركعة.،(سنن كبرى ج:۲ ص:۴۹۶)

**ترجمه**:ابوالخصيب وايي چې :سويدبن غفله مونږ ته په رمضان کې لمونځ کولو، پنځه ترويحې(شل رکعتونه) به يې کول.،

''قال النيموى:واسناده حسن.،(آثارالسنن ج:۲ ص:۵۵طبع هند)

**ترجمه**:علامه نيموي فرمايي چې:ددې سندصحيح دى.،

حضرت سويدبن غفله رضي الله عنه له کبارو تابعينوڅخه ګڼل کيږي. هغوى دجاهليت زمانه بيا موندله، او دحضور صلى الله عليه وسلم په ژوندکې يې ايمان راوړ،خو دحضور صلى الله عليه وسلم زيارت يې ونکړ،ځکه چې مدينې طيبې ته په هغه ورځ راورسيده په کومه ورځ چې دحضور صلى الله عليه وسلم تدفين وشو، ددې وجې نه دصحابيت په شرف مشرف نه شو،وروسته يې په کوفه کې استوګنه اختيارکړه، دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او د حضرت علي رضي الله عنه په خاصو صحابه ووکې وو،په (۸۰)هجري کې ديو سل ديرشو کالوپه عمر وفات شو.(تقريب التهذيب ج:۱ ص:۳۴۱)[2]

۸.....عن الحارث انه كان يؤم الناس فى رمضان بالليل بعشرين ركعة ويوتر بثلث ويقنت قبل الركوع.، (مصنف ابن ابى شيبه ج:۲ ص:۳۹۳) **ترجمه**: حارث، په رمضان کې خلکوته شل تراويح اودرې وتر کول،اودرکوع نه مخکې به يې قنوت لوستو.،

۹.....قيام الليل په باره کې د عبدالرحمان بن ابى بكره دسعيدبن حسن اوعمران العبدي نه نقل کړى دى چې هغوى به شل شپې شل رکعته تراويح کولې اوپه آخري عشره کې به يې يوه ترويحه اضافه کوله. (قيام الليل ص:۹۲ طبع جديد۱۵۸)

حارث، عبدالرحمان بن ابى بكره(متوفى ۹۲ هـ) اوسعيدبن الحسن (متوفى ۱۰۸ هـ) درې واړه دحضرت علي رضي الله عنه شاګردان وو.

---

۱ ] ولى ذالک قوة لماخبرنا......عن ابى عبدالرحمن السلمى عن على رضى الله عنه قال:دعا القراء فى رمضان فامرمنهم رجلا يصلى بالناس عشرين ركعة قال وكان على ر ضى الله عنه يوترهم وروى ذالک من وجه آخر عن على (سنن بيهقى ج:۲ص:۴۹۶طبع دارالكتب العلمية بيروت)۔

۲ ] سويد بن غفلة بفتح المعجمة والفاء ابوامية الجعفى مخضرم من كبارالتابعين قدم المدينة يوم دفن النبى صلى الله عليه وسلم وكان مسلمافى حياته ثم نزل الكوفة ومات سنة ثمانين ،وله مائة وثلاثون سنة (تقريب التهذيب ج:۱ص:۳۴۱رقم :۶۰۳طبع بيروت)۔

۱۰:.....ابوالبختري به هم شل تراويح اودرې وترخلکوته کول.(مصنف ابن ابی شيبه ج:۲ ص:۳۹۳)[۱]

۱۱:.....علی بن ربيعه به،چې دحضرت علي رضی الله عنه په اصحابوکې و، شل تراويح اودرې وتر کول.(مصنف ابن ابی شيبه ج:۲ ص:۳۹۳)[۲]

۱۲:.....ابن ابی مليکه(متوفی ۱۱۷ ھ) به هم شل رکعته تراويح کولې. (مصنف ابن ابن شيبه ج:۲ ص:۳۹۳)[۳]

۱۳:.....حضرت عطا(متوفی ۱۱۴ھ) فرمايي چې:ماخلک له وترو سره په دريويشت رکعته کولو ب بياموندل.(مصنف ابی ابن شيبه ج:۲ ص:۳۹۳)[۴]

۱۴:.....په موطاامام مالک رحمه الله کې دعبدالرحمان بن هرمزالاعرج (متوفی۱۱۷ھ) روايت دی چې ماخلک په داسې حالت کې بياموندل چې هغوی به په رمضان کې په کافرانوباندې لعنت کولواوقار يبه په اتورکعتونوکې سوره بقره ختموله،اوکه په دولسورکعتونوکې به يې سوره بقره ختموله نوخلکوبه داسې ګڼل چې ده په قرات کې کمی کړی دی.(موطاامام مالک ص:۹۹)[۵]

ددې روايت نه مقصودخوپه تراويحوکې دقرات اوږدوالی دی،خو دروايت دمضمون نه معلوميږي چې يوازې په اتو رکعتونو به اکتفانه کيده.

خلاصه داده چې دکله نه حضرت عمر رضی الله عنه دتراويحودباقاعده جماعت شروع وکړه، هميشه به شل يادې نه زياتې تراويح کيدې،البته ايام حره(۶۳ھ) سره خواوشا دمدينې والودهرې ترويحې په مينځ کې دڅلورورکعتونواضافه وکړه ،ددې وجې نه هغوی به سره د وترو يوڅلويښت رکعتونه کول،اوځينو نوروتابعينوبه هم په آخري عشره کې اضافه کوله،په هرحال صحابه رضوان الله اجمعين، او تابعينوپه دورکې داتورکعتونود کمزوري نه کمزوری ثبوت هم نه ملاويږي،له دې وجې چې کوموحضراتو داويلي دي چې دحضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کې په شلورکعتونوباندې دصحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع شوې وه، دهغوی داويناحقيقت ده،ځکه چې حضرات سلف ددې په دې تعدادباندې داضافې خوقائل وو،مګرپه دې کې دکمې قول هيچانه

---

۱ ] عن ابی البختری :انه کان يصلی خمس ترويحات فی رمضان ،ويوتربثلاث (المصنف لابن ابی شيبة ج:۵ ص:۲۲٤،حديث نمبر:۷۷٦۸طبع المجلس العلمی بيروت)۔

۲ ] ان علی بن ربيعة کان يصلی بهم فی رمضان خمس ترويحات ،ويوتر بثلاث (المصنف لابن ابی شيبة ج:۵ص:۲۲٤،حديث نمبر:۷۷۷۲طبع المجلس العلمی بيروت)۔

۳ ] وکيع عن نافع بن عمرقال:کان ابن ابی مليکة يصلی بنافی رمضان عشرين رکعة (المصنف لابن ابی شيبة ج:۵ص:۲۲۳،۲۲٤حديث نمبر:۷۷٦۵طبع المجلس العلمی بيروت)۔

٤ ] ابن نميرعن عبدالملک عن عطاء قال:ادرکت الناس وهم يصلون ثلاثاوعشرين رکعة بالوتر (المصنف لابن ابی شيبة ج:۵ص:۲۲٤حديث نمبر:۷۷۷۰طبع المجلس العلمی بيروت)۔

۵ ] مالک عن داودبن الحصين انه سمع الاعرج يقول:مادرکت الناس الا وهم يلعنون الکفرة فی رمضان قال وکان القاری يقرأ بسورة البقرة فی ثمان رکعات فاذا قام بها فی اثنتی عشررکعة رای الناس انه قدخفف (موطا امام مالک ص:۹۹طبع نورمحمد کتب خانه کراچی)۔

نقل نه دی، له دې وجې نه داوینا صحیح ده چې په دې خبره دسلف اجماع وه چې دتراویحو دکم نه کم تعداد شل رکعته دی.

## ٤:......تراویح دځلورو امامانو په نزد

دامام ابوحنیفه رحمه الله، امام شافعي رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله په نزد تراویح شل رکعته دي، دامام مالک رحمه الله نه په دې سلسله کې دوه روایتونه نقل دي، یودشلو اوبل دشپږ دیرشو، خو دمالکي مذهب په متونو کې دشلو روایت اختیار شوی دی، دفقه حنفي دحوالې ورکولو ضرورت نشته، دنورو مذاهبو دمستندو کتابونو حوالې وړاندې کیږي:

## فقه مالکي:

قاضی ابوالولیدابن رشد مالکي (متوفی ۵۹۵ هـ) په (بدایة المجتهد) کې لیکي: ,,**واختلفوا فی المختار من عدد الرکعات التی یقوم بها الناس فی رمضان فاختار مالک فی احد قولیه وابو حنیفه والشافعی واحمد وداود القیام بعشرین رکعة سوی الوتر، وذکر ابن القاسم عن مالک انه کان یستحسن ستا وثلاثین رکعة والوتر ثلاث**،، (بدایة المجتهد ج:۱ ص:۱۵۶ مکتبه علمیه لاهور)

**ترجمه:** په رمضان کې څومره رکعتونه کول غوره دي؟

په دې کې دعالمانو اختلاف دی، امام مالک رحمه الله په یوقول کې اوامام ابوحنیفه رحمه الله، شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله د وترونه پرته شل رکعتونه اختیار کړي دي اوابن قاسم رحمه الله دامام مالک رحمه الله نه نقل کړي دي چې هغوی به درې وتر اوشپږ دیرش رکعته تراویح خوښولې،،

دمختصر خلیل شارح علامه شیخ احمد الدردیر المالکي (متوفی ۱۲۰۱ هـ) لیکي:

**وهی (ثلاث وعشرون) رکعة بالشفع والوتر کما کان علیه العمل (ای عمل الصحابة والتابعین، الدسوقي). (ثم جعلت) فی زمن عمر بن عبدالعزیز رحمه الله (ستا وثلاثین) بغیر الشفع والوتر لکن الذی جری علیه العمل سلفا وخلفا الاول**،، (شرح الکبیر الدردیر مع حاشیة الدسوقی ج:۱ ص:۳۱۵)

**ترجمه:** اوتراویح، له وترو سره (۲۳) رکعته دي، څنګه چې ددې مطابق (دصحابه وو اوتابعینو) عمل و، بیا دحضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله په زمانه کې له وترو پرته شپږ دیرش رکعته شوې، خو په کوم تعداد باندې چې دسلف اوخلف عمل همیشه جاري و، هغه اول قول دی، (شل تراویح اودرې وتر)

## فقه شافعي:

امام محي الدین نووي رحمه الله (متوفی ۶۷۶ هـ) په المجموع شرح مهذب کې لیکي:

**(فرع) فی مذاهب العلماء فی عدد رکعات التراویح مذهبنا انها عشرون رکعة بعشر تسلیمات**

غیرالوتروذالک خمس ترویحات الترویحة اربع رکعات بتسلیمتین هذا مذهبنا وبه قال ابوحنیفه و اصحابه واحمد وداؤد وغیرهم ولقله القاضی عیاض عن جمهورالعلماء وحکی ان الاسودبن یزید رضی الله عنه کان یقوم باربعین رکعة یوتر بسبع وقال مالک التراویح تسع ترویحات وهی ستة وثلاثون رکعة غیرالوتر.،(مجموع شرح مهذب ج:٤ ص:٣٢)

**ترجمه**: دتراویحودرکعتونودتعدادپه باره کې دعلماوو مذاهب ، زمونږ مذهب دادی چې تراویح شل رکعته دي، دلسو سلامونو سره له وترو پرته، داپنځه ترویحې شوې،یوه ترویحه دڅلورو رکعتونو د دووسلامونوسره،امام ابوحنیفه اودهغه اصحاب،امام احمداوامام داود وغیره هم ددې قائل دي.اوقاضی عیاض رحمه الله دا دجمهور عالمانو نه نقل کړی دی ،نقل شوي دي چې اسودبن یزید به یوڅلويښت تراویح اواووه وتر کول.اوامام مالک فرمایي چې تراویح نهه ترویحې دي اوداد وترونه پرته شپږ دیرش رکعتونه شول.،

## فقه حنبلي:

حافظ ابن قدامة المقدسي الحنبلي(متوفی ۶۲۰ ه) په المغني کې ليکي:

والمختارعندابی عبدالله رحمه الله فیها عشرون رکعة وبهذا قال الثوري، ابوحنیفة والشافعی،وقال مالک ستة وثلاثون.،(مغنی ابن قدامه ج:١ ص:٧٩٩، ٧٩٨ مع الشرح الکبیر)

**ترجمه**:امام احمد رحمه الله په نزدباندې په تراویح کې شل رکعتونه غوره دي،امام ثوري رحمه الله، او ابوحنیفه رحمه الله هم ددې قایل دي اوامام مالک رحمه الله دشپږ دیرشوقائل دی.،

## د بحث پای او څوضروري فوائد

داختتام په ډول څو فوائد وړاندې کول غواړم چې دشلو رکعتو تراویحو اهمیت موږ په ذهن کې کېښني.

## شل رکعته تراويح سنت مؤکده دي

١.......دحضرت عمر رضی الله عنه داکابرو صحابه ووپه موجودګي کې شل تراویح جاري کول،دصحابه کراموبه دې باندې نکیرنه کول اود صحابه کرامودوخت نه واخله تراوسه پورې دمشرق نه ترمغرب پورې شل رکعته مسلسل په عمل کې پاتې کیدل، ددې امردلیل دی،چې داد الله تعالی په خوښ دین کې داخل دی.لقوله تعالی:ولیمکنن لهم دینهم الذی ارتضی لهم.،(الله تعالی به یدخلفاء راشدینو له پاره دهغوی دین ته قراراوتمکین وربښي، چې الله تعالی دهغوی له پاره خوښ کړی دی).

په الاختیارشرح المختارکې دي ''روی اسدبن عمروعن ابی یوسف قال:سئلت اباحنیفة رحمه الله

عن التراويح وما فعله عمر رضي الله عنه، فقال: التراويح سنة موكدة ولم يتخرصه عمر من تلقاء نفسه ولم يكن فيه مبتدعا ولم يامر به الاعن اصل لديه وعهد من رسول الله صلى الله عليه وسلم ولقد سن عمر هذا وجمع الناس على ابى بن كعب فصلاها جماعة والصحابة متوافرون منهم عثمان وعلى وابن مسعود والعباس وابنه وطلحة والزبير ومعاذ وابى وغيرهم من المهاجرين والانصار رضى الله عنهم اجمعين وما رد عليه واحد منهم بل ساعدوه ووافقوه وامروا بذلك.،

(الاختيار لتعليل المختار ج:۲ ص:۶۸ الشيخ الامام ابى الفضل مجدالدين عبدالله بن محمودالموصلى الحنفى، متوفى ۶۸۳ هـ)

**ترجمه**: اسدبن عمرو، امام ابويوسف نه روايت كوي چې: ما دامام ابوحنيفه رحمه الله څخه د تراويحو اود حضرت عمر رضي الله عنه دفعل په باره كې سوال وكړ، نوهغوى وفرمايل چې: تراويح سنت موكده دي، اوحضرت عمر رضي الله عنه دا دخپل طرف نه شروع كړي نه دي اونه دځه قسم بدعت پيداكولو واله و. هغوى چې كوم حكم وركړ، هغه دځه اصل په بنيادباندې و، چې دهغوى سره موجود و، اودرسول الله صلى الله عليه وسلم په عهدباندې مبني و، حضرت عمر رضي الله عنه دا سنت جاري كړل اوخلك يې په ابى بن كعب رضي الله عنه باندې راجمع كړل، هغوى دتراويحوجمعه وكړه، په هغه وخت كې صحابه كرام په ګڼ شميركې موجودوو، حضرت عثمان، علي، ابن مسعود، عباس، ابن عباس، طلحه، زبير، معاذ، ابى اود نورمهاجرين اوانصار رضي الله عنهم ټول موجودوو، خويوهم داردنه كړ، بلكې ټولودحضرت عمر رضي الله عنه موافقت وكړاو ددې حكم يې وركړ.

## ۲:.....د خلفاء راشدينو جاري شويو سنتو باره كې نبوي وصيت

پورته معلوم شوي دي چې تراويح ددريوخلفاء راشدينو سنت دي، اودخلفاء راشدينو دسنتو په باره كې دحضور صلى الله عليه وسلم ارشادمبارك دى:

**،،انه من يعش منكم بعدي فسيرى اختلافا كثيرا فعليكم بسنتى وسنة الخلفاء الراشدين المهديين تمسكوا بها وعضوا عليها بالنواجذ، واياكم ومحدثات الامورفان كل محدثة بدعة وكل بدعة ضلالة.،،** (رواه احمد، ابوداود والترمذى وابن ماجه مشكوٰة ص:۳۰)

**ترجمه**: كوم كس چې په تاسوكې زمانه پس ژوندى پاتې شي، هغه به ډيراختلاف ويني، زماسنت اوزمادخلفاء راشدينومهديينو سنت لازم او ټينګ ونيسئ، اوپه غاښونوسره يې مضبوط ونيسئ، اودنوې نوې خبرونه ځانونه وساتئ، اوهره نوې خبره بدعت دى اوهربدعت ګمراهي ده.،،

ددې حديث پاک نه دخلفاء راشدينو دسنتوديپروي تاكيد معلوميږي اوداچې مخالفت بدعت اوګمراهي ده.

## ۳:..د څلورو واړو امامانو له مذاهبو نه وتل جائز نه دي

پورته معلوم شوي دي چې څلورواړه امامان دکم ازکم شلو تراویحو قائل دي دڅلورو واړو امامانو د مذاهبو اتباع سواداعظم دی، او د څلورو واړو امامانو د مذاهبونه وتل دسواد اعظم نه وتل دي، مسندالهند شاه ولی الله محدث دهلوي رحمه الله ,,عقدالجيد ،، کې ليکي

**قال رسول الله صلى الله عليه وسلم:اتبعوا السوادالاعظم ،ولما اندرست المذاهب الحقة الا هذا الاربعة كان اتباعها اتباعا للسوادلاعظم ،والخروج عنها خرجا عن السوادالاعظم.،،**(رواه ابن ماجه حديث انس رضي الله عنه،كما فى مشكواة ص:٣٠،وتمامه:فانه شذشذ فى النار،،عقدالجيد ص:٣٧ مطبوعه تركيه)

**ترجمه**:درسول الله صلى الله عليه وسلم ارشادمبارک دی چې:دسواداعظم پيروي کوئ، اوکله چې ددې څلوروواړومذاهبونه پرته نورمذاهب مکمل ختم شوي دي :نوددې اتباع به دسواداعظم اتباع وي،اوددې نه خارجيدل به دسواداعظم نه خارجيدل وي.،،

## ٤:....په شل رکعاته تراويحو کې حکمت

حکماء امت دخپل خپل ذوق مطابق د شلو تراويحو حکمتونه هم بيان کړي دي،دلته د دريو بزګانو ارشادات نقل کيږي.

۱:....البحرالرائق کې شيخ ابراهيم الحلبي الحنفي(متوفى ۹۵۲ هـ) نه نقل شوي دي.

**,,وذكرالعلامة الحلبى ان الحكمة فى كونها عشرين ان السنن شرعت مكملات للواجبات وهى عشرون بالوتر فكانت التراويح كذلك لتقع المساوات بين المكمل والمكمل انتهى.،،**(البحرالرائق ج:۲ ص:۷۲) **ترجمه**:علامه حلبي رحمه الله ذکرکړي دي چې دتراويحودشل رکعتونوکيدو حکمت دادی چې سنت د فرائضو او واجباتو دتکميل له پاره مشروع شوي دي اوپنځه فرض لمونځونه له وترو سره شل رکعته دي، لهذا تراويح هم شل رکعته شول چې دمکمل اومکمل ترمينځه مساوات راشي.،،

۲:....علامه منصوربن حنبلي رحمه الله(متوفى ۱۰۴۲ هـ) په (کشف القناع) کې ليکي: **والسرفيه ان الراتبه عشر فضوعفت فى رمضان لانه وقت جد.،،** (كشف القناع عن متن الاقناع ج:۱ ص:۳۹۲)

**ترجمه**:اود شلو تراويحو حکمت دادی چې سنت موکده لس دي،نو په رمضان کې دا دوچند شول، ځکه چې هغه دمحنت اومشقت وخت دی.،،

۳:....حکيم الامت شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله دا امرذکرکوي چې صحابه کرامو رضي الله عنهم تراويح شل رکعته وګرځولې اوپه حکمت کې يې دابيان فرمايي:

**وذلك انهم رأوا النبى صلى الله عليه وسلم شرع للمحسنين احدى عشر ركعة فى جميع السنة فحكموا أنه لا ينبغى أن يكون حظ السلم فى رمضان عندقصده الاقتحام فى لجة التشبه**

**بالملكوت اقل من ضعفها.،**(حجة الله البالغه ج:۲ ص:۱۸)

**ترجمه:** اوداله دې وجې نه چې هغوی وکتل چې نبي کريمﷺ د محسنينو له پاره د(صلوة الليل)يولس رکعتونه دټول کال له پاره مشروع کړي دي؛نو دهغوی فيصله دا وشوه چې په رمضان المبارک کې کله مسلمان په تشبه بالملکوت په درياب کې د غوپې وهلواراده لري؛ نو ددې برخه دټول کال درکعتونونه ددوچنده نه کميدل پکارنه دي.،،

## د تراويحو له پاره بل مسجد ته تلل

**سوال:** دخپلې محلې جومات پريښودل اوبل جومات ته د تراويحو له پاره تلل څنګه دي؟

**جواب:** که په خپله محله کې دقرآن مجيد ختم نه وي، ياامام قرآن مجيد غلط لولي؛ نوهغه د تراويحو له پاره دخپلې محلې جومات پريښودی شي اوبل ځای ته تلل جائزدي.[۱]

## د تراويحو د امام شرطونه څه دي؟

**سوال:** دتراويحو له پاره دڅه قسم حافظ کيدل ضروري دي؟

**جواب:** دتراويحودامامت له پاره هما غه شرطونه دي چې دعامو لمونځونو دامامت له پاره دي، ددې وجې نه دحافظ متبع سنت کيدل ضروری دي، ږيره خريلی ياکمونکی دې دتراويح امام جوړنه کړل شي، همدغه شان په معاوضه اخيستونکي امام پسې تراويح کول جائزنه دي، ددې په ځای أ)لَمْ تَرَكَيْفَ) سره کول بهتردي.[۲]

## د ږيره خريلي امام په اقتداء کې تراويح کول مکروه تحريمي دي

**سوال:** ږيره خريلي حافظ پسې لمونځ که فرض وي يا تراويح دهغه څه حکم دی؟ځکه چې نن سبا په تراويحوکې عام طورسره ليدل شوي دي چې ډيرحافظان دوړې ږيرې يا له ږيرې پرته تراويح ورکوي،که هغوی ته وويل شي چې تاږيره ولې نه ده ساتلې؟ نوهغوی وايي چې دږيرې څه خاص اهميت نشته،که اهميت يې وای؛ نوپه سعودي عرب کې وړې وړې ږيرې دي ،مصرهم مسلمان ملک دی( ۹۵)پنځه نوي فيصدخلک ږيرې خريي ياوړې کوي ،صحيح جواب راکړئ!

**جواب:** ږيره ساتل واجب دي،خريل ياکټ کول(هرکله چې ديوموټي نه کمه وي)په اتفاق سره حرام دي[۳]اوداسې کس په اقتداء کې لمونځ که څه هم تراويح وي کول مکروه تحريمي

---

۱ ] واذا كان امام المسجد حية لايختم فله ان يترک الى غيره (البحرالرائق ج:۲ص:۷٤باب الوتروالنفل)۔

۲ ] ويكره امامة عبد .....وفاسق (وفى الشامية)اماالفاسق فقدعللوكراهة تقديمه بأنه لايهتم لامردينه ،وبان فى تقديمه للامامة تعظيمه وقدوجب عليهم اهانته شرعًا..الخ (ردالمحتارعلى الدرالمختارج:۱ص۵٦٠ باب الامامة)

۳ ]ولذا يحرم على الرجل قطع لحيته...الخ(درمختار مع الشامى ج:٦ص:٤٠٧..[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

دي،[۱] ګناه که عامه شي؛ نو هغه نه ثواب کيږي، هماغه ګناه وي،ځکه دسعوديانو يا مصريانو حواله ورکول غلطه ده.

## دلمونځ پابندي نه کونکي او ډېره خريلي حافظ په اقتداء کې تراويح کول

**سوال:** يوحافظ قرآن ټول کال په پابندي سره لمونځ نه کوي،مګرکله چې درمضان مياشت راشي نوپه يوجومات کې ختم قرآن اوروي،سوال دادی چې دداسې قسم حافظ پسې دتراويح لمونځ کولوپه باره کې دشريعت څه حکم دی؟نورداچې ديومونټې دننه ډېره خريلي حافظ يعنی ديوموټی نه ئې چې ډېره کمه وي؛ نودداسې قسم حافظ پسې دتراويح لمونځ کول جائزدي اوکه نه؟

**جواب:** داسې حافظ دتراويح امام جوړول جائزنه دي، ددې په ځای په الم ترکيف سره تراويح کول بهتردي، معاوضه مقررونکي حافظ په اقتداء کې هم تراويح ناجائزدی.[۲]

## معاوضه مقررونکی حافظ په اقتدا کې تراويح ناجائز دي

**سوال:** اکثرحافظان صاحبان دچاچې دخوراک څښاک څه ذريعه نه وي،هغوی باقاعده معاوضه مقرروي اوبيا د تراويحو لمونځ کولوله پاره تيارېږي، آيا په داسې صورت کې چې څه کار روزګار يې نه وي، قرآن مجيد د آمدني ذريعه جوړول جائزدي ؟

**جواب:** اجرت اخيستوسره تراويح کول جائزنه دي،اوداسې حافظ پسې تراويح مکروه تحريمي دي ددې په ځای په (الم ترکيف) سره کول بهتردي.[۳]

## تراويح ورکونکي حافظ ته هديه اخيستل څنګه دي؟

**سوال:** داخومونږ ته معلومه ده چې دقرآن پاک په اورولوباندې اجرت اخيستل ناجائزدي،خو که څوک حافظ په تراويح کې قرآن پاک واوروي اوڅه اجرت وانخلي،مګرمقتديان په خپلې خوښې سره هغه ته څه روپۍ يا جامه وغيره ورکړي؛ نو آيا دا دهغه له پاره جائزدي اوکه نه؟

---

...بقيه د تير مخ].. كتاب الحظروالاباحة وايضًا واما الاخذ منها وهى دون ذلک كمايفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال فلم يبحه احد واخذ كلها فعل يهود الهند ومجوس الاعاجم (الدرالمختارمع الشامى ج:۲ ص:۴۱۸ باب مايفسدالصوم ومالايفسده مطلب فى الاخذمن اللحية) وايضًا: خلق كردن لحيه حرام است وگذاشتن آن بقدرقبضه واجب است (اشعة اللمعات شرح مشكوة ج:۱ص:۲۲۸)

۱ ]ويكره امامة عبد......وفاسق وفى الشامية :اماالفاسق فقدعللوا كراهة تقديمه بانه لايهتم لامردينه ،بان فى تقديمه للامامة تعظيمه وقدوجب عليهم اهانته شرعًا (ردالمحتارعلى الدرالمختار ج:۱ص:۵۶۰باب الامامة)_

۲ ] ايضاً)_

۳ ] وان القرأة لشى من الدنيالاتجوز وان الاخذ والمعطى آثمان ،لان ذلک يشبه الاستئجارعلى القرأة ونفس الاستئجارعليها لايجوزفكذامااشبه...ولاضرورة فى جوازالاستئجارعلى التلاوة..الخ(فتاوى شامى ج:۲ص: ۷۳)

**جواب:** په کومه علاقه کې چې حافظانوته داجرت ورکول رواج وي، هلته داهدیه هم اجرت ګڼل کیږي[۱]، که هیڅ ورنه کړای شي؛ نو خلک په دې بد ګڼي، ددې وجې نه تراویح کونکي ته هدیه اخیستل هم پکارنه دي.

## په تراویحو کې تیز رفتار حافظ پسې قرآن اوریدل څنګه دي؟

**سوال:** دسورة مزمل دیو آیت په ذریعه تاکید شوی دی چې قرآن په مزه مزه لولئ،ددې برعکس په تراویحو کې دقرآن حافظان په دومره رواني سره لولي چې الفاظ په پوهه کې نه راځي اوکه هغوی داسې ونه کړي؛ نوپوره قرآن په مقرر شوي وخت کې ختمولی نه شي،پلاراوزوې دواړه حافظان دي،زوی دپلارنه ډیرزیات په رواني سره لولي،چې دهغه په وجه پلارته خلکو د ''حافظ ریل،، اوزوی ته ''حافظ انجن،،لقب ورکړی دی،اواوس هغوی هم په دې نوم سره پیژندل کیږي،آیا په تراویحو کې داشان لوستل جائزدي؟

**جواب:** دتراویحو لمونځ دعام لمونځ په نسبت لږ تیزکول معمول دی،[۲]مګرداسې تیزکول چې الفاظ په صحیح طورسره ادانه شي او اوریدونکي له ،یعلمون،اوتعلمون، پرته په هیڅ پوه نه شي حرام دي. دداسې حافظ په ځای په (الم ترکیف) سره تراویح لوستل زیات بهتردي.[۳]

## له عذر پرته تراویح په ناسته کول څنګه دي؟

**سوال:** دنورونفلو په شان تراویح هم په ناسته کولی شو؟

**جواب:** تراویح له عذر پرته په ناسته کول پکارنه دي اوداستحباب خلاف ده،اوثواب به هم درته نیم ملاویږي.[۴]

## په تراویحو کې درکوع پورې ځان ته بیله ناسته مکروه کار دی

**سوال:** په تراویحو کې کله چې حافظ نیت وتړي اوقرات کوي اکثرلمونځ کونکي هسې شاته ناست وي یاګرځي راګرځي اوحافظ چې څنګه رکوع ته ښکته کیږي؛ نوخلک زرزرنیتونه وتړي اوپه لمونځ کې شامل شي، دا حرکت ترکومې پورې صحیح دی؟

---

۱ ]المعروف عرفًاكالمشروط شرطًا (شرح المجلة لسليم رستم باز ،ص:۳۷،المادة: ۴۳طبع كوئته)۔

۲ ]وفى الدر:يقرأ فى الفرض بالترسل حرفًا حرفًا ،وفى التراويح بين بين وفى الشامية (قوله بين بين)اى بان تكون بين الترسل والاسراع ......الخ (درمختارمع الشامى ج:۱ص:۵۴۱فصل فى القرأة طبع سعيد)۔

۳ ] وشروط الامامة للرجال الاصحاء ستة اشياء :الاسلام ......والقرأة والسلامة من الاعذار كالرعاف الفافاة والتمتمة واللثغ ......الخ (شامى ،باب الامامة ج:۱ص:۵۵۰) وايضًا:ويكره الاسراع فى القرأة ......الخ (عالمگيرى ج:۱ص:۱۱۷كتاب الصلاة فصل فى التراويح طبع رشيديه)۔

۴ ] اتفقوا على ان اداء التراويح قاعدًا لايستحب بغيرعذر واختلفوا فى الجواز ،قال بعضهم يجوز وهوالصحيح الا ان ثوابه يكون على النصف من صلاة القائم...الخ(عالمگيرى ج:۱ص:۱۱۸كتاب الصلاة فصل فى التراويح)

**جواب:** په تراويحو کې يوځل پوره قرآن مجيد اوريدل ضروري اوسنت موکده دی[۱] کوم کسان چې امام سره نه شامليږي، دهغوی هغومره برخه په قرآن کې فوت شي، ځکه دآخلک نه يوازې يوثواب نه محروم پاتې شي، بلکې دډيرزيات مکروه فعل ارتکاب هم کوي، ځکه چې دهغوی دا فعل دقرآن کريم نه دمخ ګرځولوپه شان دی.[۲]

## په تراويحوکې د قرات اندازه

**سوال:** په تراويحو کې څومره قرآن لوستل پکاردي؟

**جواب:** په تراويح کې کم نه کم يوځل قرآن پاک ختمول سنت دي، لهذا دومره لوستل پکاردي چې د(۲۹) رمضان پورې ټول قرآن پاک ختم شي.[۳]

## په دوه دريوشپوکې قرآن پاک ختمول اوباقي تراويح پريښودل

**سوال:** زمائينې دوستان داسې دي چې په رمضان کې په يوه شپه کې ياپه دوه درې شپوکې پوره قرآن پاک په تراويحوکې واوروي اوبياپه باقي رمضان کې تراويح نه کوي، آيا داسې کول صحيح دي؟دويم داچې ماڅه کسان ليدلي دي چې هغوی پوره قرآن پاک په يوه شپه کې واوروي اوبه باقي شپوکې دامام سره فرض لمونځ وکړي او تراويح ځانته زرزر وکړي، آيا دا صحيح دي.؟

**جواب:** تراويح کول يومستقل سنت دي اوپه تراويح کې پوره قرآن پاک اوريدل بيل سنت دي،کوم کس چې په دې کې دکوم سنت پريښودونکی شي، هغه به ګناه ګاروي.[۴]

---

۱] السنة فی التراويح انما هوالختم مرة فلايترک لکسل القوم کذافی الکاف (عالمگيری ج:۱ص:۱۱۷فصل فی التراويح)

۲ ] وفی البحر عن الخانية يکره للمقتدی ان يقعد فی التراويح فاذا اراد الامام ان يرکع يقوم لان فيه اظهارالتکاسل فی الصلاة والتشبه بالمنافقين ،قال تعالی :واذا قاموا الی الصلاة قاموا کسالی ......الخ (شامی ج:۲ص:۴۸کتاب الصلوة) مبحث صلاة التراويح ،طبع سعيد ،البحر الرائق ج:۲ص:۷۵کتاب الصلاة)_

۳ ] وصرح فی الهداية بان اکثر المشائخ علی ان السنة فيها الختم ،وفی مختارات النوازل انه يقرأ فی کل رکعة عشرآيات وهو الصحيح لان السنة فيها الختم لان جميع عدد الرکعات فی جميع الشهرستمائة رکعة وجميع آيات القرآن ستة آلاف (البحر الرائق ج:۲ص:۷۴ايضًا:حلبی کبير ص:۴۰۶) (وايضًا:) وحکی ان المشائخ رحمهم الله تعالی جعلوالقرآن علی خمس مائة واربعين رکوعًا واعلموا ذلک فی المصاحف حتی يحصل الختم فی ليلة السابع والعشرين ......الخ (عالمگيری ج:۱ص:۱۱۸)(وايضًا) ومافی الخلاصة من انه يقرأ فی کل رکعة عشرآيات حتی يحصل الختم فی ليلة السابع والعشرين ونحوه ......الخ (شامی ج:۲ص:۴۶)(وايضا) والجمهور علی ان السنة الختم مرة فلايترک لکسل القوم ويختم فی ليلة السابع والعشرين لکثرة الاخبار انهاليلة القدر......الخ (البحر الرائق ج:۲ص:۷۴)_

۴ ] لوحصل الختم ليلة التاسع عشراوالحادی والعشرين. لاتترک التراويح فی بقية الشهر لانهاسنّة کذا فی الجوهرة النيرة الاصح انه يکره له الترک کذا فی السراج الوهاج....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

## ايا د اووه ورځو تراويح جائز دي حالانکې صحيح تلفظ پکې نه کيږي

**سوال:** ايا د پنځو ورځو يا د اوو ورځو تراويحو کې ختم د اسلام د ابتداء نه رائج دی يا موږ د خپل سهولت له پاره اسلامي انداز د خپلې خوښې سره جوړی کړی دی؟ حالانکې تلفظ او صحيح اداېګي ډېره ضروري ده، دلته دا پته نه لګيږي چې امام څه وايي، بس چې قرآن په پنځو ورځو کې پوره کړي.

**جواب:** د تراويحو لمونځ په پوره رمضان المبارک کې سنت موکده دی[1] په تراويحو کې پوره قرآن کريم اورول مستقل سنت دي[2] کوم حضرات چې پنځو يا اوو ورځو کې قرآن اوروي، هغوی د تراويحو د لمونځ نه نه فارغيږي، بلکې پوره رمضان تراويح دده په ذمه باندې دي،[3] په تراويحو کې د قرآن د اوريدلو له پاره شرط دادی چې داسې صفا ولوستل شي چې يو يو لفظ باندې پوهيدل وشي، کوم خلک يې چې دومره تيز لولي چې هيڅ پته نه لګيږي چې دی څه لولي، هغوی ډېره غلطي کوي، د دوی لوستل او نه لوستل دواړه برابر دي، بلکې داسې لوستل د ثواب په ځای ګناه ده.[4]

## د رمضان په يو څو ورځو کې قرآن اوريدو والا د پاتې مياشتې له تراويحو نه فارغيږي

**سوال:** اسلام د لمونځونو او د نورو معمولاتو له پاره يو نظام متعين کړی دی او د وخت او د اداېګي له پاره يې يو سستم دی، بيا داچې په هرځای کې که هغه سړک وي، کوڅه وي اوپه هر ځای کې په پنځو يا په اوو ورځو کې پوره قرآن د ټولې مياشتې کار راغونډ کړه او په خپله دوکانداري کې لګيا شه؛ ځکه رمضان د لوټ مياشت ده. ما د خپل ژوند په ډيرشو کلونو کې په هندوستان کې داسې نظام نه دی ليدلی.

**جواب:** دلمونځ، روژې،زکات، حج، قرباني اوداسې نورو... ټولو عبادتونو وختونه او شرطونه اسلام مقرر کړي دي، ما پورته ليکلي دي چې د تراويحو لمونځ په پوره رمضان المبارک کې سنت موکد دی، هغه په درې يا پنځو يا په اوو ورځو کې نه اداء کيږي، البته د

---

...بقيه د تير مخ]... (عالمگيری ج:۱ص:۱۱۸کتاب الصلاة فصل فی التراويح)۔

[1] ونفس التراويح سنة علی الاعيان عندنا کماروی الحسن عن ابی حنيفة رحمه الله تعالی (عالمگيری ج:۱ ص:۱۱٦کتاب الصلاة ،الباب التاسع فی النوافل فصل فی التراويح طبع رشيديه)

[2] السنة فی التراويح انما هو الختم مرة فلايترک لکسل القوم (عالمگيری ج:۱ص:۱۱۷)

[3] لوحصل ختم ليلة التاسع عشراوالحادی والعشرين لاتترک التراويح فی بقية الشهر لانها سنة کذا فی الجوهرة النيرة الاصح انه يکره الترک کذا فی السراج الوهاج (عالمگيری ج:۱ص:۱۲۱طبع رشيديه)

[4] ويکره الاسراع فی القرأة وفی اداء الارکان (عالمگيری ج:۱ص:۱۱۷)فصل فی التراويح)

قرآن کریم د پوره اوریدلو سنت اداء کیږي په دې شرط چې صحیح او صفا ولوستل شي، کوم خلک چې په پنځو یا په اوو ورځو کې د قرآن کریم سره د پوره میاشتې له پاره ځان فارغوي؛ نو هغوی غلطي کوي، کوم حافظان چې په پنځو یا اوو ورځو کې قرآن کریم اوروي په دوی باندې دا لازم دي چې دوی په دې مسئله باندې پوه کړي چې تاسو خلک د پوره رمضان د تراویح نه نه يی فارغ شوي، بلکې د رمضان د هرې شپې تراویح دستاسو په ذمه باندې لازم دي.[1]

## د تراویحو په لمانځه کې یوازې هیرشوي آیتونه دوباره ویل هم جائزدي

**سوال:** دتراویحو په تلاوت کې که حافظ صاحب مخکې لاړشي او وروسته ورته پته ولګیږي چې په مینځ کې څه ایتونه پاتې شول؛ نو ایا په داسې صورت کې ټول تلاوت شوی کلام پاک په دویم ځل ووایي اوکه پاتې شوي یاغلط لوستل شوي ایتونه په دویم ځل ووایي؟

**جواب:** پوره واپس ویل افضل دي اویوازې دهغومره ایتونو ویل هم جائزدي.[2]

## ایا په تراویحو کې د ترتیب خلاف سورتونه ویلوسره سجده سهو لازمیږي؟

**سوال:** په تراویح کې دالم ترکیف نه واخله ترقل اعوذ برب الناس پورې لوستل کیږي، ایا دادې سلسله وار په هررکعت کې ولوستل شي؟ اوکه هیره سره مخکې وروسته شي؛ نو ایاسجده سهوه لازمیږي اوکه نه؟

**جواب:** په لمانځه کې قصداسورتونه خلاف ترتیب ویل مکروه دي، مګردې سره سجده سهوه نه لازمیږي اوکه په هیرې یې خلاف ترتیب ولولي؛ نوهیڅ کراهت نه شته.[3]

## په تراویحو کې یوځل بسم الله په په لوړاوازسره ویل ضروري دي

**سوال:** ځینې حافظان په قرآن کریم کې یوځل ﴿بسم الله الرحمن الرحیم﴾ په لوړ اوازسره لولي، که په پټه وویل شي؛ نوڅه نقصان دی ؟

**جواب:** په تراویحو کې دیوسورت په شروع کې یوځل ﴿بسم الله الرحمن الرحیم﴾ آیت په لوړ آواز سره هم لوستل پکاردي، ځکه چې دا دقرآن پاک یومستقل آیت دی اوکه داپه لوړ اوازسره ونه

---

[1] لوحصل الختم ......لاتترک التراویح فی بقیة الشهر لانها سنة کذا فی الجوهرة النیرة الاصح انه یکره له الترک کذا فی السراج الوهاج (عالمگیری ج:۱ص:۱۱۸،الباب التاسع فی النوافل فصل فی التراویح)

[2] واذا غلط فی القرأة فی التراویح فترک سورة او آیة وقرأ مابعدها فالمستحب له ان یقرأ المتروکة ثم المقروءة لیکون علی الترتیب کذا فی فتاوی قاضیخان (عالمگیری ج:۱ص:۱۱۸ ایضًافی حلبی کبیر ص:۴۰۷)۔

[3] وفی الدر:ویکره الفصل بسورة قصیرة وان یقرأ منکوسًا......ثم ذکریتم وفی الشامیة (قوله ثم ذکریتم) افاده ان التنکیس اوالفصل بالقصیرة انمایکره اذاکان عن قصدفلوسهوًا فلاکمافی شرح المنیة (الدرالمختارمع الشامی ج:۱ص:۵۴۶،۵۴۷ باب صفة الصلاة مطلب الاستماع للقرآن فرض کفایة)۔

لوستل شو ؛نود مقتدیانو د قرآن پاک اوریدل به پوره نه شي.[۱]

## په تراویحو کې ,,قل هوالله احد ،، درې ځله ویل څنګه دي؟

**سوال:** د تراویح په دوران کې یاپه شبینه تلات کلام پاک کې ,,قل هوالله ،،سورت درې ځله ویل پکار دي ؟

**جواب:** په تراویح کې درې ځله ،،قل هوالله احد ،،ویل جائزدي،مګر بهترنه دي، هسې نه چې دالازمي سنت جوړ کړل شي.[۲]

## په تراویحو کې د قرآن پاک د ختم صحیح طریقه څه ده؟

**سوال:** په تراوحوکې چې کله دقرآن پاک ختم کیږي؛ نوځینې حافظان صاحبان په اخري دوو رکعتونو کې درې ځله سوره اخلاص،یوځل سوره فلق اوسورة الناس اوپه دویم رکعت کې دالبقرې لومړنی رکوع لولي اوځینې حافظان سوره اخلاص یوازې یوځل لولي اوپه آخري رکعت کې دسورة بقرې لومړی رکوع اوپه دویم رکعت کې دسوره الصافات اخري ایتونه لولي، په تراویحوکې دقرآن پاک دختمولوصحیح طریقه څه ده؟

**جواب:** قرآن پاک په سورة والناس باندې ختم شي، لهذاکه یو حافظ سوره الناس په اخري رکعت کې ولولي اوسوره بقره شروع نه کړي؛ نوداصحیح ده، خو چې کوم حافظان دسورة الناس نه وروسته په شلم رکعت کې سوره بقره شروع کړي، یاپه نولسم رکعت کې سوره بقرة او په شلم رکعت کې دسوره الصافات دعائیه ایاتونه لولي؛ نوکه داطریقه لازمي نه ګڼي؛ نو داسې دقرآن په ختم کولوکې هیڅ نقصان نه شته، بلکې دسورة الناس نه وروسته دسورة بقرې په شروع کولو کې ددې خبرې طرف ته یوه لطیف اشاره موجودده چې په تلاوت کې تسلسل پکاردی اوپه حدیث شریف کې ددې تعریف راغې چې بنده په خپله قرآن پاک ختم کړي اوبیادې دوباره شروع کړي ددې له وجې دابهترده چې یوقرآن پاک ختمولونه وروسته فورا دې دویم قرآن شروع کړل شي، البته که داطریقه لازم وګڼل شي؛ نوبیا صحیح نه ده.[۳]

---

۱ ] وذلک ان مذهب الجمهور انها من القرآن لتواترها فی محلها......الخ (شامی ج:۱ص:۴۹۱وایضًا فی البحر الرائق ج:۱ص:۳۳۰باب صفة الصلاة طبع دارالکتب العلمیة)_

۲ ] قرأة قل هوالله احدثلاث مرات عندختم القرآن لم یستحسنها بعض المشایخ ،وقال الفقیه ابواللیث هذا شیء استحسنه اهل القرآن وائمة الامصارفلاباس به......الخ (حلبی کبیر ص:۴۹۶طبع سهیل اکیدمی)_

۳ ] وفی الولوالجیة من یختم القرآن فی الصلوة اذافرغ من المعوذتین فی الرکعة الاولی یرکع ثم یقوم فی الرکعة الثانیة ویقرأ بفاتحة الکتاب وشی ء من سورة البقرة لان النبی صلی الله علیه وسلم قال: خیرالناس الحال المرتحل ای الخاتم المفتتح(حلبی کبیرص:۴۹۴تتمات فیمایکره من القرآن فی الصلاة ،طبع سهیل اکیدمی)

## په تراويحو کې که د مقتدي نه رکوع لاړه شي؛ نو د لمانځه څه حکم دی؟

**سوال:** په تراويحو کې امام صاحب وويل چې په دويم رکعت کې سجده ده، خو په دويم رکعت کې امام صاحب د څه مصلحت د لاندې دسجدې آيت تلاوت کولونه مخکې رکوع وکړه، هرکله چې څه مقتديان په کونجونو(ګوټونو)اوشاته طرف ته وو، هغوی ددويم رکعت دسجدې له وجې په سجده پريوتل، خو امام صاحب ،،سمع الله الحمد،،وويل، اوهغوی حيرانه اوپريشانه ودريدل، امام صاحب ،،الله اکبر،،وويل اوسجدې ته لاړ اوباقي لمونځ يې اداکړ. يعنې د امام صاحب لمونځ خودرست وهرکله چې دمقتديانونه رکوع پاتې شوه اودهغوی دامامام دسلام سره سلام واړولو،ايادمقتدي لمونځ صحيح شو؟اوکه نه وي؛ نوپه داسې صورت کې مقتدي ته څه کول پکاردي؟

**جواب:** مقتديانوته پکار و چې هغوی خپله رکوع کړې وای اودامام صاحب سره شامل شوي وای، په هرحال رکوع په لمانځه کې فرض ده، کله چې هغه پاتې شوه؛ نولمونځ ونه شو، دې کسانوته پکاره ده چې دخپلودوورکعتونوقضا راوړي.[۱]

## د تراويحو په دويم رکعت کې که ناسته هيره شي او څلور رکعته وکړي؛ نو څو تراويح وشوې؟

**سوال:** ددوو رکعتوسنت تراويحو نيت يې وکړاوحافظ صاحب لمونځ شروع کړ اوپه دويم رکعت کې په (التحيات) باندې کې نه ناست، دريم اوڅلورم رکعت يې وکړل اوبيايې تشهدنه وروسته سلام وګرځاو، دتراويحو دلمونځ څلوررکعتونه وشول،يادوه سنتونه اودوه نفل ياڅلورواړه نفل شول؟

**جواب:** دصحيح قول مطابق په دې صورت کې دتراويحودوه رکعتونه وشول.

**،، فلوصلى الامام اربعاً بتسليمة ولم يقعد فى الثانية فاظهر الروايتين عن ابى حنيفة وابى يوسف عدم الفسادثم اختلفوا هل تنوب عن تسليمة اوتسليمتين؟ قال ابو الليث تنوب عن تسليمتين ،وقال ابوجعفر وابن الفضل تنوب عن واحدة وهوالصحيح،كذافى الظهيرية والخانية وفى المجتبى وعليه الفتوى.،،** (البحرالرائق ج:۲ ص:۷۲)

۱ ] (قوله ومتابعته لامامه فى الفروض)اى بان ياتى بمامعه اوبعده ،حتى لو ركع امامه ورفع فركع هوبعد ،صح بخلاف ما لوركع قبل امامه ورفع ثم ركع امامه ولم يركع ثانيًا مع امامه اوبعده بطلت صلوته ......الخ(شامى ج:۱ص:۴۵۰ كتاب الصلاة مطلب الخروج بصنعه طبع ايچ ايم سعيد)_

## د تراویحو په مینځ کې وقفه

**سوال:** دتراویح په دوران کې څومره وقفه کول پکار دي؟

**جواب:** تراویح په لمانځه کې دهرڅلوررکعتونونه وروسته دومره ساعت پورې کېناستل په څومره ساعت کې چې څلوررکعتونه لوستل شوي وومستحب دي، خوکه په دومره ساعت ناستې سره خلک تنګیږي؛ نووقفه کمیدای هم شي.[۱]

## د ماسخوتن فرض لمونځ د تراویحونه وروسته اداکولو په باره کې څه حکم دی؟

**سوال:** یوصاحب دماسخوتن په وخت کې جومات ته داخل شو. دماسخوتن لمونځ شوی و اوتراویح شروع وې، داصاحب په تراویحو کې شامل شو اودتراویح نه وروسته یې فرض لمونځ وکړ، ایا داسې لمونځ وشواوکه نه؟له پوښتنې وروسته معلومه شوه چې داسې یې قصدانه دي کړي، بلکې دناپوهي له وجې شوي دي.

**جواب:** کوم کس چې داسې وخت کې راشي چې دماسخوتن لمونځ شوی وي، په هغه لازم دي چې اول دماسخوتن فرض لمونځ اوسنت موکده اداکړي، له هغه وروسته دې په تراویحو کې شامل شي، ددې صاحب د تراویحو لمونځ ونه شو. دتراویح لمونځ دماسخوتن دلمونځ تابع دی[۲]، ددې مثال داسې دی چې وروستنې سنتونه څوک مخکې وکړي اود هغه واپس ګرځول ضروري دي، خودتراویحو قضانشته.[۳]

## له جمعې پاتې تراویح د وترونه وروسته اداکړل شي که مخکې؟

**سوال:** موږ که تراویحو ته ناوخته ورورسیږو؛ نواول مو دماسخوتن لمونځ وکړ اوبیادامام سره په تراویحو کې شامل شو اوکومې تراویح چې زموږ پاتې شي هغه دوترونه مخکې کول پکاردي اوکه وروسته؟ اوکه باقي تراویح ونه کړو؛ نوڅه ګناه خوبه نه وي؟

**جواب:** وترجمعې سره مخکې وکړئ وروسته باقي پاتې تراویح وکړئ.[۴]

---

۱ ] (واماالاستراحة)فی اثناء التراویح (فیجلس بین کل ترویحتین مقدار ترویحة ) ای بین کل اربع رکعات ......وهذا الانتظار مستحب ......الخ (حلبی کبیر ص:٤٠٤طبع سهیل اکیدمی لاهور)۔

۲ ]ووقته ای وقت التراویح ......وقال القاضی الامام ابوعلی النسفی الصحیح ان وقتها (بعد العشاء) لاتجوز قبلها ......الخ(حلبی کبیرص:٤٠٣،طبع سهیل اکیدمی لاهور)۔

۳ ] واذا فاتت التراویح لاتقضی بجماعة والاصح انها لاتقضی اصلا......الخ (البحر الرائق ج:۲ص:۷۳ باب الوتر والنوافل ،طبع دارالمعرفة بیروت وایضا فی الدرمع الشامی ج:۲ص:٤٤مبحث صلوة التراویح)۔

٤ ] فلو فاته بعضها (ای التراویح)وقام الامام الی الوتر اوتر معه ثم صلی مافاته (درمختار ج:۲ص:٤٤)۔

## د ماسخوتن د جمعې کولو نه پرته د تراویحو په جمع کول صحیح نه دي

**سوال:** که په یوجومات کې د ماسخوتن لمونځ جَمعې سره نه وي شوی؛ نوهلته تراویح جمعې سره کول څنګه دي؟

**جواب:** که دماسخوتن لمونځ دجمعې سره ادا شوی نه وي؛ نو تراویح دې هم دجمعې سره ونه کړل شي، ځکه چې تراویح دماسخوتن دلمونه تابع دي[۱] البته که څه کسان دماسخوتن لمونځ دجمعې سره وکړي اوورسره تراویح هم کوي اویو کس وروسته راشي اوخپل د ماسخوتن لمونځ ځانته وکړي؛ نودتراویحو په لمانځه کې شاملیدای شي.[۲]

## ایا دتراویحو قضا راوړل کیږي؟

**سوال:** په جازکې زموږ ډیوټې دشپې داتونه ددولسوپورې وي، په دغه وخت کې زموږ نه اکثرخلک دماسخوتن لمونځ قضاداکوي، ایا دغه وخت موږ دماخسوتن لمونځ وکړو یا قضاتراویح هم کولی شو؟

**جواب:** دماسخوتن دلمانځه وخت دصبح صادق پورې وي،که ته دډیوټې نه مخکې د ماسخوتن لمونځ نه شې کولی؛ نوچې دډیوټې نه فارغ شئ اودماخسوتن لمونځ وکړې؛ نو اداکیږي، ځکه چې دماسخوتن لمونځ تادخپل وخت دننه اداکړ[۳] اود تراویحو وخت هم د ماسخوتن دلمانځه نه واخله تردصبح صادق نه لږ شان مخکې پورې دی، ددې له وجې کله چې تاسو خلک دماسخوتن لمونځ وکړئ؛ نوتراویح هم کوئ، په دغه وخت کې تراویحو هم نه قضا کیږي، بلکې اداکیږي[۴] که یوکس د صبح صادق نه مخکې تراویح ونکړي؛ نودهغه تراویح قضا شولې، اوس ددې قضا نه شي راوړی، ځکه چې دتراویحو قضانه شته.[۵]

---

۱ ]ولوترکوا الجماعة فی الفرض لیس لهم ان یصلوا التراویح جماعة لانها تبع للجماعة ......الخ (البحر الرائق ج:۲ص:۷۵باب الوتروالنوافل ،وایضًافی الدرالمختار مع الشامی ج:۱ص:۴۸)_

۲ ] امالوصلیت بجماعة الفرض وکان رجل قدصلی الفرض وحده فله ان یصلیها مع ذلک الامام لان جماعتهم مشروعة فله الدخول فیها معهم لعدم المحذور.....الخ (شامی ج:۲ص:۴۸وایضًافی البحرالرائق ج:۲ص:۷۵)

۳ ]واما آخر وقت العشاء فحین یطلع الفجرالصادق ......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۱۲۴وایضًافی الدر مع الشامی ج:۱ص:۳۶۱مطلب فی الصلوة الوسطی)_

۴ ]وقال عامتهم وقتها مابعد العشاء الی طلوع الفجرفلاتجوزقبل العشاء لانها تبع للعشاء ......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۲۸۸وایضًا درمختارمع الشامی ج:۲ص:۴۴ باب الوتروالنوافل ،مبحث صلاة التراویح)_

۵ ] والصحیح انها لاتقضی ،لانهالیست باکدمن سنة المغرب والعشاء وتلک لاتقضی وکذلک هذه (البدائع الصنائع ج:۱ص:۲۹۰،وایضًادرمختارمع الشامی ج:۲ص:۴۴باب الوتروالنوافل ،مبحث صلاة التراویح)_

## د تراويحو د لمانځه نه مخکې وتر کيږي؟

**سوال:** له تراويحو مخکې وتر اداکول څنګه دي؟

**جواب:** وترله تراويحو وروسته اداکول غوره دي؛ خوکه مخکې اداکړل شي بيا هم سهي کيږي.[۱]

## په رمضان کې د وترو نه پرته د جمعې اداء کول

**سوال** که موږ په بيړه يو؛ نوتراويحو نه وروسته وترپرله جمعې پرته کولی شو؟ دې سره خوبه په باقي لمونځ څه اثرنه پريوځي اوکه وترپه جمعې سره کول لازمي دي ؟

**جواب:** : په رمضان المبارک کې وتردجمعې سره اداکول افضل دي او يوازې کول يې هم جائزدي[۲]

## ځانته تراويح کول څنګه دي؟

**سوال:** که يوانسان تراويح دجمعې سره ونه کړای شي؛ نو آيا ځانته يې کولی شي؟

**جواب:** که دڅه عُذرله وجې تراويح دجمعې سره ادا نه شي؛ نوځانته دې وکړي، هيڅ نقصان نشته.[۳]

## په کورکې تراويح کونکی به وتر په ارام وايي که په جهر؟

**سوال:** ايا په کورکې يوازې تراويح کونکی اووتربه په جهرسره لولي؟

**جواب:** دواړه قسمه جائزدي په مزه هم اوپه جهرسره هم.[۴]

## د تراويحو لمونځ په لاوډ سپيکربا ندې کول

**سوال:** په لاوډسپيکرباندې دمجبوري له وجې چې کوم دتراويحولمونځ کيږي، هغه کې څه کراهت شته؟

**جواب:** دضرورت له وجې خوپکې هيڅ کراهت نه شته، خودضرورت شی دضرورت په اندازه

---

۱ ] ثم يوتر بهم ......والاصح ان وقتها بعدالعشاء الى آخر الليل قبل الوتر وبعده ......الخ (الجوهرة النيرة ج:۱ص:۱۰۰وايضًا درمختارمع الشامى ج:۲ص:٤٤باب الوتر والنوافل ،مبحث صلاة التراويح)۔

۲ ] واما فى رمضان فهى بجماعة افضل من ادائها فى منزله ......الخ (الجوهرة النيرة ج:۱ص:۱۰۰وايضًا فى الدرمع الشامى ج:۲ص٤۹وايضًافى الاختيار ج:۱ص:٦۹)

۳ ]امالوتخلف عنها رجل من افرادالناس وصلي فى بيته فقدترك الفضيلة..الخ(شامى ج۲ص۴۵،مبحث صلاة التراويح)

٤ ] وفى الليل يتخير اعتبارا بالفرض فى حق المنفردوهذا لانه مكمل له فيكون تبعاله (هداية ج:۱ ص:۱۱٦كتاب الصلوة باب صفة الصلاة وايضًا فى الدر مع الشامى ج:۱ص:۵۳۳وايضًا فى فتح القدير ج:۱ص:۲۳۰)۔

اختیاریږي، لهذاد لاوډ سپیکراواز ترجومات پورې محدودپاتې کیدل پکاردي، په تراویحو کې پورتنی سپیکرونه خلاصول چې د هغه له وجې د ټولې محلې ارام بربادشي جائزنه دي.[1]

## که څوک په تراویحو کې دامام اواز پوره وانه وري؛ نوهم به ورته پوره ثواب ملاویږي

**سوال:** که په تراویحو کې مخلوق زیات وي اود وروستیو صفونووالا قرآن پاک وانه وري؛ نو ایا هم هغه ثواب به ورته ملاویږي کوم چې اوریدونکي ته ملاویږي؟

**جواب:** هو! هغه ته به هم پوره ثواب ملاویږي.

## په تراویحو کې قرآن کتل او لوستل

**سوال:** ایا تراویحو کې قرآن ته کتل او لوستل جائز دي؟

**جواب:** په تراویح کې قرآن مجید ته کتل او لوستل صحیح نه دي، که چیرې چا داسې وکړل؛ نو لمونځ به یې فاسد شي.[2]

## په تراویحو کې قرآن پاک په کتلوسره لوستل جائز نه دي

**سوال:** ماقرآن پاک حفظ کړی دی اوهرکال په رمضان کې په تراویح کې داوریدلواهتمام هم کوم، خو چې کومه ښځه زماقرآن پاک اوري هغه حافظه نه ده اوقرآن پاک یې په لاس کې نیولی وي او اوري یې، یانابالغه حافظ هلک دسامع په ډول مقررولوسره دا اهتمام کیدای شي؟ په دواړو صورتونوکې جائز صورت کوم یودی؟

**جواب:** په لاس کې قرآن پاک نیولوسره اوریدل غلط دي[3] اودښځې له پاره څوک نابالغ سامع جوړول هم جائزنه دي.[4]

---

۱ ] قال فی الدر:ویجهرالامام وجوبًابحسب الجماعة فان زاد علیه اساء،وفی الشامیة تحت قوله زاد علیه اساء ،وفی الزاهدی عن ابی جعفرلو زاد علی الحاجة فهو افضل الا اذا اجهد نفسه او آذی غیره قهستانی (شامی ج:۱ ص:۵۳۲ فصل فی القرأة)_

۲ ] ولوقرأ المصلی من المصحف فصلوته فاسدة ......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۲۳۶)

۳ ]ولوقرأ المصلی من المصحف فصلوته فاسدة ......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۲۳۶)_

٤ ] ولایصح اقتداء الرجل بالمراة وفی الشرح:اما غیر البالغ فان کان ذکرًا تصح امامته لمثله من ذکرًا وانثی وخنثی،ویصح اقتداءبالذکر مطلقًا فقط،وان کان انثی تصح امامتها لمثله فقط(شامی ج:۱ص:۵۷۷باب الامامة)

## د تراويحو لمونځ چې څنګه د سړيو په ذمه دی هماغه شان د ښځو په ذمه هم دی

**سوال:** ايادتراويحو لمونځ دښځوله پاره ضروري دی؟کومې ښځې چې په دې کې کوتاهي کوي دهغوی څه حکم دی ؟

**جواب:** تراويح سنت دي اودتراويح لمونځ چې څنګه دسړيوپه ذمه دی، هما غه شان دښځوپه ذمه هم دی، مګراکثرښځې په دې کې کوتاهي کوي اوترې غافله وي، دا ډيره بده خبره ده.[۱]

## د تراويحوله پاره د ښځو جومات ته تلل مکروه دي

**سوال:** دښځوله پاره په جوماتو کې دتراويحو انتظام کول څنګه دي؟ ايا هغوی يې په کورکې نه شي کولی ؟

**جواب:** په ځينوجوماتونوکې دښځوله پاره هم دتراويح انتظام موجود وي، مګرامام ابوحنيفهؒ په نزدباندې دښځوجوماتو ته تلل مکروه دي، دهغوی په خپل کورکې لمونځ کول په جوماتو کې دقرآن پاک داوريدوپه نسبت زيات افضل دي.[۲]

## د ښځو د تراويح کولو طريقه

**سوال:** دښځودتراويح کولوصحيح طريقه څه ده؟ هغوی په تراويح کې څنګه قرآن پاک ختم کړي؟

**جواب:** که حافظ محرم وي؛ نودهغه نه دې په کورکې قرآن پاک اوري اوکه نامحرم وي؛ نودپردې له شانه اوري اوپه کورکې دحافظ انتظام ونه شي؛ نو(الم ترکيف) سره تراويح کوی.[۳]

## ايا د قرآن حافظه ښځه ، د ښځو د تراويحو امامت کولی شي؟

**سوال:** که ښځه حافظه وي نوايا هغه تراويح ورکولی شي؟ اودښځو دتراويح کولو څه طريقه ده؟

**جواب:** دښځوجمعه مکروه تحريمي ده اوکه يې وکړي؛ نوامام دې وړاندې نه دريږي، لکه

---

۱ ] (التراويح سنة موكدة) لمو اظبة الخلفاء الراشدين (للرجال والنساء) اجماعًا......الخ (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۴۳باب الوتر والنوافل مبحث صلاة التراويح طبع ايچ ايم سعيد)۔

۲ ] (ولايحضرن الجماعات) لقوله صلى الله عليه وسلم :صلاة المراة فى بيتها افضل من صلاتها فى حجرتها، وصلاتها فى مخدعها افضل من صلاتها فى بيتها ، فالافضل لها ما كان استرلها، لافرق بين الفرائض وغيرها كالتراويح (حاشيه الطحطاوی على مراقى الفلاح ص:۱۶۶فصل فى بيان الاحق بالامامة وايضًافى الشامية ج:۱ص:۵۶۶)۔

۳ ] ايضًا)۔

څنګه چې د امام مصلی جدا وي، بلکې په صف کې دې لره شان مخکې ودرېږي[1] او ښځه که تراويح اوروي؛ نو د هيڅ يو سړي له پاره (که څه هم محرم وي) په دې لمانځه کې شامليدل جائزنه دي.[2]

## له رمضان پرته تراويح

**سوال:** د رمضان په مياشت کې د مجبوري له وجې روژې نيول پاتې شي او بيا چې کله دا روژې نيول کيږي؛ نو ايا په هغه کې د تراويحو لمونځ هم اداکيږي او که نه؟

**جواب:** تراويح يوازې په رمضان کې کيږي.[3]

## د نفلو په نيت په تراويحو کې شامليدو نکي بيا تراويح کولی شي

**سوال:** يو قاري صاحب د مسجد امام صاحب پسې په رمضان المبارک کې د تراويح د نفل په نيت سره وکړې او د دې نه وروسته يې په خپله هم تراويح وکړې، ايا دا طريقه صحيح ده؟

**جواب:** د قاري صاحب عمل صحيح و.[4]

## د هيريدو نکي او د فتحې نه اخيستونکي قاري سره څه وکړي

**سوال:** زموږ په مسجد کې چې کوم امام صاحب دی هغه عالم دين هم دی او حافظ او قاري هم دی کله چې هغه دې منسجد ته د تراويح د کولو له پاره راتلو؛ نو ډير به سهوه کيده ، دوی دا تاويل وکړ چې ما مخکې د يو څو کسانو امامت کولو او دلته د لمونځګذارو تعداد ډير زيات دی له دې وجې (شايد چې د سام(اثر) له وجې) هيريږي، خواوس څه کم لس کاله يې د تراويح د کولو وشو او سهوه يې د هغې په نسبت زياتيږي، که چيرې څوک بل حافظ (د ده مقرر کولو سامع نه پرته) فتحه ورکړي؛ نو نه يې قبله وي انتظاميه د شکايت باوجود خپل ځان له دې وجې مجبوره ګڼي چې:

۱- مکان يې د اوسيدو له پاره ورکړی دی چې هغه د مسجد ملکيت دی.

۲- د شمالي علاقې سره تعلق لري، هغوی خپلې حلقې ته وسعت ورکړی دی، کم نه کوم بل ځای کې د جنګ نه پرته د مکان خالي کولو خطره لازمي محسوسوي، په دې حالاتو کې مقتدي

---

[1] ويكره تحريمًا جماعة النساء ولو التراويح ......فان فعلن تقف الامام وسطهن ......الخ (التنوير مع شرحه ج:۱ص:۵۶۵،عالمگیری ج:۱ص:۸۵ حاشیه الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص:۳۰۴)۔

[2] ولايجوز اقتداء رجل بامراة هكذا فى الهداية (عالمگیری ج:۱ص:۸۵الباب الخامس فى الامامة)۔

[3] التراويح سنة موكدة وينبغى ان يجمع الناس فى كل ليلة من شهر رمضان بعدالعشاء (الاختيار لتعليل المختار ج:۱ص:۶۹كتاب الصلاة ،باب النوافل ،فصل فى التراويح ،طبع دارالمعرفة بيروت)۔

[4] لاباس لغير الامام ان يصلى فى مسجدين لانه اقتداء المتطوع بمن يصلى السنة وانه جائز كما لوصلى المكتوبة ثم ادرک الجماعة ودخل فيها ......الخ (بدائع ج:۱ص:۲۹۰فصل واما بيان سننها اى التراويح)

څه وکړي؟ او په دې مسجد کې پاس په منزل باندې دويم حافظ صاحب (کله کم عمره حافظ هم) تراويح ورکوي، خو کمزوري خلکو ته پاس ختل هم مشکل دي، ايا اوس هغه خلک د الم ترکيف سره خپلې تراويح جدا پوره کولی شي؟

**جواب:** که چيرې قاري صاحب ډير زيات غلطيږي او د شاته نه فتحه هم نه اخلي؛ نو دده په ځای بل کس مقرر ول پکار دي[1] د خلکو د قرآن نه اوريدل د افسوس خبره ده. خوقاري صاحب شاته که د اوډريدلوبرداشت نه وي؛ نو خپلې تراويح دې وکړي، بهتره داده چې د دوی له پاره د جدا جمعې انتظام وکړل شي.

# ❖ نفل لمونځونه ❖

## په نفل اوسنت غيرمؤکده کې فرق

**سوال:** په نفل اوسنت غيرمؤکده لمانځه کې څه فرق دی؟ هرکله چې ددواړوله پاره داويل کيږي چې که وکړل شي؛ نوثواب دی، که ونه کړل شي؛ نوځه ګناه نه شته.

**جواب:** سنت غيرموکده اونفل نژدې نژدې دي اودې کې زيات فرق نه شته، البته دافرق په کې دی چې سنن غيرموکده منقول دي ځکه چې ددې درجه بطورخاص مستحب ده او نور نوافل منقول نه دي ددې له وجې ددې درجه دعام نفلي عبادت په شان ده.[2]

## ايا د پنځه وخته لمانځه نه پرته نورلمونځونه هم شته؟

**سوال:** په قرآن پاک کې يوازې دپنځولمونځونو ويل شوي دي يازيات هم کيدلی شي؟

**جواب:** دپنځووختونولمونځونه خوپه هرمسلمان نارينه اوښځې باندې فرض دي[3] ددې نه پرته نفلي لمونځونه دي، هغه موچې څومره خوښه وي کوئ يې، دځينوخاصولمونځونوثواب

---

[1] لا ينبغى ان يقدموا فى التراويح الخوشخوان ولكن يقدموا الدرستخوان ......الخ (عالمگيرى ج:١ص:١١٨ الباب التاسع فى النوافل) ويكره الاسراع فى القراة وفى اداء الاركان (ايضاً ج:١ص:١١٨فصل واماشرائط الاركان كتاب الصلاة)

[2] اقول فلا فرق بين النفل وسنن الزوائد من حيث الحكم لانه لايكره ترک كل منهما......فالنفل ما ورد به دليل ندب عمومًا اوخصوصًا ولم يواظب عليه النبى صلى الله عليه وسلم ولذا كان دون سنة الزوائد كما صرح به فى التنقيح (فتاوى الشامية ج:١ص:١٠٣مطلب فى السنة وتعريفها)۔

[3] عن عبادة بن الصامت رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :خمس صلوات افتراضهن الله تعالى، من احسن وضوءهن وصلاهن لوقتهن واتم ركوعهن وخشوعهن كان له على الله عهد ان يغفرله ،ومن لم يفعل فليس له على الله عهد ان شاء غفرله وان شاء عذبه،رواه احمد وابوداود وروى مالک والنسائى نحوه (مشكوة ص:٥٨الفصل الثانى،كتاب الصلاة)۔

هم حضور ﷺ فرمایلی دی، مثلا: د تهجد لمونځ[۱]، اشراق[۲]، چاشت[۳]، اوابین[۴]، د استخارې لمونځ[۵]، د حاجت لمونځ[۶] او داسې نور....

## د اشراق، چاشت، اوابین او تهجد رکعتونه

**سوال:** په نفلي لمونځونو مثلا: اشراق، چاشت، اوابین او تهجدوکې دکم نه کم او دزیات نه زیات څومره رکعتونه کیدلی شي؟

**جواب:** په نوافلوکې څه پابندي نه شته، څومره رکعتونه موچې خوښه وي کوئ يې، په حديث شريف کې ددې لمونځونو رکعتونه په لاندې ډول نقل شوي دي:

**اشراق:** څلور رکعتونه.[۷] **چاشت:** اته رکعتونه.[۸]

**اوابين:** شپږ رکعتونه[۹]. **تهجد:** دولس رکعتونه.[۱]

---

۱ ]عن ابی امامة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :علیکم بقیام اللیل فانه داب الصالحین قبلکم وهوقربة لکم الی ربکم ومکفرة للسیأت ومنهاة عن الاثم ۰رواه الترمذی (مشکوة ص:۱۰۹الفصل الثانی باب التحریض علی القیام)۔

۲ ]عن معاذ بن انس الجهنی رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :من قعد فی مصلاه حین ینصرف من صلوة الصبح حتی یسبح رکعتی الضحی لایقول الا الخیر غفرله خطایاه وان کانت اکثرمن زبدالبحر ۰رواه ابوداود (مشکوة ص:۱۱۶الفصل الثانی باب صلوة الضحی)۔

۳ ]عن ام هانی رضی الله عنها قالت:ان النبی صلی الله علیه وسلم دخل بیتها یوم فتح مکة فاغتسل وصلی ثمانی رکعات فلم ار صلوة قط اخف منها غیر انه یتم الرکوع والسجود۰قالت فی روایة آخری :ذلک ضحی ۰متفق علیه (مشکوة ص:۱۱۵،الفصل الاول باب صلوة الضحی)۔

٤ ]عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من صلی بعدالمغرب ست رکعات لم یتکلم فیما بینهن بسوء عدلن له بعبادة ثنی عشرة سنة۰رواه الترمذی(مشکوة ص:۱۰٤الفصل الثانی باب السنن)

٥ ]عن جابررضی الله عنه قال:کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یعلمنا الاستخارة فی الامورکما یعلمنا السورة من القرآن ،یقول اذاهم احدکم بالامرفلیرکع رکعتین من غیر الفریضة ثم لیقل :اللهم انی استخیرک بعلمک واستقدرک بقدرتک ......الخ (مشکوة ص:۱۱٦الفصل الاول باب التطوع)۔

٦ ]عن عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من کان له حاجة الی الله اوالی احدمن بنی آدم فلیتوضا فلیحسن الوضوء ثم لیصل رکعتین ثم لیثن علی الله تعالی ولیصل علی النبی صلی الله علیه وسلم ......الخ (مشکوة ص:۱۱۷الفصل الثانی باب التطوع)۔

۷ ] عن معاذة قالت:سالت عائشة کم کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یصلی صلوة الضحی ؟ قالت:اربع رکعات ویزیدماشاء الله ۰رواه مسلم (مشکوة ص:۱۱٥باب صلوة الضحی الفصل الاول)۔

۸ ]عن ام هانی رضی الله عنها قالت:ان النبی صلی الله علیه وسلم دخل بیتها یوم فتح مکة فاغتسل وصلی ثمانی رکعات فلم ار صلوة قط اخف منها غیر انه یتم الرکوع والسجود۰قالت فی روایة آخری :ذلک ضحی ۰متفق علیه (مشکوة ص:۱۱٥،الفصل الاول باب صلوة الضحی)۔

۹ ]ایضًا اوګورئ تېره شوی حاشیه (عن ابی هریرة رضی الله عنه قال: ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## نفلي او سنت لمونځونه جهري کول

**سوال:** نفلي اوسنت لمونځونه جهر کولی شو، یاپه دواړو کې یوهم نه؟ که نفلي لمونځونه یاسنت جهروکړل شي؛ نو ایاسجده سهوه به لازمه وي؟

**جواب:** دشپې په سنتواونوافلوکې اختیارشته چې خپله خوښه په مزه لولی اوکه په جهرسره. ددې له وجې دشپې په سنتواونوافلوباندې په جهر سره لوستلوسره سجده سهوه نه لازمیږي. دورځې سنت او نوافل په جهرسره کول صحیح نه دي، بلکې په مزه ویل واجب دي[۲] که په هیره درې یاددریونه زیات ایتونه یې ولوستل؛ نوسجده سهوه به لازمه وي اوکه نه؟ په دې کې اختلاف دی، دقواعدو تقاضا داده چې سجده سهوه واجبیدل پکاردي اوهمدغه داحتیاط تقاضاده.[۳]

## په نوافلوکې د ترتیب خلاف سورتونه لوستل

**سوال:** په نوافلو کې که څوک د ترتیب عثماني نه خلاف سورتونه ولولي؛ نو څه پرواه خو به نه وي؟ او ایا په سنت مؤکده کې همدغه حکم جائز دی اوکه نه؟

**جواب:** پرته دقصدنه که چیرې داسې وشي؛ نوهیڅ ګناه نه شته،قصدا داسې کول مکروه دي.[۴]

## نفلي لمونځ په ناسته کول څنګه دي؟

**سوال:** زه نفلي لمونځ اکثرپه ناسته کوم اوزه تاسوته رښتیا وایم چې زه لمونځ ډیرکم کوم، خو کله چې یې کوم؛ نوددې سره نفل ضرورکوم، ګزارش دادی چې مابه نفل په ولاړه هماغه شان

---

...بقیه د تیر مخ].. قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من صلى بعدالمغرب ست ركعات ....الخ رواه الترمذى (مشكوة ص:۱۰٤ الفصل الثانى باب السنن)۔

۱ ] وفى رواية :ان صلوته بالليل خمس عشرة ركعة....وفى آخرى سبع عشرة ......كان يصلى صلى الله عليه وسلم سبع عشرة ركعة من الليل ......الخ(معارف السنن ج:٤ص:۱۳۳بيان اكثرصلاته بالليل واقل ماثبت)ايضًا ان ابن عباس رضى الله عنهما اخبره انه بات عند ميمونة وهى خالته ....ثم قام رسول الله صلى الله عليه وسلم الى شن معلقة فتوضا فاحسن الوضوء...ثم صلى ركعتين ثم ركعتين ثم ركعتين ثم ركعتين ثم ركعتين ثم ركعتين ثم اوترثم اضطجع حتى جآءه المؤذن فقام فصلى ركعتين ثم خرج فصلى الصبح (صحيح البخارى ج:۱ص:۱۳۵باب ماجآء فى الوتر)۔

۲ ]فان كان متنفلاً ان كان فى النهار يخافت وان كان فى الليل يخير بين الجهر والمخافة والجهر افضل......الخ (خلاصة الفتاوى ج:۱ص:۹٤كتاب الصلاة طبع رشيديه كوئته)۔

۳ ] قال فى الفتح فحيث كانت المخافة واجبة على المنفرد ينبغى ان يجب بتركها السجود اه ۰فتامل (شامى ج:۱ص:۵۳۳كتاب الصلاة فصل القراة)۔

۴ ]ويكره ان يقرأ فى الثانية سورة فوق التى قراها فى الاولى لان فيه ترك الترتيب الذى اجمع عليه الصحابة هذااذاكان قصدًا واماسهوًا فلا(حلبى كبيرص:٤٤٤تمات فيمايكره من القرآن فى الصلاة ومالايذكر.....الخ

کول څنګه چې فرض او سنت کیږي، خو زما تر ورا و نیا و ویل چې نفل همیشه په ناسته کیږي او اکثر خلکو و ویل چې نفل په ناسته کیږي، زما تسلي ونه شوه، تاسو راته دا و وایئ چې نفل څنګه کیږي؟

**جواب:** ستا نیا او ترور غلط وایي، دا خلکو دڅان نه جوړ کړي دي، چې په ټولو لمونځونو کې هغوی پوره لمونځ په ولاړه کوي مګر نفل په ناسته کوي، د نفلونو ناسته د کولو اجازه ضرور شته، خو په ناسته د نفلو کولو ثواب نیم ملاویږي، د دې له وجې نفل په ولاړه کول افضل دي[۱] د پنځه وخته لمونځ پابندي هر مسلمان ته کول پکار دي، په دې کې کوتاهي کول په دنیا او اخرت کې د الله تعالی د غضب او لعنت موجب دی.[۲]

## ایا سنت او نفل په کورکې کول ضروري دي؟

**سوال:** زمونږ مشر ورور، اوس اوس دسعودي عرب نه راغلی دی، هغه مونږ ته تاکید کوي چې یوازې فرض لمونځ په جومات کې اداکوئ او باقي ټول سنت او نوافل په کورکې اداکوئ، ځکه چې د نبي کریم ﷺ فرمان مبارک دی چې: د خپلو کورونو نه هدیرې مه جوړوئ او په خپلو کورونو کې لمونځونه کوئ، ، لهذا مونږ خلکو حضور ﷺ دا فرمان مبارک د خپل مشرورور نه واوریده؛ نو مونږ هم په هغه عمل کوو، دکوم چې مونږ ته حکم راکړل شوی دی، تاسو راته دا ولیکئ چې سنت او نفل په کورکې کول لازمي دي؟

**جواب:** دا ، ،حدیث شریف، ، دکوم حواله چې ستا و رور ورکړې ده صحیح دی، د دې حدیث له وجې سنت او نفل په کورکې کول افضل دي،[۳] خو شرط دادی چې دکورماحول پرسکون وي او بنده په کورکې په اطمینان سره سنت او نفل اداکړای شي، خو که دکورماحول پرسکون نه وي، لکه څنګه چې په عام ډول سره زمونږ په کورونو کې لیدل کیږي؛ نو دسنتو په جومات کې اداکول بهتر دي.[۴]

---

۱ ]ویتنفل مع قدرته علی القیام قاعدًا ......وفیه اجرغیر النبی صلی الله علیه وسلم علی النصف الابعذر ،درمختاروفی الشامی ویویده حدیث البخاری من صلی قائمًا فهو افضل ،ومن صلی قاعدًا فله نصف اجرقائم...الخ (درمختارمع الشامی ج:۱ص:۳۶،۳۷باب الوتر والنوافل ،مبحث المسائل الستة عشریة)_

۲ ] وفی حدیث معاذ اوصانی رسول الله صلی الله علیه وسلم ولاتترکن صلوة مکتوبة متعمدًا فان من ترک صلوة مکتوبة متعمدًافقد برئت منه ذمة الله (مسنداحمد ج:۵ص:۲۳۸)_

۳ ]عن ابن عمررضی الله عنهما قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : اجعلوا فی بیوتکم من صلوتکم ولاتتخذوها قبورًا ،متفق علیه (مشکوة ص:۶۹الفصل الاول باب المساجد ومواضع الصلاة)_

٤ ] والافضل فی النفل غیر التراویح المنزل الا لخوف شغل عنها ،والاصح افضلیة ما کان اخشع واخلص (درمختار) وفی الشامی تحت قوله والافضل فی النفل...الخ...وحیث کان هذا افضل یراعی ما لم یلزمه منه خوف شغل عنها لو ذهب لبیته ،اوکان فی بیته مایشغل باله ویقلل....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## د صبح صادق نه وروسته نفل کول مکروه دي

**سوال:** يو بزرګ ماته د صبح صادق د لمانځه په وخت د دوو رکعتو نفلو کولو له پاره ويلي دي، هغه زه ددووکلونو راهيسې کوم، د سهار د سنتو نه مخکې يې کوم، يو بل بزرګ وفرمايل چې د تهجدو د لمونځ نه وروسته د سهار د سنتو نه مخکې سجده هم حرامه ده، صحيح مسئله کومه ده؟

**جواب:** د صبح صادق نه وروسته د سهار د سنتو نه پرته نور نفلونه مکروه دي، د سنتو نه مخکې هم او وروسته هم [۱] او کوم صاحب چې دا ويلي دي چې د تهجدو نه وروسته او د سهار د سنتو نه مخکې سجده هم حرامه ده دا مسئله بلکل غلطه ده، د سهار د سنتو نه مخکې د تلاوت سجده کيږي او د قضاء لمونځونه هم کيږي [۲] البته د صبح صادق نه وروسته د سهار د سنتو نه پرته نفل جائز نه دي. [۳]

## د سهار لمانځه نه وروسته نفل کول صحيح نه دي

**سوال:** زما معمول داو چې د فرض د اداء کولو نه وروسته دوه رکعته نفل به مې کول، يو څو ورځې مخکې ماپه يو کتاب کې لوستلي و چې د سهار د لمانځه نه وروسته نفل نه دي کول پکار، ايا دا صحيح دي؟

**جواب:** د سهار د لمانځه نه وروسته د لمر ختلو نه وروسته (د اشراق تر وخته) پورې او مازديګر د لمانځه نه د لمر تر پريوتلو پورې نفل لمونځ جائز نه دی. [۴]

---

...بقيه د تير مخ]... خشوعه ،فيصليها حينئذ فى المسجد ،لان اعتبارالخشوع ارجح (درمختارمع الشامى ج:۲ ص:۲۲باب الوتروالنوافل ،مطلب فى الكلام على حديث النهى عن النذر)۔

[۱] ويكره ان يتنفل بعد طلوع الفجر باكثرمن ركعتى الفجر،لانه عليه السلام لم يزد عليهما مع حرصه على الصلوة (هداية ج:۱ص:۸۶باب المواقيت) ايضًا: وقتان لايصلى فيهما نفل ويصلى فيهما الفرض بعدالعصر حتى تغرب الشمس وبعد الفجرحتى تطلع الشمس......عن النبى صلى الله عليه وسلم لايتحرى احدكم فيصلى عندطلوع الشمس ولاعندغروبها فانها تطلع بين قرنى شيطان (شرح مختصرالطحاوى ج:۱ص:۵۲۸)۔

[۲] تسعة اوقات يكره فيها النفل ومافى معناها لا الفرائض هكذا فى النهاية والكفاية فيجوزقضاء الفائتة وصلاة الجنازة وسجدة التلاوة كذا فى فتاوى قاضيخان منها مابعدطلوع الفجركذافى النهاية والكفاية (عالمگيرى ج:۱ص:۵۲الفصل الثالث فى بيان الاوقات التى لاتجوزفيها الصلاة وتكره فيها)

[۳] وكذاالحكم من كراهة نفل وواجب لغيره لا فرض وواجب لعينه بعدطلوع فجرسوى سنته لشغل الوقت به تقديرا (درمختارمع الشامى ج:۱ص:۳۷۵كتاب الصلاة ومطلب يشترط العلم بدخول الوقت)

[۴] تسعة اوقات يكره فيها النوافل ...... منها مابعدصلاة الفجر قبل طلوع الشمس ...... ومنها مابعد صلاة العصر قبل التغير ......الخ (عالمگيرى ج:۱ص:۵۳كتاب الصلاة الباب الاول فى المواقيت ومايتصل بها)

## د سهار د سنتو نه وروسته نفل کول

**سوال:** د سهار د اذان نه وروسته د سهار د سنتو نه پرته يو بل لمونځ کولی شو؟ مثلا د قضايي لمونځ ، صلوة حاجت ،دوه رکعته نفل تحية المسجد يا دوه رکعته نفل تحية الوضوء ؟ په دې وخت کې ددې ټولو لمونځونو د کولو څه حکم دی؟ او که يو سړی په دې مذکوره لمونځونو کې يو لمونځ وکړي؛ نو ددې به څه حکم وي؟

**جواب:** صبح صادق نه وروسته د سهار د سنتونه پرته بل لمونځ جائزنه دی [۱] نه صلاة حاجت، نه تحية الوضوء، نه تحية المسجد او نه نور نفل، کد چيرې چا وکړل؛ نو بد يې وکړل. د الله تعالی نه دې معافي وغواړي، په دې وخت کې قضاء لمونځ کول جائز دي، خو په کور کې يې په پټه کوه د خلکو په مخکې قضاء لمونځ کول جائز نه دي.[۲]

## په حرم شريف کې هم د سهار او مازديګر دلمانځه نه وروسته نفل مه کوئ

**سوال:** په خانه کعبه کې هروخت نفل اداکيږي اوکه نه؟ يعنې کله چې موږ عمرې کوو؛ نوځه خلک وايي چې دمازديګردلمانځه نه وروسته نفل نه شي کيدلی؛ نو ايا موږ په مقام ابراهيم باندې دوه رکعته نفل دمازديګرنه وروسته ادانه کړو؟

**جواب:** په ډيراحاديثوکې دسهاراومازديګرنه وروسته دنوافلونه ممانعت راغلی دی، دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدباندې ددې احاديثوله وجې په حرم شريف کې هم د سهار او مازديګر د لمانځه نه وروسته نوافل جائزنه دي، کوم کس چې په دې وختونوکې طواف کوي هغه دوه رکعته دطواف لمونځ دلمر دراختلونه اوپريوتلونه وروسته اداکول پکار دي.[۳]

---

[۱] تسعة اوقات يكره فيها النوافل ......فيجوزفيها قضاء الفائتة منها مابعد طلوع الفجرقبل صلاة الفجر ......يكره فيه التطوع باكثر من سنة الفجر ...الخ (عالمگيری ج۱ ص۵۲) ايضاً فصل: وقتان يصلى فيهما الفرض دون النفل واما بعد العصر وبعد الفجر فانما ينهى فيهما عن النوافل والنذوروصلوة الطواف ويجوز فيهما فعل الفرض وذالک لماروی ابوسعيدالخدری ومعاذبن عفراء وابن عمر ،وابوهريرة رضی الله عنهم :ان النبی صلی الله عليه وسلم نهی عن صلوتين بعدالصبح وبعدالفجروفی حديث ابن مسعودفی سوال عمرو بن عنبسة رضی الله عنهماالنبی صلی الله عليه وسلم عن الاوقات :إن الصلاة بالليل مقبولة مشهودةحتی تصلی الفجر،ثم اجتنب الصلوة حتی ترتفع الشمس وقال ابن عباس رضی الله عنهما حدثنی رجال مرضيون ،وارضاهم عمررضی الله عنه ان رسول الله صلی الله عليه وسلم نهی عن الصلوة بعد الفجر حتی تطلع الشمس وبعدالعصرحتی تغرب (شرح مختصرالطحاوی ج:۱ ص:۵۳۷،۵۳۶ كتاب الصلاة)

[۲] وينبغی ان لا يطلع غيره علی قضائه لأن التاخير معصية فلايظهرها......الخ (شامی ج:۲ص:۷۷)

[۳] وفی التنوير ( وكره نفل وكل ماكان واجبًا لغيره كمنذور وركعتی طواف) وفی الشامية تحت قوله وركعتی طواف ظاهره ولوكان الطواف فی ذلک الوقت المكروه لم اره صريحًاويدل عليه مااخرجه الطحاوی فی شرح الآثارعن معاذبن عفراء انه طاف بعدالعصر اوبعدصلاة الصبح ولم يصل ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

## ایا په حضور ﷺ باندې تهجد فرض و؟

**سوال:** ما ماشومانو ته دقرآن پاک تعلیم ورکاو، چې ناڅاپه دلمانځه په باره کې یومولانا ماشومانو ته دپوهولوپه اندازکې وویل چې: په عام مسلمانانو باندې پنځه لمونځونه فرض دي اوپه حضور ﷺ باندې شپږ لمونځونه فرض و اود تهجدو لمونځ یې په حضور ﷺ باندې فرض وباله، لهذاددې په باره کې په تفصیل سره جواب راکړئ، ستاسو به ډیره مهرباني وي.

**جواب:** په حضور ﷺباندې دتهجدو لمونځ فرض و اوکه نه، په دې باره کې دوه قولونه دي اوداختلاف وجه هم داده چې داسلام په شروع کې کله چې پنځه وخته لمونځونه فرض شوي نه وو، هغه وخت دتهجدولمونځ په ټولوباندې فرض و، وروسته دامت په حق کې فرضیت ختم شو، خو دحضور ﷺ په حق کې دافرضیت ختم شو اوکه نه؟ په دې کې اختلاف دی، علامه قاضي ثناء الله پاني پتي دې ته ترجیح ورکړه چې دحضور ﷺ په حق کې هم فرضیت باقي پاتې نه شو، ددې باوجودبه حضور ﷺ ددې پابندي کوله اوپه سفراوحضر دواړوکې ترې تهجد پاتې شوي نه و.[۱]

## د تهجدو لمونځ په کوم عمرکې کول پکاردي؟

**سوال:** زما سوال دادی چې ایا تهجد یوازې بوډاګان کوي؟ اود تهجدو نفلو اوداسې نورو... قضاکول نه دي پکار؟ زما عمرد(۴۵) کالونه زیات دی زه کله تهجد کوم اوکله نه؟

**جواب:** دتهجدوکولو له پاره دعمرهیڅ تخصیص نه شته،الله تعالی چې توفیق ورکړي؛ نوهرمسلمان ته کول پکاردي، دخپل طرف نه خودا اهتمام کول پکاردي چې تهجدکله هم پاتې نه شي، خو که کله ونه شو؛نوبیاهم څه ګناه نه شته هو! که بنده په پوهې سره دبې همتي له وجې یې پریږدي دې سره بې برکتي راځي.[۲]

---

...بقیه د تیر مخ]..فسئل عن ذلک فقال :نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم من صلاة بعدالصبح حتی تطلع الشمس وعن صلاة بعدالعصرحتی تغرب الشمس ،،ثم رایته مصرحًا به فی الحلیة وشرح اللباب (الدرالمختارمع الردالمحتار ج:۱ ص:۳۷۵ مطلب یشترط العلم بدخول الوقت)۔

[۱] وقالت طائفة :کان فرضًا علیه فلاتفیدمواظبته علیه السنة فی حقنالکن صرح مافی مسلم وغیر ه عن عائشة انه کان فریضة ثم نسخ، هذاخلاصة ماذکره ،ومفاده اعتمادالسنة فی حقنالانه صلی الله علیه وسلم واظب علیه بعدنسخ الفریضة ،ولذاقال فی الحلیة: والاشبه انه سنة (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۲۴مطلب فی صلاة اللیل ،وایضاالجامع لاحکام القرآن (القرطبی) ج:۱۹ص:۵۴طبع مصر،تفسیرمظهری ج:۱۰ ص:۱۱۶تحت آیة :فاقروا ماتیسرمن القرآن سورة المزمل)۔

[۲] من المندوبات صلاة اللیل حثت السنة الشریفة علیها کثیرًا وافادت ان لفاعلها اجرًا کبیرًا ...... وروی ابن خزیمة مرفوعًا علیکم بقیام اللیل فانه داب الصالحین قبلکم وقربة الی ربکم ومکفرة للسیئات ومنهاة عن الاثم ۰وروی الطبرانی مرفوعًا:لابد من صلاة بلیل ولوحلب شاة ......الخ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## دشپې د اخرې برخې فضلیت او تعین

**سوال:** ما په کتابونو کې لوستلي دي چې کله د شپې یوه برخه باقي پاتې شي: نو الله تعالی د اسمانونو نه دنیا ته راکوځیږي او کومه دعا چې وشي؛ نو هغه قبلیږي، (چې یوه دریمه برخه پاتې وي) ددې نه څو بجې مراد دي ؟ یعنې درې بجې یا دوه بجې؟ صحیح وخت کوم یودی؟ او بل دا چې اودس وشي او دوه رکعته نفل وکړل شي او بیا دعا غوښتل پکار دي یا څه بله طریقه وي؟ مهرباني وکړئ دخپل کالم (تحریر) په راتلونکي اشاعت کې جواب ضرور راکړئ. په انتظار به یم، ډیره شکریه.

**جواب:** دلمر د پریوتلو نه وروسته تر صبح صادقه پورې وخت دې په دریوو برخو تقسیم کړل شي؛ نو اخري برخه مراد ده، مثلاً: نن سبا د ماښام نه تر صبح صادقه پورې تقریبا ۹ ګنټې شپه وي او پاو باندې یوې بجې پورې دوه برخې تیریږي او د پاو باندې یوې نه تر صبح صادقه پورې وخت دی، چې د هغه فضیلت په حدیث کې بیان شوی دی[1] په دې وخت کې اودس کول او د څلورو نه تر دولسو رکعتونو پورې څومره چې الله تعالي توفیق درکړي د تهجدو لمونځ کول پکار دي [2] ددې نه وروسته چې څومره دعا غوښتل کیدای شي ودې غوښتل شي.

## د تهجدو صحیح وخت کوم دی؟

**سوال:** په تهجدو کې اته، لس یادولس رکعتونه درسول کریم ﷺ نه ثابت دي. خوځینو بزرګانو اوشیخانو په باره کې لیکل شوي دي چې هغوی به ټوله شپه نفلونه کول، ایا دانفلونه په تهجدو کې شماریږي؟دتهجدو صحیح تعداد څو رکعته دی اوددې صحیح وخت کوم دی؟

**جواب:** دویده کیدونه وروسته چې راپاسئ اودشپې کوم لمونځ وکړل شي هغه ته تهجد

---

...بقیه د تیر مخ].. (البحر الرائق ج:۲ص:٥٦) وفی الشامی :انه یکره ترک تهجداعتاده بلاعذر......الخ (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۲٥باب الوتر والنوافل ،مطلب فی صلاة اللیل)_

[1] عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :ینزل ربنا تبارک وتعالی کل لیلة الی السماء الدنیاحین یبقی ثلث اللیل الآخر یقول :من یدعونی فاستجیب له! من یسالنی فاعطیه ! من یستغفرنی فاغفرله ! متفق علیه (مشکوة ص:۱۰۹الفصل الاول باب التحریض علی قیام اللیل )

[2] ایضاً پورتنۍ حواله_ ایضاً: وفی روایة :ان صلوته باللیل خمس عشرة رکعة ......وفی آخری سبع عشرة ......کان یصلی صلی الله علیه وسلم سبع عشرة رکعة من اللیل ......الخ(معارف السنن ج:٤ص:۱۳۳بیان اکثر صلاته باللیل واقل ماثبت)ایضًا ان ابن عباس رضی الله عنهما اخبره انه بات عند میمونة وهی خالته ......ثم قام رسول الله صلی الله علیه وسلم الی شن معلقة فتوضا فاحسن الوضوء ......ثم صلی رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم اوترثم اضطجع حتی جآءه الموذن فقام فصلی رکعتین ثم خرج فصلی الصبح (صحیح البخاری ج:۱ص:۱۳٥باب ماجآء فی الوتر)_

وایي[1] رکعتونه که څه هم زیات وي اوکه کم، دحضور ﷺ نه د څلورونه واخله تردولسوپورې رکعتونه نقل دي[2] اوکه بنده ټوله شپه نه ویده کیږي ، ټوله شپه په عبادت کې مشغول وي؛ نوهیڅ نقصان په کې نه شته، هغه ته به دقیام لیل اوتهجدوثواب ملاویږي، مګر دا د عاموخلکودوس خبره نه ده، ددې له وجې دکومو بزرګانونه چې ټوله شپه ویښ پاتې کیدل اوپه عبادت کې مشغولتیانقل ده، په هغوی خودې اعتراض ونکړل شي اوپه خپل خپل عادت دخپل همت او استطاعت مطابق وساتل شي.[3]

## د پیشمني په وخت کې تهجد کول

**سوال:** زمادتهجدودلمونځ کولوشوق دی او زه اکثردوه بجې راپاڅیږم او دا لمونځ کوم . درمضان په میاشت کې دالمونځ کیږي اوکه نه؟ (دصبح صادق داذان نه مخکې).

**جواب:** دصبح صادق نه مخکې دتهجدو وخت دی؛ نوکه صبح صادق شوی نه وي؛ نودپیشمني په وخت کې تهجد کولی شئ.[4]

## د تهجدوپه لمانځه کې کوم کوم سورتونه لوستل پکاردي؟

**سوال:** دتهجدویه لمانځه کې څه لوستل کیږي؟څوک وایي چې په دوو رکعتونوکې (۱۲)قل ویل پکاردي ،تاسوراته ددې صحیح طریقه وښایئ!

---

۱ ]وایدبماقی معجم الطبرانی من حدیث الحجاج بن عمرو رضی الله عنه قال: یحسب احدکم اذاقام من اللیل یصلی حتی یصبح انه قد تهجد انما التهجد المرا یصلی الصلاة بعد رقدة....الخ (ردالمحتارج:۲ص:۲٤مطلب فی صلوته اللیل)

۲ ] وفی روایة :ان صلوته باللیل خمس عشرة رکعة ......وفی آخری سبع عشرة ......کان یصلی صلی الله علیه وسلم سبع عشرة رکعة من اللیل ......الخ(معارف السنن ج:٤ص:۱۳۳بیان اکثرصلاته باللیل واقل ماثبت)ایضًا ان ابن عباس اخبره انه بات عند میمونة وهی خالته ......ثم قام رسول الله صلی الله علیه وسلم الی شن معلقة فتوضا فاحسن الوضوء ......ثم صلی رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم اوترثم اضطجع حتی جآءه الموذن فقام فصلی رکعتین ثم خرج فصلی الصبح (صحیح البخاری ج:۱ص:۱۳۵باب ماجآء فی الوتر).

۳ ] واقل ماینبغی ان ینتفل باللیل ثمان رکعات کذافی الجوهرة وفضلها لایحصرقال تعالی :فلاتعلم نفس مااخفی هم من قرة اعین،وفی صحیح مسلم قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :علیکم بصلاة اللیل فانه داب الصالحین قبلکم وقربة الی ربکم ومکفرة للسیات ومنهاة عن الاثم ( طحطاوی علی مراقی الفلاح ص:۲۱۷ فصل فی تحیة المسجد، وایضًا: درمختارمع شامی ج:۲ص:۲٦،۲۵عالمگیری ج:۱ص:۵۹ امدادالفتاوی ج:۱ص:۳۰۹ابن ماجة ص:۹۷)

٤] عن عائشة رضی الله عنها قالت:کان النبی صلی الله علیه وسلم یصلی فیمابین ان یفرغ من صلوة العشاء الی الفجراحدی عشررکعة یسلم من کل رکعتین...الخ (مشکوة ص:۱۰۵الفصل الاول ،باب صلوة اللیل)

**جواب:** کوم سورتونه چې درته یادوي هغه لولئ ،شریعت کوم سورتونه مقرر کړي نه دي.[۱]

## ایا په تهجدو کې درې ځله سوره اخلاص ویل پکار دي؟

**سوال:** دتهجدوپه لمانځه کې څورکعتونه وي، په هررکعت کې ډرې ځله سوره اخلاص ویل لازمي وي؟

**جواب:** د تهجدوپه لمانځه کې دځلورونه واخله تردولسوپورې رکعتونه وي، ددې داداکولوڅه خاص طریقه نه شته، دعامو نفلوپه شان اداکیږي، په هر رکعت کې درې ځله سوره اخلاص ویل جائزدي مګرلازم نه دي، دکوموخلکوپه ذمه چې قضالمونځونه وي هغوی ته مشوره ورکوم چې هغوی دې دتهجدوپه وخت کې هم دنوافلو په ځای خپل قضا لمونځونه کوي،دوی ته به ان شاءالله د تهجدو ثواب هم ملاویږي اود سرنه به یې فرض هم کوزشي.[۲]

## د تهجدو لمونځ په جمعې سره اداکول صحیح نه دي

**سوال:** مسئله داده چې زه په یوجومات کې یم، په تیررمضان کې ددریوورځوله پاره په اعتکاف کې کیناستم، دجماعت په وینابه باندې به مونږ تولهِ شپه ویښ پاتې کیدو اوعبادت به موکولو، د تهجدوپه وخت کې دې خلکودتهجدولمونځ په جمعې سره کولو،ایا دا جائزدي، چې دتهجدولمونځ دې په جمعې سره وکړل شي؟ ما ترې پوښتنه وکړه:نوهغوی وویل چې داسې خونبي کریم ﷺ هم کړي دي، هرکله چې ماخوچیرته هم اوریدلي نه دي چې دتهجدولمونځ په جمعې سره کیږي.

**جواب:** دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدباندې دنوافلوجمعه (هرکله چې مقتدیان ددوودریونه زیات وي) مکروه ده، ځکه چې دتهجدوپه لمانځه کې جمعه صحیح نه ده، حضور ﷺ دتراویح جمعه کړې وه او دتهجدودلمونځ باجماعت اداکولو معمول یې نه و.[۳]

## که اخره شپه کې نه راپاڅیدونکی د وترونه مخکې تهجد وکړي

**سوال:** یوصاحب وایي چې تهجددنیمې شپې نه پرته دماسخوتن د لمانځه نه وروسته هم کیږي ،لږ داخوراته ووایئ چې داخبره څومره حد پورې صحیح ده؟

---

۱ ] ویکره ان یوقت شیئًامن القرآن بشيء من الصلوة ......الخ ( عالمگیری ج:۱ص:۴۹وایضًا هدایة ج: ۱ ص:۱۰۰وایضًا درمختارمع الشامي ج:۱ص:۵۴۴)_

۲ ] وفی الحجة والاشتغال اولی واهم من النوافل الا السنن المعروفة وصلوة الضحی وصلوة التسبیح والصلوات التی رویت فی الاخبارفیها سورمعدودة واذکارمعهودة فتلک بنیة النفل وغیرهابنیة القضاء (عالمگیری ج:۱ ص:۱۲۵، کتاب الصلاة ،الباب الحادی عشرفی قضاء الفوائت)_

۳ ] واعلم ان النفل بالجماعة علی سبیل التداعی مکروه علی ماتقدم ماعدا التراویح ......الخ (حلبی کبیرص:۴۳۲،تتمات من النوافل ،ایضًا:عالمگیری ج:۱ص:۸۳وایضًادرمختارمع الشامي ج:۲ص:۴۹،۴۸)_

**جواب:** کوم کس چې په اخره شپه کې نه شي راپورته کيداى، هغه دې د وترونه مخکې څلور رکعتونه دتهجدوپه نيت سره کوي ان شاء الله هغه ته به ثواب ملاويږي[۱] اګرچې په اخره شپه کې د راپورته کيدو ثواب ډيرزيات دى، ددې هم کوشش کول پکاردي.[۲]

## د تهجد د لمانځه له پاره که د نه پاڅيدو ګمان وي؛ نو څه به کوي؟

**سوال:** يو سړي ته ګمان وشو چې هغه د شپې د تهجدو له پاره نه شي پاڅيدلى؛ نو هغه بيا د ماسخوتن او د ويده کيدو نه مخکې د تهجدو لمونځ کولى شي؟

**جواب:** هو، کولى يې شي، خوهميشه دشپې په اخرکې دپاڅيدوپه نيت ويده کيدل پکاردي.[۳]

## د تهجدو د لمانځه له پاره ويده کيدل يا شب ګيره ضروري ده

**سوال:** ايا د تهجدو د لمانځه له پاره د ماسخوتن لمانځه نه وروسته ويده کيدل يا شب ګيره ضروري ده؟

**جواب:** تهجدپه اصل کې ديته وايي چې دخوب نه وروسته وکړل شي[۴] خو دچا چې د پاڅيدو يقين نه وي، هغه دې د ماسخوتن نه وروسته وکړي. ان شاء الله ده ته به ثواب ملاو شي.

## که د ماسخوتن لمانځه سره وتر وکړو نوايا د تهجدو سره يې په دويم ځل وکړو؟

**سوال:** دوتر لمانځه ته دشپې اخري لمونځ هم ويل کيږي، که چا د ماسخوتن دلمانځه نه وروسته وتر وکړل اوشپې دتهجدوپه وخت کې راپاڅيده؛ نو ايا هغه ته تهجدکول پکاردي يا وتر دوباره کول پکاردي؟

**جواب:** که وتريې مخکې وکړل؛ نودتهجدوپه وخت کې دى دوباره وترنه کوي، يوازې تهجددې وکړي.[۵]

---

۱ ]وما كان بعد صلاة العشاء فهو من الليل وهذا يفيد ان هذه السنة تحصل بالتنفل بعد صلاة العشاء قبل النوم اه (شامى مطلب فى صلاة الليل ج:۲ص:۲٤)۔

۲ ] عن ابى هريرة رضى الله عنه (مرفوعًا) وافضل الصلاة بعدالفريضة صلاة الليل (ترمذى ج:۱ص:۹۰)۔

۳ ] وماكان بعدصلاة العشاء فهو من الليل ،،وهذا يفيد ان هذه السنة تحصل بالنفل بعدصلاة العشاء قبل النوم......الخ (شامى ج:۲ص:۲٤مطلب فى صلاة الليل)

٤ ] وقدذكر القاضى حسين من الشافعية انه فى الاصطلاح التطوع بعدالنوم وايدبمافى معجم الطبرانى من حديث الحجاج بن عمرو رضى الله عنه قال:يحسب احدكم اذاقام من الليل يصلى حتى يصبح انه قدتهجد انما التهجد المرء يصلى الصلاة بعد رقدة ......اقول الظاهر ان حديث الطبرانى الاول بيان لكون وقته بعد صلاة العشاء ......الخ ( شامى ج:۲ص:۲٤مطلب فى صلاة الليل)

۵ ] وفى مراقى الفلاح :اذا صلى الوتر قبل النوم ثم تهجد لايعيد الوتر....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

## ایا د ماسپښین، ماښام، او ماسخوتن نفل ضروري دي؟

**سوال:** ایا ماسپښین، ماښام اوماسخوتن نه وروسته نفل په دې لمونځونو کې شامل دي؟ ایا ددې نفلونو پرته به دا لمونځونه وشي؟ که یوکس دانفلونه ددې لمونځونولازمي برخه وګڼي اوددې نفلونه نه پرته خپل لمونځ نیم ګړی وګڼي، ایا داپه بدعت کې شامل دی؟

**جواب:** دماسپښین نه مخکې څلورر کعتونه اودماسپښین نه وروسته دوه رکعتونه اودماښام او ماسخوتن نه وروسته دوه رکعتونه خوسنت موکده دي داپریښودل ښکارنه دي[۱] او د ماخسوتن نه وروسته دوترورکعتونه واجب دي ددې هم دپریښودواجازه نه شته[۲]،باقي رکعتونه دنفلو دي که ویې کړي؛ نولوی ثواب دی اوکه یې ونه کړي؛ نوهیڅ نقصان نه شته،دا ضروري ګڼل صحیح نه دي.[۳]

## د ماښام د لمانځه نه مخکې نفل کول جائز؛ خواغوره نه دي

**سوال:** زموږ په حنفي مذهب کې دمازدیګرنه وروسته اودماښام دلمانځه نه مخکې نفل کول جائزدي اوکه نه؟ ځکه چې دلته په سعودي عرب کې دماښام داذان کیدونه وروسته دوه رکعته نفل کیږي دقرآن اوسنت په رڼا کې راته واضحه کړئ.

**جواب:** دماښام دلمونځ دفوري اداکولوحکم دی، ددې له وجې دحنفي مذهب په نزددماښام دلمونځ نه مخکې نفل کول مناسب نه دي، ګویا جائزدي ددې له وجې په خپله خومه کوه مګرکوم حضرات یې چې کوي هغوی مه منع کوه.[۴]

---

...بقیه د تیر مخ]. لقوله تعالی صلی الله علیه وسلم لا وتران فی لیلة (حاشیه الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص:۲۱۱فصل فی بیان النوافل)۔

۱ ]السنة رکعتان قبل الفجرواربع قبل الظهر ورکعتان بعدالمغرب واربع قبل العشاء ......الخ (هدایة ج:۱ص:۱۴۶) وایضًا :وسنن موکدًا اربع قبل الظهر واربع قبل الجمعة واربع بعدها بتسلیمة......ورکعتان قبل الصبح وبعدالظهر والمغرب والعشاء ......الخ (الدرالمختارمع الردج:۲ص:۱۳،۱۲باب الوتر والنوافل)۔

۲ ]عن ابی حنیفة رحمه الله فی الوتر ثلاث روایات......وفی روایة واجب وهی آخراقواله وهوالصحیح کذا فی محیط السرخسی (عالمگیری ج:۱ص:۱۱۰وایضًا فی الدرالمختارمع الشامی ج:۱ص:۳،۴)۔

۳] والنفل ومنه المندوب یثاب فاعله ولایسیئ تارکه .....الخ (شامی ج:۱ص:۱۰۳مطلب فی السنة وتعریفها)

۴ ] عن منصورعن ابیه قال:ماصلی ابوبکرولاعمرولاعثمان الرکعتین قبل المغرب (کنزالعمال ج:۸ص:۵۰باب المغرب ومایتعلق به، طبع بیروت)،وایضًاعن ابن عمر قال:مارایت احدًا یصلیهما علی عهدالنبی صلی الله علیه وسلم وعن الخلفاء الاربعة وجماعة من الصحابة انهم کانوا لایصلونهما (فتح الباری ج:۲ص:۱۰۸باب کم بین الاذان والاقامة ،وایضًا فی الدرالمختارمع الشامی ج:۱ص:۳۶۹وایضًا اعلاء السنن ج:۲ص:۵۸)۔

## د ماښام نفلونه پرېښودل څنګه دي؟

**سوال:** دماښام په لمانځه کې دفرضونه وروسته اوددووسنتونه وروسته دوه رکعته نفل کول ضروري دي؟ اوکه څوک يې ونه کړي ګناه ګار خو به نه وي؟

**جواب:** دنفلومعنی داده چې ددې په کولوثواب شته اوپه پرېښودوکې يې څه ګناه نه شته.[۱]

## د ماښام د اذان نه وروسته دوه رکعته نفل کول چې کله لمونځ ولاړوي

**سوال:** که چيرې زه د مسلم شريف او د ابوداود شريف د حديث په رڼا کې د ماښام د اذان نه فورا وروسته دوه رکعته نفل لمونځ وکړم، حالانکې زما نه پرته ټول مقتديان د امام پسې وروسته په جمعې کې شامل وي، کله چې زه (د نفل لمونځ د کولو نه وروسته) د جمعې د يو رکعت کېدو نه وروسته شامليږم، نو ايا زما دا عمل جائز دی؟

**جواب:** که چيرې جمعه ولاړه وي؛ نو د ماښام د اذان نه وروسته نفل کول جائز نه دي.[۲]

## ايا نفل پرېښودل کېدای شي؟

**سوال:** ځينې خلک ما ليدلي دي چې د ماسخوتن د فرض لمانځه نه وروسته سنت کوي او د نفلو د اداء کېدو نه پرته وتر اداء کول شروع کوي او څوک څوک خو د سنتو او د وترو نه وروسته نوافل پرېږدي، داسې کول تر کومه پورې صحيح دي؟

**جواب:** د نفلو تعريف هم دادی چې څوک غواړي؛ نو ودې کړي او چې څوک غواړي؛ نو نه دې کوي.[۳]

## د نفلوله وجې فرض پرېښودل غلط دي

**سوال:** موږ خلک دلته په جده کې اوسيږو، زموږ داوسيدوپه کمره کې ځينې ملګري د ماسخوتن لمونځ اکثرقضاکړي، دهغوی استدلال دادی چې اوولس (۱۷) رکعتونه څوک کوي؟ دهغوی په ذهنونو کې داخبره ناسته ده چې له (۱۷) رکعتونو پرته لمونځ نه کيږي ، موږ هغوی ته زرځله وويل چې (۹) رکعته کوه، (۴)فرض، (۲)سنت، او (۳)وتر، خوهغوی يې نه مني،

---

۱] نافلة وهوفى اللغة الزيادة وفى الشرع العبادة التى ليست بفرض ولاواجب...الخ حلبى كبيرج:۱ ص:۳۸۳) والنفل فى اللغة الزيادة وفى الشريعة زيادة عبادة شرعت لنالا علينا (شامى ج:۲ص:۳باب الوتروالنفل)۔

۲] لقيام الاجماع عليه كونه سنة وكرهواالتنفل قبلها لان فعل المباح والمستحب اذا افضى الى الاخلال بالسنة يكون مكروهًا ......الخ (علاء السنن ج:۲ص:۵۸طبع ادارة القرآن)

۳] نافلة وهوفى اللغة الزيادة وفى الشرع العبادة التى ليست بفرض ولا واجب ......الخ حلبى كبيرج:۱ ص:۳۸۳)والنفل فى اللغة الزيادة وفى الشريعة زيادة عبادة شرعت لنالا علينا (شامى ج:۲ص:۳باب الوتروالنفل)

داوولسو رکعتونه کول هغوی ته بوج محسوسیږي ددې له وجې ټول لمونځ پریږدي، مهرباني وکړئ او ددې وضاحت وکړئ چې واقعي د (۱۷) رکعتونونه پرته د ماسخوتن لمونځ نه کیږي؟ ایاد ماسخوتن پوره (۱۷) رکعتونه کول ضروري دي؟ ایا یوازې (۹) رکعته، یعنې (۴) فرض، (۲) سنت او (۳) وتر واجب کولو سره به د ماسخوتن لمونځ مکمل نه شي؟

**جواب:** د ماسخوتن په لمانځه کې خو رکعتونه هم دومره دي څومره چې تاسو لیکلي دي، یعنې (۴) فرض، (۲) سنت، (۳) وتر واجب، ټول (۹) رکعتونه، که د ماسخوتن نه مخکې سنت وکړي؛ نو لوی ثواب دی او که یې ونه کړي؛ نو هیڅ نقصان نه شته او دوترونه مخکې دوه څلور رکعتونه د تهجد و په نیت سره هم وکړي؛ نو ښه ده، خو نفلونه داسې ضروري ګڼل چې د هغو له وجې سره فرض لمونځونه هم پریښودل شي ډیره غلطه خبره ده.

## وتر د تهجد و نه مخکې وکړل شي او که وروسته؟

**سوال:** که وتر د ماسخوتن د لمانځه نه وروسته ونه کړل شي، بلکې د تهجد و سره وکړل شي په دې صورت کې اول درې رکعته وتر وکړل شي او وروسته د تهجد رکعتونه، یا اول تهجد وکړل شي او وروسته درې رکعته وتر؟ نور دا چې که د تهجد و رکعتونه کله څلور، کله اته، کله دولس وکړل شي؛ نو څه نقصان خو به کې نه شته؟

**جواب:** که د پاڅیدو باور یې وي؛ نو وتر د تهجد د لمونځ نه وروسته کول غوره دي، که د صبح صادق نه مخکې په وخت کې دومره ګنجائش وي چې د نفلونه وروسته وتر وکړل شي؛ نو اول دې د تهجد و نفل وکړي او ددې نه وروسته دې وتر و وکړي[1] او که ځینې ورځ ناوخته راپورته شي او داویره وي چې که په نفلونو کې مشغول شوم؛ نو چیرته وتر رانه قضا نه شي؛ نو په داسې صورت کې دې اول دوتر و درې رکعتونه وکړي او که په صبح صادق کې څه وخت باقي پاتې وي؛ نو نفل دې هم وکړي، د تهجد و د لمانځه یو عادت مقرر ول ښکار دي چې دومره رکعتونه به کوم، بیا که د وخت له وجې کمی زیاتی وشي؛ نو هیڅ نقصان نه شته.

## له وترو وروسته نفل کول بدعت نه دي

**سوال:** ایا د وترو کولو نه وروسته نفل کولی شوا و که نه؟ زید وایي چې د وترونه وروسته نفل کول بدعت دي، ایا د زید دا وینا صحیح ده او که غلطه؟

**جواب:** د وترونه وروسته په ناسته دوه رکعته نفل کول په صحیح احادیثو کې موجود دي،

---

۱ [وتاخیر الوتر الی آخر اللیل لواثق بالانتباه والا قبل النوم ......الخ (درمختار مع تنویر الابصار، کتاب الصلاة ج: ۱ ص: ۳۶۹، طبع ایچ ایم سعید)، وایضاً ویستحب تاخیره الی آخر اللیل ......الخ (هندیة ج: ۱ ص: ۱۱۱ کتاب الصلاة الباب الثامن فی صلاة الوتر طبع رشیدیه کوئته)۔

ځکه دې ته بدعت ویل مشکل دي[۱] خو که دوترونه وروسته نفل کول وغواړئ؛ نوهغه هم په ولاړه کول افضل دي.[۲]

## د وترو نه وروسته د دوو رکعتو نفلو شرعي حیثیت

**سوال:** زه د ستاسو حضراتو نه داپوښتنه کول غواړم چې د ستاسو مسائل او دهغو حل په دویم جلد (۳۳۶) صفحه باندې د وترو نه وروسته دوه رکعته نفلو د کولو په باره کې دا عبارت لیکل شوی دی: اودنبي کریم صلي الله علیه وسلم څخه د وترو نه وروسته دوه رکعته ثابت دي، خوعام معمول یې د وترو نه وروسته د نفلو نه و، له دې وجې چې که څوک د وترو نه وروسته نفل کوي؛ نو دی دې منع نه کړل شي، خو عام خلک دې دا نفل په ناستې باندې وکړي، دا غلطه ده دا نفل هم په ولاړه باندې کول پکار دي،، ددې کړښې دا عبارت چې په ناسته باندې نفل کولو ته یې غلط ویلې دي، ایا په شریعت کې ددې نفلونو په ولاړه باندې د کولو څه خاص حکم شته؟ ځکه چې نفل لمونځ خو په ناسته باندې هم کیږي،خو ثواب به نیم ملاویږي، یا داسې کول مکروه دي؟ یا له سر نه به لمونځ فاسدیږي؟ تاسو په جواب کې لیکلي و چې: په دې عبارت کې واقعي غلطي ده، ددې اصلاح به په نظر ثاني کې وکړل شي ،، امید دی چې تاسو حضراتو به نظر ثاني کړې وي،لهذا فیصله شوې جواب وفرمائې

**جواب:** ما چې کوم ویلي و ددې مطلب دا ووچې د عامو نفلو په شان دا نفل هم اداء کیږي، د خلکو د طرز عمل نه دا ثابتیږي چې هغوی دا نفل په ناسته باندې کول ضروري ګڼي،دا غلطه ده په ناسته باندې کول ضروري مه ګڼی،بیا که غواړي؛ نو په ناسته دې وکړي او که غواړي؛ نو په ولاړه دې وکړي او دا مسئله هم په ذهن کې کینوئ چې په ناسته به نیم ثواب ملاویږي.[۳]

---

[۱] عن ام سلمة رضی الله عنها ان النبی صلی الله علیه وسلم کان یصلی بعد الوتر رکعتین،وقدروی نحوهذا عن ابی امامة وعائشة وغیر واحدمن اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم ((سنن الترمذی ج:۱ص:۱۰۸، وایضًا روایة عائشة مرفوعًابسندصحیح (بخاری ج:۱ص:۱۵۵ابن ماجة ص:۸۳ طحاوی ج:۱ص:۲۰۲وایضًا روایة ثوبان مرفوعًابسندحسن (دارمی ج:۱ ص:۳۱۲ طحاوی ج:۱ص:۲۰۲دارقطنی ج:۲ص:۳۶) وایضًاروایة ابی امامة مرفوعًابسندحسن (طحاوی ج:۱ص:۲۰۲مسنداحمدج:۵ص:۲۶۰)

[۲] ویتنفل مع قدرته علی القیام قاعدًا......وفیه اجر غیرالنبی صلی الله علیه وسلم علی النصف الابعذر۰وفی الشامی ویویده حدیث البخاری من صلی قائمًافهوافضل ومن صلی قاعدًافله نصف اجرالقائم .....الخ(درمختارمع الشامی ج:۲ص:۳۶،۳۷،باب الوتروالنوافل ،مبحث المسائل الستة عشریة)۔

[۳] ویتنفل مع قدرته علی القیام قاعدًا ......وفیه اجرغیر النبی صلی الله علیه وسلم علی النصف الابعذر ۰درمختار وفی الشامی ویویده حدیث البخاری من صلی قائمًا فهو افضل ،ومن صلی قاعدًا فله نصف اجرقائم...الخ (درمختار مع الشامی ج:۱ص:۳۶،۳۷باب الوتر والنوافل ،مبحث المسائل الستة عشریة)۔

## ايا د وترو نه وروسته نفل په ناسته زيات بهتره دي؟

**سوال:** دنفل لمانځه په ولاړه کولو زيات او په ناسته کولو سره لږ ثواب ملاويږي، يو مولوي صاحب وايي چې د وترو نه وروسته دوه رکعته نفل دې د ولاړې په نسبت باندې په ناسته باندې کولو سره زيات ثواب ملاويږي، ځکه چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم دا دوه نفلونه د تهجد په وخت هميشه په ناسته باندې کړي دي، ددې دواړو نفلونوپه باره کې تاسو وفرمايي چې دا په ناسته باندې بهتره دي اوکه په ولاړه ؟

**جواب:** ثواب خو به ددې نفلونو په ناسته باندې نيم ملاويږي [۱] نبي کريم صلي الله عليه وسلم دا نفلونه هيمشه له پاره په ناسته نه دي کړي او بيا دا چې د تهجد په لمانځه کې به د نبي عليه السلام قيام طويل و، له دې وجې به يې نفل کله کله په ناسته کول.

## نفل لمونځ چې شروع کړي؛ نو ايا د ماتولو نه وروسته فرض کيږي

**سوال:** اوريدلي مې دي چې په ناستې سره په نفل کولو باندې نيم ثواب ملاويږي، حالانکې قيام فرض دی، مسئله دا ده چې که په ناسته يې نيت وتاړه او په مينځ کې يې له څه وجې لمونځ مات کړ، اوس دا لازم شو، دې لازم ته موږ فرض ويلی شو اوکه نه؟ که چيرې فرض وي: نو اوس په ناسته باندې اعاده وکړي اوکه په ولاړه؟

**جواب:** په ولاړه باندې دې وکړي، دې ته فرض ويل صحيح نه دي، خونفل لمونځ په شروع سره واجبيږي. [۲]

## نبي کريم صلي الله عليه وسلم به دوه رکعته نفل په ناسته باندې کول

**سوال:** ټول نوافل کوم چې په هر لمانځه کې کيږي په ولاړه باندې کيږي، خو د وترو نه وروسته دوه رکعته نفل حضور صلي الله عليه وسلم اکثر کړي دي، هغه هم په ناسته، ايادا صحيح ده؟

**جواب:** نفل په ناسته باندې جائز دي، دوترو نه وروسته د نبي کريم صلي الله عليه وسلم نه په ناسته باندې نفل منقول دي، خوداسې کله کله شوي دي، هميشه معمول يې نه و. [۳]

---

[۱] ويجوزالتطوع قاعدًا بغيرعذر......الخ(حلبی کبيرج:۱ص: ۲۷۰)وايضًا:اکثرالصحابة ومن بعدهم من اهل العلم على تركها اه،والمحققون من اكابرنا على ان اتيانها قيامًاافضل اه (اعلاءالسنن ج:٦ص:۱۰۹)، ايضًاقلت :الصواب ان هاتين الركعتين فعلهماصلى الله عليه وسلم بعدالوتر جالساً لبيان جوازالصلوة بعدالوتروبيان جوازالنفل جالسًاولم يواظب على ذالک بل فعله مرة اومرتين اومرات قليلة (شرح الكامل للنووى على مسلم ج:۱ص:۲۵۴)

[۲] ولزم نفل شرع فيه....الخ اى لزم المضى فيه حتى اذا أفسده لزم قضاءه ......الخ (شامی ج:۱ص:۲۹)

[۳] وقد ثبت انه عليه الصلوة السلام شفع بعدالوتر روى الترمذى عن ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

## د وترو نه وروسته نفل ضروري نه دي

**سوال:** ایا د تهجد لمانځه نه وروسته د وترو لمونځ اود وترو نه وروسته نفل کول ضروري دي او یوازې وتر کافي دي؟

**جواب:** د وترو نه وروسته نفل ضروري نه وي.[1]

## د حاجت لمانځه طریقه

**سوال:** دحاجت لمانځه څه طریقه ده؟

**جواب:** حضور ﷺ دصلوة الحاجت داطریقه ښودلې ده چې بنده په ښه طریقې سره اودس وکړي اوددې نه وروسته دوه رکعته نفل وکړي د لمانځه نه فارغ شي؛ نودالله تعالی حمداوثناء دې وکړي په رسول الله ﷺ دې درودشریف ولیږي، دمسلمانانوله پاره دې دمغفرت دعا وکړي اود ډیرو توبو او استغفارنه وروسته دې دادعاولولي ,,لااله الاالله الحلیم الکریم سبحان الله رب العرش العظیم الحمدلله رب العالمین.اسالک موجبات رحمتک ومنجیات امرک وعزائم مغفرتک والغنیمة من کل بروالسلامة من کل اثم لا تدع لی ذنباً الاغفرته ولا هماً الافرجته ولا حاجة هی لک رضاً الاقضیتهایاارحم الراحمین.,,[2]

ددې نه وروسته دې دخپل حاجت له پاره ښه په منت زارۍ سره دعاوکړي که صحیح شرطونوسره یې دعاوکړه؛ نوان شاءالله ضروربه قبلیږي.

## صلوة حاجت څنګه وکړل شي؟ او غوره وخت یې کوم دی؟

**سوال:** دصلوة حاجت دکولو څه طریقه ده؟ څومره رکعتونه دي؟ او د کولو افضل وخت کوم یودی؟

**جواب:** د صلوة حاجت دوه رکعته دي، دوه رکعته وکړه او د الله تعالي حمد او ثناء وکړه بیا درود شریف ووایه، بیا د ټولو مسلمانانو د ښېنلو له پاره دعا وغواړه او بیا د خپل حاجت له

---

...پقیه د تیر مخ].. ام سلمة انه علیه السلام کان یصلی بعدالوتر رکعتین وزاد ابن ماجة خفیفتین وهوجالس (حلبی کبیرج:۱ص:٤٢٤) ،ایضًا:هذا الحدیث اخذ بظاهره الاوزاعی واحمدفیماحکاه القاضی عنهما فاباحا رکعتین بعدالوترجالسًا،وقال احمد:لا افعله ولا امنعه من قوله ،قال :وانکره مالک،قلت :الصواب ان هاتین الرکعتین فعلهماصلی الله تعالی علیه وسلم بعدالوترجالساً لبیان جوازالصلوة بعدالوتر وبیان جوازالنفل جالسًا، ولم یواظب علی ذالک بل فعله مرة اومرتین اومرات قلیلة اه (شرح الکامل للنووی علی الصحیح المسلم ج:۱ص:٢٥٤کتاب صلوة المسافرین وقصرها باب صلوة اللیل وعددرکعات النبی صلی الله علیه وسلم)

[1] والنفل فی اللغة:الزیادة ،وفی الشریعة :زیادة عبادة شرعت لنالاعلینا (شامی ج:۲ص:۳،باب الوتروالنوافل)

[2] ترمذی ج:۱ص:۱۰۸ماجاء فی صلاة الحاجة ،طبع قدیمی کتب خانه)_

پاره دعا وغواړه، يوه دعا په حديث كې راغلې، هغه دې په فضائل نماز كې وكتل شي.[1]

## ايا صلوة حاجت د خپلو ټولو حاجتونو له پاره كولى شو؟

**سوال:** يو كال مخكې زه د خپلې مور د طبيعت د خرابيدو له وجې پريشانه شوم او ما د الله تعالى په حضور كې دوه ركعته صلوة حاجت وكړ، بيا به ما مسلسل هميشه كول، خواوس صورت حال دادى چې اوس زه د الله تعالى نه د خپل ټول حاجتونو له پاره دعا غواړم، ايا دا صحيح دي؟

**جواب:** د الله تعالي نه خپل ټول حاجتونه غوښتل پكار دي، ددې د نه صحيح كيدو شك ولې راغى؟![2]

## صلوة حاجت تر كومه پورې كول پكار دي؟

**سوال:** ايا د حاجت ركعتونه تر هغه وخته پورې كول پكار دي تر څو پورې چې حاجت نه وي پوره شوى؟

**جواب:** هو! تر څو پورې چې حاجت نه وي پوره شوى مسلسل غوښتل پكار دي او كه د غوښتلو له پاره صلوة حاجت هم كوى؛ نو نورٌ على نور به وي.[3]

## د صلوة حاجت ركعتونه كول پريږدئ

**سوال:** كه چيرې زما سره وخت نه وي او ماته د پوره حاجت لمونځ كول مشكل وي، په داسې صورت كې ماته د حاجت لمونځ كول ډير زيات مشكل وي، كه چيرې زه د دې حاجت لمونځ كول پريږدم او يوازې د يو حاجت له پاره يې د حاجت په موقع باندې وكړم؛ نو څه ګناه خو به

[1] عن عبدالله بن ابى اوفى رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :من كانت له الى الله حاجة او الى احد من بنى آدم فليتوضاوليحسن الوضوء ثم ليصل ركعتين ثم ليثن على الله تعالى وليصل على النبى صلى الله عليه وسلم ثم ليقل لا اله الا الله الحليم الكريم ،سبحان الله رب العرش العظيم ،الحمدلله رب العالمين ،اسالك موجبات رحمتك ،وعزائم مغفرتك ،والغنيمة من كل بروالسلامة من كل اثم ،لاتدع لى ذنباالا غفرته ،ولاهما الا فرجته ولاحاجة هى لك رضًا الا قضيتها ياأرحم الرحمين (جامع ترمذى ج:١ص:٦٣باب ماجاء فى صلاة الحاجة ،طبع رشيديه ساهيوال ،ايضًا:فتاوى شامى ج:٢ص:٢٨٠،ايضًا:فضائل نمازص:١٤فضائل اعمال ص:٣٠٢)

[2] واذَا سَأَلَكَ عِبَادِى عَنِى فَإِنِى قَرِيْبٌ أُجِيْبُ دَعْوَةَ الداع اذا دعان فليستجيبوا لى وليومنوا بى لعلهم يرشدون (البقرة :١٨٦) (ومن المندوبات صلاة الحاجة ......قال مشايخنا:صليناهذه الصلوة فقضيت حوائجنامذكورفى الملتقط ......الخ(شامى ج:٢ص:٢٨،باب الوتروالنوافل ،مطلب فى صلاة الحاجة)

[3] ومن المندوبات صلاة الحاجة ......قال:مشايخنا:صليناهذه الصلاة فقضيت حوائجنامذكورفى الملتقط والتجنيس ......الخ (شامى ج:٢ص:٢٨ باب الوتروالنفل ،مطلب فى صلاة الحاجة)

نه ملاویږي؟ځکه چې د حاجت رکعتونه اوس زما په ترتیب کې شامل شوي دي او ایا الله تعالي به زما ددې رکعتونو په پرېښودو سره په مابانديې رحم او کرم کوي، اوس زما والده هم تقریبا صحیح شوې ده.

**جواب:** نماز حاجت نفلي لمونځ دی که چیری یو سړی یې همیشه کوي او خپل معمول یې جوړ کړي؛ نو ډیر ښه ده، په نه کولو سره یې څه ګناه نه شته.[۱]

## صلواة تسبیح سره د ګناهونو معافي

**سوال:** صلوة تسبیح سره مخکیني وروستني،لوی واړه، نوي، زاړه، قصدا یا خطاسره ټول ګناهونومعاف کیږي، ایا داحدیث صحیح دی؟

**جواب:** ځینې محدثین دې ته صحیح وايي اوځینې ضعیف.[۲]

## په صلوة تسبیح سره ټول ګناهونه معاف کیږي

**سوال:** په کتاب کې یې د صلوة تسبیح په باره کې لیکلي دي چې ددې په کولو سره ټول ګناهونه معاف کیږي،ددې تصدیق هم وکړئ!

**جواب:** دصلوة تسبیح په باره کې ذکر شوي روایاتو په باره کې اګر چې کلام شوی دی، خو في نفسه دا روایات د قبلولو لائق دي او د پخوا زمانې نه صلوة تسبیح د اکابرینو په معمول کې شامل دی؛ له دې وجې دا ضرور کول پکار دي.[۳]

## د صلوة تسبیح که په یورکن کې هیر شي؛ نو د لمانځه کولو حکم

**سوال:** ایا که چیرې یو سړی په صلوة تسبیح کې چې کوم خاص تسبیح لوستل کیږي د لمانځه په وخت کې ددې تعداد هیر شي یا په سجده کې د سبحان ربی الاعلی په ځای هغه تسبیح لوستل شروع کړي، یعنې په لسو کې یو ځل هم پوره ونه وايي؛ نو پته به ولګیږي چې سبحان ربی الاعلی ووايي او بیا وروسته پوره لمونځ اداء کړي؟

---

[۱] ومن المندوبات صلاة الحاجة ......قال:مشايخنا:صليناهذه الصلاة فقضيت حوائجنامذكورفى الملتقط والتجنيس ......الخ (شامي ج:۲ص:۲۸ باب الوتروالنفل ،مطلب فى صلاة الحاجة)

[۲] والحديث فى صلوة التسبيح مختلف فيه قيل ضعيف وقيل انه حسن وهوالمختارعن جمهورالمحدثين ......الخ(حاشيه عرف الشذى على الترمذى ج:۱ص:۱۰۹) ۰وايضًا وبالجملة لم يذهب احدمن قدماء المحدثين الى وضعه وبطلانه وانماذهب جمهرهم الى التصحيح او التحسن ولوكان ضعيفًا لكفى حجة فى باب الفضائل ......الخ (معارف السنن شرح ترمذى ج:٤ص:۲۸۵)۔

[۳] (واربع صلاة التسبيح)يفعلهافى كل وقت لا كراهة فيه او فى كل يوم اوليلة مرة والا ففى كل اسبوع اوجمعة اوشهراو العمر،وحديثهاحسن لكثرة طرقة ،ووهم من زعم وضعه وفيها ثواب لا يتناهى ......الخ (شامي ج:۲ص:۲۷)

**جواب:** لمونځ يې کيږي، دا تسبيح که چيرې په يو رکن کې هير شي؛ نو په دويم کې دې پوره کړي مثلاً: په رکوع کې هير شي؛ نو په سجده کې دې شل ځله ووايي.[1]

## د صلوة تسبيح څه طريقه ده؟

**سوال:** په مختلفو کتابونو کې د صلوة تسبيح د اداء کولو مختلفې طريقې دي، خو لږ شان فرق لري، سړی چې کومه طريقه هم خپله کړي؛ نو په دې سره لمونځ اداء کيږي، حالانکې زه دا ګڼم چې يوازې دا مخصوص تسبيح (۳۰۰) ځله مکمل کول پکار دي.

**جواب:** ته ښه پوهيږې د صلوة تسبيح دوه طريقې يې ليکلې دي او دواړه صحيح دي.[2]

## په صلوة تسبيح کې تسبيح په دويم رکعت کې څنګه ويل کيږي؟

**سوال:** په صلوة تسبيح کې دا مخصوص تسبيح په دويم رکعت کې د التحيات نه وروسته ويل شي اوکه مخکې؟ او الله اکبر ويلو او د پاڅيدو نه پرته الله اکبر ووايي لکه څنګه چې په اول رکعت کې د الله اکبر نه پرته پاڅيدل وي؟

**جواب:** ددې تسبيح د ويلو نه وروسته التحيات ووايه او اول او دويم رکعت کې د تسبيح ويلو نه وروسته له تکبير پرته پاڅه.[3]

---

[1] قال الملاعلي فى شرح المشكوة :مفهومه انه ان سها ونقص عددًا من محل معين ياتى به فى محل آخرتكملة للعددالمطلوب ......الخ (شامى ج:۲ص:۲۷باب الوتروالنوافل ،مطلب فى صلاة التسبيح)

[2] الكيفية هى التى رواها الترمذى فى جامعه عن عبدالله بن المبارك احداصحاب ابى حنيفة الذى شاركه فى العلم والزهد والورع وعليهااقتصرفى القنية وقال انهاالمختارمن الروايتين......الخ (شامى ج:۲ص:۲۷طبع سعيد)، طريقه اول: عن ابى رافع قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم للعباس :ياعم !الا اصلک الا احبوک ،الا انفعک؟ قال: بلى يارسول الله !قال ياعم !صل اربع ركعات تقرأ فى كل ركعة بفاتحة الكتاب وسورة ،فاذا انقضت القرأة فقل:الله اكبر والحمدلله وسبحان الله خمس عشرة مرة قبل ان تركع ،ثم اركع فقلها عشرًا ،ثم ارفع راسک فقلهاعشرًا،ثم اسجد فقلها عشرًا ،ثم ارفع راسک فقلهاعشرًا ،ثم اسجدفقلهاعشرًا،ثم ارفع راسک فقلهاعشرًا قبل ان تقوم فذالک خمس وسبعون فى كل ركعة ،وهى ثلاث مائة فى اربع ركعات ......الخ (جامع ترمذى ج:۱ص:٦٣باب ماجاء فى صلوة التسبيح) (طريقه دوم: حدثنا احمد بن عبدة الضبى نا ابووهب قال:سالت عبدالله بن المبارک عن الصلوة التى يسبح فيها قال:يكبرثم يقول سبحانک اللهم وبحمدک ......ثم يقول خمس عشرة مرة سبحان الله والحمدلله ولا اله الا الله والله اكبر،ثم يتعوذ ويقرأ بسم الله الرحمن الرحيم وفاتحة الكتاب وسورة ،ثم يقول عشرمرات سبحان الله والحمدلله،ثم يركع فيقلهاعشرًا ،ثم يرفع راسه فيقولها عشرًا،ثم يسجدفيقولهاعشرًا،ثم يرفع راسه ويقولهاعشرًا،ثم يسجدالثانية فيقولها عشرًايصلى اربع ركعات على هذا،فذالک خمس وسبعون تسبيحة فى كل ركعة ......الخ (جامع الترمذى ج:۱ص:٦٤،باب ماجاء فى صلوة التسبيح)

[3] وفى الجلسة بينها عشرًا عشرًا بعدتسبيح الركوع والسجود...الخ (شامى ج:۲ص:۲۷باب الوتر والنوافل)

## په تیاره کې تهجد او صلوة تسبیح کول

**سوال:** د شپې په کمره کې له څه رڼا پرته هریو لمونځ چې وي یعنې تهجد، یا صلوة تسبیح اوداسې نور... اداء کیږي او که څراغ لګول لازمي دي؟ ځکه چې زه دا لمونځ په پټه باندې اداء کول غواړم، له دې وجې په کمره کې رڼا وغیره نه بلوم.

**جواب:** رڼا کول ضروري نه دي، که قبلې ته دې مخ صحیح وي: نو په تیاره کې یې هم کولی شې.[1]

## د صلوة تسبیح د لمانځه په جمعې سره د اداءکولو شرعي حیثیت

**سوال:** زموږ د محلې په مسجد کې د هرې پانشنبې(زیارت) په ورځ د ماسخوتن د لمانځه نه وروسته باقاعده د اقامت سره په جهرا صلوة تسبیح کیږي، داسې کول د فقه حنفي په اعتبار سره څنګه دي؟ او د دې امام پسې لمونځ کول څنګه دي؟

**جواب:** د صلوة تسبیح لمونځ په جمعې سره کول بدعت او مکروه دی، دې امام ته دې وویل شي چې آینده ددې نه توبه وباسي او لمونځ دده پسې جائز دی که نه؛نومکروه تحریمي دی.[2]

## ایا د صلواة تسبیح څه خاص وخت شته؟

**سوال:** دصلوة تسبیح له پاره څه مقرره ورځ یاوخت شته؟

**جواب:** دصلوة تسبیح له پاره څه ورځ یاوخت مقررنه دی،که توفیق وي؛ نوهمیشه یې کوئ، ګني چې په کومه ورځ درته موقعه ملاوشي کوئ یې اود مکروه وختونونه پرته دشپې ورځې چې کله وغواړئ کوئ،البته دزوال نه وروسته افضل دی، یابیادشپې،په خاص ډول دتهجدوپه وخت کې.[3]

## د صلوة تسبیح جمعه بدعت حسنه نه ده؟

**سوال:** دډیرتحقیق نه وروسته هم راته دا پته ونه لګیده چې صلوة تسبیح کله په جمعه هم

---

[1] لایجوزلاحد اداء فریضة ولا نافلة ......الا متوجها الی القبلة ......الخ (عالمگیری ج:۱ص:۶۳)

[2] التطوع بالجماعة اذاکان علی سبیل التداعی یکره ......الخ (عالمگیری ج:۱ص:۸۳) ایضًا:واعلم ان النفل بالجماعة علی سبیل التداعی مکروه علی ماتقدم ماعدا التراویح (حلبی کبیرص:۴۳۲ ایضًا:فتاوی شامی ج:۲ص:۴۹)

[3] واربع صلوة التسبیح یفعلها فی کل وقت لا کراهة فیه اوفی کل یوم اولیلة مرة والا فی کل اسبوع اوجمعة اوشهر اوالعمر وحدیثهما حسن لکثرة طرقه ووهم من زعم وصنعه وفیها ثواب لایتناهی ..الخ (شامی ج۲ ص۲۷) وقال الملاعلی فی شرح مشکوة مفهومه انه ان سها ونقص عددا من محل معین یاتی به فی محل آخر تکملة للعدد المطلوب....الخ (شامی ج۲ ص۲۹ باب الوتر والنوافل مطلب فی صلوة التسبیح.....وقال المعلی: یصلیهاقبل الظهر......الخ (شامی مطلب فی صلوة التسبیح ج:۲ص:۲۷)_

شوی دي، ایا دانفل لمونځ په جمعې سره هم کیږي او که دافعل ، ،بدعت حسنه، ،شمیرلوسره دا جائز ګرځېدلی شي؟

**جواب:** دحنفیه په نزدباندې دنفلوجمعه مکروه ده،هرکله چې مقتدیان ددریونه زیات وي،همدغه حکم دصلواة تسبیح هم دی، ددې جمعه بدعت حسنه نه ،بلکې بدعت سیئه ده.[1]

## د صلوة تسبیح جمعه جائز نه ده

**سوال:** دصلوة تسبیح په باره کې راته ارشادوفرمایئ،چې په جمعې سره یې کول جائزدي اوکه غلط؟ زه اوزماډیرزیات پاکستاني ملګري دترکي ملګرو سره تقریبادپنځوکلونوراهیسې په کیمپ کې په جمعه اداکوو، دهمدې کال (۱۵) شعبان دشب برات په شپه زمونږ یوملګري صوفي صاحب اعتراض وکړچې: دنبي کریم ﷺ څخه صلوة تسبیح په جمعه ثابت نه دي اونه دحضور ﷺ ددې په باره کې فرمان شته چې په جمعه یې اداکړئ: نوبیامونږ ته هم په جمعه اداکول پکارنه دي، بلکې یوازې یوازې یې کول پکاردي ، ،باجماعت کولوزمونږ مقصدیوازې دا وي چې کوم ان پړه ملګري ترتیب وار (۷۵)ځله تسبیح ویلی نه شي هغوی هم اداکړل شي.

**جواب:** شریعت چې عبادت په کوم اندازکې مشروع کړی دی، هغه په هغې طریقې سره اداکول مطلوب دي، شریعت پنځه وخته لمونځ او دجُمعې او اخترونولمونځ په جمعه اداکولوحکم ورکړی دی، خو نوافل یې انفرادي عبادت ګرځولی دی، ددې له وجې نفلي لمونځ (که څه هم صلوة تسبیح وي یابل څه) په جمعه اداکول دشریعت دمنشا نه خلاف دي،له دې وجې فقهاوو حضراتو دنفل جمعه (چې مقتدیان په کې د دوو نه زیات وي) مکروه لیکلي دي اوپه خاصو شپوکې اجتماعي لمونځ اداکول یې بدعت ګرځولي دي[2]،ددې له وجې صلوة التسبیح په جمعې سره اداکول صحیح نه دي اوتاسوچې کوم مصلحت لیکلی دی هغه دالتفات لائق نه دی، دچاچې دصلوة تسبیح دکولوشوق وي، هغوی ته ددې کلماتو یادول اوپه ترتیب سره زده کول څه ګران دي؟

---

۱ ] ولا یصلی الوترولا التطوع بجماعة خارج رمضان ای یکره ذلک علی سبیل التداعی بان یقتدی اربعة بواحدة کمافی الدرر (قوله علی السبیل التداعی)هو ان یدعو بعضهم بعضا کمافی المغرب وفسره الوافی بالکثرة وهو لازم معناه قوله اربعة بواحدة امااقتداء واحدبواحداواثنین بواحدفلایکره وثلاثة بواحدفیه خلاف بحرعن الکافی (ردالمحتارعلی درالمختارج:۲ص:۴۹مطلب فی کراهة الاقتداء فی النفل علی سبیل التداعی)۔

۲ ]وبعدذلک فالصلوٰة خیرموضوع مالم یلزم منهاارتکاب کراهة ،واعلم ان النفل بالجماعة علی سبیل التداعی مکروه ......فعلم ان کلا من صلاة الرغائب......بالجماعة بدعة مکروهة (حلبی کبیرص:۴۳۲طبع لاهور)

# د استخارې حقیقت

**سوال:** حدیث شریف کې دي چې استخاره کول د مومن خوش بختي ده او نه کول بدبختي ده او د استخارې طریقه یې داښودلې ده چې انسان دې دوه رکعته نفل لمونځ وکړي او بیا دې د استخارې دعا وکړي، زما سوال دادی چې د نفل کولو او دعا غوښتلو نه وروسته دې انسان د خپل مقصد له پاره روان شي د کوم له پاره یې چې استخاره کړې وي؟ مثلاً: یو کس یو کور اخیستل غواړي، ایا هغه د استخارې نه وروسته د کور باره کې خبره وکړي یا دا چې د الله تعالی له طرف نه ورته د استخارې د جواب څه اشاره ورته په خوب کې ملاوشي، یا زړه کې یې داسې خیال پیدا شي؛ نو د هغې نه وروسته د کور اخیستلو له پاره ووځي، ډیر عالمان وایي چې کوم کار یا مقصد وي، هغه له پاره دې انسان درې یا اووه ورځې استخاره وکړي، د غه دوران کې خو یا به هغه خوب ووینې ،یا به یې الله تعالی زړه کې داسې خیال پیدا کړي چې دا کار وکړه یا یې مه کوه، خو که چیرې داسې وي؛ نو بیا د خوب وغیره ذکر په حدیث کې ولې نه شته؟ ما ته دیو جماعت یو سړي وویل چې خوب وغیره هیڅ نه راځي، وروسته ته د خپل مقصد له پاره استخاره وکړه او بیا د هغه مقصد له پاره روان شه، که د الله تعالی خوښه وي؛ نو هغه مقصد به تا ته سمدستي حاصل شي، ګني څه داسې بند به په کې واچوي چې ته به پوه شې، چې الله تعالی ته هم دا منظور ده چې دا کار و نه شي، په هر حال تاسو بیان کړئ، مهرباني.

**جواب:** د استخارې حقیقت د الله تعالی نه خیر غوښتل او خپله معامله د الله تعالی ته حواله کول دي، یعنې که چیرې دا بهتر وي؛ نو الله تعالی دې وکړي،که نه وي؛ نو ختم دې کړي، د استخارې نه وروسته خوب لیدل ضروري نه دي، بلکې زړه کې خیال پیدا کیدل کافي دي، د استخارې نه وروسته چې د زړه کوم طرف ته رغبت وي، هغه اختیارول پکار دي، الله دې نه کړي که چیرې د کار کولو نه وروسته داسې محسوس شي چې دا ښه و نه شو؛ نو داسې وګنئ چې د الله تعالی په علم کې هم دی کې ښه والی دی ځکه چې ځینې شیان په ښکاره باندې په نظر ښه ښکاري، خو په حقیقت کې هغه زموږ له پاره ښه نه وي او ځینې بد ښکاري، خو هم هغه کې زموږ له پاره ښه والی وي.

غرض دا چې د استخارې حقیقت د الله تعالی په فیصلو باندې مکمل توکل او رضامندي ښکاره کول دي.[1]

---

۱ ] وعن جابر قال: کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یعلمنا الاستخارة ای طلب تیسر الخیر فی الامرین من الفعل او الترک من الخیر وهو ضد الشر فی الامور ای التی نرید الاقدام علیها مباحة کانت او عبادة ......ویمضی بعد الاستخارة لماینشرح له صدره انشراحًا خالیًا عن هوی النفس فان لم ینشرح لشیء فالذی یظهر انه یکرر الصلاة حتی یظهر له الخیر قیل الی سبع مرات (مرقاة شرح مشکوة ج:۲ص:۱۸۷،باب التطوع)۔

## د اهمو کارونو باره کې استخاره

**سوال:** د ژوند د ټولو اهمو کارونو مخکې ایا استخاره کول واجب دي؟

**جواب:** استخاره واجب نه ده، البته اهمو کارونو باره کې استخاره کول مستحب دي، حدیث کې دي: **عن سعد قال: قال رسول الله ﷺ: من سعادة ابن آدم رضاه بما قضى الله له، ومن شقاوة ابن آدم ترکه استخارة الله ومن شقاوة ابن آدم سخطه بما قضى الله له.** (مشکوة ص۴۵۳)

**ترجمه:** دابن ادم له نیکبختي نه دادي چې نوموړی په هغه څه خوښ شي دکوم باره کې چې الله تعالی دهغه له پاره فیصله کړې وي اودابن ادم بدبختي دې کې ده چې هغه دالله تعالی دقدر او قضا په فیصلې باندې خفه وي.(مشکوة ص ۴۵۳ بروایت مسنداحمدوترمذی)

یوبل حدیث کې دي: **من سعادة ابن آدم استخارته الى الله ومن شقاوة ابن آدم ترکه استخارة الله.**(مستدرک حاکم ج۱ ص ۵۱۸)

**ترجمه:** دالله تعالی نه استخاره کول دابن ادم له پاره نیکبختي ده اودالله تعالی نه استخاره پریښودل بدبختي ده.

## د نذر(منښتې) نفل کوم وخت کې اداکړل شي؟

**سوال:** ماویلي و چې اې الله تعالی! که زه په امتحان کې کامیاب شوم؛ نو(۱۰۰)رکعته نفل به اداکوم،زهٔ کامیاب شوم، تاسوراته ووایئ چې ددې (۱۰۰)رکعتونفلوله پاره څه وخت شته یاچې کله مې خوښه وي اداېې کړم؟

**جواب:** کله چې موخوښه وي اداکولی يې شئ په شرط ددې چې مکروه وخت نه وي اود سهار او مازدیګرنه وروسته يې هم نه شئ کولی.[1]

---

۱ ] قال ابوجعفر:ولایصلی احدعندطلوع الشمس ،وعندالزوال ،وعندالغروب قال احمد:ثلاثة اوقات لا یصلی فیهانفل ولافرض :عندطلوع الشمس ،وعندالزوال وعندالغروب ...... ووقتان لایصلی فیهمانفل،ویصلی فیهما الفرض بعدالعصرحتی تغرب الشمس،وبعدالفجرحتی تطلع الشمس، فاما الصلاة فی الاوقات الثلاثة فالاصل :ماروی عن النبی صلی الله علیه وسلم فی الآثارالمتواترة نهی عن الصلاة فی هذه الاوقات الثلاثة منهاحدیث ابن عمررضی الله عنهماعن النبی صلی الله علیه وسلم :لایتحری احدکم فیصلی عندطلوع الشمس . ولاعندغروبها،فانهاتطلع بین قرنی شیطان (شرح مختصرالطحاوی ج:۱ص:۵۲۸کتاب الصلاة) •وفیه ایضًا:واما بعدالعصر،بعدالفجرفانمانهی فیهماعن النوافل والنذور......وذالک لماروی ابوسعیدالخدری •ومعاذبن عفراء،وابن عمر،وابوهریرة رضی الله عنهم ان النبی صلی الله علیه وسلم نهی عن صلاتین بعدالصبح وبعدالعصر...... قال ابن عباس رضی الله عنهما......ان رسول الله صلی الله علیه وسلم نهی عن الصلوة بعدالفجرحتی تطلع الشمس وبعدالعصرحتی تغرب (شرح مختصرالطحاوی ج:۱ص:۵۳۶،۵۳۷)_

## د استخارې کولو شرعي طریقه

**سوال:** د استخارې کولو صحیح طریقه څه ده؟ او د اسلام په نزد د استخارې څه طریقه ده؟

**جواب:** دوه رکعته لمونځ کولو سره دې داستخارې دعا وویل شي، په حدیث شریف کې د استخارې کولو ترغیب ورکړل شوی دی د استخارې نه وروسته الله تعالی په کار کې بهتروالی پیدا کوي[1]

## د استخارې کولو طریقه او بل دا چې په استخاره کې څه شی په نظر راتلل ضروري دي؟

**سوال:** ما ته د استخارې په باره کې لاندې معلومات پکار دي

۱- د استخارې کولو له پاره د اجازې ضرورت شته او که نه؟

۲- د یو مقصد له پاره څو ځله استخاره کول پکار دي؟

۳- ایا په استخاره کې د څه شي په نظر راتلل ضروري دي او که نه؟

**جواب:** د استخارې له پاره له چانه اجازه غوښتل ضروري نه دي، د کوم کار له پاره چې اراده وي، دوه رکعته لمونځ کول او د استخارې دعا کول پکار دي، درې ورځې اوو ورځې یا ددې نه زیاته استخاره کیږي، په استخارې کې په خوب کې د یوشي راتلل ضروري نه دي، بلکې چې استخاره وکړئ او د کوم کار نه چې دې زړه مطمئن شي؛ نو هغه کول پکار دي.[2]

## د استخارې د لمانځه طریقه، نیت او کوم سورتونه پکې ولوستل شي؟

**سوال:** داستخارې د لمانځه طریقه کومه ده؟ ددې نیت څنګه کول پکار دي؟ او د لمونځ په دوران کې کوم کوم ایاتونه لوستل پکار دي؟ او د تهجد د لمونځ کولو څه طریقه ده؟ او په دې کې کوم کوم ایاتونه لوستل پکار دي؟

**جواب:** د استخارې لمونځ دوه رکعته نفل دی، ددې نه وروسته حمد او ثناء او استغفار کیږي او د استخارې دعا ویل کیږي، هغه مشهوره دعا ده، په یو کتاب (مثلاً: بهشتي زیور) کې دې وکتل شي[3] دتهجد دلمانځه له پاره څه خاص طریقه نه شته(۱۲، ۱۰، ۸، ۶، ۴) څومره رکعتونه چې کولی شي ودې کړي او په دې کې چې کوم صورتونه ده ته یاد وي؛ نو هغه دې ووایې.

---

[1] تفصیل او حوالو د پاره مخکنی صفحه اوګورئ!

[2] تفصیل دپاره اوګورئ ص: ۲۱۹ داستخارې حقیقت،،

[3] داستخارې دمونځ طریقه داده چې دوه رکعته نفل اوکړي، ددې نه پس ښه دزړه په اخلاص سره دادعا اووائي: اللهم انی استخیرک بعلمک واستقدرک بقدرتک واسالک...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## استخاره د قرآن او سنت نه ثابته ده

**سوال:** استخاره څه شی دی؟ ایا چیرته ددې عمل بنیاد د قرآني احکامو یا د رسول الله صلي الله علیه وسلم د سنتو نه ثابته ده؟ یا ددې څه بل مذهبي او عملي منطق موجود دی؟

**جواب:** د استخارې معنا ده: دالله تعالی سره په څه معامله کې مشوره کول، ددې تعلیم نبي کریم صلي الله علیه وسلم فرمایلی دی چې کله چاته څه اهمه معامله راپېښه شي؛ نو دوه رکعته لمونځ دې وکړي، دالله تعالی حمد او ثناء او د درود شریف نه وروسته دې دا دعا ووايي(د استخارې دعا مشهوره ده)[1]

## د سنت مطابق دې استخاره وشي

**سوال:** په اسلام کې د هر قسم کار د شروع کولو په سلسله کې چې استخاره کیږي، درې، پنځه،اووه ورځو پورې ، زما سوال دا دی چې که چیرې په استخاره کې څه محسوس نه شي (لکه چې یو شی په نظر راځي یایو شی وښودل شي)؛ نو بیا هغه کاروکړل شي؟ څنګه فیصله وکړل شي؟

**جواب:** د سنتو مطابق دې استخاره و شي (په بهشتي زیور کې ددې طریقه لیکل شوې ده) او بیا کوم طرف ته چې د زړه رجحان وي؛ نو هغه کار دې وکړل شي، ان شاء الله په دې کې به دهغه له پاره خیر او برکت وي، په استخاره کې د یو شي په نظر راتلل ضروري نه دي، د فیصلې له پاره یو طرف ته رجحان کافي دی، سل فیصده اطمینان ضروري نه دی.[2]

---

...بقیه د تیر مخ].. من فضلک العظیم فانک تقدرولا اقدر،وتعلم ولا اعلم ،وانت علام الغیوب ،اللهم ان کنت تعلم ان هذاالامرخیرلی فی دینی ومعاشی وعاقبة امری ،فاقدره ویسره لی ثم بارک لی فیه ،وان کنت تعلم ان هذا الامرشرلی فی دینی ومعاشی وعاقبة امری فاصرفه عنی واصرفنی عنه ، واقدرلی الخیرکان ثم ارضنی به،،اوکله چ هذا الامر،، ته راورسې په کوم چې لکیرجوړشوې دې ددې دلوستلوپه وخت کې به دهغه کارخیال راولي دکوم دپاره چې استخارکولی شی، ددې نه پس په صفا بستره باندې دقبلې طرفته مخ کړې په اوداسه به ویده شي په دې وخت چې کوم خیال په مضبوطتیاراشی هم هغه به بهتردی هم هغه کول پکاردي (جنتی کالی ،حصه دوم ص:۱۳۵ ،استخارې دلمونځ بیان)

[1] عن جابربن عبدالله قال:کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یعلمنا الاستخارة فی الامورکلها کما یعلمنا السورة من القرآن الکریم ،یقول :اذاهم احدکم بالامرفلیرکع رکعتین من غیرالفریضة ثم لیقل :اللهم انی استخیرک بعلمک واستقدرک بقدرتک ،واسالک من فضلک العظیم،فانک تقدرولا اقدر،وتعلم ولا اعلم، و انت علام الغیوب،اللهم ان کنت تعلم ان هذاالامرخیرلی فی دینی ومعاشی وعاقبة امری،اوقال:فی عاجل امری وآجله فیسره لی ثم بارک لی فیه عنه واقدرلی الخیرحیث کان ثم ارضنی به ،قال ویسمی حاجته (جامع ترمذی واللفظ له،ج:۱ص:۶۳باب ماجاء فی الاستخارة،ایضًا:فتاوی شامی ج:۲ص۲۶مطلب فی رکعتی الاستخارة)

[2] واذا استخارمضی لماینشرح له صوره وینبغی ان یکررهاسبع مرات..[بقیهٔ حاشیه په راروانه صفحه

## استخاره په دويم ځل کول څنګه دي؟

## او بل دا چې د استخارې جواب راتلل ضروري دي؟

**سوال:** د استخارې د نتيجې په صورت کې د جواب د نه راتللو يا د يو جواب د نه راتللو په صورت کې، ايا دی په دويم ځل کولی شي؟؛ نو ايا يو سړي ته په دويم ځل درخواست کولی شي يا بل چاته رجوع کول پکار دي؟

**جواب:** د استخارې جواب راتلل ضروري نه دي، بلکې د استخارې نه وروسته چې کوم طرف ته د زړه رجحان وي، هغه وکړل شي، درې ورځې، اووه ورځې، څلويښت ورځې هم اکابرينو استخاره کړې ده.[1]

## د خوب په دوران کې باران ليدل

**سوال:** زما د خور رشته د تره په کور کې راغلې وه، اول د خفګان له وجې زړه مطمئن نه و، له دې وجې مور استخاره وکړه، په خوب کې ډير زيات باران راغی د يو عالم نه مې پوښتنه وکړه؛ نو معلومه شوه چې باران د خوشالي اظهار دی، ايا دا خبره صحيح ده؟

**جواب:** هو! صحيح ده.

## ايا د هر عمل نه مخکې استخاره کول ضروري دي؟

**سوال:** ايا د هر عمل نه مخکې استخاره کول ضروري دي؟ يا د يو عمل له وجې د زړه د شک له وجې د اطمينان د نه کيدو په صورت کې استخاره کول څنګه دي؟

**جواب:** پورته مې ليکلي دي چې د اهم کار له پاره استخاره کيږي او استخاره په بل چا باندې نه کيږي، بلکې په خپله د استخارې حکم دی.[2]

## د کاروبار له پاره د استخارې طريقه

**سوال:** زه چې په کومې کارخانې کې ملازمت کوم هغه خلک ملاوټ کوي، زه غواړم چې څه

---

...بقيه د تير مخ].. لماروى ابن السنى عن انس قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :يانس !اذا هممت بامر فاستخرربک فيه سبع مرات، ثم انظرالى الذى سبق الى قلبک فان الخيرفيه (حلبى كبيرص:۴۳ تتمات من النوافل ،طبع سهيل اكيدمى لاهور)

[1] وينبغى ان يكررهاسبعًالماروى ابن السنى يانس!اذاهممت بامرفاستخرربک فيه سبع مرات ثم انظرالى الذى سبق الى قلبک فان الخيرفيه (شامى ج:۲ص:۲۷باب الوتروالنوافل ،مطلب فى صلاة التسبيح)

[2] عن جابربن عبدالله رضى الله عنه قال:كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يعلمناالاستخارة فى الامر كلها كما يعلمناالسورة من القرآن يقول:اذاهم احدكم بالامرفليركع ركعتين من غيرالفريضة ثم ليقل:اللهم انى استخيرک..الخ(جامع ترمذى ج:۱ص:۶۲باب ماجاءفى الاستخارة،ايضًا:ردالمحتارج:۲ص:۲۶باب الوتروالنوافل)

لږ ډیر رقم د کارخانې نه ملاوشي او په دې سره خپل کاروبار وکړم، ایازه داسې استخاره کولی شم چې کوم یو کاروبار وکړم؟ چې هغه زما او زما د اولاد له پاره حلال رزق او خیر او برکت والاوي؟

**جواب:** استخاره کول پکار دي چې زه فلانکی کاروبار وکړم او که نه.[1]

## د بیعت کولو استخاره

**سوال:** ایا د یو پیر صاحب نه د بیعت کولو له پاره هم استخاره کیږي؟

**جواب:** د یو بزرگ نه د بیعت کولو له پاره هم استخاره کول پکار دي.[2]

## په یو وخت کې د ډیرو کارونو له پاره استخاره کول

**سوال:** ایا د استخارې لمونځ یوازې د یو کار له پاره کیږي؟ که چیرې په یو وخت کې ډیرو امور لاحق وي؛ نودټولو له پاره یوازې یو ځل نفل کول او د استخارې په دوران کې په مقررو ځایونو باندې د ډیرو کارونو په باره کې خیال کیږي؟

**جواب:** د ډیرو کارونو تصورهم کیږي.

## ایا د واده له پاره استخاره کول ضروري دي؟

**سوال:** نن سبا د واده په معامله کې خلکو ته چې کله د انکارله پاره بانه نه ملاویږي؛ نو دا وایي چې موږ استخاره کړې وه چې په هغه کې پته لګیدلې ده چې دا واده صحیح نه ثابتیږي او له دې وجې انکار کیږي، ایا دا صحیح ده؟ زه دا پوښتنه کول غواړم چې د واده په معامله کې استخاره ضروري ده؟ استخاره څنګه کول پکار دي؟ په خپله کول پکار دي یا د بل په ذریعې سره کول پکار دي او د استخارې د کولو صحیح طریقه څه ده؟

**جواب:** د استخارې کولو طریقه صحیح ده او د واده په معامله کې استخاره کول ضرور پکار ده ددې طریقه په بهشتي زیور کې لیکل شوې ده، ددې مطابق دې عمل وکړل شي.[3]

---

[1] قال الشيخ اسماعيل وفى شرح الشرعة من هم بامروكان لايدرى عاقبته ولايعرف ان الخيرفى تركه او الاقدام عليه فقدامره رسول الله صلى الله عليه وسلم ان يركع ركعتين......فاذافرغ اللهم ......الخ(منحة الخالق على البحرالرائق ج:٢ص:٥٦كتاب الصلاة، بيروت)

[2] ايضاً حواله بالا_

[3] دجنتی کالی عبارت دادې: مسئله ۲:داستخارې دمونځ طریقه داده چې ړومبې دوه رکعته نفل لمونځ اوکړې ددینه پس ښه دزړهٔ داخلاص نه دادعاوئی:اللهم انى استخيرک بعلمک واستقدرک بقدرتک واسالک من فضلک العظيم فانک تقدرولا اقدر،وتعلم ولا اعلم ،وانت علام الغيوب ،اللهم ان کنت تعلم ان هٰذا الامر خيرلى فى دينى ومعاشى وعاقبة امرى فاقدره ويسره لى ،ثم بارک لى فيه ،وان کنت تعلم ان هٰذا الامر شرلى فى دينى ومعاشى وعاقبة امرى فاصرفه عنى ..[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

## د واده وغیره له پاره استخاره کول

**سوال:** د هرکار نه مخکې د یو بزرګ نه استخاره کیږي یا په خپله دې وکړل شي، مثلاً: د واده له پاره یا د مکان، پلاټ د اخیستو له پاره، په تجارت کې د لین دین یا د ملازمت له پاره ځینې خلک مې لیدلي دي چې فال کوي، ځینې خلک په سړک باندې طوطي کینوي، ایا فال نیول د شریعت په لحاظ سره صحیح دي؟ او که نه؟ جواب راکړئ او موږ مشکور کړئ.

**جواب:** د سنت طریقې مطابق استخاره مسنون ده، په حدیث شریف کې ددې ترغیب راغلی دی[1] او فال نیول ناجائز دي.[2]

## ایا د واده له پاره هلک او اینجلۍ دواړو ته استخاره کول پکار دي؟

**سوال:** که چیرې د یو واده په باره کې استخاره کول وي؛ نو هلک والا او اینجلۍ والا کې یوازې یو کس ته استخاره کول پکار دي یا دواړه دې جدا جدا استخاره وکړي؟ او په دواړو صورتونو کې هو کولو سره رشته کیږي؟

**جواب:** هلک والا دې هم وکړي او اینجلۍ والا دې هم وکړي.[3]

## د اشراق لمونځ چې کوم ځای د سهار لمونځ وکړل شي؛ هلته ضروري دي

**سوال:** د سهار لمونځ یې په یو مسجد کې وکړ او بیا د څه کار له پاره د مسجد نه بهر وتل وشول، د اشراق لمونځ په بل مسجد کې یا په کور کې کیږي او که په دغه مسجد کې به ناست وي؟

**جواب:** که چیرې د یو ضرورت له پاره تلل وي؛ نو په بل ځای کې هم اشراق کیږي، که په کور کې یې کوي یا په بل مسجد کې، خو په حدیث شریف کې راغلي دي چې څوك د سهار لمونځ

---

...بقیه د تیر مخ].. واصرفنی عنه ،واقدرلی الخیرحیث کان ثم ارضنی به،،اوکله چې .....هذا الامر،، ته اورسې په کوم چې لکیررا ښکلې شوې دې ددې دوویلوپه وخت به هغه کار په خیال کښې راولې دکوم دپاره چې استخاره کوې ددینه پس به په پاکه بستره باندې قبلې طرفته مخ کولو سره څملې په اودس کښې به اوده شې دغه وخت چې څه خبره په زړه کښې په مضبوطتیاسره راشی هم هغه بهتره ده هغه کول پکاردی (جنتی کالې حصه دوم ص۱۳۵ ، داستخارې دمونځ بیان)

[1] عن جابررضی الله عنه قال:کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یعلمنا الاستخارة فی الامورکما یعلمنا السورة من القرآن ،یقول اذاهم احدکم بالامرفلیرکع رکعتین من غیر الفریضة ثم لیقل :اللهم انی استخیرک بعلمک واستقدرک بقدرتک.....الخ (سنن ترمذی ج:۱ ص۶۲باب ما جاء فی الاستخارة، ایضاً ردالمحتارج۲ ص۲۶ باب الوتر والنوافل)

[2] عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :لاعدوی ولاطیرة ولاهامة ولاصفر.....الخ (مشکوة ص:۳۹۱،باب الفال والطیرة ،الفصل الاول)

[3] اوګورئ پورتنې حاشیه یعنی دجنتی کالی عبارت دادې: مسئله ۲......الخ.

په جوماعت سره وکړي او بیا په خپل ځای باندې ناست وي تردې پورې چې د اشراق وخت راشي او بیا پاڅي دوه یا څلور رکعته د اشراق لمونځ وکړي؛ نو ده ته به د یو حج او د یوې عمرې ثواب ملاویږي[1]

## د شکرانې لمونځ کله اداکول پکاردي؟

**سوال:** دشکرانې دلمونځ له پاره څه مقرروخت شته اوکه نه؟اوداچې ددې تعدادڅومره وي؟ دوه رکعته که څلور؟

**جواب:** نه وخت مقرردی اونه تعداد،خو په مکروه وخت کې نه دی پکار[2]او تعداد د دوو رکعتونه کم پکارنه دی.[3]

## د فرض لمونځونو نه مخکې دستغفاراوشکرانې لمونځ کول

**سوال:** دسهار، ماسپښین اومازدیگرنه مخکې دوه رکعته داستغفاراودوه رکعته دشکرانې لمونځ کول جائزدي اوکه وروسته؟

**جواب:** دالمونځونه دماسپښین اومازدیگرنه مخکې کولوکې، خو هیڅ مشکل نه شته،خو دسهارنه مخکې اودصبح صادق نه وروسته پرته دسهارددووسنتونونه نفلونه کول صحیح نه دي.[4]

## پنځوس رکعته د شکرانې لمونځ څلورڅلور رکعته کولو سره اداکیدای شي

**سوال:** دشکرانې پنځوس رکعته نفل لمونځ اداکول دي؛ نو ایاد دوو، دووپه ځای څلور څلور رکعته نفل لمونځ اداکیدای شي؟

---

[1] من صلى الفجرفى جماعة ثم يذكرالله تعالى حتى تطلع الشمس ،ثم صلى ركعتين كانت له كاجرحجة وعمرة تامة تامة تامة (كنزالعمال ج:۷ص:۸۰۸ ايضًا:مشكوة ص:۸۹باب الذكربعدالصلاة)

[2] وكذاالحكم من كراهة نفل وواجب لغيره ......بعدطلوع فجرسوى سنته لشغل الوقت به (التنوير وشرحه ج:۱ص:۳۷۵) • ايضًا:فصل (وقتان يصلى فيهما الفرض دون النفل اما بعدالعصر وبعد الفجر فانما ينبغي فيهما عن النوافل والنذور وصلوة الطواف ويجوز فيهما فعل الفرض،وذالک لماروى ابوسعيد الخدرى، ومعاذبن عفراء،وابن عمروابوهريرة رضى الله عنهم ان النبى صلى الله عليه وسلم نهى عن صلاتين بعد الصبح وبعدالعصر......وقال ابن عباس رضى الله عنهما:حدثنى رجال مرضيون ،وارضاهم عمر رضى الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم نهى عن الصلاة بعدالفجر حتى تطلع الشمس، وبعد العصرحتى تغرب (شرح مختصرالطحاوى للامام ابوبكرالجصاص الرازى ج:۱ص:۵۳۶،۵۳۷)۔

[3] ځکه چې د دؤو رکعتو نه دکم تعداد لمونځ جائزنه دي: وفى الدرالمختار:وسجدة الشكر:مستحبة به يفتى (قوله به يفتى)هو قولهما واماعند الامام ......وقيل شكرًا تامًالان تمامه بصلاة ركعتين كمافعل عليه الصلوة والسلام يوم الفتح (درمختارمع الردالمحتار،مطلب فى سجدة الشكر ج:۲ص:۱۱۹)۔

[4] ايضاً تيره شوى حاشيه اوگورئ: (وكذاالحكم من كراهة نفل وواجب لغيره ......الخ)۔

**جواب:** کولی يې شئ.[۱]

## د ناوې په پړوني (لوپټې) باندې د شکرانې لمونځ ادا کول

**سوال:** نن سبا يو رسم دی چې کله واده وشي؛ نو اکثر خلک وايي چې دواده په لومړۍ شپه کوم دوه رکعته نفلي لمونځ چې هلک اداکوي، ايا هغه د ناوې په لوپټه باندې جائز دی؟ چې کوم سرې سره يې نکاح شوې وي، يعنې زوم، د ناوې په لوپټې باندې لمونځ کولی شي او که نه؟

**جواب:** په لوپټه باندې لمونځ کول يوازې يو رسم دی، د شکرانې لمونځ د عام معمول مطابق هم ل کيدای شي.[۲]

## د بلاګانو نه د حفاظت او د ګناهونو نه د توبې له پاره کوم لمونځ وکړو؟

**سوال:** ايا زه په دې نيت سره نفل کولی شم چې الله تعالی ما يا زما کور والا د هر قسم بلا، د هر قسم ناروغۍ نه په امن کې وساتي؟ يا زه دخپل امتحان د کاميابي له پاره يا د خپلو ګناهونو دبښنې له پاره نفلونه اداکولی شم؟

**جواب:** که څه کار درپيښ وي په هغه کې داسانې له پاره شريعت ''صلواة حاجت،، ښودلی دی[۳] او که څه ګناه ترې وشي؛ نو د هغه نه د توبې له پاره،،صلواة التوبه،،فرمايلی دی او دا نفلي لمونځونه دي.[۴]

## ايا ښځه تحية الوضو کولی شي؟

**سوال:** که ښځه د پنځه وخته لمونځ پابنده وي؛ نو ايا هغه په پنځو لمونځونو کې تحية الوضو کولی شي؟ او ايا د مازديګر او د سهار دلمونځ نه مخکې تحية الوضو کولی شي؟

**جواب:** دماسپښين ،مازديګر او ماخسوتن نه مخکې کيدلی شي، د صبح صادق نه وروسته د نماز فجر پورې يوازې دسهار سنت کيږي، نور نفلونه صحيح نه دي[۵] په سنتونو کې دتحية الوضو نيت کولو سره هغه هم اداشي[۶] او د ماښام نه مخکې کول ښه نه دي ،ځکه چې دې سره د ماښام په لمانځه کې تاخير کيږي، ځکه دې د ماښام دلمانځه نه مخکې تحية الوضو لمونځ

---

۱ ] قوله والافضل فيهمااى فى صلوة الليل والنهار الرباع ......الخ (شامى ج:۲ص:۱۱ باب الوتروالنوافل)

۲ ] تيره شوى حاشيه اوګورئ: (وكذاالحكم من كراهة نفل وواجب لغيره ......الخ)_

۳ ]تفصيل دپاره اوګوره :جامع ترمذى ج:ص:۱۰۸ ،باب ماجاء فى صلاة الحاجة ،طبع قديمى كتب خانه)_

٤ ] اوګورئ : جامع الترمذى ج۱ ص۹۲، باب ماجاء فى الصلاة عند التوبة، طبع قديمى كتب خانه)_

٥ ] تيره شوى حاشيه اوګورئ: (وكذاالحكم من كراهة نفل وواجب لغيره ......الخ)_

٦ ]قال فى النهر:وينوب عنها كل صلاة صلاها عندالدخول فرضاً كانت اوسنة......الخ (شامى مطلب فى تحية المسجدج:۲ص:۱۸)_

ونه کړل شي[۱]، په هرحال په دې مسئله کې دسړيو اوښځو له پاره يوشان حکم دی.

## تحية الوضود کوم لمانځه په وخت کې کول پکار دي؟

**سوال:** تحية الوضودکوم لمانځه په وخت کې کول پکار دي؟ما دلمانځه په کتاب کې لوستلي دي چې کوم وخت کې نفل لمونځ کول مکروه وي هغه وخت يې کول پکارنه دي، مګرماته بياهم داپته نه لګيږي چې کوم وخت کې تحية الوضووکړم اوکوم وخت کې يې ونه کړم؟

**جواب:** په پنځو وختونوکې دنفلو دکولو اجازه نه شته،دسهارنه مخکې او وروسته، د مازديګر نه وروسته، دلمر د راختلو او غورځيدوپه وخت کې اونصف النهارپه وخت کې، ددې وختونونه پرته چې کله هم تاسواودس وکړئ؛ نوتحية الوضوکولی شئ.[۲]

## که وخت کم وي؛ نوتحية الوضووکړو يا تحية المسجد؟

**سوال:** که يوکس جومات ته ځي اوپه جمعه کيدوکې دوه درې منټه باقي وي؛ نو اياهغه تحية الوضو وکړي ياتحية المسجد؟

**جواب:** ددواړونيت دې وکړي[۳]اوکه په وخت کې ګنجائش وي؛ نود دواړو جداجداکول مستحب دي.

## د ماښام د لمانځه نه مخکې تحية المسجد کول

**سوال:** دحرم اومسجدنبوي ﷺ نه پرته په ټول سعودي عرب کې د ماښام داذان نه لس منټه وروسته لمونځ اداکيږي اوپه دې وخت کې راتلونکي دتحية المسجددوه رکعته نفل اداکوي، موږ حنفيه دوه رکعته تحية المسجد د ماښام داذان وروسته اداکولی شواوکه نه؟ځينې حنفيه وايي چې دلمر د پريوتونه وروسته تاسونفل اداکولی شئ.

**جواب:** دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدباندې دلمرپريوتونه وروسته اودماښام د فرض اداکولونه

---

۱ ]وتعجيل مغرب مطلقًاوتاخيره قدرركعتين يكره تنزيهًا......الخ(درمختارمع الشامي ج:۱ص:۳۶۹ و ايضًا تسعة اوقات يكره فيهاالنوافل ومافى معناهالا الفرائض ......منها مابعدغروب الشمس قبل صلوة المغرب ......الخ(هندية ج:۱ص:۵۳كتاب الصلاة ،الباب الاول)_

۲ ] تسعة اوقات يكره فيها النوافل وما فى معناها لا الفرائض.... منها ما بعد طلوع الفجر قبل صلاة الفجر كذا فى النهاية والكفاية ........ومنها مابعد الفجر قبل طلوع الشمس، قبل صلاة الفجركذا فى النهاية والكفاية........ ومنها مابعدصلاة الفجرقبل طلوع الشمس هكذافى النهاية والكفاية ......ومنها مابعد صلاة العصرقبل التغير.....ومنهامابعدغروب الشمس قبل صلاة المغرب ......الخ(فتاوى عالمگيرى ج:۱ص:۵۲كتاب الصلاة ،الباب الاول الفصل الثالث)_

۳ ]قال فى النهر:وينوب عنها كل صلاة صلاها عندالدخول فرضًاكانت اوسنة......الخ (شامى مطلب فى تحية المسجدج:۲ص:۱۸)_

مخکې نفلونو لوستل ددې له وجې مکروه دی چې دې سره د ماښام په لمونځ کې تاخیر کیږي، ګنې بذات خود په دې کې هیڅ کراهت نه شته[1] ستاسو دلته د ماښام د لمانځه نه مخکې د نفلو معمول دی او په جمعه کې تاخیر کیږي ددې له وجې په تحیة المسجد کولو کې څه حرج نه شته.

## د تحیة المسجد حکم او د اوقاتو تعین

**سوال:** په حدیث شریف کې دي چې کله تاسو مسجد ته ولاړ شي؛ نو هلته دوه رکعته اداء کوئ، ایا دا دوه رکعتونه په مسجد کې د هر لمونځ سره ضروري دي یا په یو نوي مسجد کې د لمونځ یا د چا د روح د ایصال ثواب له پاره لاړ شي؛ نو بیا به یې هم کوي.

**جواب:** سړی چې یو مسجد ته لاړ شي؛ نو دوه رکعته د تحیة المسجد په ارادې سره کول پکار دي، خو شرط دا دی چې لمونځ هم مثلاً: د ماز دیګر نه وروسته د غروب نه مخکې نفل کول صحیح نه دي، دا رنګې د سهار د لمانځه نه وروسته د اشراق نه مخکې نفل کول صحیح نه دي او د نصف النهار په وخت کې نفل کول ممنوع دي، الغرض دا دی وکتل شي چې په داسې وخت کې کول جائز دي او که نه؟[2]

## شب برات کې په جمعه نفل لمونځ جائز نه دی

**سوال:** په تیرشوي شب برات کې په یوجومات کې د ماښام د لمانځه نه وروسته شپږ رکعته لمونځ،دوه دوه رکعته نفل لمونځ په ترتیب باجماعت اداکړل شول او په اخره کې د سوره یاسین تلاوت وکړای شو، بیا اوږده اجتماعي دعا وغوښتل شوه، بیا تقریبا دړې بجې د تهجد نفل هم په جمعه اداکړل شو، دځه کسانو په اعتراض کولو باندې امام صاحب هم ددې نفلو یا د باجماعت په حمایت کې د جمعې په تقریر کې وفرمایل چې دا د حدیث شریف نه ثابت دي او د مشکوة شریف په فلانی فلانی صفحه کې ددې حواله ده، عرض مې دا و چې ددې شب برات د نفلونو د اصل حقیقت په باره کې مو خبرکړئ چې که دا د ځان اداکړی شوي وي؛ نو چې د آینده له پاره منع کړل شي او که نه وي؛ نو چې بیا د آینده هر شب برات باندې دا معمول جوړ کړل شي او ددې دا دا ایکې اهتمام وشي.

---

[1] ایضاً تیره شوی حاشیه (وتعجیل مغرب مطلقًاوتاخیره قدرر کعتین یکره تنزیهًا......الخ) اوګورئ.

[2] (ویسن تحیة المسجدوهی رکعتان)وفی الشامیة:بحزعن الحلیة ثم قال وقدحکی الاجماع علی سنیتهاغیران اصحابنایکرهونها فی الاوقات المکروهة ......الخ(شامی ج:۲ص:۱۸) ،مسالة:الاوقات المنهی عن الصلاة فیها: قال ابوجعفرولایصلی احدعندطلوع الشمس ،وعندالزوال ،وعندالغروب...... فالاصل ماروی عن النبی صلی الله علیه وسلم.... لا یتحری احدکم فیصلی عند طلوع الشمس، ولا عند غروبها، فانها تطلع بین قرنی شیطان، وحدیث عقبة بن عامررضی الله عنه: نهانارسول الله صلی الله علیه وسلم ان نصلی فی ثلاث ساعات وان نقبرفیهن موتانا:عندطلوع الشمس ،وعندالزوال ،وعندالغروب (شرح مختصرالطحاوی ج:۱ص:۵۲۸،۵۲۷)

**جواب:** په شب برات کې اجتماعي نفلونه اداکول بدعت دي[1] امام صاحب چې دمشکوٰة شریف کومه حواله ورکړې ده هغه دهغوی غلط فهمي ده په مشکوٰة شریف کې هیڅ داسې روایت نه شته چې په هغه کې په شب برات کې دباجماعت نفل اداکولو حکم ورکړل شوی وي.

## د نفل لمانځه جمعه

**سوال:** که چیرې په مسجد کې په رمضان المبارک کې د تراویحو نه وروسته په داسې طریقې سره د نفلو جمعه وکړل شي چې حافظ بدلیږي او د مقتدیانو تعداد پنځه شپږ وي او پرته د لاوډ سپیکر نه پوره قرآن واورول شي؛ نو ایا دا طریقه به جائزه وي؟

**جواب:** نفل لمونځ په جمعې سره اداء کول چې مقتدیان درې یا د دې نه زیات وي د احنافو په نزد مکروه دي[2] عام ډول داسې کیدای شي چې کومو حافظانو ته د تراویحو نه وروسته قرآن اورول وي هغوي دې دومره رکعتونه د تراویحو پریږدي،که چیرې امام تراویح ورکوي او مقتدي نفل کونکي وي؛ نوپرته د کراهت نه جائز دي[3] والله اعلم!

# ❖ سجده تلاوت ❖

## د سجدې تلاوت شرائط

**سوال:** ایا دسجدې تلاوت له پاره دهغو ټولوشرطونوپوره کول ضروري دي چې دلمانځه دسجدې له پاره دي (پاک ځای، دکعبې طرف ته مخ کول اوداسې نور...)؟

**جواب:** هو! دلمونځ شرائط دتلاوت دسجدې له پاره ضروري دي.[4]

---

۱ ]ویکره الاقتداء فی صلوة رغائب وبراءة وقدر......الخ وفی الشامیة :قوله وبراءة هی لیلة النصف من شعبان ......الخ(ردالمحتارعلی الدرالمختارج:۲ص:۴۹باب الوتروالنوافل)۔

۲ ] وقیده فی الکافی بان یکون علی سبیل التداعی اما لواقتدی واحدة اواثنان بواحدلایکره واذا اقتدی ثلاثة بواحداختلفوا فیه وان اقتدیٰ اربعة بواحدة کره اتفاقًا(البحرالرائق ج:۲ص:۷۵)

۳ ] وکره ان یوم فی التراویح مرتین فی لیلة واحدة وعلیه الفتوی لان السنة لاتتکررفی الوقت الواحد فتقع الثانیة نفلاً مضمرات ،بخلاف مالوصلاهاماموماًمرتین لایکره کما لوام فیها (حاشیه الطحاوی علی مراقی الفلاح ص:۲۲۴ فصل فی التراویح)۔ایضًا:امام یصلی التراویح فی مسجدین فی کل مسجدعلی الکمال لایجوزکذافی محیط السرخسی والفتوی علی ذالک کذافی المضمرات والمقتدی اذا صلاهافی مسجدین لاباس به (عالمگیری ج:۱ص:۱۱۶حلبی کبیر ص:۴۰۸،ردالمحتارج:۲ص:۴۶)

۴ ] فکل ماهو شرط جوازالصلاة من طهارة الحدث وهی الوضوء والغسل ......فهوشرط جواز السجدة ،لانها جزء من اجزاء الصلاة ......الخ(البدائع الصنائع ج:۱ص:۱۸۶) ایضًا:وشرط لصحتها ان تکون شرائط الصلوة موجودة فی المساجدالطهارة من الحدث والخبث وسترالعورة واستقبال القبلة ......الخ(مراقی الفلاح ص:۲۷۱)۔

## د تلاوت د سجدې د اداء کولو شرطونه

**سوال:** د جمعې په ورځ په محله کې د ختم القرآن په موقع باندې زما نظر په يو سړي باندې پريوت، ما ويل که دی د مازديګر لمونځ کوي او ما دا وګڼله چې کيدای شي چې ده ته د قبلې طرف نه وي معلوم، ځکه چې هغه د قبلې مخالف (مشرق) طرف ته سجده کوله، ما نژدې ناستو خلکو ته دده د قبلې طرف ته د نه کيدو له پاره توجه ورکړه، هغه لمونځ نه کاو، بلکې د تلاوت سجده يې کوله، په خپله هم په تلوارې سره ودريد چې ما خو تلاوت سجده کوله او دا خو چې کوم طرف ته وکړل شي؛ نو صحيح وي او د قبلې تعين او د قبلې ته د نه مخ کولو سره هم اداء کيږي، دده سره يو سړي هم دده تايد وکړ چې هو د تلاوت سجده هر طرف ته جائز ده او که قبلې طرف ته يې مخ نه هم وي؛ نو اداء کيږي، تاسو ووايئ چې صحيح مسئله څه ده؟

**جواب:** د تلاوت د سجدې د جواز له پاره هماغه شرطونه دي کوم چې د لمانځه له پاره شرط وي يعنې د بدن پاکيدل، د جامو پاکيدل، د ستر پټول، قبلې ته مخ کول، قبلې ته د مخ کولو نه پرته د تلاوت سجده نه اداء کيږي.[1]

## د تلاوت د سجدې د اداء کولو طريقه

**سوال:** په قرآن مجيد کې (۱۴) سجدې دي، ددې د اداء کولو څه طريقه ده؟

**جواب:** کله چې د سجدې ايت ولوستل شي، که اودس يې وي؛ نو په هغه وخت کې دې فورا سجده وکړي، په دې شرط چې وخت مکروه نه وي او که چيرې اودس يې نه وي؛ نو اودس دې وکړي او سجده دې وکړي[2] د سجدې طريقه داده چې په اودس کې دې قبلې طرف ته مخ کړي او تکبير دې ووايي او سجدې ته دې لاړ شي او په تکبير ويلو سره دې سجدې ته لاړ شي؛ نو سجده يې اداء شوه[3]

## د سجدې تلاوت نيت

**سوال:** د قرآن مجيد د تلاوت سره د تلاوت د سجدې څه نيت دی؟

---

[1] فاذا قرأ آية السجدة ......فانه يجب عليه ان يسجدبشرائط الصلاة الا التحريمة سجدة بين تكبيرتين مستجبتين ......الخ (حلبی کبیرج:۱ص:٤۹۸۸)،لايجوزلاحداداء فريضة ولانافلة ولاسجدة تلاوة ولاصلاة جنازة الامتوجهًاالى القبلة (عالمگیری ج:۱ص:٦۳) ایضاً پورتنۍ حواله_

[2] وفی المراقی :وغيرهاتجب موسعًاولكن كره تاخيره السجودعن وقت التلاوة فی الاصح اذالم يكن مكروهًا وفی الحاشیه الطحطاوی :ای اذا لم يكن وقت التلاوة وقتامكروهًا (حاشیه الطحطاوی مع المراقی ص:۳٦۱)

[3] فاذاارادالسجودكبرولايرفع يديه وسجدثم كبرورفع راسه ولاتشهدعليه ولاسلام (عالمگیری ج:۱ص:۱۳۵،کتاب الصلاة ،الباب الثالث عشرفی سجودالتلاوة)

**جواب:** دا نیت دی چې زه د تلاوت سجده اداء کوم.[۱]

## د تلاوت د سجدې صحیح طریقه

**سوال:** ډیرځله مې خلک په مختلف طریقوسره په سجده تلاوت اداکولو سره لیدلي دي، مهرباني وکړئ اودسجده تلاوت صحیح طریقه راته ولیکئ!

**جواب:** ،الله اکبر، ،ویلوسره دې سجدې ته لاړشي اوپه سجده کې دې درې ځله، ،سبحان ربي الاعلی، ، ووایي ، الله اکبردې ووایي اود سجدې نه دې راپورته شي، بس دغه دتلاوت سجده ده[۲] په ولاړه الله اکبر ویل اوسجدې ته تلل غوره دي اوکه په ناسته وکړل شي؛ نوبیاهم جائزده.[۳]

## په سجده تلاوت کې یوازې یوه سجده وي

**سوال:** په سجده تلاوت کې دوه سجدې وي اوکه یوه؟

**جواب:** دیوایت په تلاوت سره یوه سجده واجبیږي،خو په مجلس بدلولوسره که څه هم هغه ایت په دویم ځل ولوستل شي؛ نودهغه سجده به بیاواجب شي.[۴]

په سجده تلاوت کې نیت نه تړل کیږي، بلکې دسجدې دنیت نه وروسته دې، ،الله اکبر، ،ویلوسره سجدې ته لاړشي اوالله اکبرویلوسره پورته شي، دسلام ګرځولوضرورت نه شته، په ناسته سجده تلاوت کول جائزدي اوپه ولاړه سجده تلاوت ته تلل غوره دي.[۵]

---

[۱] ثم ارادالسجود ینویهابقلبه ویقول بلسانه اسجدلله تعالی سجدة التلاوة الله اکبر (عالمگیری ج:۱ص:۱۳۵)

۲ ] فاذا اراد السجود کبر ولایرفع یدیه وسجدثم کبرورفع راسه ولاتشهدعلیه ولاسلام کذافی الهدایة ویقول فی سجوده سبحان ربی الاعلی ثلاثا...الخ (هندیة ج:۱ص:۱۳۵کتاب الصلاة ،الباب الثالث عشرفی سجود التلاوة ، طبع رشیدیه) ،وفی البحرالرائق (ج:۲ص:۲۲۳،طبع رشیدیه)وکیفیته ان یسجدبشرائط الصلاة بین تکبیرتین بلارفع ید وتشهدوتسلیم...والمرادبالتکبیرتین تکبیرة الوضع وتکبیرالرفع وکل منهما سنة کما صححه فی البدائع لحدیث ابی داود)

۳ ] ومممایستحب لادائهاان یقوم فیسجد لان الخرور سقوط من القیام والقرآن ورد به وهومروی عن عائشة رضی الله عنهاوان لم یفعل لم یضره (البحرالرائق ج:۲ص:۱۳۷)_

٤ ] ولوکررها فی مجلسین تکررت وفی مجلس واحد لاتتکربل کفته واحدة (الدرالمختارمع الردج:۲ص:۱۱٤، باب سجودالتلاوة)_

٥ ] ومممایستحب لادائهاان یقوم فیسجد لان الخرور سقوط من القیام والقرآن ورد به وهومروی عن عائشة رضی الله عنهاوان لم یفعل لم یضره (البحرالرائق ج:۲ص:۱۳۷) وایضاًوفی السراج الوهاج ثم اذا اراد السجود ینویها بقلبه ویقول بلسانه اسجدلله سجدة التلاوة الله اکبر......الخ(البحرالرائق ج:۲ص:۱۳۷، وایضاًفی الهندیة ج:۱ص:۱۳۵)

## که چا په لمانځه کې د سجدې ایت ولوست، رکوع او سجده یې وکړه؛ نو سجده تلاوت اداشوه

**سوال:** که چاپه لمانځه کې د سجدې ایت ولوست اوپه فورا رکوع ته لاړ اوپه رکوع کې یې دسجدې ایت نیت ونه کړاوبیایې دلمونځ سجده وکړه؛ نو ایاسجده تلاوت هم په دې سجده کې اداشوه اوکه نه؟

**جواب:** په دې صورت کې سجده اداشوه.[۱]

## ایا سجده تلاوت په سپارې باندې د قبلې له طرف پرته کولی شو؟

**سوال:** دقرآن پاک سجده تلاوت ایا په هغه وخت کې کول پکاردي کوم وخت کې چې دسجدې ایت ولوستل شي، یابیاوروسته یې هم کولی شو؟ او ایا په سپارې باندې سجده کولی شو،هرکله چې مخامخ قبله نه وي؟ ځینې خلک داسې کوي چې دقرآن پاک دلوستلونه وروسته وایي چې یو انسان څوارلس سجدې وکړي، ایا داصحیح ده اوکه نه؟

**جواب:** سجده تلاوت فورا کول افضل دي، خو ضروري نه ده وروسته هم کیدای شي اوکه قرآن کریم ختم کړي اوټولې سجدې وکړي؛ نوهم صحیح ده، مګردومره تاخیرښه نه دی[۲] هیڅ خبرنه شته چې دقرآن دختمولونه مخکې مرګ راشي اوسجدې کومې چې واجب دي دهغه په ذمه پاتې شي ،په سپارې باندې سجده نه کیږي، مخ په قبله په ځمکه باندې سجده کول پکاردي، دسپارې دپاسه سجده کول دقرآن کریم بې ادبي ده.

## سجده تلاوت ځانته ځانته اداکړو یا د ختم قرآن نه وروسته ټولې سجدې یوځای وکړل شي؟

**سوال:** هره دتلاوت سجده دسجدې دایت لوستلوپه هغه وخت کې کول مسنون دي یاپه ختم قرآن باندې ټولې سجدې دتلاوت اداکړل شي ؟کوم یوه طریقه غوره ده؟

**جواب:** دقرآن کریم ټولې سجدې رایوځای کول خلاف سنت دي، په تلاوت کې چې کومه

---

۱ ] قوله نعم لورکع وسجدلهای للصلاة فوراناب ای سجودالمقتدی عن سجودالتلاوة بلانیة تبعالسجوده امامه ......الخ (شامی ج:۲ ص:۱۱۲)وایضاًفی البحر:واماان رکع اوسجد صلبیة فانه ینوب عنهااذاکان علی الفور......الخ (ج:۲ص:۱۳۳)۔

۲ ]وفی التجنیس وهل یکره تاخیرها عن وقت القرأة؟ ذکرفی بعض المواضع انه اذ قرأها فی الصلاة فتاخیرها مکروه وان قرأها خارج الصلاة لایکره تاخیرها وذکرالطحاوی ان تاخیرهامکروه مطلقاوهوالاصح وهی کراهة تنزیهیة فی غیرالصلاتیة،لانهالوکانت تحریمیة لکان وجوبها علی الفورولیس کذالک(البحرالرائق ج:۲ص:۱۲۹)

سجده راشي؛ نوحتې الوسع هغه دې زرترزره د اداکولوکوشش وکړل شي، بیاهم که په یوځای سجدې وکړل شي؛ نوادابه شي.[1]

## د تلاوت د سجدې صحيح طريقه

**سوال:** په قرآن مجید کې چې کوم ځای سجده راشي؛نود اداء کولو صحیح طریقه یې کومه ده؟

**جواب:** په اودس سره به الله اکبر ووایې او سجدې ته به لاړ شي او د الله اکبر ویلو سره به پورته شي، بس سجده اداء شوه.[2]

## په يو ځاى باندې څوارلس سجدې كول

**سوال:** د تلاوت د سجدې طریقه بیان کړئ، په یو ځای څوارلس سجدې کیدای شي؟

**جواب:** هره سجده یوازې کول پکار دي[3] د څوارلسو سجدو جمع کول ښه نه دي.

## د قرآن مجيد دتلاوت په وخت سجده كول پكار دي اوكه نه؟

**سوال:** د قرآن مجید د لوستلو په وخت د تلاوت سجده کول پکار دي او که نه؟

**جواب:** په هغه وخت یې هم اداء کولی شئ او بیا وروسته یې هم اداء کولی شئ.[4]

## دسجدې تلاوت دپاتې كېدو حكم

**سوال:** په قرآن مجید کې چې کومې سجدې راځي، هغه بالکل داسې کیږي لکه څنګه چې په لمونځ کې سجده کیږي؟ ماته مخکې معلومه نه وه، له دې وجې ما چې څومره سپارې لوستلي دي یا په قرآن خوانۍ ته تللی یم، کله مې هم سجده نه ده کړې، مهرباني وکړئ چې اوس هغه سجدې د هغې د تعداد ماته هم پته نه شته اوس څه وکړم؟ او د تلاوت سجدې په

---

۱ ] وفي التجنيس وهل يكره تاخيرها عن وقت القرأة؟ ذكرفي بعض المواضع انه اذ قرأها في الصلاة فتاخيرهامكروه وان قرأها خارج الصلاة لايكره تاخيرها وذكرالطحاوي ان تاخيرهامكروه مطلقاوهوالاصح وهي كراهة تنزيهية في غيرالصلاتية ،لانهالوكانت تحريمية لكان وجوبها على الفوروليس كذالك (البحرالرائق ج:۲ص:۱۲۹) وايضافي الهندية ج:۱ص:۱۳۵)۔

۲ ] فاذا ارادالسجودكبرولايرفع يديه وسجدثم كبرورفع راسه ولاتشهدعليه ولاسلام كذافي الهداية ويقول في سجوده سبحان ربي الاعلى ثلاثا......الخ (هندية ج:۱ص:۱۳۵كتاب الصلاة ،الباب الثالث عشرفي سجود التلاوة ، طبع رشيديه) ٠وفي البحرالرائق (ج:۲ص:۲۲۳،طبع رشيديه)وكيفيته ان يسجدبشرائط الصلاة بين تكبيرتين بلارفع يد وتشهدوتسليم...والمرادبالتكبيرتين تكبيرة الوضع وتكبيرالرفع وكل منهماسنة كماصححه في البدائع لحديث ابي داود۔

۳ ] ولوكان عليه سجدات متعدده فعليه ان يسجدعددهاوليس عليه ان يعين ان هذه السجدة لآية كذاوهذه لآية كذا(حلبي كبيرج:۱ص:۵۰۱،ايضا:حاشيه الطحاوي على المراقي ص:۲٦۱)

٤ ] واداهاليس على الفورحتى لواداهافي اى وقت كان يكون موديالاقاضيا (عالمگيری ج:۱ص:۱۳۵)

لمونځ کې د سجدو په شان دي یا څه بله طریقه ده؟

**جواب:** سوچ وکړه اندازه وکړه چې څومره سجدې ستا په ذمه باندې وي هغه اداء کړه.[۱]

## د تلاوت د سجدې طریقه

**سوال:** ما نذر (منښته) کړې وه، چې یو قرآن کریم به ختموم، پوښتنه دا کول پکار دي چې په قرآن کریم کې چې کوم ځای د سجدې ایت راځي په دغه وخت کې سجده لازمیږي یا چې کله پوره قرآن مجید ختم شي او سجدې وکړل شي؛ نو ګناه خو به نه وي؟ او دا هم ووایئ چې سجده څنګه کول دي؟ بالکل داسې لکه څنګه چې د لمونځ سجده وي او په سجده کې سبحان ربی الاعلی ویل لازمي دي؟

**جواب:** د تلاوت سجده که چیرې د تلاوت سره اداء کړل شي؛ نو بهتره به وي په یو مجلس باندې چې کله تلاوت ختم کړل شي دغه وخت سجده کوه، په یو ځای باندې څوارلس سجدې کول هم جائز دي، خوبهترنه دي، د سجده تلاوت طریقه داده چې الله اکبر به ووایئ او سجدې ته لاړشئ او په سجده کې به سبحان ربی الاعلی ووایئ، کم نه کم درې ځله، بیا به تکبیر ووایئ او بیا به ودریږي، بس سجده اداء شوه.[۲]

## د کومو سورتونو په اخر کې چې سجدې وي د هغه لوستونکی کله سجده وکړي؟

**سوال:** دکوموسورتونوپه اخر کې چې سجدې وي که هغه په لمانځه کې وویل شي؛نوسجده څنګه وکړل شي؟ ایادرې سجدې وکړي یادوه سجدې، یعنې دلمانځه ددووسجدونه وروسته دتلاوت سجده به هم اداشي؟

**جواب:** دسجدې واله ایت باندې دې تلاوت ختم کړي اورکوع ته دې لاړشي اوپه رکوع کې دسجده تلاوت نیت کیدای شي اودرکوع نه وروسته دلمانځه په سجده کې دتلاوت سجده هم اداکیږي په دې صورت کې دمستقلې سجدې تلاوت کولوضرورت نه شته[۳]اوکه سجده

---

[۱] واداهالیس علی الفورحتی لواداهافی ای وقت کان یکون مودیًالاقاضیًا (عالمگیری ج:۱ص:۱۳۵)

[۲] وفی الغیاثیة واداءها لیس علی الفورحتی لواداهافی ای وقت کان یکون مودیًا لا قاضیًاکذافی التتارخانیة (عالمگیری ج:۱ص:۱۳۵)۰فاذااراد السجودکبرولایرفع یدیه وسجدثم کبرورفع راسه ولاتشهدعلیه ولاسلام ویقول فی سجوده سبحان ربی الاعلی ثلاثًاولاینقص عن الثلاث کما فی المکتوبة ......الخ (عالمگیری ج:۱ ص:۱۳۵) (ایضًا :وفی المراقی :وغیرهاتجب موسعًاولکن کره تاخیر السجودعن وقت التلاوة فی الاصح اذالم یکن مکروهًا:ای اذالم یکن وقت التلاوة مکروهًابان کان احداوقات الثلاثة (حاشیه الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص:۲٦۱باب سجودالتلاوة،ایضًافی البدائع ج:۱ص:۱۸۰فصل واماسبب وجوب السجدة طبع سعید)

[۳] قوله نعم لورکع وسجدلهای للصلاة فورًاناب ای سجودالمقتدی ..[بقیه حاشیه په راروانه صفحه

تلاوت واله ایت نه وروسته هم دنوروایتونوتلاوت کول وي؛ نواول دې سجده تلاوت وکړي بیادې راپورته شي اوتلاوت دې وکړي.[1]

## د زوال په وخت تلاوت جائزدی، خوسجده تلاوت جائز نه ده

**سوال:** ایا د ورځې دولس بجې دقرآن مجید تلاوت کیدای شي؟

**جواب:** دتپکندې غرمې په وخت کې هرکله چې لمربالکل په سربانديې وي، لمونځ اوسجده تلاوت منع ده[2]، مګردقرآن مجید تلاوت جائزدی.

## د سهاراو مازدیګرد مکروه وخت نه پرته سجده تلاوت جائزده

**سوال:** دتلاوت سجده دمازدیګردلمانځه نه وروسته دمابنام پورې یا دسهاردلمانځه نه وروسته جائزده اوکه نه؟ یعنې په دې دواړو وختونوکې سجده اداکیدای شي اوکه نه؟ موږ داهل سنت عالمانومنع کړي یو، موږ په خپله هم داهل سنت سره وابسته یو، موږ دوه په خپل مینځ کې دوستان هم یو، ماهغه دسجدې نه منع کړ، خوهغه ستاسوحواله راکړه.

**جواب:** دفقه حنفي مطابق دسهاردلمانځه نه وروسته اودمازدیګردلمانځه نه وروسته سجده تلاوت جائز ده[3] البته دلمردراختونه واخله درنړا تر سپینیدو پورې اودلمردپریوتونه واخله د رنړا تر زیړیدو پورې، په دې حالت کې سجده تلاوت هم منع ده.[4]

---

...بقیه د تیر مخ].. عن سجود التلاوة بلانية تبعا لسجود امامه ......الخ (شامی ج:۲ ص:۱۱۲)وایضًافی البحر:واماان رکع اوسجد صلبية فانه ينوب عنهااذاكان على الفور......الخ (ج:۲ص:۱۳۳) و ایضًا:وتودی برکوع صلاة اذاكان الركوع على الفورمن قرأة آية ......ان نواه ای کون الرکوع لسجودالتلاوة على الراجح ......الخ (التنويروشرحه ج:۲ص:۱۱۱،۱۱۲)۔

١ ] وان كانت عند ختم السورة فينبغي ان يقرا آيات من سورة آخرى ثم يركع...الخ (البدائع الصنائع ج۱، ص۱۸۸)۔

۲ ]ثلاث ساعات لاتجوز فيها المكتوبة ولاصلوة الجنازة ولاسجدة التلاوة :اذاطلعت الشمس حتى ترتفع ،وعندالانتصاف الى ان تزول ،عند احمرارها الى ان تغيب......الخ (هندية ج:۱ص:۵۲)۔

۳ ]تسعة اوقات يكره فيها النوافل ومافى معناها لا الفرائض ......فيجوزفيها قضاء الفائتة وصلاة الجنازة وسجدة التلاوة ......منهامابعدصلاة الفجرقبل طلوع الشمس ......ومنهامابعدصلوة العصرقبل مغيب الشمس ......الخ (هندية ج:۱ ص:۵۲،۵۳كتاب الصلاة الباب الاول فى المواقيت ومايتصل بها)۔

٤ ] ثلاث ساعات لاتجوزفيها المكتوبة ولاصلوة الجنازة ولاسجدة التلاوة :اذا طلعت الشمس حتى ترتفع ،وعندالانتصاف الى ان تزول ،وعنداحمرارهاالى ان تغيب ......الخ (هندية ج:۱ص:۵۲،كتاب الصلاة الباب الاول فى المواقيت ومايتصل بها،طبع رشيديه) (ويكره ان يسجدشكرًا بعدالصلاة فى الوقت الذى يكره فيه النفل ولايكره فى غيره (عالمگيرى ج:۱ص:۱۳۶،الباب الثالث عشرفى سجودالتلاوة)، ايضًا:وسجدة الشكرمستحبة به يفتى لكنهاتكره بعدالصلاة لان الجهلة يعتقدونهاسنة اوواجبة وكل مباح يودى اليه فمكروه (درمختار ج:۲ ص: ۱۱۹، ۱۲۱)كتاب الصلاة مطلب فى سجدة الشكر،طبع ايچ ايم سعيد)۔

## د تلاوت او شکر سجده په کوم وخت کې کول پکار دي؟

**سوال:** دسجده تلاوت او د سجده شکر اوداسې نورو... وضاحت وکړئ دا په کوم وخت کې کول پکار دي ؟ اکثر خلک وايي چې د سهار د لمانځه نه تر ماسپښين پورې يوه سجده هم نه کيږي، دا رنګه د مازديګر د لمانځه نه وروسته يوه سجده هم نه کيږي تر څو پورې چې د ماښام لمونځ ونه کړل شي، مهرباني وکړئ جواب په وضاحت سره راکړئ!

**جواب:** درې وختونه مکروه دي: د طلوع وخت د لمر تر اوچتيدو پورې، د غروب وخت او ددې نه مخکې پنځلس شل منټه، د ماسپښين وخت، په دې دريو وختونو کې د تلاوت سجده ممنوع ده، په باقي ټولو وختونو کې جائز ده، د شکر سجده هم ددې دريو وختونو نه پرته جائزه ده، خود خلکو په مخکې دې نه کيږي.[1]

## د مازديګر نه وروسته د تلاوت سجده کول

**سوال:** که چيرې موږ د مازديګر نه وروسته د قرآن کريم تلاوت کوو او په دې دوران کې د سجدې ايت راشي؛ نو ايا د تلاوت سجده په دې وخت کې اداء کول پکار دي يا په بل وخت کې اداء کيدلی شي؟

**جواب:** د مازديګر نه وروسته د تلاوت سجده جائز ده.[2]

## په کټ کې ناست تلاوت کونکی کله سجده تلاوت وکړي؟

**سوال:** که په کټ کې ناست يو اودقرآن پاک تلاوت کوواوپه دې دوران کې ايت سجده هم په تلاوت کې راځي، لهذا ددې له پاره سجده کول فوري ضروري ده يادتلاوت نه وروسته (څومره قرآن پاک چې وويل شي) سجده وکړل شي، صحيح طريقه راته تحرير کړئ!

**جواب:** فوري کول غوره دي اودتلاوت دختمولونه وروسته کول هم جائز دي[3] که کټ سخت

---

[1] ثلاث ساعات لاتجوزفيها المكتوبة ولاصلوة الجنازة ولاسجدة التلاوة :اذا طلعت الشمس حتى ترتفع ،وعندالانتصاف الى ان تزول ،وعنداحمرارهاالى ان تغيب ......الخ (هندية ج:۱ص:۵۲،كتاب الصلاة الباب الاول فى المواقيت ومايتصل بها،طبع رشيديه) (ويكره ان يسجدشكرًا بعدالصلاة فى الوقت الذى يكره فيه النفل ولايكره فى غيره (عالمگيرى ج:۱ص:۱۳٦،الباب الثالث عشرفى سجودالتلاوة)۰ايضًا:وسجدة الشكرمستحبة به يفتى لكنهاتكره بعدالصلاة لان الجهلة يعتقدونهاسنة اوواجبة وكل مباح يودى اليه فمكروه (درمختار ج:۲ ص: ۱۱۹، ۱۲۱)كتاب الصلاة مطلب فى سجدة الشكر،طبع ايچ ايم سعيد)

[2] (تسع اوقات يكره فيها النوافل ومافى معناهالا الفرائض ...... فيجوز فيها قضاء الفائتة وصلاة الجنازة وسجدة التلاوة ......منهامابعدصلاة العصرقبل التغير (عالمگيرى ج:۱ص: ۵۳۰ كتاب الصلاة الباب الاول)

[3] وفى المراقى :وغيرها تجب موسعًا ولكن كره تاخيره السجودعن وقت التلاوة فى الاصح اذالم يكن مكروهًا.....الخ وفى حاشية الطحطاوى :اى اذا لم يكن وقت التلاوة....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

وي اوپه هغه کې تندی نه ښنبيږي اوپه هغه باندې صفاجامه هم خوره شوې وي؛ نوپه کټ کې سجده کيدلی شي، ګني نه.[1]

## د تلاوت په دوران کې دسجدې ايت په کم اوازسره لوستل بهتردي

دقرآن پاک دتلاوت دکولوپه دوران کې چې په کومه رکوع کې سجده راشي؛ نوهغه په زړه کې ويل جائزدي، ياپه لوړ اواز سره ولولي؟ وايي چې که څوک دسجدې واله ايت واوري؛ نوپه هغه هم سجده واجب ده اوکه سجده ونه کړي؛ نوددې څه کفاره ده؟اوسجدې کولوطريقه څه ده؟په تفصيل سره راته ووايئ؟

**جواب:** دسجدې ايت لوستلوسره، په ويونکي اواوريدونکي دواړو باندې سجده واجبيږي[2] ددې له وجې دبل کس په وړاندې دسجدې ايت په کم اوازسره لولئ، چې دهغه په ذمه سجده واجب نه شي[3]دکوم کس په ذمه چې سجده تلاوت واجب وه اوهغه ونه کړه، نو ددې کفاره هم داده چې سجده وکړي، دتلاوت دسجدې کولوطريقه داده چې تکبيرويلوسره دې سجدې ته لاړشي، په سجده کې درې ځله ،،سبحان ربی الاعلی،، ووايي اوتکبيرويلوسره دې راپورته شي، بس داسجده تلاوت وشوه.[4]

## دسجدې ايت اوددې ترجمه لوستلوسره يوازې يوځل سجده لازميږي

**سوال:** زه قرآن شريف دترجمې سره وايم اوداسې وايم چې اول څومره ويل وي هغه زه ووايم اودبيادهغه نه وروسته دهغه ترجمه؛ نو اياماته په قرآن مجيدکې چې کومه سجده راځي هغه به دوه ځله کول وي؟

**جواب:** نه! سجده درباندې يوازې يوځل واجبيږي، آيت سجده که په يومجلس کې هرڅوځله وويل شي؛ نوسجده هم يوه واجبيږي[5] اودقرآن کريم الفاظ ويلوسره سجده واجبيږي ددې ترجمه ويلوسره سجده نه واجبيږي.[1]

---

...بقيه د تیر مخ].. وقتًا مكروهًا ......الخ (حاشيه الطحطاوى على مراقى الفلاح ص:۲۶۱باب سجودا لتلاوة ، وايضًافى الهندية ج:۱ص:۱۳۵،وايضًافى البدائع ج:۱ص:۱۸۰)۔

۱ ] ولوسجد......ان استقرت جبهته وانفه ويجدحجمه يجوز وان لم تستقرلا......الخ (هندية ج:۱ص:۷۰)۔

۲ ]فسبب وجوبها احدشيئين التلاوة او السماع ......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۱۸۰،وايضًا هندية ج:۱ص:۱۳۲)۔

۳ ]ولوقرأ آية السجدة وعنده ناس ......ينبغى ان يخفض قرأتها لانه لوجهر بهالصارموجبًاعليهم شيئًا ربما يتكاسلون عن ادائه فيقعون فى المعصية (البحرالرائق ج:۲ص:۱۳۸،باب سجودالتلاوة)۔

٤ ] فاذا ارادالسجودكبرولايرفع يديه سجدثم كبرورفع راسه ولاتشهدعليه ولاسلام كذافى الهداية ويقول فى سجوده ثلاثاسبحان ربى الاعلى ......الخ (هندية ج:۱ص:۱۳۵،وايضًا فى البحرج:۲ص:۱۳۷)۔

٥ ] حتى ان من تلا آية واحدة مرارًافى مجلس واحدة تكفيه سجدة واحدة (البدائع الصنائع ج:۱ص:۱۸۱)۔

## یو د سجدې ایت مې ډېرو ماشوما نو ته ولوست؛ نو بیا به هم یوه سجده کول وي؟

**سوال:** یو استاد څو هلکانو ته په یو ځای د سجدې ایت جدا جدا ښایي؛ نو معلم ته به هم یوه سجده کول وي یا چې څومره هلکان وي هماغومره سجدې به کوي؟ یعنې معلم په یو ځای ناست وي او هلکان نمبر په نمبر لوستلو له پاره راځي.

**جواب:** د استاد په ویلو سره به هم یوه سجده واجبېږي، په شرط د دې چې په یو مجلس کې وي[۲]، خو استاد چې د ماشومانو نه څومره ایت سجده واوري هماغومره سجدې به پرې واجبېږي.[۳]

## دوه کسان یو د سجدې ایت ولولي؛ نو څو سجدې واجبېږي؟

**سوال:** که د سجدې ایت استاد وښایي، شاګرد یې ولولي؛ نو ایا هر یو به یوه یوه سجده کوي او که دوه؟ هر کله چې ایت سجده دواړه ولوسته هم او واوریدله هم؟

**جواب:** په دواړو دوه سجدې واجب شوې، یوه په خپله دویلو، دویمه د اوریدلو.[۴]

## د سجدې ایت که د لمونځ نه بهر کس واوري؛ نو سجده دې وکړي

**سوال:** په تراویحو کې د سجدې ایت هم راځي؛ نو ظاهره ده چې څوک د لمونځ نه بهر وي، هغه به یې هم اوري، ایا په هغه باندې هم سجده واجب ده؟

**جواب:** هو! نو هغه به هم سجده واجبېږي.[۵]

## په لاوډ سپیکر باندې د تلاوت سجده

**سوال:** که یو کس په لاوډ سپیکر باندې د قرآن پاک تلاوت واوریده او په هغه کې سجده راشي؛ نو په هغه اوریدونکي باندې سجده واجب ده او که نه؟ او سجده نه کونکی کس ګناهګارېږي او که نه؟

---

۱ ] فتاوی قاضی خان کی دی :ولوتلی بالفارسیة تجب وعلی من سمعها السجدة فهم السامع اولم یفهم ...... الخ (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج:۱ص:۱۵٦ فتاوی هندیة ص:۱۳۳،اذا قراء آیة السجدة بالفارسیة ......الخ)_

۲ ]ومن کررتلاوة سجدة واحدة فی مجلس واحداجزاته سجدة واحدة......الخ (هدایة ج:۱ص:۱٤٤)_

۳ ] قال الاصل ان التلاوة سبب بالاجماع لان سجدة تضاف الیهاوتتکرربتکررها......الخ (فتح القدیرج:۱ص:۳۱۹)_

٤ ] والسجدة واجبة فی هذه المواضع علی التالی والسامع......الخ (هندیة ج:۱ص:۱۳۲)٠فسبب وجوبها احد الشیئین ،التلاوة او السماع (البدائع الصنائع ج:۱ص:۱۸۰)_

٥ ] ولوسمعهامن الامام اجنبی لیس معهم فی الصلاة ولم یدخل معهم فی الصلاة لزمه السجودوکذافی الجوهرة النیرة وهوالصحیح کذافی الهدایة (هندیة ج:۱ص:۱۳۳کتاب الصلاة ،الباب الثالث عشرفی سجودالتلاوة)_

**جواب:** چې کوم کس ته معلوم شي چې دا ايت سجدې دی په هغه سجده واجب ده او ترک واجب ګناه ده.[1]

## له لاوډ سپيکر، ريډيو او ټيلي ويژن نه دسجدې ايت اوريدو باندې سجده تلاوت

**سوال:** په عام ډول تراويح لاوډ سپيکر سره کيږي، دسجدې کوم ايتونو چې تلاوت کيږي دهغه اواز بهرته هم ځي، که څوک بهرپه کور کې دسجدې ايات واوري؛ نو په هغه باندې سجده واجبيږي او که نه؟همدغه شان دختم په ورځ په ريډيو او ټيلي ويژن باندې براه راست دسعودي عرب نه تراويح اوريدل کيږي او هم ښودل کيږي اوخلک په ډيرشوق سره (خاصکر ښځې) دا اوري، هرکله چې په اخري سپاره کې دوه سجدې دي؛ نو ايا عوام چې کله هغه د سجدې ايتونه واوري؛ نو په هغوی هم سجده واجبيږي او که نه؟ حالانکې دخلکو اکثريت يې يوازې په ذوق اوشوق سره ګوري، په عملي ډول سره نه، يعنې اکثرخلک يوازې واوري او وګوري، سجده اوداسې نور... نه اداکوي؟

**جواب:** دکوموخلکوترغوږو پورې چې دايت سجده تلاوت ورشي، که څه هم هغوی د اوريدو اراده کړې وه او که يې نه وه کړې، په هغوی ټولو باندې سجده واجبيږي[2] په شرط ددې چې هغوی ته معلومه شي چې ايت سجده تلاوت شوی دی[3] (که دڅه تراويح ريکارډنګ په دويم ځل په ريډيو ياټيلي ويژن باندې براډ کاسټ کړل شي؛ نوسجده تلاوت نه واجبيږي)[4] خو که ښځې په خپلو خاصو ورځو کې واوري؛ نوسجده پرې نه واجبيږي.[5]

## ټيپ ريکارډ او سجده تلاوت

**سوال:** ايا په ټيپ ريکارډ باندې ايت سجدې اوريدوسره سجده واجبيږي؟

**جواب:** دې سره سجده نه واجبيږي.[6]

---

۱ ] ولوتليت بالعربية تجب على كل من سمعها ولم يفهمها من العجم اذا اخبرها اجماعًا (حلبي كبيرص: ۵۰۱)_

۲ ]والسجدة واجبة فى هذه المواضع على التالى والسامع سواء قصدسماع القرآن اولم يقصدكذافى الهداية (هندية ج:۱ص:۱۳۲كتاب الصلاة ،الباب الثالث عشرفى سجودالتلاوة)_

۳ ]ولوقرأ بالعربية يلزمه مطلقًا لكن يعذربالتاخيرمالم يعلم (هندية ج:۱ص:۱۳۳الباب الثالث عشرفى سجودالتلاوة)_

٤ ] ولاتجب اذاسمعها من الطائراوالصدى لاتجب لانه محاكاة وليس بقراءة (حلبى كبيرص: ۵۰۰)،تفصيل دپاره اوګورئ:آلات جديده ،تاليف مفتى محمدشفيع رحمه الله ،ص:۱۶۵طبع ادارة المعارف كراچى)_

۵ ] حتى لاتجب على الكافر......والحائض والنفساء قرأو اوسمعوا لان هولاء ليسوامن اهل وجوب الصلاة عليهم (البدائع الصنائع ج:۱ص:۱۸۶،فصل فى بيان من تجب عليه السجدة)_

٦ ] اوګورئ تيره شوی حاشيه (ولاتجب اذاسمعها من الطائراوالصدى لاتجب....الخ) وايضًا البدائع الصنائع ج:۱ص:۱۸۶ فصل وامابيان من تجب عليه السجدة، طبع سعيد،....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

## د سجدې ایت که معلوم نه وي؛ نو سجده تلاوت نه واجبیږي

**سوال:** د قرآن پاک په مختلفو ایاتونو په تلاوت سره سجده لازمیږي، ما اوریدلي دي چې لوستونکو او اوریدونکو باندې سجده فرض ده، زما مسئله دا ده چې نن سبا ریډیو، ټي وي، تر دې پورې چې په مسجدونو کې هم اکثر ټیپ ریکارډ باندې د قرآن پاک کیسټ لګول کیږي چې هغه د لوډ سپیکر په ذریعې سره په لوړ اواز سره غږیږي، ماتهول قرآن پاک نه دی ویلی؛ نو له دې وجې ما ته دا پته نه شته چې په کومو ایتونو باندې سجده فرض ده؟ که چیرې د مذکوره ذرایعو په ذریعې سره هغه د سجدې ایاتونه واورول شي او د بې علمې له وجې زه سجده ونه کړم؛ نو ایا ګناه به وي او که نه؟

**جواب:** د کیسټ په اواز سره د تلاوت سجده نه واجبیږي، په ریډیو باندې هم که چیرې کیسټ لګیدلې وي؛ نو ددې به همدغه حکم وي[۱] او که چیرې براه راست تلاوت کیږي؛ نو کومو خلکو ته چې معلوم وي چې دا د سجدې ایت دی؛ نو په هغوی باندې سجده واجبه ده اوچاته چې نه وي معلومه؛ نو هغوی دمعذور په حکم کې دي.

## دسجدې ایت اوریدوسره سجده نه کونکی به ګناه ګاروي که لوستونکي؟

**سوال:** دسجدې دایت له وجې په تلاوت کونکي اوټولواوریدونکوباندې سجده واجبیږي، خوچاته چې دسجدې په باره کې پته نه وي اوتلاوت کونکي ورته وویل؛ نو ایاهغه اوریدونکی به ګناه ګاروي؟

**جواب:** کوموخلکوته چې معلومه نه ده چې ایت سجده تلاوت شو اوتلاوت کونکي یابل چاهغوی ته ونه ویل؛ نوهغوی ګناهګارنه دي اوکوموخلکوته چې معلومه شوه چې دایت سجده تلاوت شو او ددې باوجود یې سجده ونکړه، هغوی به ګناهګاروي اوپه داسې صورت کې به تلاوت کونکی هم ګناهګاروي، هغه ته پکارو چې ایت سجده تلاوت یې په کم اوازسره کولی.[۲]

**سوال:** اوداهم که آیت سجده په خاموشي سره وویل شي؛ نوجائزده؟

---

...بقیه د تیر مخ]..تفصیل دپاه اوګورئ:دآلات جدیده شرعی احکام ص:۱۶۵طبع ادارة المعارف کراچی)

[۱] وګورئ تیره شوی حاشیه (ولاتجب اذاسمعها من الطائراوالصدی لاتجب....الخ) وایضًا البدائع الصنائع ج:۱ ص:۱۸٦ فصل وامابیان من تجب علیه السجدة، طبع سعید، تفصیل دپاه اوګورئ:دآلات جدیده شرعی احکام ص:۱۶۵طبع ادارة المعارف کراچی)۔

[۲] ویستحب للتالی اخفانهااذالم یکن السامع متهیئاللسجودوان کان متهیئایستحب جهرها......الخ (حلبی کبیرص:۵۰۱ القراءة خارج الصلوة طبع سهیل اکیدمی)۔

**جواب:** که بنده ځانته تلاوت کوي هغه ته هم ایت سجده په کم اوازسره لوستل پکاردي،[۱] خوکه په لمانځه کې مثلاتراویحو کې لولي؛ نوپه کم اوازسره لوستلوله وجې به اوریدونکي دایت داوریدونه محروم پاتې شي ددې له وجې په لوړاوازسره لوستل پکاردي.

## دتلاوت سجده دې تلاوت کونکی په خپله وکړي بل څوک نه

**سوال:** قرا ن خواني کیږي چې کله چې ټول قرآن پاک ختم شي؛ نویوه ښځه دهغوی ټولو سجدې (چې ۱۴ دي) اداکړي، تاسووضاحت وکړئ چې کوم ځای کې سجدې راغلې دي څه وکړل شي؟ یا جدا ټولې سجدې اداکړل شي؟ایاڅه قید یاپابندي، خونه شته؟

**جواب:** دقرآن کریم سجدې په یوځای کول هم جائزدي[۲]،مګرچاچې ایت سجده تلاوت کړی وي دهماغه په اداکولوسره به سجده اداکیږي، بل څوک دهغه په ځای سجده نه شي کولی، تاسوچې لیکلي دي چې یوه ښځه دهغو ټولوسجدې اداکړي داغلطه ده، دتلاوت کونکوبه ذمه سجده تلاوت واجبه ده.[۳]

## د سورة السجدة ایت کم اوازسره لوستل پکاردي نه ټول سورت

**سوال:** په قرآن کریم کې یوسورت سجده دی، ددې څه حکم دی؟ ایا داټول سورت په زړه کې ولولو؟

**جواب:** په دې سورت کې چې کوم دسجدې ایت راځي هغه دنوروپه نسبت په کم اوازسره لولئ، دټول سورت په زړه کې دویلوضرورت نه شته.[۴]

## د سورت حج څومره سجدې کول پکاردي؟

**سوال:** دقرآن کریم په سورت حج کې دوه ځایه سجده تلاوت راځي، په دې سجدوکې دیوې سجدې سره شافعي لیکل شوی دی، ایاموږ حنفي عقیده لرونکو ته هم په دې ایت سجده باندې سجده کول لازم دي اوکه نه؟

**جواب:** دحنفیه په نزدیه سورت حج کې دویمه سجده، سجده تلاوت نه ده، ځکه چې په دې ایت کې درکوع اوسجدې دواړوحکم ورکړل شوی دی، ددې له وجې په دې ایت کې ګویا دلمونځ کولوحکم ورکړل شوی دی.[۵]

---

۱ ]ایضاً)۔

۲ ]فاماخارج الصلاة فانها تجب على سبيل التراخی دون الفورعندعامة اهل الاصول لإن دلائل الوجوب مطلقة عن تعيين الوقت (البدائع الصنائع ج:۱ص:۱۸۰کتاب الصلاة ،وامابيان كيفية وجوبها)۔

۳] والحاصل ان الوجوب انمايكون باحدالامرين اما بالتلاوة اوبالسماع...الخ (خلاصة الفتاوى ج:۱ ص:۱۸٤)

٤ ] ولاباس بان يخفى آية السجدة اذاكان بقربة قوم يسمعون ولايسجدون (فتاوى سراجية ص:۱٤)۔

٥] وقال عبدالله بن عباس وعبدالله بن عمررضى الله عنهم: سجدة التلاوة....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

## په قرآن مجید کې څومره سجدې دي؟ او څومره واجب دي؟

**سوال:** په قرآن مجید کې (۱۴) سجدې دي، زه ستاسو نه دا معلومول غواړم چې په دې څوارلسو سجدو کې څو واجب دي؟ څو فرض دي؟ او څو سنت دي؟

**جواب:** دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد څوار لس ټولې واجب دي.[1]

## د تلاوت د سجدې اعلان

**سوال:** په تراویح کې د سجدې د ایت اعلان کیږي چې په فلانکي آیت کې سجده ده، ددې شرعا څه حکم دی؟ حالانکې ځینې مقتدیان واپس کیدونکي وي چې اعلان وکړل شي؟

**جواب:** د تلاوت د سجدې د اعلان ضرورت نه شته، خوکه چیرې مقتدیانو ته شک وي؛ نو اعلان دې وکړل شي.

## د ژبې د خوزولو نه پرته د تلاوت ثواب ملاویدل

**سوال:** عامې ښځې مالیدلې دي چې د قرآن پاک د لوستلو نه پرته یوازې ګوري، یعنې په زړه کې یې وایې لکه څنګه چې موږ د اخبار یا د کتاب مطالعه کوو، ایا په دې صورت کې هم ثواب دومره ملاویږي څومره چې قرآن په ژبې سره لوستل کیږي او ایا داسې تلاوت کول جائز دي اوکه نه؟

**جواب:** تر څو پورې چې په ژبې سره تلفظ ونه کړل شي؛ نو د تلاوت ثواب به نه ملاویږي.

## د لمانځه نه د بهر خلکو له پاره د سجده تلاوت حکم

**سوال:** په مکه مکرمه او په مدینه طیبه کې لمونځ لکه سهار، ماښام او ماخسوتن په بیړه کیږي او د لوډسپیکر بندوبست هم ماشاء الله ډیر وسیع وي، اکثر امام صاحب هغه سورت چې سجده پکې راځي لولي، څومره کسان چې لمونځ کوي ددې په یونیم چنده باندې د اودس انتظار او په بازارونو کې موجود وي، هغوی د سجدې ایاتونه اوري هیڅ‌ته پته نه وي اوځینو ته، خو بلکل پته نه وي، ایا د احمد بن حنبل رحمه الله په نزد سجده تلاوت لازمه نه ده؟ که چیرې وکړي؛ نودا اواز دې هلته اورسوي، ددې له پاره چې خلک ددې ګناه نه بچ شي.

---

...بقیه د تیر مخ].. فی الحج هی الاولی ،والثانیة سجدة الصلاة ......وهذا لان السجدة متی قرنت بالرکوع کانت عبارة عن سجدة الصلاة کمافی قوله تعالی :فاسجدی وارکعی ......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۱۹۳، وامابیان مواضع السجدة فی القرآن ،طبع سعید)۔

[1] فاذا قرأ آیة السجدة وهی فی اربعة عشرموضعًا......فکان الثابت الوجوب ......الخ (حلبی کبیرج:۱ص:۴۹۸ القراءة خارج الصلاة ،طبع سهیل اکیدمی لاهور،ایضًا:بدائع ج:۱ص:۱۹۳،وامابیان مواضع السجدة)

**جواب:** د حنبلي مذهب په نزد د تلاوت سجده سنت مؤکده ده، واجب نه ده او زموږ په نزد واجب ده، خو یو سړی چې هغه پوهیږي د سجدې ایت ولوستل شو داسې خلک که چیرې په دې رکعت کې د امام سره شریک شي چې په کوم کې د سجدې ایت ولوستل شو؛ نو ددوی سجده اداء کیږي برابره خبره ده که د امام د سجدې کولو نه مخکې شریک وي او که وروسته او که چیرې په دې رکعت کې شریک نه وي؛ نو دی دې خپله سجده بیا جدا وکړي.[1]

# ❖ د لمانځه متفرق مسائل ❖

## د وظیفې لوستلو له پاره د لمانځه شرط

**سوال:** دا راته ووایئ که موږ څه وظیفه شروع کړو چې دکومې له پاره پنځه وخته لمونځ ضروري وي، خو له څه وجې لمونځ قضاشي؛ نو ایاموږ وظیفه جاري ساتلی شواوکه نه؟

**جواب:** کله چې لمونځ دوظیفې له پاره شرط وی؛ نو هغه وظیفه دلمانځه نه پرته بې کاره ده.[2]

## په لمانځه کې دژبې نه چلیدو علاج

**سوال:** زه الحمد لله دلمانځه پابندي کوم، خویوه لویه پریشاني راسره ده، چې کله لمونځ کوم؛ نوژبه مې نه چلیږي اویویایت څوځله وایم اوداسې راته محسوسیږي چې ژبه کې مې تتوالی دی، خو په عامو خبرواتروکې راته داشی نه محسوسیږي، مهرباني وکړئ اوددې راته څه وظیفه وښایئ ستاسوبه ډیره مهرباني وي.

**جواب:** ددې له پاره دوظیفې ضرورت نه شته، بس دا وکړئ چې کوم ایت مویوځل ووایه هغه دویم ځل مه وایئ، که څه هم تاسویوڅوسیکنډه ودریږئ، ان شاء الله یوڅوورځې وروسته به موداپریشاني ختمه شي اوکه تاسو دغه شان ویل جاري وساتل؛ نودااناروغي به موپخه شي.

## د لمانځه پریښودونکی نعت خوان داحترام حقدارنه دی

**سوال:** ایاد تارک الصلوة نعت خوان احترام کول صحیح دي؟

**جواب:** داسې کس داحترام قابل نه دی[3] اوداسې کس نعت خواني کول هم دنعت توهین دی.

---

[1] ومن سمعها من مصل واقتدی به قبل ان یسجد ا لمصلی لهاسجدالمصلی معه وان اقتدی بعدماسجدلها فان کان اقتداءه فی الرکعة التی تلاهافیهاسقطت عنه ......ولولم یدرک معه تلک الرکعة اولم یقتدلاتسقط فلا بدمن سجوده لها (حلبی کبیرص:۵۰۱ القراءة خارج الصلاة)

[2] المعلق بالشرط معدوم قبل الشرط (قواعدالفقه ص:۱۲۶ طبع صدف پبلشرز)

[3] هی (ای الصلاة فرض عین علی کل مکلف بالاجماع ...... وتارکهاعمدًامجانة ای تکاسلاً فاسق (درمختار:ج:۱ص:۳۵۲ کتاب الصلاة،طبع سعید) (قوله وفاسق) من الفسق....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## قنوت نازله کله لوستل کیږي؟

**سوال:** په اخبارونو کې مې ولوستل چې ممتازعلماء کرامو اپیل کړی دی چې دسهاریه لمانځه کې ددعایې قنوت اهتمام کوئ، مهرباني وکړئ او داراته ووایئ چې دعایې قنوت په فرض لمانځه کې ووایو اوکه په سنت لمانځه؟ ایا داقنوت دماسخوتن لمانځه والا دی؟

**جواب:** کله چې په مسلمانانوباندې څه لوی افت نازل وي مثلاً: دکافران په پنجه کې گرفتار شي، یاپه اسلامي ملک باندې کافران حمله وکړي؛ نودسهاردلمانځه په جمعه کې په دویم رکعت درکوع نه وروسته، ،امام دې، ، قنوت نازله ووایي اومقتدیان دې امین پرې وایي، په سنتونو کې یایوازې اداکیدونکو لمونځونوکې قنوت نازله نه ویل کیږي اودوتروپه دریم رکعت کې چې کوم دعا قنوت ویل کیږي هغه جداده.[1]

## تي وي خودې لږ.ترلږه د لمانځه دوخت احترام کوي

**سوال:** مولاناصاحب! دتي وي فضول نشریاتومسلمانان اوخاص کر زموږ نسل دتباهی په موږ باندې درولی دی، دکوم ځای نه وتل که ناممکن نه دي؛ نوګران ضروري دي اویه دې بس نه دی، بلکې هغه پروګرامونه په داسې موقعه نشرکوي کوم چې عین دلمونځه وخت وي د ایمان دکمزوري له وجې دلمانځه په شان اهم عبادت هم پریږدي، د مسلمان کارخودادی چې په خپله دبدي نه بچ شي اودنورودبدي نه بچ کولومحنت اوکوشش وکړي، ایا داخلک دلمانځه په وخت کې دپروګرام وخت کم یازیات کولی نه شي؟

**جواب:** اول خوهم تي وي دقوم دصحت له پاره، ،تي بي، ، او ام الخبائث دی، کوم چې شیطان دالله تعالی د مخلوق دګمراه کولوله پاره ایجادکړی دی، بیاددې نشریات لغواوفضول دي، چې سراسر دګناه نه ډک او وبال دي، بیادلمونځونوپه وختونوکې دګندګي خورول ډیره سنګینه ګناه ده، الله تعالی دې موږ دخپل قهراوغضب نه وساتي، دتي وي مشرانوته پکاردي چې هغوی که ددې ګندګي نه دمسلمانانو معاشره (جامعه) بچ کولی نه شي؛ نوکم نه کم دلمونځه دوختونواحترام خودې کوي.[2]

---

...بقیه د تیر مخ]..وهو الخروج عن الاستقامة ولعل المراد به من یرتکب الکبائرکشارب الخمر وآکل الربا ونحو ذالک ،کذا فی البرجندی والمعراج قال اصحابنالاینبغی ان یقتدی بالفاسق ....واماالفاسق فقدعللو کراهة تقدیمه بانه لایهتم لامر دینه وبان فی تقدیمه للامامة تعظیمه وقد وجب علیهم اهانته شرعًا (ج:۱ص: ۵۶۰)۔

۱ ] وقال الحافظ ابوجعفرالطحاوی :انما لایقنت عندنا فی صلوة الفجرمن غیر بلیة فان وقعت فتنة اوبلیة فلاباس به ، فعله رسول الله صلی الله علیه وسلم .......وظاهرتقییدهم بالامام انه لایقنت المنفرد.......والذی یظهر لی ان المقتدی یتابع امامه الا اذا جهرفیومن وانه یقنت بعدالرکوع لاقبله .......الخ (حاشیه ردالمحتار:۲ ص:۱۱باب الوتروالنوافل ،وایضًافی البحر الرائق ج:۳ص:۴۷باب الوتر)۔

۲ ] .....ان الذین یحبون ان تشیع الفاحشة فی الذین امنوا لهم عذاب الیم ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

## په ټي وي باندې د جمعې په وخت کې پروګرامونه ورا ندې کول

**سوال:** نن سبا په ټي وي باندې د جمعې کوم نشريات چې سهار وي په هغه کې عين هم هغه وخت ډرامه شروع کيږي کله چې جمعه شروع شي، چې د هغې له وجې ډېر د ټي وي شوقيان او جمعه لوستونکو لمونځونه قضا شي، راته ووايئ چې دا ګناه د چا په سر ده.؟

**جواب:** د جمعې لمونځ قضاکونکو باندې به هم دا وبال پريوځي[1] او ټي وي واله باندې هم، معلوم نه ده چې ايا دا خلک مسلمانان نه دي چې خلکو ته د جمعې د لمانځه نه د منع کيدو سبب جوړيږي؟[2]

## په ځای د قرعه اندازي د استخارې د لمونځ په ذريعه فيصله وکړي

**سوال:** زما عادت دی چې کله هم څه فيصله ونه کړای شم او ډېر زيات پريشانه شم او په هيڅ پوه نه شم چې څه فيصله وکړم؟ نوزه دوه رکعته لمونځ وکړم او د قرعه اندازي دوه شيان وليکم او کيږدم او بيا د الله تعالی نه سوال وکړم او اوچت يې کړم او نيت وکړم چې د الله تعالی د حکم نه پرته يوه پاڼه هم خوزيدای نه شي، کومه قرعه چې زما په لاس کې راځي د دې په فيصله باندې به هغه کار کوم، يا بيا د الله تعالی په دربارکې ډېر په ژړا فرياد سره دعا غواړم چې خدايه پاکه! قرآن پاک ستا کلام دی او په دې کې د هرقسمه مثالونه او حالات موجود دي، ستا په مبارک نوم سره زه دا سپړم په دې صفحه باندې چې کومه فيصله زما د پريشاني مطابق وي ما ته وښايه چې زه هماغه شان وکړم او ستاد خوښې او خوشالئ مطابق وي، بيا د الله تعالی نوم واخلم او قرآن پاک خلاص کړم او په هغه صفحه باندې مسئلې مطابق چې کوم حال راته ملاوشي هغه د خدای رايه ګنم او د هغه مطابق عمل کوم، آيا په په پورتنو دواړو صورتونو کې د کفراو شرک څه خطره خونه شته؟ جواب ضرورراکړئ، چې زه بيا آينده دا سم کوم، اکثرچې کله ډېرد پريشانئ واله مسئله

---

...بقيه د تېر مخ]..فى الدنيا والاخرة والله يعلم وانتم لاتعلمون (النور:۱۹)_

۱ ]عن ابن مسعودرضى الله عنه ان النبى صلى الله عليه وسلم قال لقوم يتخلفون عن الجمعة :لقدهمت ان آمر رجلاً يصلى بالناس ثم احرق على رجال يتخلفون عن الجمعة بيوتهم ،رواه مسلم ،عن ابن عباس رضى الله عنهما ان النبى صلى الله عليه وسلم قال:من ترک الجمعة من غيرضرورة ،کتب منافقًا فى کتاب لايمحى ولايبدل ،وفى بعض الرويات ثلاثا ،رواه الشافعى (مشکوة ج:۱ص:۱۲۱کتاب الصلاة ،باب وجوبها)_

۲ ] ان الاعانة على المعصية حرام مطلقًا بنص القرآن اعنى قوله تعالى :ولاتعاونواعلى الاثم والعدوان ،وقوله تعالى :فلن اکون ظهيرًا للمجرمين ،ولکن الاعانة حقيقة هى ماقامت المعصية بعين فعل المعين ولا يتحقق الا بنية الاعانة اوالتصريح بهااوتعينهافى استعمال هذا الشئ بحيث لايحتمل غيرالمعصية ،ومالم تقم المعصية بعينه لم يکن من الاعانة حقيقة بل من التسبب ......ثم السبب ان کان سببًا محرکا وداعيا الى المعصية فالتسب فيه حرام کالاعانة على المعصية بنص القرآن کقوله تعالى :ولاتسبوا الذين يدعون من دون الله (تفصيل الکلام فى مسئلة الاعانة على الحرام ص:۱۵،جواهر الفقه ج:۲ص:۴۵۳)_

وي او زما په پوه کې فیصله نه راځي؛ نو زه داسې وکړم او فیصله پرې کوم.

**جواب:** کفر او شرک خو نه دی، بلکې یو فضول حرکت دی، دې یوې طریقې سره فال ویستل دي، له کوم نه چې منع شوې ده او د الله تعالی طرف ته منسوب کول، دا د فساد عقیده ده[۱] الله تعالی چې د حضور ﷺ په ذریعه کوم تعلیم ورکړی دی هغه دادی چې کله څه اهم کار موږ په سروي؛ نو دوه رکعته لمونځ وکړئ او د استخارې دعا وکړئ بیا چې موږ په کوم طرف ته مایل وي هغه صورت اختیاروئ، ان شاء الله په دې کې به خیر وي.[۲]

## له ډیرې مجبورۍ نه په فیکټرۍ کې کم نه کم فرض او وتر ضرور کوئ!

**سوال:** نن د امریکې نه زما دیو دوست خط راغلی دی، چې ډیویشتو کلنو راهیسې هلته اوسیږي، اوس هغه لمونځ کول شروع کړي دي، هغه چې په کومه فیکټرۍ کې کارکوي په هغه کې په درې شفتېه کې کار کیږي، یوه هفته دورځې، یوه هفته ماښام او یوه هفته د شپې، د ډیوټۍ په وخت کې زه پوره لمونځ نه شم کولی، هغه د سهار په لمونځ کې دوه سنتونه او دوه فرض، د ماسپښین څلور فرض دوه سنت، د مازدیګر څلور فرض، د ماښام درې فرض او دوه سنت او د ماخوستن څلور فرض، دوه سنت او درې وتر کوي، هغه لیکلي دي چې له کوم عالم نه پوښتنه وکړه چې ایا دا صحیح دی.؟

**جواب:** ستا دوست چې څومره رکعتونه لیکلي دي هغه صحیح دي، البته د ماسپښین د څلور فرضونه مخکې دې څلور رکعته سنت هم کوي.[۳]

## په دفتري وخت کې د لمانځه له پاره جومات ته تلل

**سوال:** زید اکثر د ماسپښین لمونځ د جمعې سره اداکوي، هر کله چې جومات د دفتر نه یو میل لیرې دی، زید جومات ته پیدل ځي او د جمعې سره لمونځ اداکولو نه وروسته پیدل واپس راځي، ایا د زید دا طریقه صحیح ده؟

**جواب:** که د دفتر له طرف نه ورته د دې اجازه وي؛ نو دومره لیرې تلل صحیح دي، ګني هم په

---

۱] (قوله والکهانة) ......ومنهم انه یعرف الامور بمقدمات یستدل بها علی مرافقها من کلام من یساله او حاله اوفعله ......الخ (فتاوی شامی ج:۱ ص:٤٥، طبع ایچ ایم سعید)۔

۲] (قوله ومنها رکعتا الاستخارة) عن جابر بن عبدالله رضی الله عنهما قال: کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یعلمنا الاستخارة فی الامور کلها کما یعلمنا السورة من القرآن یقول اذا هم احدکم بالامر فلیرکع رکعتین من غیر الفریضة ثم لیقل اللهم استخیرک بعلمک ......الخ (فتاوی شامی ج:۲ ص:۲٦ مطلب فی رکعتی الاستخارة)۔

۳] (وسن) مؤکدا (اربع قبل الظهر) (قوله وسن مؤکدا) ای استنانا مؤکدا بمعنی انه طلب طلبا مؤکدا زیادة علی بقیة النوافل ولهذا کانت السنة المؤکدة قریبة من الواجب فی لحوق الاثم کما فی البحر ویستوجب تارکها التضلیل واللوم کما فی التحریر. (الدرالمختار مع الشامی ج۲ ص۱۲، باب الوتر والنوافل)۔

دفترکې دې دجمعې لمونځ اهتمام وکړل شي.[۱]

## په دفترکې لمونځ څنګه اداکړو؟

**سوال:** موږ دپورټ قاسم په شاړه علاقه کې دکے ایس سي په دفتر کې کارکوو اوزموږ ډیوټي څلیرویشت ګنټې وي، هلته نژدې جومات نه شته اونه داذان اواز راځي، څه موده مخکې په دفترکې دننه څو کسانودجومات په شان یوځای جوړکړی و، چیرته چې به هغوی لمونځونه کول، موږ ټول چې تعدادمو تقریباًاته دی ماشاء الله په پابندي سره لمونځونه کوو، خوموږ خلک ځانته ځانته لمونځونه کوو اوپرته داذان ویلولمونځونه کوو، یعنې کله چې دلمانځه وخت شي دهغه وخت نه واخله دوخت دختمیدوپورې په وقفې وقفې سره اوکله کله په یوځای خپل خپل لمونځونه اداکوو جمعه ددې له وجې نه اداکوو چې موږ خلک په علم کې ډیرزیات کم یواوچا شرعي ږیره هم ساتلې نه ده، خو داخبره ضرورده چې لمونځ په جمعې سره اداکولی شو، اوس مسئله داده چې ایاپرته داذان کولو لمونځ کول جائزدي، هرکله چې داذان اواز هم نه تر غوږو کیږي، ایا په داسې صورت کې یواځې یواځې خپل خپل لمونځ وشي، هرکله چې دکولو ځای هم یووي؟ دا وضاحت هم وکړئ چې که جمعه ضروري وي؛ نوشرعي ږیرې واله یاپرته دږیرې واله حضراتوپه اقتداء کې لمونځ کېدلی شي؟

**جواب:** اذان اواقامت دلمانځه سنت دي[۲] دږیره خریلي په اقتداء کې لمونځ مکروه دی[۳] خو دیواځې کولونه بهتردی، تاسوحضرات داذان اواقامت اوجماعت سره لمونځ اداکوئ[۴] څه به ښه وي چې په تاسوکې څوک دتوفیق واله ږیره هم وساتي، بلکې ټوله ساتل پکاردي چې لمونځ مو مکروه نه شي.[۵]

## په دفتري وخت کې د لمانځه د اداکولو په بدله کې زیات کار

**سوال:** که موږ دچانوکران یو اودلمانځه په وختونوکې دلمانځه له پاره ځو؛ نو ایاموږ ته ددې

---

۱ ] واذا استاجر رجلاً یوماً یعمل کذا فعلیه ان یعمل ذلك العمل الی تمام المدة ولا یشتغل بشئ آخر سوی المکتوبة.....الخ (شامی ج۶ ص۷۰، مطلب لیس للاجیر الخاص ان یصل النافلة، طبع ایچ ایم سعید)۔

۲ ]ثم هما (الاذان والاقامة) سنة للصلوات الخمس .....الخ (حلبی کبیر، فصل فی السنن ص۳۷۲)۔

۳ ]ویکره امامة عبد واعرابی وفاسق.....الخ، وفی الشامیة: واما الفاسق فقد عللوا کراهة تقدیمه بانه لا یهتم لامر دینه وبان فی تقدیمه للامامة تعظیمه وقد وجب علیهم اهانته شرعاً.....الخ (ردالمحتار، باب الامامة ج۱ ص۵۵۹، ۵۶۰)۔

٤ ]فان امکن الصلاة خلف غیرهم فهو افضل والا فالاقتداء اولی من الانفراد (شامی، باب الامامة ج۱ ص۵۵۹)۔

٥ ] اوګورئ تیره شوی حاشیه (ویکره امامة عبد واعرابی وفاسق.....الخ) وایضاً: والسنة فیها القبضة ولذا یحرم علی الرجل قطع لحیته.....الخ، (درمختار، کتاب الحظر والاباحة، فصل فی البیع ج۶ ص۴۰۷)۔

وختونوپه بدله کې زیات کارکول پکار دي؟

**جواب:** لمونځ فرض دی، ددومره وخت په بدله کې دزیات کارکولو ضرورت نه شته،که په دفتري وخت کې په ایمانداری سره کار وکړل شي؛ نوهم ډېره ده.[۱]

## هر وخت پټکی پسرول سنت دي

**سوال:** پټکی اوتوپۍ پسرول څنګه دي؟ فرض ، واجب، سنت موکده، یامستحب اوکله پسرول دي، یوازې دلمانځه له پاره، یاټوله ورځ (څلیرویشت ګنټې)؟ یایوازې په بازارونوکې، یعنې کله چې دکورنه بهریو، هغه وخت کې؟

**جواب:** پټکی پسرول سنت مستحبه دي اودایوازې دلمانځه سره خاص نه دی، بلکې یومستقل سنت دی اودهمیشه سنت دی.[۲]

## جمعې کې د شریکېدو له پاره منډې وهل جائز نه دي

**سوال:** کله چې جمعه ولاړه وي؛ نوډېرخلک په منډه راځي اوپه جمعه کې شامل شي، تاسوراته ووایئ چې په جومات کې منډې وهل څنګه دي؟

**جواب:** په حدیث کې ددې نه منع راغلې ده.[۳]

## د رکوع اوسجدې اود تسبیح صحیح تلفظ زده کړئ

**سوال:** زموږ ځای کې یوصاحب وایي چې په رکوع اوسجده کې په سبحان ربی الاعلی او سبحان ربی العظیم ویلوکې به د ،،ی،، استعمال نه کوئ، دقرآن اوحدیث په رڼا کې جواب راکړئ، چې آیا داطریقه صحیح ده اوکه نه؟

**جواب:** غلطه ده، دچاعربي دان تلفظ وي زده یې کړئ او، وایئ یې.[۴]

---

۱ ] واذا استاجر رجلاً یوماً یعمل کذا فعلیه ان یعمل ذلك العمل الی تمام المدة ولا یشتغل بشئ آخر سوی المکتوبة.....الخ (شامی ج۶ ص۷۰، مطلب لیس للاجیر الخاص ان یصل النافلة، طبع ایچ ایم سعید)۔

۲ ] عن جابر رضی الله عنه قال: دخل النبی صلی الله علیه وسلم مکة یوم الفتح وعلیه عمامة سوداء، وعن ابن عمر رضی الله عنهما قال: کان النبی صلی الله علیه وسلم اذا اعتم سدل عمامته من کتفیه، قال نافع: وکان ابن عمر یسدل عمامته بین کتفیه. (ترمذی ج۱ ص۳۰۴، باب ماجاء فی العمامة السوداء)۔

۳ ] عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :اذاقیمت الصلاة فلاتاتوهاوانتم تسعون واتوها تمشون وعلیکم السکینة......الخ (ابن ماجة ص:۵۶باب المشی الی الصلاة)۔

٤ ] السنة فی تسبیح الرکوع سبحان ربی العظیم (شامی ج:۱ص:٤٩٤قبل مطلب فی اطالة الرکوع)، ویقول فی سجوده سبحان ربی ا لاعلی ثلاثا (عالمگیری ج:۱ص:۷۵،کتاب الصلاة ،الباب الرابع)۔

# ❖ اوراد او وظائف ❖

## له قرض نه د خلاصي وظيفه

**سوال:** په ما باندې درې لکه روپۍ قرضه ده، تاسو راته دلوستلو له پاره څه وښايئ!

**جواب:** د سورة الشورى (د پنځه ويشتمې سپارې) د دويمې رکوع اخري ايت ..الله لطيف بعباده.. اخره پورې اتيا ځله د سهارنه وروسته لولئ، که ډيره کټ کوئ يايې وړه کوئ، نو ددې نه توبه وکړئ. والسلام!

## د نوکرې له پاره وظيفه

**سوال:** مولانا صاحب! ما دولسم پاس کړې دی، نوکري راته نه پيدا کيږي، څه وظيفه راته وښايئ!

**جواب:** د هرجمعې لمونځ تکبيرسره په پابندي کوئ او دلمانځه نه وروسته درې ځله سورة فاتحه او درې ځله ايت کرسي لوستلو نه وروسته دعا کوئ. والسلام!

## د رزق د پراخې او د پريشانۍ نه د بچ کيدو وظيفه

**سوال:** يوه بله وظيفه وليکئ چې په هغه کې د دين او د دنيا خيرخواهي وي، قرضې ختمې شي، تنګي لرې شي، رزق پراخه وي او برکت زيات شي او دنياوي مسئلې ختمې شي، کافي پريشانې ده، د وظيفو وخت او تعداد ضرور وليکئ. شکريه!

**جواب:** ټول کور والا پنځه وخته لمونځ کوئ او د شپې سورة واقعه تلاوت کوئ، د ماسخوتن نه وروسته ټيلي ويژن مه لګوئ!

## د کاروبار د بنديدو له پاره وظيفه

**سوال:** بنده تراوسه پورې د مسايلو ښکار دی، ورځ په ورځ حالت غورځيږي، د الله شکر دی چې زما کورنۍ ديندارہ ده، زموږ يو دکان دی، يونيم کال مخکې زموږ کاروبار بالکل صحيح و، په دغه وخت زما والد صاحب حج ته تللی و، دده د راتللو نه وروسته زموږ کار ودريده، په دکان کې په خپل مينځ کې بې اتفاقي، د کاريګرانو سره جنګونه يو معمول جوړ شو، دعاملانو نه پته ولګيده چې د دکان بنديدل په تور جادو سره شوي دي، ددې د ختميدو له پاره ډيرو ځايونو ته تللی يم، خود هيڅ سره ددې حل نه شته، زړه مې خودکشي کول غواړي، قرآني علمياتو واله ددې تور جادو حل نه شي راويستلی، ايا زما له پاره، اوس د غير مسلمو نه امداد اخيستل جواز لري؟ په شريعت کې دا شی تر کومه پورې جائز دی.

**جواب:** تا دومره اوږد خط لیکلی دی چې زه به ددې څه جواب درکړم؟ زه خو عامل نه یم چې ددې توړ به وکړم، خو دا وایم چې د الله تعالی د ذات نه امید ساته. هغه ماتونکی دی. د ماښام د لمانځه نه وروسته د کور ټول کسان په یو ځای درې سوه دیارلس ځله د قرآن کریم آخري دوه سورتونه معوذتین لولئ او د الله تعالی په بارګاه کې ددې مصیبت د ختمیدو دعا ګانې کوئ. که چیرې خودکشي دې وکړه؛ نو جهنم ته به ځې، سړي ته پکار دي چې کوم حالات هم راپیښ شي، په الله تعالی باندې توکل ولري او د هغه په بارګاه عالي کې دعا کوي. والسلام!

## په کاروبار کې د ترقي او د قرض د واپسي طریقه

**سوال:** زما یو وړوکی دکان دی، په دې سره د وخت ګذاره کیږي. خوددې دکان نه کافي خلکو په قرض باندې سامان وړی دي او ددوی نه د پیسو د واپس کولو زما هیڅ امید نه شته. چې د هغه له وجې زما دکان په ځای ولاړ دی، لهذا مهرباني وکړئ بنده ته یوه وظیفه وښائئ چې په هغه سره پیسې واپس ملاوشي او په کاروبار کې ترقي هم وي.

**جواب:** د تکبیر تحریمې اهتمام کوه، د لمانځه نه وروسته سورة فاتحه، آیت کرسي، آیت ''**شهد الله**،، (آل عمران: ۱۸) او آیت: **قل اللهم ملك الملك** نه تر **بغیر حساب** (آل عمران: ۲۶، ۲۷) پورې وایه او دعا وکړه، الله تعالی به دې پریشاني ختمې کړي. والله اعلم!

## سورة فاتحه وایه غوږ پرې دم کړه ان شاء الله صحیح به شي

**سوال:** ماته په اوریدلو کې پریشاني وي، خصوصا د ښي غوږ نه خو په کراره خبره له سره اوریدلی هم نه شم او ګس غوږ بلکل صحیح دی، ماته داسې محسوسیږي چې دا پریشاني به ورځ په ورځ زیاتیږي، زموږ په خاندان کې دا کوم والی خانداني ناروغي ده، ما په دوو ځایونو کې علاج هم کړی دی، خو څه خاص شفا ونه شوه، زما په ذهن کې دا خبره هم ده چې دا خانداني ناروغي ده دا څنګه ختمیدلی شي؟ خو بیا خیال راغی چې کوم الله دا پیدا کړی دی: نو ختمول دده د اختیار نه څه بهر خو نه دي؟ ما د الله تعالی نه د خپل ناامیده خیال توبه وکړه او اوس په ډیر امید سره یم چې ان شاء الله دا ناروغي به لرې شي ، تاسو که چیرې څه دعا ښودلی شئ؛ نو ډیره مهرباني به مووي.

**جواب:** سورة فاتحه وایه او دعا وکړه، په حدیث شریف کې دي چې که چیرې (اول او اخر درود شریف، درې درې ځله او په مینځ کې) دا دعا وایه او دم یې کړه؛ نو الله تعالی به شفا در کړي.

## د بدتمیز ماشوم له پاره وظیفه

**سوال:** زما ماشوم چې د هغه عمر لس نیم کاله دی، ډیرغوسناک دی، چې هغهٔ انتهایي د بدتمیزۍ خبرې کوي، چې د هغه له وجې ځینې وخت د نورو خلکو په مخکې زه سخت

شرمیږم، څه داسې وظیفه راولیږئ چې د هغه له وجې هغه بدتمیزي پریږدي او په سبق ویلو شروع وکړي.

**جواب:** د ماشومانو بدتمیزي عموما د والدینو ګناهونه وي،د الله تعالی سره خپله معامله درسته کړئ او درې ځله سورة فاتحې باندې اوبه دم کړئ اوماشوم باندې یې وڅښئ.

## د ماشوم ناروغي او د هغې وظیفه

**سوال:** خواست دی چې زما دلمسي نوم محمدعمرخان دی، اکثره ناروغ وي، د مورو پلار یې خیال دی چې کیدای شي نوم یې صحیح نه وي،که چیرې داسې وي: نو چې نوم یې بدل کړو؟

**جواب:** نوم صحیح دی، د بدلو لو ضرورت نه شته، سورة فاتحه اووه ځله،ایت کرسي اوڅلور واړه (چارقل) سورتونه درې درې ځله لوستلونه وروسته هغه باندې دموئ.

## د رشتې له پاره وظیفه

**سوال:** زه یوه کونډه ښځه یم، زمایوه لورده چې د ډیروخت کوششونو باوجود د هغې رشته نه کیږي، زماخواهش دی چې د هغې رشته چیرته په دین داراونیک خاندان کې وشي، تاسو راته څه وظیفه وښایئ، زما زوی په دبۍ کی نوکري کوي، مخکې یې کارصحیح و، خو اوس له څه وخت راهیسې حالات صحیح نه دي، زمونږ کورته څوک تعویذ هم راغورځوي، د هغه نه وروسته پریشاني راځي.

**جواب:** دزړه نه دعاکوم، د ماسخوتن دلمانځه نه مخکې او وروسته یوولس ځله درود شریف اومینځ کې یوولس سوه ځله (یالطیف) لوستلونه وروسته دزړه داخلاص نه دعاکوئ، الله تعالی به ستاسو تکلیف اسان کړي.

## د واده له پاره وظیفه

**سوال:** ما د والد صاحب د تربیت او رهنمایې له وجې په ټولو بچیو باندې قرآن مجید حفظ کړی دی، د یو نه پرته چې هغه ګونګی او کوڼ دی ،ماشومه مې هم حافظه ده، ایم اې اسلامیات یې هم کړي دي، شرعي پرده هم کوي، زمونږ کوښښ دی چېددې رشته د داسې خلکو سره وشي چې هغوی پرده خوښوي خصوصا دعا وکړئ او په سلسله کې که یوه وظیفه د لوستلو له پاره راکړئ؛ نو مهرباني به وي.

**جواب:** الله تعالې دې د بچۍ له پاره ښه مزیداره رشته درکړي، د ماسخوتن د لمانځه نه وروسته اول او اخر یوولس یوولس ځله درود شریف او په مینځ کې (یا لطیف) دعا وکړئ او ماشومه دې هم وایي، ددې مور دې هم او تاسو هم یې وایئ.

## د اولاد له پاره وظیفه

**سوال:** زما د واده لس کاله وشول، خواولاد مې نه دی شوی، د ډاکټرانو نه مې کافي علاج کړی دی، خوتر اوسه پورې شفا نه ده نصیب شوې، ډاکټرانو ویلې دي چې کمزوري په ما کې ده، تاسو مهرباني وکړئ ما ته داسې کلمې یا وظیفه وښایئ چې د هغه زه ذکر جاري وساتم ددې له پاره چې الله تعالی ماته کامله شفا راکړي، د کلمو د ویلو طریقه او وخت هم وښایئ!

**جواب:** څلویښت دانې لونګ واخله د سورة نور ایت نمبر (۴۰) چې د (**اوکظلمات**) نه شروع کیږي او (**فمالهم من نور**) باندې ختمیږي وایه. کله چې ښځه د ماهواري(میاشتنی ناروغی) نه فارغه شي؛ نو د شپې یو لونګ خولې ته واچوه او ویې خوره، وریسې اوبه مه څښه پی در پی تر څلویښت ورځو پورې پرته د څه ناغې نه وخوره او په دې دوران کې چې خاوند ښځه کله ملاوشي، که الله تعالی ته منظوره وي؛ نو اولاد به یې وشي.

## د خاوند او ښځې په مینځ کې د محبت پیدا کولو وظیفه

**سوال:** دخاوند اوښځې په مینځ کې د محبت پیدا کولو یوه وظیفه ولیکئ؛ مهرباني به مووي.

**جواب:** دماسخوتن د لمانځه نه وروسته یوولس دانې تور مرچ را واخله، مخکې وروسته یوولس یوولس ځله درود شریف او په مینځ کې یوولس ځله تسبیح، یالطیف یا ودود ووایه او د دواړو د خاوند او ښځې په مینځ کې دې د محبت خیال وساتل شي، کله چې ټول ووایې؛ نو دا تور مرچ دې دم کړي او په تیز اور کې دې واچوي او دواړه دې د محبت له پاره دې دعا وکړي، کم نه کم تر څلویښتو ورځو پورې دې دا عمل وکړي، الله تعالی به خپل فضل وکړي.

## د حافظې د قوي کولو وظیفه

**سوال:** د حافظې د قوي کولو له پاره یوه اسانه وظیفه ولیکئ!

**جواب:** د هرلمانځه نه وروسته په سر باندې لاس ږده لس ځله یا قوي یا عزیز وایه.

## ایت کرسي ویل په سر باندې لاس کیښودل او (یاقوي) یوولس ځله ویل

**سوال:** د ایت کرسي د لوستلو نه وروسته خلک په سر باندې لاس ږدي او یوولس ځله یا قوي وایي ددې څه فایده ده؟ او یا قوي دې وویل شي یا څه نور څه دې وویل شي؟

**جواب:** د حافظې د قوت له پاره لوستل کیږي.

## د هر لمانځه نه وروسته ښی لاس په سر باندې کیښودل او یوولس ځله (یاقوي) او یوولس ځله (یاحافظ) ویل

**سوال:** د هر لمانځه نه وروسته ښی لاس په سر باندې ږدم یوولس ځله (یاقوي) او یوولس ځله

(یاحافظ) په حافظې کې د اضافې له پاره وایم، دا ما ته یو شیخ نه دي ویلي، د یو ملګري نه مې اوریدلي دي او دا عمل مې شروع کړی دی، ایادا صحیح دی؟

**جواب:** د ستا دا عمل صحیح دی کوه یې!

## د یاداشت له پاره وظیفه

**سوال:** زه طالب علم یم، سوالات په ډیر مشکل سره راته یادیږي او ډیر زر هیریږي . څه حل راته وښایئ!

**جواب:** سورة فاتحه اووه ځله ووایه او په سینه باندې دم اچوه!

## ګول دایره جوړول او کانې ټکول

**سوال:** ځینې خلک څه وایي او په ګول دایره کې کیني او وایي چې اوس موږه ګیره اچولې ده او بیا کانې ټکوي اوګوتې ګرځوي او وایي چې اوس تر کومې پورې چې موږ په دې دایره کې موجود یو؛ نو ترهغې پورې هیڅ مصیبت نه راځي، داسې کول څنګه دي؟ زما په نیمګړي خیال کې دا صحیح نه دي.

**جواب:** آیت کرسي اوداسې نور لوستل او څلورو طرفونو ته چپ کول کافي دي، د کانې ټکولو یا ګوتې ګرځولو هیڅ ضرورت نه شته.

## له اوداسه پرته ذکر کول

**سوال:** زما دا معمول دی چې د شپې د ویده کیدو نه مخکې د شپې ذکرونه، سورت فاتحه، څلور قل(چارقل)، درود شریف او ځینې نور تسبیحات وایم بیا ویده کیږم، خودا ذکرونه چې یوازې خوله ووینځم؛ نو وایم یې، (له اوداسه پرته ) ایا زما دا عمل صحیح دی؟ یا ددې ذکرونو له پاره اودس ضروري دی، حالانکې دا خویوازې په ژبې سره وایم او بل دا چې، ایا ددې ذکرونو د لوستلو د پاره اودس کول ضروري دي؟

**جواب:** له اوداسه پرته ذکر کول جائز دي، خو که اودس وي: نو بیا غوره دی.[1]

## د شهدو د مچۍ د چیچلو دم

**سوال:** زموږ کورکې که چیرې څوک د شهدومچۍ وخوړل؛ نو زموږ موربه پرې سورة الناس دم کړي. خوسورة الناس ویلوکې به یې دناس نه ,,س,, جدا کړاویوازې ,, نا ,, به یې لوستل. څه ورځې مخکې ماهمدغه شان سورة ولوست: نوبیامې سوچ وکړ چې ایا دا دقرآن مجید

---

[1] (ولایکره النظر الیه) ای القرآن (لجنب وحائض ونفسا) ان الجنابة لاتحل العین کمالاتکره (ادعیة) ای تحریمًا والا فالوضوء لمطلق الذکر مندوب وترکه خلاف الاولی (ردالمحتار ج:۱ص:۱۷٤)

تحریف خونه دی؟ تاسو زما راهنمايي وکړئ.

**جواب:** که چیرې (نا) لفظ د ایت سره ملاو نه وي. بلکې پوره آیت لوستلو نه وروسته دالفظ وویل شي؛ نو هیڅ بده خبره په کې نه معلومیږي.

## د ساه د تکلیف وظیفه

**سوال:** زما ورورته ډاکټران وايي چې ستاتبه ډېره شوې ده، دساه د تکلیف له وجې یو ډاکټرورته د پوزې اپریشن هم وکړ، اکثریې په ناسته ناسته باندې دماغ بې هوشه شي. څه اسانه عمل راته وښايئ!

**جواب:** السلام علیکم! دې نا کاره ته عملیات اوداسې نور... خونه ورځي، خو دعاکوم، سورة فاتحې ته په حدیث کې شفاویل شوي دي، یوڅلوینښت ځله یې اوبوباندې دم کړئ او هغه باندې یې وڅښئ، داممکن ده چې دالله تعالی دکلام دبرکت له وجې ورته شفا حاصله شي.

## د ذهني او مالي پریشانۍ د لرې کولو وظیفه

**سوال:** زموږ په کور کې د تېر شویو دوه نیمو کلونو نه ډېره پریشاني ده، والد صاحب په بینک کې ملازم و، د ریټائر کیدو نه وروسته یې د پراپرټي د اخیستلو او خرڅولو کار شروع کړ، خو هیڅ فایده هم ونه شوه، زه په نیوه کې په حیثیت د آفیسر منتخب شوم، چې په هغه کې زما ډیر شوق هم و، د ټریننګ په وخت کې زما زړه په ملازمت کې نه لګیده او ما سروس پرېښود، بیا مې د چارټرډاکاونټینټ ټسټ ورکړ، خو د دوباره امتحان د ورکولو باوجود فیل شوم، زه نه پوهیږم چې داسې ناڅاپه حالات څنګه پیدا شول؟ د کور د خلکو خو دا حال دی چې په اکثر وختونو کې په معمولي خبرو باندې نااتفاقي او په خبره خبره باندې جګړه راځي، ډېره ذهني او مالي پریشاني ده، ددې حالاتو په بنا باندې د خپل مستقبل په باره کې ډیر پریشانه یم، په دې حوالې سره څه عمل یا وظیفه وښایئ!

**جواب:** تاسو د ماښام نه وروسته سورة قریش (۴۱) ځله او دماسخوتن نه وروسته سورة واقعه او د سهار نه سورة بقره یو ځل وایئ او دعا کوئ، الله تعالی به فضل وکړي.

## د پریشانیو نه د نجات وظیفه

**سوال:** په امتحان کې د ناکامي خطره ده، زړه مې خود کشي کول غواړي، ددې پریشانیو حل راته ذکر کړئ!

**جواب:** پریشاني سړي ته راځي او په دې باندې الله تعالي د انسانانو درجې اوچتوي له دې وجې د جهان نه د رخصت کیدو خیال ازادانه نه دی، بچکانه دی، تاسو د سورة برائت اخري دوه ایتونه د سهاراودماښام نه وروسته یوولس دولس ځله وایئ، زه به ستاسو له پاره د زړه نه

دعا غوارم چې الله تعالى دستاسو ټولې پریشانۍ ختمې کړي په دواړو جهانونو کې راحت او سکون درته نصیب کړي

## د ناروغۍ لرې کولو وظیفه

**سوال:** زما والده صاحبه تقریبا د یو کال نه وخت په وخت ناروغیږي، د ډیرو ډاکټرانو نه مې علاج وکړ د یو څو ورځو د پسو تیریدو نه وروسته بیا هغه حالت وي، اکثر چکر ورته راځي. خیني ډاکټران وایي چې ددې بلډپریشر دی او خیني وایي چې بلډپریشر یې نه شته. ایکسرې مو هم وکړې هغه هم صحیح دي، له دې وجې څه اسانه او مضبوطه وظیفه وښایې؟

**جواب:** د پنځه وخته لمونځونو نه وروسته په اوبو باندې سورة فاتحه درې ځله، درود شریف درې ځله وایه او دم یې کړه او یو ګوټ (غړپ) اوبه ورکوه

## د خاوند د اصلاح اسانه طریقه

**سوال:** زما خاوند په ډیر زیات غلط حرکاتو کې مبتلاء دی. د شپې ناوخته راځي. زیات وخت دوستانو سره تیروي، چیرته چې هم ځي: نو وایي نه. د شرابو او د زناګانو په شان په ګناه کبیره کې مبتلاء دی. زه دده د حرکاتو نه ډیر پریشانه یم. زما دوه بچي هم دي. ما دی ډیر پرېږ کړ. د خپل مور پلار کره ترې لاړمه، خو په ده باندې دیوې خبرې اثر هم ونه شو. یو داسې وظیفه راته وښایئ چې دی په صحیح لاره راشي

**جواب:** تاسو چې کوم حالات لیکلی دي، په دې سره راته ډیر تکلیف وشو. په اصل کې موږ خلکو ته د مرګ نه وروسته د ژوند علم نه شته او کله چې علم وشي: نو موږ به ژاړو. چوو به. خوهیڅ به نه کیږي. زه تاته نصیحت کوم چې ستا خپل قبر ته تلل دي او د ستا د خاوند خپل قبر ته، ته چې څومره هم کولی شې؛ نو د مینې او محبت سره اوسیږه او د الله تعالى نه دعا غواړه چې الله تعالى ده ته دبدو عادتونو نه نجات ورکړي

## د جینکو د پابندۍ سره سورة یسین لوستل

**سوال:** زه پنځه وخته لمونځونه په پابندۍ سره کوم. سورة یسین ما ته په یادو یاد دی له دې وجې زه د درود شریف او د یسین شریف یو خاص تعداد روزانه لولم او دعا کوم چې الله تعالى دا قبول کړي، مسئله په اصل کې دا ده چې د خیني خلکو وینا ده چې دا شان د جینکو له پاره روزانه د هیڅ شي لوستل صحیح نه دي

**جواب:** د جینکو له پاره روزانه لوستل هیڅ ممانعت نه شته. د یو عمل پابندي کول ښه خبره ده

## د جادو اثر ختمول

**سوال:** زه تقریبا د نهه لس کلونو راهیسې تجارت کوم. خو د برزیات کوشش او محنت

باوجود حالات ورځ په ورځ خرابيږي، تردې چې حالات دې ته رسيدلي دي چې د کور خرچې او د ماشومانو فيس اداکول راته هم مشکل دي. شک مې دی چې چاپه مابانديې جادونه وي کړې. د ځينې خلکو خيال دی چې مابانديې حسب البحر نومې جادوشوی دی. دې باره کې تاسو زما رهنمايي وکړئ!

**جواب:** ستاپه پريشاني باندې زړه ډيرخفه شو. دعاکوم چې الله تعالى ستا پريشانى ختمې کړي يوښه عالم ته يې وښايئ؛ نوښه به وي. زه خودې عمليات باندې نه پوهيږم. يوعمل درته ښايم هغه وکړئ. ان شاء الله تعالى به مومددوکړي. د ماښام يا ماسخوتن نه وروسته د کورټول خلک راجمع شئ او درې سوه ديارلس ځله اخري درې سورتونه (معوذتين) لوستلونه وروسته دعاکوئ او کور کې تې وي وغيره مه لګوئ. دعاکوم چې ستاسوټول مشکلات الله تعالى په خپل رحمت باندې اسان کړي.

## د پريشانيو نه د حفاظت وظيفه

**سوال:** زمونږ ژوندپه عذاب کې تيرشو. پلارمونشيي و اود غلطو ښځو په چکرکې به اوسيده، مورمو ددې غم له وجې مړه شوه، يو اميدمو وچې واده مې وشو؛ نواوس به حالات صحيح شي، خو خاوندمې هم نشيي وخت، مونږ څلورخويندې يو. خويوه هم خوشاله نه ده. يوه طلاقه شوې ده، ديوې عمرکيدوباوجودواده نه دی شوی. زماخاوندروزانه دشرابوپه نشه کې وي، طلاق پورې خبره رسيدلې ده. دڅلورمې هم داحال دی. څه وظيفه راته وښايئ اودعاهم وکړئ!

**جواب:** تاسوچې کوم حالات ليکلي دي. هغې باندې مې زړه ډيرزيات خفه شو. الله تعالى دې ستاسو پريشانى ختمې کړي. د دنيا ژوند دخوشاليونه دی. بلکې داخرت ژوند د خوشاليو دی. الله تعالى دې تاسوته نصيب کړي. چې هرڅنګه حالات وي. صبراوشکرسره وخت تيرول پکاردي. پنځه وخته دلمانځه پابندي کوئ اودهرلمونځ نه وروسته سورة فاتحه اووه ځله لوستلوسره دالله تعالى نه دعاکوئ، دا ټولونه ښه وظيفه ده خپلوبچيوته ددين تعليم ورکړئ،که چيرې تې وي وغيره وي؛ نوهغه دکورنه بهرکړئ اوخپل خاوندماته راوليږئ، زه به هغه ته څه ښه مشوره ورکړم.

## د بې خوبۍ وظيفه

**سوال:** زه دبې خوبۍ له وجې ډيرزيات پريشان يم. يوصاحب ماته ددرودتاج اوسورت توبه اخري دوه ايتونوپه اوبوباندې ددم کولو اوڅښلوويلي و. ماته دمخکې څه ارام ملاوشوی دی. خوڅه خلک وايي چې درود تاج نه دي لوستل پکار. ايا دا صحيح دی؟

**جواب:** سورة ياسين لولئ اواوبوباندې دم کولونه وروسته څښئ. الله تعالى به درته شفاء درکړي.

## په تلو راتلو سره ``حسبنا الله ونعمَ الوَكِيل، نِعْمَ الْمَوْلي وَنِعْمَ النَّصِيْر ،، لوستل

**سوال:** زه اکثر د تلو راتلو په وخت کې حسبنا الله ونعم الوکیل،نعم المولي ونعم النصير وایم، ایا دا صحیح دي؟ځکه چې زما د ځینې دوستانو وینا ده چې د چا نه د اجازې د غوښتلو نه پرته داسې څه ذکر کول نه دي پکار، ځکه چې ددې تسبیحاتو خپل خاص اثرات وي چې هغه پرته داجازې نه د لوستلو په صورت کې د نقصان سبب جوړیږي، ددې دوستانو دا مشوره تر کومې پورې صحیح ده؟ امید دی چې په تفصیل سره به یې ولیکئ.

**جواب:** ستا دوستان غلط وايي.

## د آیت کریمه ختمول په څومره وخت کې صحیح دي؟

**سوال:** د اسلامي فقهې په اعتبار سره وفرمايئ چې يو تاکلی ايت کريمه يونيم لك ځله لوستل په يوه ورځ کې ډير خلک کينول او ختمول غوره دي، يا په پنځو شپږو ورځو کې يوازې ختميږي؟

**جواب:** په څومره وخت کې چې ممکنه وي کول يې صحيح دي.

## د ایت کریمه د ختم په دوران کې دڅه ضرورت له وجې پورته کیدل

**سوال:** زموږ په خاندان کې اکثر د ايت کريمه ختم کيږي چې په هغو کې اکثر ښځې شرکت کوي، د ختم په دوران کې نه هغه د څه ضرورت له پاره پاڅي او نه خبرې کوي، ايا د آيت کريمه د ختم په دوران کې د څه ضرورت له پاره پاڅيدل او بهر تلل جواز لري؟ او ايا شريک کسان په خپل مابين کې خبرې کولی شي؟ ايا په دې سره د ايت کريمه په ختم کې څه فرق راځي؟

**جواب:** جائز دي او د آرام کولو په غرض د لږ وخت له پاره بهر تللی شي، د ضرورت خبرې هم کولی شي.

## د ایت کریمه په ختم کې د ماشومانو شریکت

**سوال:** کومو ماشومانو ته چې د ايت کريمه او درود شريف لوستل ورځي او پاک هم وي، نو هغوی ورسره په ختم کې کيناستلی شي او که نه؟

**جواب:** که چيرې يې هغوی صحيح لوستلی شي؛ نو د دوی ژبه خو معصومه ده، ډيره ښه خبره ده.

## د غیرموکده سنتو او نفلو نو نه کوونکو په ذکر او اذکار باندې زور کول څنګه دي؟

**سوال:** اکثر کتل شوي دي چې ځینې خلک د ذکر، دعاګانو او وظیفو ډیر اهتمام کوي او

حالانکې غیر مؤکده سنت، نفل، صلوة اوابین، چاشت، د ماښام نفل او د ماسپښین د نفلو اهتمام دومره نه کوي، ایا ددوی دا عمل صحیح دی؟

**جواب:** که چیرې فرض اداء کوي او د الله تعالی ذکر هم کوي؛ نو تاته د دوی په دې عمل باندې خوشالیدل پکار دي، الله تعالی دې دوی ته د نفلونو د اداء کولو نور هم توفیق ورکړي.

## ایا په قرآن او حدیث کې ذکرشویو دعا ګانو لوستلو کې له چا نه اجازه اخیستل ضروري دي؟

**سوال:** په قرآن او حدیث کې چې کومې دعاګانې او ذکرونه دي او د کومو په لوستلو باندې چې حضور پاک رسول الله صلی الله علیه وسلم تاکید فرمایلی دی، ددې د لوستلو اجازه ضروري ده؟ که چیرې وي؛ نو له چانه اخیستل پکاردي؟

**جواب:** ددې مسنونه ذکرونو او منقوله دعا ګانو له پاره خصوصي اجازه اخیستل ضروري نه دي، هر مسلمان ته ددې اجازه شته، خو که چیرې د شیخ او د مرشد په حکم باندې و کړل شي؛ نو برکت به زیات وي، نورې وظیفې او عملیات چې د یو خاص مقصدله پاره کیږي هغه د چا د اجازې او د رهنمایي نه پرته نه کیږي، که نه؛ نو ځینې وخت نقصان ترې جوړیږي.

## ایا د اعمال قرآني دوظیفو د اجازې اخیستلو ضرورت نه شته؟

**سوال:** ځینې وخت انسان ته د خپل یوې ناروغي یا د څه حاجت د حاصلولو له پاره د تعویذ ضرورت وي؛ نو هغه د حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله کتاب ،، اعمال قرآني،، کې چې وګوري؛ نو دخپل ځان له پاره په خپله تعویذ لیکلی شي؟ یا د یو بزرګ نه به اجازه ضروري وي؟

**جواب:** داسې خو د ‹اعمال قرآني› دوظیفو حضرت مؤلف ‹رحمه الله› د طرف نه اجازه ده،خو وظیفې د چا د مشورې نه پرته کول پکارنه دي.

## ایا د وظیفو له پاره پناه کیدل ضروري دي؟ او بل دا چې په وظیفوسره نقصان کیږي

**سوال:** د وظیفو د لوستلو متعلق څه حکم دی؟ ایا د چا پناه کیدل ضروري دي؟ د زیاتو وظیفوپه لوستلو سره د نقصان احتمال شته؟ حالانکې هر وخت د الله تعالی تعریف کولی شي.

**جواب:** د کومو دعاګانو او وظیفو چې په قرآن کریم کې تعلیم ورکړل شوی دی، دا یوازې د الله تعالی د رضا له پاره لوستل کیږي؛ نو د هیڅ نقصان احتمال نه شته او که چیرې د خاص مقصد له پاره ورد او وظیفه کول وي؛ نو ددې له پاره د چانه اجازه اخیستل پکار دي.

## ایا د الله تعالی د نومونو د ذکر له پاره له چا نه د اجازې اخیستلو ضرورت شته؟

**سوال:** ایا د الله تعالی د نومونو په څه خاص تعداد کې په مقررو وختونو کې د لوستلو د یو بزرګ یا د پیر نه اجازه ضروري ده؟ ځکه چې ډیر خلک وایي چې د الله تعالی نوم یا ایت کریمه ډیر جلالي وي، د دې وظیفه یا مسلسل ذکر پرته د اجازې نه نه دي کول پکار. ایا دا صحیح دی؟

**جواب:** بهتره دا ده چې د یو بزرګ نه اجازه واخیستل شي، ځکه چې که سړی یې د خپل طرف نه وایي؛ نو ده ته به دا احساس نه کیږي چې ما ته څومره ویل پکار دي او څومره نه دي ویل پکار.

## آیا حصن حصین مستند دی؟

**سوال:** د (۲۲)جون د اقرء په صفحې باندې یو کس سوال کړی دی چې ،،حصن حصین،، مستند کتاب دی او که نه؟ خو تاسو د دې جواب نه دی ورکړی، مهرباني وکړئ تاسو دا ووایئ چې دا کتاب مستند دی او که نه؟

**جواب:** په حصن حصین کې ټولې دعا ګانې په حوالې سره نقل شوې دي، اګر چې ځینې روایات کمزوري هم دي.

## ټي وي ته کتل او تسبیح ویل

**سوال:** زه ټي وي ته د کتلو په دوران کې په تسبیح باندې درود یا نورې مبارکې کلیمې وایم، په دې سره څه ګناه خو به نه وي؟ که چیرې په داسې کولو سره څه ګناه وي؛ نو د دې کفاره به څه وي؟

**جواب:** د ټي وي کتل ګناه کبیره ده او دا ملعون شی دی، یو طرف ته په ژبې سره پاکې کلیمې لوستل او بل طرف ته دې ملعون شي کتل د ګناه کبیرې پرته نور څه دي؟

## رنګ رنګ دانې لرونکې تسبیح کول

**سوال:** په یو تار کې مختلف قسمه رنګونو والا دانې اچولو سره چې کومې تسبیح جوړیږي او په دې باندې کلیمه یا درود او داسې نور.... ذکر کیږي، ځینې خلک وایي چې دا د هندوانو د (مالا) نقل دی، سوال دادی چې ایا د الله تعالی د ذکر له پاره په قرون اولی کې داسې تسبیح استعمالیدې؟ که چیرې نه؛ نو دې ته بدعت ویل کیږي او که نه؟

**جواب:** د الله تعالي د ذکر د شمیرلو خو په بیشمیره حدیثونو کې یادونه راغلې ده[1]

---

[1] وعن عکرمة عن ابن عباس قال:جاء الفقراء الی رسول الله صلی الله علیه وسلم فقالوا......فاذا صلیتهم فقولوا سبحان الله ثلاثا وثلاثین مرة ،والحمدلله ثلاثا وثلاثین مرة والله اکبر...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه...

که چیرې دا حدیثونه جمع کړم؛ نو یوه ښه رساله به ترې جوړه شي، اوس که د شمیر له پاره یو طریقه اختیاره کړل شي، (مثلاً هډوکي کیښودل شي یا تسبیح جوړې شي) نو دا به د مطلوب شرعي د پوره کولو له پاره یوه ذریعه جوړه شي او د مطلوب شرعي ذریعو ته بدعت نه شي ویل کیدای، مثلاً: د بیت الله شریف سفر کول مطلوب شرعي دی او د اوښ نه واخله تر هوایي جازه پورې ټولې سورلی ددې ذریعه ده ددې سورلو استعمالولو ته بدعت نه شي ویل کیدای.
احادیث نبویه (علی صاحبها الصلوة والتسلمیات) زده کول او ښودل هم مطلوب شرعي دي او د حدیثو کتابونه چې کوم لیکل شوي دي یا لیکل کیږي دا ددې مطلوب شرعي ذریعه ده. کله به چا نه وي اوریدلي چې کتابونه لیکل بدعت دي، دغه شان دې تسبیح هم وګڼل شي، دا تسبیح هم د الله تعالی د ذکر - چې مطلوب شرعي دی- یوه ذریعه ده، ددې د بدعت کیدو څه سوال دی؟ په عربي کې تسبیح ته ،،مذکرة،، (یادونکې) ویل کیږي دا چې په لاس کې وي؛ نو ژبه به هم په ذکر باندې لمده وي، ګنې په غفلت کې به وي.
که چیرې یوازې ددې مصلحت له پاره تسبیح وساتې چې د دې په ذریعې سره د حدیث نبوي تعمیل کیږي؛ نو بیا خو دې ته بدعت نه شي ویل کیدای ؛ځکه چې هر څوک پوهیږي چې د واجب مقدمه هم واجب وي او د حرامو مقدمه حرامه وي، د مستحب مقدمه مستحبه وي،د هندوانو د (مالا) نقل شبه له دې وجې غلطه ده چې په ټول ژوند کې ددې وسوسه هم نه دا راغلې چې د تسبیح تخیل د هندوانو نه اخیستل شوی دی، ځکه چې په خپله زموږ په شریعت کې د ذکر الهي د خاص خاص مقدارونو ذکر دی، (نعوذ بالله) څوک به دا وایي چې دا مقدارونه هم د هندوانو نه اخیستل شوي دي.
تاته دا خیال ولې نه دی راغلی چې هندوانو د مالا تصور د مسلمانانو نه اخیستی دی! په مسلمانانو کې تسبیح خو د پخوا زمانې نه راغلې دي،لکه څنګه چې د جنید بغدادي رحمه الله نه منقول دي چې دده نه پوښتنه وشوه چې تا ته خو د معیت الله او د په ذکر الهي باندې دوام نصیب شوی دی اوس د تسبیح څه ضرورت دی؟ ویې فرمایل چې د کوم ملګري په معیت سره د لارې سفر شوی دی اوس دده سره تعلق ختمول بې وفایي ده.

## په تسبیح ذکر کولو باندې اعتراض او د هغه جواب

**سوال:** تاسو په (۲۴) تاریخ په روزنامه جنګ کې په اسلامي صفحه باندې د نجمه رفیق د

...بقیه د تیر مخ]... ثلاثًا وثلاثین مرة ،ولا اله الا الله عشرمرات ......الخ (ترمذی ج:۱ ص:۵۵باب ماجاء فی التسبیح ادبارالصلاة) ایضاً: عن صفیة رضی الله عنها قالت: دخل علی رسول الله صلی الله علیه وسلم وبین یدی اربعة آلاف نواة اسبح بهن، فقال: یا بنت حیي! اما هذا؟ قلت: اسبح بهنّ! قال: سبحت منذ قمت علی راسك اکثر من هذا. قلت: علمنی یا رسول الله! قال: قولی: سبحان الله عدد ما خلق من شيء، هذا حدیث صحیح الاسناد ولم یخرجاه. (مستدرك حاکم ج۱ ص۵۴۷)۔

سوال په جواب کې په تلو راتلو سره تسبیح کولو جائز بلکې ډیره ښه خبره لیکلې ده، دلته زما مقصود ستا په علم کې څه قسم شک او شبه کول نه دي، بلاشبه ستاسو علم وسیع دی، خوتر څو پورې چې زما د معلوماتو تعلق دی هغه دا چې د تسبیح دانې لوستل د حضور اکرم صلي الله علیه وسلم په سنتو کې داخل نه و، او نه دیته ذکر الله ویل کیدای شي، د ذکر الله عملي معنا د دینه بلکل مختلفه ده، دا یو شرعي بدعت دی چې نن سبا زمونږه په ژوند کې د فیشن په شکل کې داخل شوی دی.

**جواب:** تسبیح په خپله مقصود نه دي، بلکې د ذکر د شمیر له پاره یوه ذریعه ده، په ډیرو حدیثونو کې دا مضمون ذکر شوی دی چې فلانکی ذکر او فلانکی کلیمې سل ځله چې وویل شي؛نو دا اجر به ملاویږي[1] د حدیث د طالبانو نه دا حدیث پټ نه دی او ظاهره ده چې ددې تعداد د شمیرلو له پاره به یوه نه یوه ذریعه ضرور اختیار یږي، که هغه په ګوتو سره شمیرل وي، یا په کاڼو سره، یا په دانو سره او کومه ذریعه چې هم اختیار کړل شي؛ نو هغه په هر حال ددې شرعي مقصد د حاصلولو لپاره ذریعه وي او کوم شی چې د مطلوب شرعي ذریعه وي دیته بدعت نه شي ویل کیدای، بلکې د فرضو له پاره داسې ذریعه اختیارول فرض دي، او د واجبو له پاره داسې ذریعه اختیارول واجب دي، دغه شان د مستحبو له پاره داسې ذریعه اختیارول مستحب دي.
تاسو ته پته ده چې حج ته د تللو له پاره بحري، بري او فضائي دریواړه لارې اختیاریږي، خو که چیرې په یوه زمانه کې ددې لارو نه دوه لارې بندې شي، یوه آزاده وي ؛نو د دې اختیارول به فرض وي، او که چیرې درې واړه لارې آزادې وي: نو په دیکې به یوه اختیارول فرض وي، دغه شان چې د تسبیحاتو او د ذکرونو شمیر په شریعت کې مطلوب دي او ددې د حصول ذریعه تسبیح هم دي، نو دیته بدعت نه شي ویل کیدای.
۲- د ډیرو حدیثونو نه ثابت دي چې په کاڼو او په دانو باندې شمیر نبي کریم صلي الله علیه وسلم کړی دی او د دینه یې منع نه ده کړې لکه څنګه چې:

(الف) سنن ابي داؤد[2] (ج: ۱ ص: ۲۱۰ **باب التسبیح بالحصي**) او مستدرک حاکم (ج: ۱ ص: ۵۴۸) کې د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه روایت دی چې: نبي اکرم (صلی الله علیه وسلم) د یوې ښځې خواته لاړ چې دهغې مخې ته د کجورو زړي (هډوکي) یا کاڼي

---

[1] وعن عکرمة عن ابن عباس قال: جاء الفقراء الی رسول الله صلی الله علیه وسلم فقالوا....... فاذا صلیتم فقولوا سبحان الله ثلاثاً وثلاثین مرة، والحمد لله ثلاثاً وثلاثین مرة، والله اکبر ثلاثاً وثلاثین مرة، ولا اله الا الله عشر مرات...الخ (ترمذی ج۱ ص۵۵ باب ماجاء فی التسبیح ادبار الصلاة)_

[2] عن عائشة بنت سعدبن ابی وقاص عن ابیها انه دخل مع رسول الله صلی علیه وسلم علي امراة وبین یدیها نوی او حصی تسبح به فقال :اخبرک بماهوایسرعلیک من هذا او افضل؟فقال:سبحان الله عددماخلق فی السماء ......الخ سنن ابی داود ج:۱ص:۲۱۰باب التسبیح بالحصی ،طبع ایچ ایم سعید)

پراته وو چې په هغو يې تسبيح ويل، نبي كريم صلي الله عليه وسلم وفرمايل چې زه تاسو ته داسې شی وښايم چې هغه د دينه زيات آسان او افضل وي؟

(ب): ترمذي شريف او مستدرک حاکم (ج:۱ص: ۵۴۷) د حضرت صفيه (رضي الله عنها) نه روايت کوي چې نبي عليه السلام زما خواته تشريف راوړ، زما مخې ته څلور زره زړي (هډوکي) وو چې په هغو ما تسبيح وئيله، نبي كريم (صلي الله عليه وسلم) وفرمايل چې دا څه دي؟ عرض مې وکړ چې په دې باندې زه تسبيح وايم! هغه وفريل زه چې تاسره د کوم وخت نه ولاړ يم نو ما ستانه ډير تسبيح کړی دی، ماعرض وکړ چې: يا رسول الله! ماته يې هم وښايئ، ويې فرمايل چې داسې وايه! (سبحان الله عدد ماخلق من شيء)[1]

د اول حديث لاندې د (عون المعبود) مصنف ليکي:

د نبي كريم (صلى الله عليه وسلم) په زړو (هډوکو) نکير نه کول د تسبيح د جائز کيدو له پاره صحيح اصل دی؛ ځکه چې تسبيح هم د هډوکو پشان دي: ځکه چې د شمير کولو له پاره په دې باندې هيڅ فرق نه پريوځي چې هډوکي دې په تار کې يو ځای کړي وي يا بغير د يوځای کولو نه وي، او کوم خلک چې دا بدعت ګڼي د هغوی قول د اعتبار وړنه دی.[2]

۳- تسبيح په يو بل لحاظ سره هم د ذکر الهي يوه ذريعه ده هغه دا چې تسبيح دې په لاس کې وي ؛نو په ژبه به خود به خود ذکر جاري وي او تسبيح چې نه وي نو سړي ته ذکر نه ياديږي. په دې وجه تسبيح ته (مذکرة) (يادونکي)ويل کيږي او په دې وجه صوفيان ديته د شيطان کوړه وايي چې د دې په ذريعې سره شيطان دفع کيږي او سړي ته په ذکر کولو کي په غافل کيدو کې نه کاميابيږي، بس چې کله په ذکر الهي کې د مشغول اوسيدل مطلوب دي او د تسبيح په لاس کې کيدل د دې مشغولې ذريعه ده ؛نو ديته بدعت ويل غلط دي، بلکې د ذکر الهي د کيدو په وجه که ديته مستحب وويل شي ؛نولرې به نه وي

## په ګرځيدو يا په مجلس کې ذکر کول چې ذهن متوجه نه وي څنګه دی؟

**سوال:** زما عادت دی چې زه اکثر د اکوشش کوم چې د (لااله الاالله) ذکر وکړم، داسې وي چې زه په يو مجلس کې ناست يم اوزړه کی ورد کوم، دغه شان کالج ته تلوراتلو وخت کې يا کلاس

---

[1] عن صفية رضى الله عنهاقالت:دخل على رسول الله صلى الله عليه وسلم وبين يدى اربعة آلاف نواة اسبح بهن فقال:يابنت حيى ! ماهذا؟قلت اسبح بهن !قال :سبحت مندقمت على راسک اكثرمن هذا، قلت: علمنى يارسول الله !قال : قولى :سبحان الله عددماخلق من شيء هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه (مستدرک حاکم ج:۱ص:۴۷)

[2] (نوى) جمع نواة وهى عظم التمر(اوحصى)شک من الراوى (تسبح) اى المراة (به) اى بماذكرمن النوى او الحصى وهذا اصل صحيح لتجويزالسبحة بتقريره صلى الله عليه وسلم فانه فى معناها اذ لا فرق بين المنظومة والمنثورة فيمايعد به ولا يعتدبقول من عدهابدعة (عون المعبودج:۱ص:۵۵۵،۵۵۶طبع نشرالسنة ملتان)

کې د ناستې وخت کې، یا خلک و سره د خبرو کولو وخت کې هم ذکر کوم. یعنې دې کې خشوع او خضوع شامل نه وي او اکثر مې خیال بل طرف ته وي. آیا داسې کول صحیح دي او که د ذکر بې ادبي ده؟ یو عالم داسې هم فرمایي چې یوازې د (لااله الاالله) ورد کول صحیح نه دي. بلکې نهه لس ځله د (لااله الاالله) نه پس کم از کم یو ځل محمد رسول الله (ﷺ) ویل ضروري دي، او صرف دا ذکر مه کوئ بلکې جدا جدا یعنې سبحان الله. الحمد الله. الله اکبر وغیره د ټولو ورد کوئ؛ او زما په خیال کې دا پابندي کول لازم نه دي. بلکې احادیثو کې کثرت سره د کلیمې طیبې ترغیب راغلی دی او چېرته هم دا نه دي ویل شوي چې صرف دا ذکر منع دې. دې باره کې هم زما رهنمایي وکړئ!

**جواب:** د کلیمې شریفې ذکر په خوله او زړه باندې کول مقصد او محمود دي[1]. او د دې په مینځ کې ضروري خبرې کول د ادب خلاف نه دي. خشوع او خضوع که چیرې نصیب شي؛ نو سبحان الله، که نه، صرف ذکر کول هم د فائدې نه خالي نه دي چې د دې په برکت به ان شاء الله خشوع هم نصیب شی. په مینځ مینځ کې محمد رسول الله ﷺ ضرور ویل پکار دی. او که نور ذکرونه هم وخت په وخت باندې وکړل شي؛ نو ډیره ښه خبره ده. که نه. کوم ذکر سره چې د زړه مناسبت وشي، هم هغه فائده ورکونکی دی، ان شاء الله هم د دې په وجه به کُشتي پارشي

## آیا درود ابراهیمي یوازې سړی ویلی شي؟ او بل دا چې دا په وظیفو کې مانع دی؟

**سوال:** ماته د درود ابراهیمي په باره کې وواییئ: ځکه چې زه د ډیر وخت نه په پابندي سره وایم ؛خو اوس ما آوریدلي دي چې دا صرف سړي ویلی شي او د ښځو له پاره د دې سخت ممانعت دی، د دې لوستل په نورو وظیفو کې مانع هم دی. مولانا صاحب! ماته تفصیلاً د درود ابراهیمي فضیلت او د آدابو په باره کې معلومات راکړئ!

**جواب:** د لمونځ په آخري قعده کې (التحیات) نه وروسته چې کوم درود ویل کیږي هغه ته درود ابراهیمي ویل کیږي دا د درود په ټولو صیغو کې افضل دی، تا ته چا غلط ویلي دي چې د ښځو له پاره د دې د لوستلو ممانعت دی، او دا هم غلطه ده چې دا په نورو وظیفو کې د ممانعت سبب دی.

---

[1] عن عبدالله بن بسران رجلاً قال: یارسول الله! ان شرائع الاسلام قدکثرت علی فاخبرنی بشیء اتشبث به قال: لایزال لسانک رطبًامن ذکرالله، وعن ابی سعیدالخدری ان رسول الله صلی الله علیه وسلم سئل ای العباد افضل درجة عندالله یوم القیامة ؟قال: الذاکرین الله کثیرًا الخ(ترمذی ج: ۲ص: ۱۷۳،باب ماجاء فی فضل الذکر)

## درود شریف څومره ویل پکار دي؟

**سوال:** زه د هرلمانځه نه وروسته د درود شریف یو تسبیح وایم. آیا درودشریف زیات زیات لوستل کیدای شي؟

**جواب:** د خپل صحت، قوت او دفرصت لحاظ ساتلو سره سره څومره زیات چې لوستل کیږي، د سعادت او د برکت موجب دی.

## درودشریف کله واجبیږي؟

**سوال:** ما لوستلي دي چې د حضور (صلي الله علیه وسلم) نوم مبارک د ویلو او د آوریدلو سره درود شریف ویل پکار دي، سوال دادی چې د ویلو او د آوریدلو په وخت د نبي (علیه السلام) نوم مبارک د یو نه ډیر ځله که ذکر شوي وي؛ نو د هر نوم مبارک نه وروسته درود شریف ویل پکاردي یایوځل درودشریف وویل شي نوبهتره به وي؟ او په داسې کولو سره ګناه خوبه نه وي؟

**جواب:** کله چې د نبي (علیه السلام) نوم مبارک په یو مجلس کې اول ځل راشي: نو په ټول مجلس والو باندې درود شریف ویل واجب دي، صلي الله علیه وسلم، او کله چې مکرر راشي نو هر ځل درود شریف ویل واجب نه، بلکې مستحب دي.[1]

## د ټولو نه افضل درود کوم یو دی؟

**سوال:** د ټولو نه افضل درود کوم یو دی چې افضل هم وي او مختصر هم وي؟ مثلاً زه دلمانځه له درود شریف (هغه درود شریف چې د التحیات نه وروسته په لمانځه کې ویل کیږي) نه پرته د لاندیني درودشریف زیات ذکر کوم:

**اللهم صل علی سیدنا محمد وعلی آل سیدنا محمد وبارك وسلم».**

**جواب:** د ټولو نه افضل خو د لمانځه درود شریف دی، کوم الفاظ چې تا لیکلي دي دا هم ډیر ښه دي، د مختصر کیدو په وجه ددې ذکر آسان دی.

## آیا په ځانته د درود شریف دومره ثواب ملاویږي څومره چې په جمع باندې په ناستې ویلو سره؟

**سوال:** آیا په یواځې والي باندې په خضوع او خشوع سره د درود شریف د ذکر کولو سره دومره ثواب ملاویږي څومره چې په دائره کې دخلکوسره په ناسته کې د درودشریف په ختم باندې ملاویږي؟

---

[1] وحاصله ان الوجوب یتداخل فی المجلس فیکتفی بمرة للحرج کماف السجود الا انه یندب تکرار الصلوة فی المجلس الواحد(ردالمحتارج ۱ ص: ۵۱۶ باب صفة الصلاة مطلب فی وجوب الصلاة علیه کلماذکرعلیه الصلاة والسلام)

**جواب:** په یواځې والي باندې د ویلو سره زیات ثواب ملاویږي؛ ځکه چې په دې کې د ریا کاري ویره نه وي.

## بې اودسه د درود شریف ذکر کول

**سوال:** له اوداسه پرته درود شریف ویل څنګه دي؟ یو سړی بې اودسه په لاره روان وي او په خله باندې د درود شریف ذکر کوي دده دا کار د نیولو لائق خو نه دی؟

**جواب:** درود شریف په اوداسه ویل افضل دي او له اوداسه پرته جائز دي.

## د درود (صلوة تنجينا) حکم

**سوال:** ما لوستلي و چې د (صلوة تنجينا) زر ځله لوستلو سره الله تعالي هر مشکل آسانه کوي یا په کوم مشکل کې چې وویل شي؛نو مراد به پوره شي، آیا زه د هر یو نیک حاجت له پاره بیا بیا لوستلی شم؟یعنې تر څو پورې چې هغه پوره شوی نه وي؟

**جواب:** ما ته دا معلومه نه ده ؛خو په هرحال دا درود ښه دی او د الله تعالي له پاره څه ګرانه ده چې الله تعالي د دې درود شریف په برکت سره مشکلات آسان کړي.

## د ناپاکې په ورځو کې د اسماء حسني تسبيح کول

**سوال:** آیا د اسماء حسني تسبیح د ناپاکي(حیض) په ورځو کې کول روا دي؟

**جواب:** هیڅ ګناه نشته. د ناپاکی (حیض) په ورځو کې د قرآن کریم تلاوت ممنوع دی، کوم بل ذکر ممنوع نه دی.

## تسبيح فاطمه له کومې ګوتې نه شروع کړي؟

**سوال:** تسبیح فاطمه د لوستلوپه وخت د شهادت د ګوتې نه شروع کړو یا غټې ګوتې نه شروع کړو.

**جواب:** د کومې نه چې غواړې نو شروع کړه!

## له ماښامه تر ماسخوتنه پورې وخت په مسجد کې په تلاوت او تسبيحاتو سره تيره ول

**سوال:** موږه یو څو ملګري عموماً روزانه د ماښام نه تر ماسخوتنه پورې په مسجد کې کینو، په دې مختصر وخت کې کله موږ انفرادي تلاوت او تسبیحات کوو. کله د روژې، لمونځ او د طهارت مسئلې زده کوو او ښایو، کله د مستندو عالمانو صاحبانو نه کتابونه وغیره وایو او آوروو، په موږه کې ملازمت والا او تاجران هم دي، زموږ یو ازیني مقصد په دې قیام کې دا

وي چې د روپو او پیسو د ګټلو نه نجات حاصل کړو او دا مختصر وخت د الله او د رسول په ذکر کې تیر کړو، ځینې حضرات وایي چې دا بدعت او د سنتو خلاف دی.

**جواب:** په دې کې درې عملونه ذکر شوي دي:

۱- د ماښام نه تر ماسخوتنه پورې وخت په مسجد کې تیرول، او دا تر ټولو ښه عبادت دی.

۲- انفرادي اعمال تلاوت او تسبیحات، ددې عبادت کیدل واضح دي.

۳- د دین مسئلې زده کول او ښودل او علمي مذاکره کول. دا هم بهترین عبادت دی، الغرض د ستاسو دا معمول شرعاً مامور به مستحب دی، دیته بدعت ویل غلط دي.

## د (لااله الا الله وحده لاشریک له ، اللهم اجرنی من النار).

## او نورو د لوستلو فضیلتونه

**سوال:** یو ځای په کتاب کې ما ولوستل چې «اللهم اصبحت اشهدک» چې کوم سړی په ورځ کې وایي؛ نو د ورځې ګناهونه یې معاف کیږي او که په شپه کې یې وایي؛ نو د شپې ګناهونه یې معاف کیږي، دغه شان (لااله الا الله وحده لا شریک له) په لوستلو سره لس ګناهونه ختمیږي او د لسو نیکو اضافه کیږي، دغه شان د سهار په وخت کې د سهار د لمانځه نه وروسته او د ماښام په وخت کې د ماښام د لمانځه نه وروسته «**اللهم اجرني من النار**» اووه یا یوولس ځله ولولي؛ نو که چیرې په دغه ورځ وفات شو؛ نو د جهنم نه به ازاد شي، دا درې واړه خبرې تر کومې پورې صحیح دي.

**جواب:** دریواړه خبرې صحیح دي[1] والله اعلم !

## د درجو د اوچتوالي له پاره وظیفې

**سوال:** سوال دادی چې دحضور ﷺ حدیث مبارک دی، چې کوم کس دجمعې په ورځ دمازدیګر دلمانځه نه وروسته په هغه ځای کیني او اتیاځله درودشریف ولولي، دهغه به داتیاکلنو ګناهونه معاف شي او جنت کې به یې اتیادرجې اوچتې شي، سوال دادی چې دچاعمر اتیا کاله نه وي؛نود هغه به داتیاکالو ګناهونه څنګه معاف کیږي؟

**جواب:** که چیرې اتیاکاله یې عمروي؛ نودهغومره کلنو ګناهونه به یې معاف شي،که نه هغومره درجې به یې اوچتې شي.

---

[1] اللهم انی اصبحت اشهدک ،،(ابوداود) ، لا اله الا الله وحده لاشریک له ......الخ (مشکوة ص: ۲۱۰ باب مایقول عندالصباح والمساء) ، اللهم اجرنی من ا لنار،،(ابوداود)

**سوال:** استغفار، درودشریف، دعاګانې، دریمه کلیمه دټولونه زیات ثواب دکوم شي په لوستلو کې دی؟

**جواب:** کلیمه شریفه دټولونه غوره ده (دریمه کلیمه دې کې داخل ده)[1] دویمه مرتبه باندې درودشریف دی،اوپه دریمه مرتبه باندې استغفار دی. خوزموږ په شان خلک کوم چې ګناهونو کې مبتلادي هغوی له پاره استغفارافضل دي چې دظاهري اوباطني ګناهونونه پاک اودرودشریف اوکلیمه ولوستل شي.

## ایا نبي کریم صلی الله علیه وسلم مظلوم د ظالم خلاف بد دعا (ښیرا) نه منع کړی دی؟

**سوال:** ما یو ځای کې لوستلي و چې حضور صلی الله علیه وسلم د ظالم له پاره د بد دعايي (ښیرا) نه مظلوم منع کړی و، د حقیقت نه مو خبر کړئ!

**جواب:** ماته دا حدیث یاد نه دی، البته په یو حدیث کې ذکر شوي دي چې: حضرت عائشې (رضي الله عنها) یو سړي ته بد دعا کوله، حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایلو چې ته د هغه بوج ولې سپکوې؟[2]

## د غیرمسلم او مذهبي پیشې والا نه دعا اخیستل

**سوال:** ایا مسلمان د یو بل مذهب والا عالم یا مذهبي پیشوا څخه غوښتنه کولی شي چې هغه دده له پاره یا دده د ګناهونو د مغفرت له پاره د الله تعالی نه دعا وغواړي؟

**جواب:** غیر مذهبه یا مذهبي پیشوا خو په خپله په عذاب کې مبتلا دي، ده ته دا ویل چې زما له پاره دعا وکړئ چې الله تعالي ما د عذاب نه بچ کړي، دا بلکل فضول خبره ده.

## ایا د ښنګرو لاندې پرتوګ اغوستونکي دعا قبلیږي؟

**سوال:** که چیرې یو سړی د ښنګرو (ګیټو) نه لاندې پرتوګ اغوندي او بیا په دغه حالت کې دعا هم کوي؛ نو شرعا ددې سړي دعا قبلیږي او که نه؟

---

۱ ] قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :افضل الذکر لا اله الا الله ،وافضل الدعاء الحمدلله (ترمذی ج:۲ ص:۱۷۶ ،باب الدعوات)_

۲ ] عن عائشة قالت :سرق لها تدعو علیه فقال لهارسول الله صلی الله علیه وسلم :لاتسبخی عنه .وفی الحاشیه :قوله لاتسبخی عنه ......ای لاتخففی اثم السرقة عنه اوالعقوبة بدعائک علیه ٠زاد احمدای الامام دعیه بذنبه وکانه صلی الله علیه وسلم رآهاوهی فی الغضب فاشارالی ان مقتضی الغضب تتمیم العقوبة له والدعاء علیه یخفف العقوبة عنه فاللایق بذالک ترک الدعاء ومراده صلی الله علیه وسلم ان تترک الدعاء الا ان تتم له العقوبة (سنن ابی داودج:۲ص:۳۱۶ کتاب الادب ،باب فیمن دعاعلی من ظلمه)

**جواب:** په خپله دې سوچ وکړي چې په عین هغه وخت کې چې کله سړی د الله تعالی نافرماني کوي دده دعا به څه قبوله شي؟[1]

## د ښنګرو پټونکي په دعا نه قبليدو باندې اعتراض او د هغه جواب

**سوال:** دويمه مسئله د دعا سره متعلقه ده، چې په هغه کې سايل سوال کړی دی چې که چیرې يو سړی د ګیټو نه لاندې پایجامه یا پرتوګ واچولو او بیا په دغه حالت کې دعا هم ګوي: نو شرعا ایا دده دعا به قبوله شي او که نه؟ جواب ورکړل شو چې په خپله دې سوچ وکړي چې په عین دغه حالت کې چې کله سړی د الله تعالي نافرماني هم کوي دده دعا به قبوله شي؟ جناب والا! څه خیال دی؟ يو ډیره خریلی سړی او د منافق نه پرته مشرک، کافر، زندیق او په خپله د شیطان په هغه وخت کې دعا چې کله هغه د نافرماني په عروج باندې و او د الله تعالی نه یې دعا وکړه او خپل ژوند یې تر قیامته پورې قبولیت یې حاصل کړ، مولانا تهانوي رحمه الله، ډاکټر عبدالحي رحمه الله او مولانا روم رحمه الله. ټول ستاسو په نظر کې دي او د دوی تعلیمات ستاسو مخې ته دي، ایا دعا هم رد کیږي؟ بس ددې درجې مختلفې دي. څه فورا او څه په اخرت کې.

ستاسو په خدمت کې عرض دی چې ته ما پیژنې هم او زه يو علمي جواب غواړم یوازې خوله بندولو والا یا عوام الناس چپ کولو والا جواب ما ته نه دی پکار. الله تعالی دې وکړي چې تاسو په خیریت سره یئ، په دعاګانو کې مو یاد ساتئ، امید دې چې زما لهجه به په تاسو بده ونه لګیږي.

**جواب:** تاسو جناب د حضرت تهانوي رحمه الله، حضرت عارفي رحمه الله او د حضرت رومي رحمه الله حواله چې کومه نقل کړې ده، هغه په سر او سترګو باندې، خو زه تا ته د صحیح مسلم حدیث اوروم...... ''د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چې وېې فرمایل رسول الله صلي الله علیه وسلم: بې شکه الله تعالی پاک (طيب) دی نه قبلوي مګر پاک شی او بې شکه الله تعالی ایمان والاوو ته هم ددې خبرې حکم کوي چې د کومې یې رسولانو ته کړی دی او ارشاد یې وفرمایلو چې: اې ایمان والاوو! موږ چې تاسو ته کوم رزق درکړی دی ددې د پاکیزه شیانو نه خوری، بیا نبي علیه السلام د يو سړي ذکر وکړ چې هغه (د حج له پاره) اوږد سفر کوي، ویښته ببر، بدن یې په دوړو سره ګنده وي او هغه د اسمان طرف ته لاس خواره کړي الله تعالي ته اې ربه اې ربه وایې او رابلي یې، حالانکې دده خوراک حرام، دده څښاک حرام، دده لباس حرام، او دده غذاء حرامه، اوس دده دعا به څنګه قبوله شي؟[2]

---

[1] وعن ابن عمر ان النبی صلی الله علیه وسلم قال:لاینظرالله یوم القیامة الی من جر ازاره بطرًا، متفق علیه (مشکوة ص:۳۷۳ کتاب اللباس الفصل الاول).

[2] عن ابی هریرة قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :یاایها الناس ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه...

د حدیث شریف په اخري فقرې کې ستاسو د سوال جواب دی چې د داسې نافرمان دعا به څنګه قبلیږي؟ د ګیټو نه ښکته پاجامه ساتل تکبري ده[1] او تکبري د ټولو باطني ګناهونو نه بدترینه ګناه ده چې هغې ته ام الکبائر ویل شوي دي او ام الخبائث ورته ویل شوي دي کوم سړی چې عین د دعا په حالت کې د ام الکبائر مرتکب وي؛ نو تاسو ووایئ چې دده دعا به څنګه قبوله شي؟

پاتې شو ددې اکابرینو رحمه الله حواله؛ نو په دې پوه شه چې د دعا د قبلیدو دوه معناوې دي یو د مطلوبه شی ملاویدل دي، ددې اکابرو د حوالو نه دغه مراد دی اودویم په دعا باندې د الله تعالی د رضامندي مرتکب کیدل او د الله تعالی د دعا کولو په بنده باندې خوشالیدل. په حدیث شریف کې ددې قبولیت نفي شوې ده او زما په فقرې کې هم دغه مراد دی، عین د دعا په حالت کې هم چې کوم سړی د الله تعالی نافرماني کوي کبیره ګناه دی (بلکه ام الکبائر) مرتکب وي، ددې په دعا باندې به دالله تعالی د رضامندي څه مرتکب شي؟ امید دی چې مزاج به مو په عافیت سره وي.

## د دعا د قبولیت له پاره د وظیفو کول ولې ضروري دي؟

**سوال:** مورې د الله پاک نه په ساده الفاظو کې دعا غواړو او خپل مقصد وړاندې کوو له څه وجې دعا نه قبلیږي، که چیرې یو بوزرګ وایي (یا ډیر کتابونه هم ملاویږي) چې د هر لمانځه نه وروسته یا د سهار د لمونځ نه وروسته (اوداسې نور...) چې دا ایت دومره ځله په پابندي سره لوله. ددې نه وروسته مقصد هم پوره کیږي؛ نو داسې ولې دي؟ د دعا ګانو قبلولو والاخو یوازې الله تعالی دی، نو دا فرق ولې دی؟ چې وظیفه ووایئ؛ نو بیا به کامیابي وي اوکه نه؟

**جواب:** دعا دهر چا قبلیږي، خوشرط دا دی چې د حضور قلب سره وي اوځینې وظیفې چې کومې د دعا د قبولیت له پاره ښودل کیږي ددې حیثیت د یوې وسیلې وي، هره ورځ چې د مسلسل کومه دعا وکړل شي؛نوهغه قبلیدوته زیاته نزدې وي له دې وجې هیڅ اشکال نه شته.

## دعا ضرور قبلیږي، مایوسه کیدل نه دي پکار

**سوال:** محترمه! د دعا دقبولیت له پاره کوم یو عمل الله تعالی ته قبول دی چې په هغه سره دعا زر قبلیږي؟ له دې وجې دعا کیږي او قبلیږي نه؛ نو بیا انسان د مایوسي ښکار شي او

---

...بقیه د تیر مخ]..ان الله طیب لایقبل الاطیبًا،وان الله امرالمومنین بما امرالمرسلین ،فقال:یاایهاالرسل کلوا من الطیبات واعملوا صالحًا ،انی بماتعملون علیم .قال یاایها الناس کلوا من طیبات مارزقناکم ، قال :وذکر الرجل یطیل السفراشعث اغبریمد یده الی السماء یارب ! یارب ! ومطعمه حرام ومشربه وملبسه حرام وغذی بالحرام فانی یستجاب لذالک .(سنن الترمذی ج:۲ص:۱۲۳،باب ومن سورة البقرة طبع دهلی)

[1] وعن ابن عمر ان النبی صلی الله علیه وسلم قال:لاینظر الله یوم القیمة الی من جر ازاره بطرًا ، متفق علیه (مشکوة ص:۳۷۳کتاب اللباس ،الفصل الاول)

ځينې وخت په يقين کې کمزوري راځي.

**جواب:** دعا د الله تعالي په بارګاه کې خپله عاجزي او بندګي د وړاندې کولو له پاره وي او د الله تعالی وعده ده چې تاسو دعا کوئ، زه به يې قبلوم، له دې وجې دعا خو په هر حال کې قبليږي، البته د قبوليت صورتونه مختلف دي:

۱- کوم شی چې د الله په حکمت کې بهتر وي؛ نو هغه شی ورکوي.

۲- کله د دې نه بهتر شی ورکوي.

۳- کله دا دعاګانې د ده د آخرت ذخيره جوړولی شي.

په هر حال يقين ساتل پکار دي چې دعا به ضرور قبليږي، مايوسه کيدل نه دي پکار.

## د الحمد شريف او د تعوذ د لوستلو باوجود د احکام الهي خلاف ورزي او د شيطان تسلط ولې وي؟

**سوال:** موږ په هر لمانځه کې الحمد شريف وايو، چې دا د الله تعالی نه خاص دعا ده او د دې نه وروسته د الله تعالی د احکامو خلاف ورزي هم کوو، دويم دا چې شيطان ته کلاو چتې ملاوشوې ده چې هغه خلکو ته دوکه کوي، دويم طرف ته موږ په هر لمانځه کې اعوذ وايو د دې نه باوجود شيطان مو دوکه کوي اعوذ بالله چې وايو، موږ د الله تعالی نه پناه غواړو، کله چې د الله تعالی نه پناه حاصله شي؛ نو بيا شيطان يې څنګه دوکه کوي؟ يعنې يوازې د شيطان غلبه وي داسې ولې دي؟

**جواب:** اول خو د زړه د توجه له پاره دعا کول پکار دي هغه موږ نه کوو، د دې نه پرته چې الله تعالی کومو بندګانو له پناه ورکړې، د دې مطلب دا نه دی چې شيطان د دوی د دوکه کولو کوشش هم نه کوي، هغه کوشش کوي، خو الله تعالی د دې بندګانو حفاظت کوي او کله چې د نفس او د شيطان د شرارت نه د دوی نه غلطي کيږي؛ نو فورا الله تعالي ته رجوع کوي او توبه او استغفار کوي چې په هغه سره د دوی ګناهونه معاف کيږي، دا هم د پناه يو صورت دی چې په دوی باندې د شيطان هر وخت تسلط نه وي، بلکې د توبې او د استغفار په برکت سره د دوی درجې نږدې او اوچتې کيږي.

## د حضور ﷺ له پاره موږ دعاګانې ولې کوو؟

**سوال:** حضور ﷺ د امت دعاګانو ته محتاج نه دی، که چيرې دا صحيح وي؛ نو د حضور ﷺ له پاره دعاګانې ولې غوښتل کيږي؟

**جواب:** دوه وجوهات دي، يوه دا چې حضور ﷺ محتاج نه دی، موږ محتاج يو او د حضور ﷺ له پاره د غوښتلو حکم ورکول زموږ د احتياج له وجې دی، چې د حضور ﷺ د برکت

له وجې دالله تعالى رحمت زموږ طرف ته متوجه شي او زموږ حضور ﷺ سره په تعلق اومحبت کې اضافه نصيب شي، خلاصه داده چې دا زموږ دمحبت تقاضاه ده..... دويمه وجه داده چې حضور ﷺ دالله تعالى دنزديکت او اوچتو درجو باندې فائزدی، خوهروخت په هغه درجو کې اضافه کيږي اودأمت مخلصان چې څومره دعاګانې او درود سلام حضور ﷺ باندې کوي هغومره به درجوکې اضافه کيږي اودحضور ﷺ درجې اودالله تعالى درضا نور به دامت طرف ته هم راځي.[۱]

## د ماثورو دعاګانو اثر ولې نه کيږي؟

**سوال:** مختلفو حديثونوکې دځينودعاګانوپه لوستلوباندې دمال اوجان دحفاظت وعده فرمايل شوې ده، يادخواهش دپوره کيدو خوشخبري اوداسې نور... دې باره کې ديوکس داسوچ دی چې دمسلمان کيدو له وجې دازموږايمان دی چې دحضور ﷺ يوه خبره هم غلطه نه شي کيدای، بل طرف ته موږ اکثروينو چې موږدنقل شوي حديث دعا کوو، خودهغه حديث مقصدراته نه حاصليږي، ددې له وجې په حقيقت کې دعملونو اويقين کمښت وي. ايا داخبره صحيح ده؟

**جواب:** دحضور ﷺ خبره حق ده[۲]، خواکثرزموږ په دعاګانوکې چې په لوستلوکې څنګه استحضارپکاروي هغه نه وي[۳] اوکله کله زموږ بد عملونه ددې مقصدپه حاصلولوکې خنډوي[۴]، ددې مثال داسې دی چې ډاکټران ديوې دوايي خاصيت بيانوي اودهغې باربار تجربه شوې وي، خوکله کله دهغې دوا اثرنه ښکاره کيږي: نوددې دا وجه نه وي چې دې دوايي کې اثرنه وي، بلکې ددې داوجه وي چې څه وجه ددې په اثرکې خنډجوړيږي.

## زموږدعاګانې ولې نه قبليږي؟

**سوال:** له تاسونه ديوې خبرې پوښتنه کول غواړم. هغه داچې زموږ دعاګانې ولې نه قبليږي؟ ځينې خلک نه قرآن لولي اونه دحقوق العباد خيال ساتي. خوبياهم هغوی ته هيڅ

---

۱ ] دزيات تفصيل اوحوالو دپاره اوګورئ:تير شوی عنوان.....``ايصال ثواب،، سره د مسائلو او حوالو)۔

۲ ]ومابنطق عن الهوى ان هو الا وحى يوحى ،، (النجم: ٤)۔

۳ ]عن ابى هريرة رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :ادعوا الله وانتم موقنون بالاجابة، واعلموا ان الله لايستجيب دعاء من قلب غافل لاه٥رواه الترمذى (مشكوة ص:١٥٩،كتاب الداعوات، الفصل الثانى)۔

٤ ]عن حذيفة بن اليمان رضى الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم قال:والذى نفسى بيده لتامرن بالمعروف ولتنهون عن المنكر،اوليوشكن الله ان يبعث عليهم عذابًا منه فتدعونه فلا يستجيب لكم (ترمذى ج:٢ص:٣٩)۔

پریشاني، غم یاناروغي نه وي، بلکې خوشاله وي اوهغه قسمه خوشالي اودنیاداري کې مبتلاوي او ځینې خلک د لمانځه اوقرآن پابندوي اومختلف قسمه پریشانوکې مبتلاوي، له ناروغي نه خلاصیږي، داسې لیدو سره ډیر افسوس راشي،اخرداسې ولې دي؟ الله تعالی دهغوی ولې نه اوري؟ او ددې له وجې دخودکشي خیال راځي.

**جواب:** دلته په یوڅوخبروباندې ځان پوهول پکاردي:

لومړی داچې دیوکس په ښکاره باندې دعاقبلیدل، دهغه دالله تعالی په نزدباندې دقبلیدو دلیل نه دی او دچا دعا نه قبلیدل دهغه دمردودکیدونښه نه ده. بلکې اکثرمعامله التپه وي. چې یوکس دالله تعالی په نزدباندې قبول وي، خودهغه دعاګانې په ظاهره باندې نه قبلیږي اوبل کس دالله تعالی ته نزد باندې ناخوښه وي، خودهغه دعاسمدستي قبوله شي. دشیخ تاج الدین بن عطاءالله اسکندري رحمه الله کتاب کې مې حدیث لوستلی دی. دهغه مفهوم داسې دی چې یوکس دعاله پاره لاس پورته کوي. الله تعالی فرښتوته فرمایي چې دده کار سمدستي وکړئ، ځکه چې دده لاس پورته کول زماخوښ نه دي اویوکس دعاکوي؛ نوالله تعالی فرښتوته فرمایي چې دده کارکولوکې صبر وکړئ، ځکه چې دده زمامخکې لاس پورته کول اومنت کول زماخوښ دي.

دویم داچې یوکس ته دعاکولوتوفیق ملاویدل ډیرغټ نعمت دی.کوم کس چې دالله تعالی مخکې لاس پورته کړي هغه ته دا بدګماني چیرې هم نه دي کول پکارچې دهغه به دعاقبوله شي اوکه نه؟ بلکې یقین ساتل پکاردي، چې الله تعالی به یې دخپل رحمت له وجې ضرورقبلوي د ابوداود، ترمذي،ابن ماجه اومستدرک حاکم په حدیث کې دي چې الله تعالی ډیرزیات دکرم او حیا مالک دی. کله چې بندګان دهغه په پاک دربارکې لاس پورته کوي؛ نوهغه ته شرم ورځي او هغوی خالي لاس نه واپس کوي.[1]

دریم داچې زموږکوتاهي اوغلط فهمي ده چې کوم شی موږ دالله تعالی نه غواړو،که چیرې هماغه شی ملاوشي؛ نوموږداګڼو چې زموږدعاقبوله شوه اوکه چیرې هغه غوښتل شوی شی راته ملاونه شي؛ نوموږ دا ګڼوچې زموږ دعاقبوله نه شوه، حالانکې ددعا د قبلیدو یوازې دا یوشکل نه دی. دمسند احمد یوحدیث کې دي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې کله هم مسلمان بنده دعاکوي؛ نوالله تعالی دخپل برکت له وجې دهغه په دعاکې د دریو شیانونه یوشی ضرور ورکوي، یاخوچې هغه څه غوښتي وي هماغه ورته ورکړي، یادهغه دعا د اخرت له پاره ذخیره کړي یادهغه ددعاله وجې دهغه کس نه څه مصیبت لرې کړي.(مشکوة)[2]

---

۱] حدثنی ابوعثمان رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه و سلم :ان ربکم حی کریم یستحی من عبده اذا رفع یدیه الیه ان یردهماصفراً (ابوداود ج:۱ص:۲۱٦باب الدعاء طبع ایچ ایم سعید)۔

۲] عن ابی سعیدالخدری رضی الله عنه النبی صلی الله علیه وسلم....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

غرض دا چې ضرور قبلیږي، خو د قبولیت شکلونه بیل بیل دي. له دې وجې په بنده فرض دي. چې د الله تعالی نه هر وخت غواړي او پوره اطمینان وساتي چې الله تعالی به دهغه په حق کې ښه فیصله فرمایي. د دعاګانو د نه قبلیدو له وجې زړه تنګول نه دي پکار او د الله تعالی نه خفه کیدو له وجې د خو د کشي خیالات ذهن ته راوستل د انسان کم ظرفي ده.

حدیث شریف کې دي چې د بنده دعا ضرور قبلیږي، خو دې شرط باندې چې هغه د بیړې نه کار وانه خلي، عرض وشو چې د بیړې کولو څه مطلب دی؟ حضور ﷺ وفرمایل چې: بیړه کول دادي چې انسان دا سوچ وکړي چې ما ډیرې زیاتې دعاګانې وکړې خو قبولې نه شوې او دعا کول پریږدي [١]

## کله چې د هر یو شي وخت مقرر دی؛ نو بیا دعاګانې ولې غواړو؟

**سوال:** ما اوریدلي دي او په دې خبره باندې مې یقین هم دی چې د هر یو شي وخت مقرر دی. مثلا: د واده، مرګ، پیدایښ او داسې نورو...؛ نو بیا موږ دعاګانې ولې غواړو؟ مثلا: ځینې جینکۍ د ودونو له پاره وظیفې کوي: نو ددې څه فایده؟ ځکه چې الله تعالی د واده له پاره کوم وخت مقرر کړی وي، واده خو به هم هغه وخت باندې کیږي. ایا زموږ وظیفې لوستلو او دعاګانو کولو له وجې به هغه مخکې وشي؟ زموږ دعاګانو غوښتلو سره به ایا الله تعالی تقدیر بدل کړي؟

**جواب:** الله تعالی دنیا دارالاسباب جوړه کړې ده او دعا هم اسبابونه یو سبب دی او اسباب د تقدیر مخالف نه دي، بلکې د تقدیر ماتحت دي[٢] ګورئ! کله چې موږ ناروغان شو: نو موږ علاج کوو، دا علاج کول هم د تقدیر له وجې وي، که چیرې د الله تعالی خوښه وي: نو د علاج له وجې به موږته شفا ملاوشي او که چیرې منظور نه وي: نو نه به کیږي، همدغه حال د دعاګانو هم ګڼل پکار دي چې دا هم د تقدیر ماتحت دی. که چیرې الله تعالی ته منظور وي؛

---

...بقیه د تیر مخ]. قال:مامن مسلم یدعو بدعوة لیس فیها اثمٌ ولاقطیعة رحم الا اعطاه الله بهااحدی ثلاث ،امااان یعجل له دعوته ،واماان یدخرهاله فی الآخرة ،واماان یصرف عنه من السوء مثلها قالوا:اذا انکثر کثر،قال :الله اکثر، رواه احمد (مشکوة ص:١٩٦کتاب الدعوات)_

١ ] قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :یستجاب للعبدمالم یدع باثم اوقطیعة رحم مالم یستعجل ،وقیل :یارسول الله !ماالاستعجال ؟قال:یقول :قددعوت ،وقددعوت فلم اریستجاب لی ، فیستحسر عندذالک ویدع الدعاء (مشکوة ص:١٩٤کتاب الدعوات)_

٢ ]عن سلمان الفارسی رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :لایردالقضاء الا الدعاء ولایزیدفی العمرالا البر(رواه الترمذی) عن ابن عمرقال :قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :ان الدعاء ینفع ممانزل وممالم ینزل ،فعلیکم عبادالله بالدعاء رواه الترمذی (مشکوة ص:١٩٥،کتاب الدعوات ،الفصل الثانی)، ایضًا:ان من القضاء ردالبلاء بالدعاء فالدعاء سبب لردالبلاء (احیاء العلوم ج:١ص:٣٢٨،کتاب الاذکاروالدعوات ،الباب الخامس......الخ)_

نوغوښتل شوی شی به راته ملاوشي، که منظوره نه وي: نونه به ملاویږي او دا هم یادساتل پکاردي چې دعا دخپل احتیاج اوبندګي داظهارله پاره ده، له دې وجې انسان ته ښه کار (عاجزي اظهاراوبندګي) کول پکاردي، دالله تعالی کارونه هم هغه ته پریښودل پکاردي.

حافظ وظیفه تو دعا گفتن است وبس　　　دربند آن مباش که نه شنید یا شنید

## د حضور ﷺ د زیارت کولو وظیفه

**سوال:** زه دحضور ﷺ زیارت کول غواړم، مهرباني وکړئ دلوستلو څه داسې عمل راته وښایئ چې مونږ ته په خوب کې یابیداري کې دحضور ﷺ زیارت نصیب شي، زماډېرزیات شوق دی، څه داسې عمل راته وښایئ چې مونږ یې اساني سره وکړو اوزما په شان چې نورکوم خلک د دې خواهش لري هغوی یې وکړي.

**جواب:** دحضور ﷺ زیارت په خوب کې کیدل ډیرغټ سعادت دی، دا عاجزانسان، خود حضرت حاجي امدادالله مهاجرمکي رحمه الله دذوق عاشق دی، دهغه په خدمت کې چاعرض وکړ، چې حضرت! دعاوکړئ چې په خوب کې راته دحضور ﷺ زیارت وشي، ویې وفرمایل! وروره !ستاغټه حوصله ده چې دحضور ﷺ زیارت غواړې، مونږخوځان د دې لائق هم نه ګڼو چې خوب کې د روضې مبارکې زیارت وکړو.

په هرحال اکابرین فرمایي چې دوه شیان په زیارت کولوکې مددګاردي، یوپه هریوشي کې دسنت اتباع کول، دویم درودشریف ډیرزیات لوستل.

## ددعا تحفه (دانس رضي الله عنه دعا)

**سوال:** نن سباڅنګه چې تاسوته پته ده، ملکي حالات ډیرزیات خراب دي، هرطرف ته هنګامي دي، دچاعزت اومال اوداسې نور... محفوظ نه دي، له دې وجې راته دعاوښایئ. مونږاوریدلي دي چې حضور ﷺ داسې یوه دعا حضرت انس رضي الله عنه ته ښودلې وه، که چیرې هغه راته وښایئ: نو ستاسو مهرباني به وي.

**جواب:** ستاسو دخواهش له وجې هغه دعالیکم، کومه چې حضور ﷺ خپل خاص خادم حضرت انس رضي الله عنه ته ښودلې وه، ددې دبرکت له وجې هغه دهرقسمه ظلمونواوفتنونه محفوظ و، دا دعا علامه سیوطي رحمه الله په (جمع الجوامع) کې نقل کړې ده او شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله ددې شرح په فارسي ژبه کې لیکلې ده اودهغې نوم یې ,,**استیناس انوارالقبس فی شرح دعا انس**،، تجویزکړی دی، دلته مونږ د انس رضي الله عنه دعااودفارسي شرح په پښتو ترجمه کې وړاندې کوو، عالمان اوطالبان، داسلام مبلغین اوټول مسلمانان دې داسهار اوماښام لولي، ان شاء الله هغوی ته به هیڅ تکلیف نه رسیږي..... دعادادہ:

**بسم الله على نفسى ودينى، بسم الله على اهلى ومالى وولدى، بسم الله على ما اعطانى الله، الله ربى لااشرک به شيئا، الله اکبر، الله اکبر، الله اکبر، واعزواجل واعظم مما اخاف واحذر عزجارک وجل ثناوک ولااله غيرک، اللهم انى اعوذبک من شرنفسى ومن شرکل شيطان مريد، ومن شرکل جبار عنيد، فان تولوا فقل حسبى الله لااله الا هوعليه توکلت وهورب العرش العظيم، ان ولى الله الذى نزل الکتب وهويتولى الصّٰلحين.**

((دا دحضرت انس بن مالک رضي الله عنه دعاده، چې دحضور صلی الله علیه وسلم خاص خادم و. لس کاله يې دحضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کې تيرکړي وو اوحضور صلی الله علیه وسلم ورته دهغه دمورپه عرض کولوباندې ددين اودنياله پاره خاص ډول دعا کړې وه اوالله تعالى دحضور صلی الله علیه وسلم ددعا دبرکت له وجې دهغه په عمرمال اواولادکې ډيرزيات برکت اچولى و؛ نودهغه عمردسلو کلونونه زيات و اودصلبي اولاد تعداد يې سلوته رسيدلى و، هغو کې درې اوياسرې اوپاتې ښځې وې، دهغه باغ په کال کې دوه ځله ميوه کوله. دادنيابرکتونه وو (کوم چې ورته دحضور صلی الله علیه وسلم ددعاله وجې حاصل شوي وو، د اخرت د برکاتواندازه يې څوک کولى شي)

شيخ جلال الدين سيوطي رحمه الله دحديثويوجليل القدرحافظ دی، هغه په (جمع الجوامع) کې نقل کړي دي چې ابوالشيخ رحمه الله په (کتاب الثواب) او ابن عساکر رحمه الله په خپل تاريخ کې داواقعه نقل کړې ده، چې يوه ورځ حضرت انس رضي الله عنه دحجاج بن يوسف ثقفي سره ناست و، حجاج حکم وکړچې ده ته دې څلورسوه مختلف اسونه وښودل شي، دحکم تعميل وشو، حجاج حضرت انس رضي الله عنه ته ووېل: چې وفرمايئ (۱) خپل اقا (حضور صلی الله علیه وسلم) سره هم تاسو چيرته داسې ښه اسونه اود نازاونعمت سامان ليدلى و، ويې فرمايل چې په الله تعالې مې دې قسم وي چې ماحضور صلی الله علیه وسلم سره له دې نه ډيرزيات ښه شيان ليدلي دي اوما دحضور صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دي، حضور صلی الله علیه وسلم به فرمايل: کوم اسونه چې خلک ساتي، هغه درې قسمه دي:

(۱): يوسړى اس په دې نيت باندې ساتي چې په دې باندې به دالله تعالى په لارکې جهادکوم اودبهادري دادبه حاصلوم، دهغه اس متيازې، سوټې، غوښه، هډوکي اووينه به دقيامت په ورځ باندې دهغه د اعمالوپه تله کې تلل کيږي.

(۲): دويم کس اس دې نيت باندې ساتي چې دضرورت په وخت کې به پرې سورلى کوم اوډپيدل ګرځيدو د زحمت نه به بچ شم (دی نه دثواب مستحق اونه دعذاب)

---

۱ ) دصحت په وجه باندې دافقره دحجاج دغرورنښه ده.دهغه په حالاتوباندې غورکولونه معلوميږي چې دمالدارئ اودولت دنشې په وجه باندې هغه دخود پسندئ په مرض کښې مبتلاشوې وو.دحضور صلی الله علیه وسلم په اصحابوباندې خپل فضيلت خودلودپاره بعضې غلط کارونه به دهغه نه کيدل.دافقره هم ددې سلسله يوه فقره ده.مترجم

(۳): دریم هغه کس دی کوم چې اسونه یوازې دشهرت اونوم کولوله پاره ساتي، چې خلک وګوري چې فلانکي سره دومره ښائسته اسونه دي، دداسې کس ځای دوزخ دی.

اې حجاج! ستااسونه هم دې کې شامل دي، حجاج دې خبرې اوریدوسره غوسه شو اوغوسه یې ډیره سخته شوه او ویې ویل اې انسه! کوم خدمت چې تادحضور ﷺ کړی دی که چیرې دهغه لحاظ نه وای..... اوکه چیرې ماته امیرالمومنین عبدالمالک بن مروان ستاپه سفارش اورعایت له پاره خط نه وای لیکلی؛ نوپته نه شته چې نن به تاسره څه کیدل؟ حضرت انس رضي الله عنه وفرمایل، په الله مې دې قسم وي ته ماته هیڅ نه شې ویلی اونه تاکې دومره همت شته چې ته ماته په بدنظرسره وګورې. ما د حضور ﷺ نه یوڅو داسې کلیمې زده کړې دي، چې زه همیشه دهغو په پناه کې یم اوهغو کلیمو له وجې ماته نه دبادشاه دبادشاهت نه اونه دشیطان دشرنه څه ویره شته. حجاج دې کیلمو دهیبت له وجې بې خوده اومبهوت شو. یوڅه وخت وروسته یې سرپورته کړ اوویې ویل اې ابوحمزه! هغه کلیمې ماته هم وښایه. ویې فرمایل چې تاته به یې بالکل نه ښیم. په الله تعالی مې دې قسم وي ته دهغو اهل نه یې.

کله چې دحضرت انس رضي الله عنه دوفات وخت راغی. ابان چې دحضرت انس رضي الله عنه خادم و. حاضرشو او اواز یې وکړ. حضرت وفرمایل څه غواړې؟ عرض یې وکړ. هغه کلیمې زده کول غواړم کومې چې حجاج ستاسونه زده کول غوښتل. خوتاسوهغه ته ونه ښودلې، ویې فرمایل اوتاته یې ښیم، ته دهغو اهل یې، مادحضور ﷺ لس کاله خدمت وکړ اودحضور ﷺ وفات داسې وخت کې وشوچې هغه زمانه راضي و. دغه شان تازمالس کاله خدمت وکړ اوزه دنیانه داسې حالت کې رخصتیږم. چې زه ستانه راضي یم. سهار اومابنام داکلیمې لوله.الله تعالی به دې د هرقسمه افتونو او مصیبتونو نه محفوظ ساتي هغه کلیمې دادي:

(**بسم الله علی نفسي ودیني**) یعنې حفاظت غواړم اوپناه غواړم دالله تعالی په نوم دخپل نفس اودین، کیدای شي چې دبسم الله نه مراد پوره بسم الله الرحمن الرحیم وي، چې دهغې په لومړی جز باندې صبر شوی وي، څنګه چې وویل شي چې څه لولې؟اوجواب وشي چې الحمدالله لولم. مراد پوره سورت وي، حفاظت کې دنفس تخصیص اودین له دې وجې فرمایلي دي چې دهرکمال حاصلولودبنیاداصل نفس اودین دی، بیانفس یې مقدم فرمایلی دی، ځکه چې نفس ددنیااودیني هرکمال حاصلو. له پاره موقوف علیه دی، له دې وجې نفس هلاکت ته اچول حرام اودخپل طاقت مطابق ددې حفاظت واجب دی، شرعي مسائلوکې لیکل شوي دي که چیرې مړی دچامړی کې ونښلي (چې دهغې له وجې تکلیف وي) اوهلته اوبه موجودې نه وي چې دهغو په ذریعه باندې اینښتې مړی کښته کړل شي(اونه دهغې دکښته کولوڅه صورت وي)؛ نوداسې وخت کې دشرابوګوټ کول چې هغه قطعي حرام دي. دهغه له پاره حلال دي، بلکې واجب به وي، چې نفس کوم چې دژوند دحقیقت حاصلولو

ذریعه ده باقي پاتې شي، دجبراوظلم په وخت کې دکفر کلیمه په خوله باندې راوستل.
خودې شرط سره چې په زړه کې دایمان نه مطمئین وي، همدغه شان دی، یعنې که چیرې
دمجبوري په حالت کې دځان بچ کولوله پاره څه نامناسب الفاظ وویل شي اوزړه یې په ایمان
باندې قائم وي؛ نودنفس اودین له پاره اجازه شته اوکه چیرې څوک همت دارپه عزیمت
باندې عمل وکړي اوځان قربان کړي اود کفرکلیمه په خوله باندې رانه ولي: نودیرښه
اواعلی کاردی. دلته ددې مسئلې دپوره تفصیل موقع نه شته. له دې وجې یې دفقې په
کتابونوکې وګورئ. یاعالم ته رجوع وکړئ!

،،بسم الله علی اهلی ومالی وولدی،، دنفس اودین دحفاظت نه وروسته کورنۍ، مال اودولت یاد
شوي دي، ځکه چې دا شیان هم دنفس اوددین دحفاظت له پاره ذریعه اومددګاردي اودې
باندې بسم الله جدا ذکر شوې ده. هغې بسم الله باندې چې مخکې ذکرشوې ده کفایت
کولوسره یې نه دي ویلي چې ،،بسم الله علی نفسی ودینی واهلی ومالی وولدی،، عبارت کې دا
طریقه اختیارول د اصحاب بلاغت په نزدباندې دې طرف ته اشاره کوي چې مخکې ذکرشوې
او وروسته ذکرشویو دواړه حالتونه مقصددي اود دواړو قصد اواهتمام یوشان دی، اهل او
آل دواړو الفاظ دیوې معنا دي، کله دتابع اوزوی په معنا کې استعمالیږي اوکله داولادپه
معنا کې. دلته داولادذکر وروسته موجود دی، له دې وجې لومړۍ معنا مناسبه ده. دا
یادساتل پکاردي چې کله دمال او اسبابو ذکردتعریف اوخوبي په موقع باندې اداشي؛
نوهلته ترې مرادحلال مال وي، کوم چې داخرت له پاره وسیله وي اودهغه جمع کول د
سعادت اودکمال ذریعه ده، باقي تول دګناه اوعذاب ذریعه ده اود ولد معنا اولادده،که
مذکروي اوکه مؤنث اود اولاد وجودهم دقوت د اسبابوله پاره دی، کوم چې ددین اودولت له
پاره مددګاروي. یوهلک که چیرې نیک اورشید وي؛ نوددنیااوداخرت دسعادت ذریعه
وي... حدیث کې دي چې دانسان دنیانه درخصت کیدونه وروسته درې شیان پاتې شي:

(۱): ددین علم، کوم چې دهغه اهل خلکوته ښودل شوی وي اوکوم چې علمي سلسله دجناب
رسول الله ﷺ په پناه کې قائم ساتي.

(۲): صدقه جاریه. چې هغه کې دالله تعالی دبندګانونفع وي اودمړ شوي نه وروسته تر
قیامت پورې جاري وي، مبارک دی هغه کس چې دهغه له مرګ نه وروسته پل،کوهی،
جومات یامیلمستون(مهمانخانه) پاتې شي.

(۳): نیک زوی کوم چې دهغه له وفات نه وروسته دایمان دعاسره هغه یادساتي، چې دخپل
پلار د ګناهونو معافي اودهغه ددرجاتو د لوړوالي ذریعه جوړه شي.

حدیث کې ددې دریو واړو شیانو ذکر هم دې ترتیب سره ذکرشوی دی. دې ذکرشوي ترتیب
کې دې طرف ته اشاره ده چې علم، مال اواولاد ، په دې باب کې فضیلت لري، ځکه دصالح

زوی وجود اخري زمانه کې ډیرکم وي اوځینې روایتونوکې دزوی ذکردمال نه مخکې دی.
بې شکه اولاد ،دمال نه خوږ اومحبوب وي، دهغه حفاظت اوخیال ساتل هم ډیرمقدم وي.

﴿بسم الله علی ما اعطانی الله﴾ دالله تعالی په نوم سره پناه غواړم دالله تعالی په هرهغه نعمت باندې کوم چې ماته الله تعالی نصیب کړی دی. کله چې دیوځونعمتونو چې ددنیا اواخرت دنعمتونو اصل مداردی، ذکر وکړ. له هغه نه وروسته عام لفظ ذکرشوی دی. چې اصل و فرع او واړه غټ ټول نعمتونه په کې شامل دي، حقیقت کې دالله تعالی نعمتونه شمیرل د امکان نه بهردي. فرمایلي دي **وان تعدو نعمة الله لاتحصوها.ان الانسان لظلوم کفار.** دمبالغې صیغې سره فرمایلي دي. ﴿یعنې بې شکه انسان ډیرغټ ظالم اوناشکره دی. غټ ظالم له دې وجې چې دخالق اومالک دنعمتونو شکر اداکولو په ځای دهغه نوروطرفونوته نسبت کوي. بل ځای کې دي: **ان الله لغفور رحیم.** فرمایي. که دخالق ﴿الله تعالی﴾ مغفرت اورحمت نه وای؛ نوددې ناسپاسي له وجې به په انسان باندې کارتنګ شوی و، دالله تعالی رحمت اومغفرت په خپله یونعمت دی. بلکې اصل نعمت دی، ددې په مقابله کې باقي هرڅه بې کاره دي.... په حدیث کې دي چې دالله تعالی درحمت نه پرته به څوک جنت ته نه داخلیږي، ددې نعمت شکراداکول پکاردي، بیکاره ناسته نه ده پکار، سیدالعالمین ﷺ به دتهجد په لمانځه کې دومره قیام کاو چې قدمونو مبارکو باندې به یې ورم راغی اوله هغونه به وینه شروع شوه، عرض وشو، یارسول الله ﷺ ایا ستاسو مخکني او وروستي ټول ګناهونه نه دي معاف. پخپله دجل مجده ارشاد دی **لیغفرلک الله ما تقدم من ذنبک و ما تاخر** بیا دومره تکلیف اومشقت دڅه له پاره کوئ؟ ویې فرمایل: چې الله تعالی زه بښلی یم اودهغه بښنه کول ډیرغټ نعمت دی،که چیرې ددې نعمت شکرادانه کړم؛ نوشکرکونکی بنده به څنګه جوړیږم، دغورکولومقام دی چې سیداولین واخرین چې عالم اوعالمین دهغه له وجې دي. کله دامشقت برداشت کوي اوبندګي کې مشغول دی؛ نونوروته به ضرورت ولې نه وي؟

﴿**الله ربي لااشرک به شیئا**﴾ الله تعالی زماپروردګاردی، زه به هغه سره څوک نه شریکوم، انسان باندې چې کوم مصیبتونه اوحادثې راځي دهغو شدت اومحنت ختمولوکې ددې کلیمو فضیلت او خاصیت په احادیثوکې ډیرزیات بیان شوي دي اوددې حقیقت دالله تعالی دتوحید دکارونو مشاهده کول دي. چې څه وشي. هرڅه دهغه وړاندې ګاه ته تلونه او د خفي شرک نه بچ شي، خپل پروردګارسره ښه ګمان ساتئ.کله چې انسان دهغه واحد لاشریک ذات په تربیت کې دی؛ نوچې کومه معامله دهغه دطرف نه وشي،دانسان صلاح اوفلاح به هم هغه کې وي، خودادهغه کس له پاره دی کوم چې هروخت دهغه دلطف اوکرم طرف ته متوجه اوغوښتونکی وي اوخپل ټول کارونه یې هغه ته حواله کړي وي اودولایت

نورعکس دهغه په تندي باندې وي او الله تعالى دخپل خاص لطف سره دهغه دکارونو متولي
وي، ګني مذهب هم دادى چې اصلح په الله تعالى باندې واجب نه ده. هغه چې څه غواړي
ودې کړي، دچاهيڅ طاقت نه شته چې دهغه خلاف څه وکړي.

**يادونه**: دکومې دعا باره کې شريعت راغلى دى چې ددې په لوستلو باندې داجزاده. ددې
صحيح مطلب دادى چې هغه حال په خپل ځان کې پيداکړل شي اودې معنا سره متصف
شي. ګني د اندامونو خالي حرکت اويوازې ژبه باندې دکليماتو لوستل کافي نه دي.
خوداچې دشارع له طرف نه تصريح وشي چې داخاصيت يوازې په نفس اودالفاظوکې دى؛
نوهغه وخت کې به هغه اثرخاص ډول ددې لفظ وي اومعنا باندې دپوهيدوضرورت به نه وي.

خوددې باوجود بې کاره ناسته نه ده پکاراوعمل ددې حال په حاصليدوباندې
موقوف ساتل نه دي پکار. دالله تعالى فضل ډير زيات دى اوالله تعالى دبندګانو دعا
قبلوي. د شرطونو او قدرونوچې څومره هم قدروساتل شي هغه به په هرحال محدودوي.
خودالله تعالى فضل اوکرم دحساب نه بهردى،کوم شي چې پوره حاصل نه شي. هغه بالکل
پريښودل کيدلى نه شي،الله تعالى دې توفيق راکړي؛ نوداخلاص او ريا په باره کې د
حضرت شيخ شهاب الدين سهروردي رحمه الله نه سوال وشو چې څه کول پکاردي؟ که چيرې موږ
عمل وکړو: نو ريا په کې ښکاري.که اونه کړونوبې کاري ده. ويې فرمايل عمل کوئ
اودريانه استغفارکوئ، بې کاره ناسته مصلحت نه دى. عمل که چيرې جاري وساتل شي؛
نودعمل دنورانيت له وجې به په زړه کې اخلاص هم پيداشي... ان شاء الله!

(الله اکبر،الله اکبر،الله اکبرواعزواجل واعظم ممااخاف واحذر) الله تعالى لوى
اوغالب دى. دهرهغه شي نه چې زه ويريږم اوويره ساتم. ځينې روايتونوکې د(اجل) نه
وروسته اعظم هم ذکرشوى دى، کبريايي، عزت، عظمت اوجلال يوشان معنا لري، که چيرې
د کبريا تعلق ذات سره، دعزت کارونوسره، دعظمت نومونوسره اودجلالت صفاتوسره
اعتبار کړل شي؛ نوهيڅ بعد نه شته، نفس جبلي ډول بې يقينې، خودترسي اواساني
خوښونکى دى، خاص ډول چې معامله دځان نه غالب سره وي. لکه بادشاه اوجبار. له دې
وجې په دې کليمې کې دالله تعالى عظمت اوکبريايي استحضار سره (چې دهغه نه لازمي
ډول دنوراويقين شغله وځي) هغه زړه ور جوړ کړي.

چې اواې نفسه! مه ويريږه، ستا پروردګارددښمن نه اوچت او غالب دى، دښمن که
چيرې مضبوط دى؛ نوساتونکى دهغه نه زيات مضبوط دى؛ نودخپل الله تعالى نه ويريږه،
چې ټول ستانه ويريږي. رښتيادى چې څوک دالله تعالى نه ويريږي. دهغه نه هريوشى
ويريږي دې کليمې کې دى خبرې باندې هم تنبيه ده چې معامله کله دغالب سره وي: نوباطن
به دالله تعالى کبريايي سره معمورکولى شي، چې دبل هيبت اودعظمت په زړه کې ګنجائش

پاتې نه شي او د الله تعالى دعظمت په غلبه كې د نور قهر او جبر ختم شي.

(عزجارك) غالب دى ستا ګاونډى او ستا پناه اخيستونكى، كله چې د الله تعالى دكبريايي او دهغه عظمت وليدل شو، غيبت نه د حضور مقام نصيب شو او دخطاب شرف حاصل شو، د الله تعالى د ګاونډيتوب توجه، دجناب په لطف كې التجا او دهغه لمن مضبوطې سره نيولو له وجې حاصليږي. كوم كس چې دجناب په عزت كې التجاء كوي هغه چيرې هم مغلوب او مقهور نه شي كيدلى.

(وجل ثناؤك) ستا ثنا لويه ده، ستا دكمال صفتونه او دنه ختميدونكي قدرت ژور والى څوك موندلى شي؟ كمزور طاقتور جوړكړې او طاقتور كمزورى جوړكړې، چا ته چې غواړې عزت وركړې او څوك چې غواړې ذليل يې كړې، دا ستا شان دى.

(ولااله غيرك) او ستا نه پرته څوك ذعبادت لائق نه شته.(اللهم انى اعوذبك من شرنفسى) دهر قسمه شر او قباحت وجه او بې يقيني او نااعتباري وجه نفس دى له دې وجې د الله تعالى پناه واخيستل شوه، دهغه شر نه كوم چې انسان ته پيښيده، ټول دهغه دنفس طرف ته دي، حضور ﷺ به دعا فرمايله (رب لاتكلنى الى نفسى طرفة عين ولااقل من ذلك) اې پروردګاره! ما ديوې لمحې له پاره هم خپل نفس ته حواله نه كړې، بلكې هر وخت مې په خودكې ساته او دخپل عظمت په مشاهده كې مې مشغول ساته. چې دلږ وخت له پاره غيرو خلكو ته ما باندې دغلبې او تصرف موقع ملاو نه شي.

(ومن شركل شيطان مريد، ومن شركل جبار عنيد) او زه ستا پناه اخلم دهر شيطان مردود له شرنه او دهر كبر كونكي شيطان له شرنه كوم چې دحق په لاركې خنډ وي، دعناد معنا دصحيح لارې نه جدا كيدل او دحق پيژندلو باوجود دهغه مخالف كيدل، دشر دكار تدبير اود دوكه كولو او ګمراه كولو سلطنت شيطان ته حواله كړل شوى دى، بالكل همدغه حال دهغه جبار او قهار قسمه خلكو دى، كوم چې په مخلوق باندې مسلط شوي دي، له دې وجې دهغوى دشرنه پناه غوښتل هم شامل دي او دشيطانانو دوه قسمونه دي، لومړى جناتي شيطانان په كومو كې چې ابليس او دهغه اولاد شامل دي، دويم انسي شيطان . دا ظالمان او دهغوى ملګري دي، په لومړۍ فقره كې دلومړي ته او دويمه كې ددويم طرف ته اشاره شوې ده او دوهم قوت كوم چې دانسان په فطرت كې داخل دى او هغه ته شيطان عالم انفس ويل كيږي، دا د شيطان عالم افاق نمونه ده چې په عقل او شعور باندې اثر لري او كوم عقل چې دنور او يقين باندې منور او صفا وي هغې باندې اثر نه شي قائمولى، حكم: ,,ان عبادى ليس لك عليهم سلطان،، وروسته دا قوت معدوم ته دموجود په شكل كې او باطل دحق په شكل كې د ښودلو جوګه كړې دى، ددې نه استعاذه ضروري ده، سوا د الله تعالى دويرې دختميدو نه بل

دختميد وهيڅ صورت نه شته، دا هم حقيقت کې دنفس دشرنه استعاذې دختمولو طريقه ده.
څنګه چې لومړۍ فقره کې بيان شوې دی.

﴿فَإن تولوافقل حسبي الله لااله الاهوعليه توكلت وهورب العرش العظيم﴾ دادقرآن مجيد يوايت دی چې په دې کې الله تعالی نبي کريم ﷺ ته حکم کوي ورته فرمايي چې .. که کافران مخ واړوي حق طرف ته متوجه نه شي اوددې دقبلولونه ډډه وکړي؛ نو اې محمد (ﷺ)! اې محبوب! اې زما محبوب اومعصوم! تاسو ووايئ ,,حسبي الله،، الله زما له پاره کافي دی ,,لا اله الا هو،، دهغه نه پرته څوک معبود نه شته ,,عليه توکلت،، ماخپل ټول کاروبار هغه (الله) ته سپارلی دی، هغه مې خپل کارساز جوړکړی ,,وهورب العرش العظيم،، اوهغه د لوی عرش مالک دی چې دهغه نه لوی او لوړ په عالم اجسام کې څوک مخلوق نه دی پيدا کړل شوی.

سياق دکلام د جابرانو اوقاهرانو دفع کولو اودهغوی د ويرې اوخوف لرې کولوکې وو اوددې اصل او ماده ده دعظمت او قهرخداوندي مشاهده کول له دې وجې طرز دکلام د خبرداري په طرزباندې واړل شو اوخبره په عظمت باندې ختمه شوه. که اصحاب حفظ او دعوت ورکونکي دعرش الهي د احاطې مراقبه سره دملاحظې نه وکړي؛ نوپه حفظ او صيانت کې به زيات دخل کونکي وي.

لکه چې قطب د زمانې شيخ ابوالحسن شاذلي رحمه الله په حزب البحرکې (چې دحضرت خاتم الانبياء ﷺ نه يې حاصل کړې ده اود حفاظت باره کې ډيرمجرب ثابت شوی دی) فرمايي:
,,سترالعرش مسبول علينا وعين الله ناظرة الينا وبحول الله لايقدر احد علينا، والله من ورائهم محيط،،يعنې پرده دعرش په موږ رازوړنده شوې ده اود الله تعالی د رحمت اوعظمت نظر زموږ نګراني کوي بيابه دالله تعالی په قدرت سره په موږ دچا قدرت نه وي. دهغه قوت ټولو لره راګيرونکی دی چې ددې قدرت د احاطې نه بهرته د وتلو لار ناممکن ده.

**فائده:**... شاذليه مشائخو (قدس الله اسرارهم) مريدانو ته ددې دعا لوستلو وصيت کړی دی، يعنې ,,حسبي الله لا اله الاهو عليه توکلت وهو رب العرش العظيم،، او ددوی ارشاد دی که چايوازې هم دا وظيفه اختيارکړې وي؛ نودابه دهغه له پاره د ټولو وظائفونه کافي شي. ددوی دا ارشاد هم دی چې که ددې دعا په لوستلو کې پوهه اود زړه حاضري نه وي بياهم اثرکونکې اومقبوله ده، ددې تعداد لس لس ځله دسهار اومابنام لمانځه نه وروسته دی،که اووه اووه ځله ولوستل شي؛ نوبياهم کافي ده، بلکې دا د روايت صحت ته نزدې ده، ددې خلاصه داده چې خپل ځان متوجه کړي او اخلاص وکړي، ددې نه پرته دالله تعالی دعظمت مشاهده کول اود غيرالله نه بيزاري کول اود تدبير اختيارولونه فارغ کيدل. الله تعالی دې

خپل خاص فضل سره مورږ هم ددې صحيح طريقې توفيق رانصيب کړي او په دې مودې ثابت قدم وساتي.

په ځينې رواياتو کې داکليمه هم په مذکوره دعا (يعنې په دعا انس رضي الله عنه) کې ذکرده..

ان ولی الله الذی نزل الکتب وهو يتولی الصالحين..

ددې ترجمه داده..بې شکه زما دټولو کارونو دوست او متولي الله تعالی دی. هغه داسې کتاب نازل کړی چې په هغه کې ددنيا او اخرت دټولو کارونو تدبيردی. يعنې قرآن مجيد او هم هغه دخلکو دټول کارونه پوره کوي اودهغوی دوستي کوي. اې الله خپل رحمت سره مورږ په نيکو خلکو کې شامل کړې، آمين!..

# ❖ د مړي حکمونه ❖

## نامحرم دکفن دفن له پاره ولي مقررول صحيح نه دي

**سوال:** سوال دادی چې يوې ښځې دځنکدن په وخت کې خپلې مشرې خورته وصيت وکړ چې زماله مرګ نه وروسته دې زمادولي وارث په حيثيت سره ستاخاوندزمادکفن دفن انتظام وکړي دمرحومې دوصيت مطابق دهغې اوښي په دې عمل وکړ، خو ددې وصيت په خپلوخپلوان کې ډيرچرچه ده، چې ديو خوشال خاونداوښه تکړه ځوانانو زامنواوحقيقي ورڼواوبزرګانوپه موجودګي کې دمرحومې دخپل خوردخاوندوارث او ولي مقررول شرعاجائزکيدای شي اوکه نه؟اوکه اينده له پاره داسې قسم صورتحال راپيښ شي: نودشريعت مطابق څنګه عمل کول پکاردي؟ چې ټول مسلمانان ددې مسئلې نه خبراوپه څه مصيبت کې راګيرنه شي اوددين اوايمان دسلامتياسره سره اخرت خيرشي، مسئله دمحرم اونامحرم ده، مهرباني وکړئ په دې باره کې چې کوم حکم دالله اودهغه درسول ﷺ دی، دهغه نه په موتفصيل سره خبر کړئ!

**جواب:** ديوې ښځې ولي دهغې زامن اواو ورونه دي[۱] اوښی ولي او وارث نه دی، له دې وجې دهغې ولي مقررول غلط دي، البته که هغه نيک اودين داراوشرعي مسائيلونه خبروي: نوداوصيت کول چې هغه دې دکفن دفن نګراني وکړي، صحيح دي.

## د کوم مړي چې مذهب معلوم نه وي دهغه کفن دفن به څنګه کيږي؟

**سوال:** که چا په لاره کې يومړی وموند (سړی يأښځه)، اودمړي دمذهب په باره معلومه نه ده؛ نويومسلمان هغه څنګه دفن کړي؟

---

۱ ]واقرب الاولياء الی المراة الابن ثم ابن الابن وان سفل ثم الاب .......ثم الاخ لاب وام ......الخ (عالمگيری ج:۱ص:۲۸۳،الباب الرابع فی الاولياء ،کتاب النکاح ،طبع رشيديه کوئته)۔

**جواب:** که په اسلامي ملک کې وي؛ نوهغه به مسلمان ګڼل کیږي، که دهغه دکفر څه نښه نه وي، لهذادهغه کفن به داسلام مطابق وي اوکه دهغه دکفرڅه ښکاره نښه موجوده وي (مثلادښځې په تندي باندې تکی ده، چې دهغې دهندوکیدوعلامت دی؛ نوهغه به غیرمسلمه ګڼل کیږي.[1]

## که ښځه مړه ومندل شي؛ نو دې د مسلمان کیدو نښه به څه وي

**سوال:** یوه مسلمانه ښځه که مړه ومندل شي؛ نو د دې ښځې د مسلمان کیدو به څه نښه وي؟

**جواب:** په کومه علاقه کې چې ښځه مړه موندل شوې وي که چیرې دا د مسلمانانو علاقه وي؛ نو دا ښځه به مسلمانه وي او که چیرې د غیر مسلمو علاقه وي؛ نو دا ښځه به غیر مسلمه ګڼل کیږي، البته که چیرې څه بله نښه د غیر مسلم کیدو ښکاره وي؛ نو په دې باندې به عمل کیږي.[2]

## د مړه پیدا شوي ماشوم کفن دفن

**سوال:** زمادیودوست کره دمیرمنې دخیتې نه یوماشوم مړپیداشو، موږ اوریدلي دي چې ده ته غسل وغیره ورکول نه دي پکار اودې په یوه سپینه کپړه کې ونغښتل شي اودفن دې کړل شي زما یودوست دجوماتی دپیش امام نه پوښتنه وکړه چې چیرته یې دفن کول پکاردي؟ مولوي صاحب ورته وویل چې داماشوم دې دقبرستان نه بهردفن کړل شي،د شریعت له مخې تاسوته درخواست دی چې په دې معامله کې تاسوزموږ رهنمایي وکړئ!
ماشوم ته غسل ورکول پکاردی اوکه نه؟ دماشوم نوم کیښودل ضروري دي اوکه نه؟
ماشوم دقبرستان دننه دفن کړل شي یابهرپه بل ځای کې؟

**جواب:** کوم ماشوم چې مړپیداَشي، هغه ته په غسل ورکولوکې اوپه نوم کیښودوکې اختلاف دی. په هدایه کې یې دې ته مختارویلي دي چې ده ته دې غسل ورکړل شي اونوم دې پرې

---

[1] (فروع) لولم یدرامسلم ام کافرولاعلامة فان فی دارناغسل وصلی علیه والا لا(قوله فان فی دارنا......الخ) افادبذکرالتفصیل فی المکان بعدانتفاء العلامة ان العلامة مقدمة وعند فقدها یعتبرالمکان فی الصحیح لانه یحصله به غلبة الظن کمافی النهرعن البدائع وفیها ان علامة المسلمین اربعة الختان والخضاب ولبس الثواب وحلق العانة (ردالمحتارمع الدرالمختار ج:۲ص:۲۰۰،باب صلاة الجنازة)،ومن لایدری انه مسلم اوکافرفان کان علیه سیما المسلمین اوفی بقاع دارالاسلام یغسل والا فلا (فتاوی عالمگیری ج:۱ص:۱۵۹،کتاب الصلاة ،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز)

[2] ان کان للمسلمین علامة یعرفون بهایمیزبینهم وان لم تکن علامة ان کانت الغلبة للمسلمین یصلی علی الکل ...... وان کانت الغلبة للمشرکین فانه لایصلی علی الکل ......الخ (عالمگیریة ج:۱ص:۱۵۹،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز،کتاب الصلاة)

کېښودل شي، البته دده جنازه نه شته، بلکې په کپړه کې دې ونغښتل شي او په قبرستان کې دې خښ کړل شي، د قبرستان نه بهر دفن کول غلط دي.[۱]

## د مړي په خوا کې د قرآن کریم تلاوت کول

**سوال:** که یوکس وفات شو او دهغه مړی چې ترخوپورې په کورکې موجودوي؛ نو په هغه ځای کې د قرآن کریم تلاوت کول پکاردی او که نه؟

**جواب:** مړی چې په کومه کمره کې وي، دهغې په ځای دې په بله کمره کې تلاوت وکړل شي، البته دغسل ورکولونه وروسته دمړي په خوا کې په تلاوت کولوکې هیڅ مضائقه نه شته.[۲]

## قریب الموت ته د کلیمې تلقین کول

**سوال:** د قریب الموت مریض ته دوارثانو له لوري د کلیمې طیبې د ویلو تلقین کول یا په خپله په اواز سره ویل څنګه دي؟

**جواب:** مړ کېدونکي ته د کلیمې شریفې د تلقین حکم کولو دي او د تلقین مطلب دادی چې دده سره په دومره تیز اواز سره کیلمه شریفه ولوستل شي چې هغه یې واوري ددې له پاره چې ده ته هم د کلیمې د لوستلو ترغیب وي، خو په خپله به ده ته د کلیمې د ویلو له پاره نه ویل کېږي.[۳]

## د مړي د غسل له پاره په اوبوکې د بیرې پاڼې اچول

**سوال:** اکثرخلک لیدل کېږي چې مړي ته دغسل ورکولوپه وخت کې په اوبوکې دبیرې پاڼې اچوي، ددې شرعی حیثیت څه دی؟ضرورموخبرکړئ!

**جواب:** دبیرې پاڼې اچول دسنت نه ثابت دي.[۴]

---

۱ ] ومن لم یستهل ادرج فی خرقة کرامة لبنی آدم ولم یصل علیه لم رویناویغسل فی غیرظاهرمن الروایة لانه نفس من وجه وهوالمختار (هدایة ج:۱ص:۱۸۱باب الجنائز،وایضًا فی درالمختارمع ردالمحتار ج:۲ص:۲۲۸)_

۲ ] وعبارة الزیلعی وغیره تکره القراءة عنده حتی یغسل......الخ (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۱۹۳)،وایضًا فی العالمگیریة ج:۱ص:۱۵۷ویکره قراءة القرآن عنده حتی یغسل کذافی التبیین ،الباب الحادی والعشرون ،کتاب الصلاة)

۳ ] ولقن الشهادتین وصورة التلقین ان یقال عنده فی حالة النزع قبل الغرغرة جهرًا اشهدان لا اله الا الله واشهد ان محمدًارسول الله ،ولایقال له :قل !(عالمگیری ج:۱ص:۱۵۷،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز،کتاب الصلاة)

٤ ] عن عبدالله بن عباس رضی الله عنهما قال:ان رجلا کان مع رسول الله صلی الله علیه وسلم فوقصته ناقته وهو محرم فمات ،فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم :اغسلوه بماء وسدر، الحدیث (مشکوة المصابیح ،باب غسل المیت وتکفینه ج:۱ص:۱٤۳نسائی ج:۱ص:۲۶۶وایضا....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

## د غسل ورکولو په وخت کې مړی څنګه څملول شي؟

**سوال:** تیرو ورځوکې زید وفات شو، دهغه خپلوانو مړي ته دغسل ورکولونه مخکې او وروسته دهغه مخ او سر لمرخاته طرف ته کړل اوپښې یې مغرب (قبلې)طرفته کړې، دهغوی حضراتو دوینامطابق چې هغوی په هغه وخت کې ویل چې داعمل ددې وجې نه کیږي چې دمړي مخ دقبلې ته طرف وي، دهغوی داعمل ترکوم حد پورې جائزدی؟اوایادمرګ نه وروسته دمړي سردمشرق طرف ته اوپښې دمغرب طرف ته کول پکاردي؟

**جواب:** دغسل له پاره دمړي په تخته باندې دکینبودودوه صورتونه لیکل شوي دي، یوخو دا چې دقبلې طرف ته پښو کولوسره څملول، دویم داچې دقبلې طرف ته مخ کول څنګه چې په قبرکې څملول کیږي، په دواړوکې چې دځای دسهولت مطابق کوم صورت هم اختیارکړل شي، هغه جائزدی، مګرزیات بهتردویم صورت دی.[۱]

## مړي ته په دویم ځل د غسل ورکولو ضرورت نه شته

**سوال:** مړی دغسل ورکولونه وروسته ترځومره وخت پورې په کورساتل کیدای شي، هرکله چې دهغه خپل خپلوان زر رارسیدی نه شي؟ که مړي ته غسل ورکړل شي اویوه شپه په کورکې ایسارشي؛ نو ایا په دویمه ورځ دهغه دجنازې دلمونځ نه مخکې هغه ته دوهم ځل غسل ورکول لازم دي؟ ایاخاوند دخپلې ښځې جنازې ته اوږه ورکولی شي اولحدته یې کوزولی شي؟هرکله چې دځه خلکوخیال ددې برعکس دی.

**جواب:** په شریعت کې دمړي دزرترزره ددفن کولوحکم دی،دخپلوانوپه انتظارکې تپوله شپه ایسارول بده خبره ده.[۲]

---

...بقیه د تیر مخ]..فی العالمگیری ج:۱ص:۱۵۸وایضًا فی الدرالمختارمع الشامی ج:۲ص:۱۹۶)۔

۱ ] وکیفیة الوضع عندبعض اصحابنا الوضع طولاً کمافی حالة المرض اذا اراد الصلاة بایماء ومنهم من اختارالوضع کمایوضع فی القبروالاصح یوضع کماتیسرکذافی الظهیریة (عالمگیری ،کتاب الصلاة ،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز،الفصل الثانی فی الغسل ج:۱ص:۱۵۸،وایضًا بدائع ج:۱ص:۳۰۰وایضًا فی الدرمع الردج:۲ص:۱۹۵)۔

۲ ] عن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما: اذا مات احدکم فلا تحبسوه واسراعو به الی قبره ......الخ (مشکوة ج:۱ص:۱٤۹)، (وفی المرقاة) فلا تحبسوه ای لا توخروا دفنه من غیر عذر قال ابن الهمام یستحب الاسراع بتجهیزه کله من حین یموت (واسرعو به الی قبره)هو تاکید واشارة الی سنة الاسراع فی الجنازة (مرقاة ج:۲ص:۳۸۱، باب دفن المیت ،طبع بمبئ)۰وایضًا ویستحب ان یسرع فی جهازه لماروی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم انه قال:عجلوا بموتاکم فان یک خیرًا قدمتموه الیه وان یک شرًا فبعداً لاهل النار،ندب النبی صلی الله علیه وسلم الی التعجیل ونبه علی المعنی –(البدائع الصنائع ج:۱ص:۲۹۹فصل واماصلاة الجنازة طبع ایچ ایم سعید) واذا یتیقن موته یعجل بتجهیزه....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

۲:.....یوځل غسل ورکولو نه وروسته د دویم ځل غسل ضرورت نه شته.[1]

۳:.....د خاوند د خپلې ښځې جنازې ته اوږه ورکول جائز دي.[2]

۴:.....که د ښځې محرم موجود وي؛ نو هغوی ته په لحد کې کوزول پکار دي او که محرم موجود نه وي یا کافي نه وي؛ نو لحد په کوزولو کې د خاوند په شریکیدو کې څه نقصان نه شته.[3]

## مړي ته د غسل ورکولو په وخت کې دې د زخم نه پټۍ لرې کړل شي

**سوال:** یو کس زخمي و، په زخم باندې پټۍ تړل شوې وه، بیا په دې حالت کې هغه وفات شو، اوس به د هغه ته د غسل ورکولو په وخت کې هغه پټۍ لرې کیږي، یا به په هماغه حالت کې به غسل ورکولو نه وروسته دفن کیږي؟

**جواب:** د غسل ورکولو په وخت کې دې د زخم نه پټۍ لرې کړل شي.[4]

## د مړي مصنوعي غاښ ویستل

**سوال:** مسئله داده چې ما یو څو غاښونه ویستلي دي او اوس زه فکس (مصنوعي) غاښونه لګول غواړم که چیرې د سرو زرو غاښ ولګوم؛ نو غسل به کیږي او که نه؟ او ایا لمونځ به اداء کیږي او که نه؟ او بل دا چې د مړي نه د سرو زرو غاښونه ویستل پکار دي یا له هغه سره دفن کول پکار دي، (یا څه نور مصنوعي غاښونه وي)؟

**جواب:** که چیرې نور غاښونه خرابیږي؛ نو د سرو زرو غاښ لګول جائز دي[5] او د دې سره

---

...بقیه د تیر مخ].. اکرامًا له لمافی الحدیث وعجلوا به فانه لاینبغی لجیفة مسلم ان تحبس بین ظهرانی اهله (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ص:۳۰۹،باب احکام الجنائز ،طبع میرمحمدکتب خانه) ویبادرالی تجهیزه ولایوخر......الخ (عالمگیری ج:۱ص:۱۸۷وایضًا فی الدرمع الردج:۲ص:۱۹۳)۔

۱ ] ولایعیدغسله ولا وضوءه (عالمگیری ج:۱ص:۱۵۸،کتاب الصلاة ،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز،وایضًافی الدرمع الردج:۲ص:۱۹۷،وایضًابدائع ج:۱ص:۳۰۱)۔

۲] سن فی حمل الجنازة اربعة من الرجال...الخ (هندیة ج:۱ص:۱۶۲کتاب الصلاة ،الباب الحادی والعشرون)

۳ ] وذوالرحم المحرم اولی بادخال المراة من غیرهم کذافی الجوهرة النیرة وکذا ذوالرحم غیرالمحرم اولی من الاجنبی فان لم یکن فلاباس للاجانب وضعها کذافی البحرالرائق (هندیة ج:۱ص:۱۶۶کتاب الصلاة الجنائز)

۴ ] ویجردالمیت اذا ارید غسله وهذا مذهبنا کذافی الظهیریة (هندیة ج:۱ص:۱۵۸)،واما کیفیة الغسل فنقول یجرد المیت اذا ارید غسله عندنا......ان المقصود من الغسل هو التطهیرومعنی التطهیرلایحصل بالغسل وعلیه الثواب لتنجس الثوب بالغسالات التی تنجست بما علیه من النجاسات الحقیقیة وتعذر عصره –(البدائع الصنائع ج:۱ص:۳۰۰ فصل واما بیان کیفیة الغسل ماجازلعذر بطل بزواله ،شرح المجلة لرستم بازاللبنانی ج:۱ص:۳۰،المادّة ۲۳، المقالة الثانیة ،طبع مکتبة حبیبیه کوئته)۔

۵ ] وفی التتارخانیه وعلی هذا الاختلاف اذا جدع انفه او اذنه اوسقط سنه فاراد ان یتخذ سنًا آخرًا فعند الامام یتخذ ذلک من الفضة فقط وعندمحمدمن الذهب ایضًا (شامی ج:۶ص:۳۶۲ماجاز لعذربطل بزواله (شرح المجلة ج:۱ص:۳۰المادة :۲۳،المقالة الثانیة)

(چې کله ددې ويستل ممکن نه وي) غسل او اودس کول صحيح دي، د مړي مصنوعي غابنونه که چيرې ويستل کيږي؛ نو ويستل يې پکار دي.

## د موټر د ټکر (ايکسيډنټ) په صورت کې د مړي غسل

**سوال:** زمونږ په علاقه (روهړي) کې يو ټرک د خر ګاډي سره وجنګيده، چې په نتيجه کې يې ګاډي والا وفات شو کله چې دده لاش کور ته ورسيده؛ نو د هغه ځای د مسجد امام هغه د غسل نه پرته دفن کړ، د جنګيدو له وجې د مړي د جسم نه وينه وتله او کافي زخمونه جوړ شو او دده جسم په وينو کې لړلی و، ددې ټولې ګنده ګي سره په ده باندې جنازه وکړه او دفن يې کړ، ويې ويل دا د جنګي شهيدانو په حکم کې دی او په دې صورت کې دده جنازه وشوه؟ که چيرې نه وي شوې؛ نو اوس څه کول پکار دي؟

**جواب:** ده ته غسل ورکول ضروري و او د غسل نه پرته دده جنازه صحيح نه وه، خو اوس هيڅ نه کيږي داسې سړی په جنګ کې د شهيد شوي په حکم کې نه دی.[۱]

## ايا خاوند ښځې ته او ښځه خاوند ته غسل ورکولی شي؟

**سوال:** مړي ته غسل څوک ورکولی شي؟ ښځه خاوند ته يا خاوند ښځې ته غسل ورکولی شي؟

**جواب:** ښځه خاوند ته غسل ورکولی شي، خو خاوند ښځې ته غسل نه شي ورکولی،[۲] سړی

---

[۱] لومات حتف انفه اوتردى من موضع او احتراق بالنار اوماتت تحت هدم اوغرق لايكون شهيدًا اى فى حكم الدنيا والا فقدشهد رسول الله صلى الله عليه وسلم للغريق وللحريق والمبطون والغريب بانهم شهداء فينالون ثواب الشهداء (البحرالرائق باب الشهيد ج:۲ص:۱۹۶)۰وعامة مشايخناقالوا:ان بالموت يتنجس الميت لمافيه من الدم المسفوح كمايتجنس سائر الحيوانات ......الا انه اذا غسل يحكم بطهارته كرامة له (البدائع الصنائع ج:۱ص:۲۹۹،فصل والكلام فى الغسل)،الصلاة على الجنازة فرض كفاية ......وشرطها اسلام الميت وطهارته مادام الغسل ممكنًا وان لم يمكن بان يدفن قبل الغسل ولم يمكن اخراجه الابالنبش تجوز الصلاة على قبره للضرورة (الفتاوى الهندية ص:۱۶۳،الفصل الخامس فى الصلاة على الميت ،كتاب الصلاة ،باب الجنائز)، ولوصلى عليه بلاغسل ودفن واهيل عليه التراب تعاد لفساد الاولى ،وقيل تنقلب الاولى صحيحه لتحقق العجزفلاتعاد (حلبى كبير ص:۵۸۳،طبع سهيل اكيدمى لاهور)

[۲] ويغسل الرجال الرجال والنساء النساء ولا يغسل احدهما الآخر ......ويجوز للمراة ان تغسل زوجها اذا لم يحدث بعدموته مايوجب البينونة ......واما هوفلا يغسلها عندنا كذافى السراج الوهاج ......اذا كان للمراة محرم يتيممها باليد واما الاجنبى فبخرقة على يده ......ويغض بصره عن ذراعيها وكذا الرجل فى امراته الا فى غض البصر......الخ (الفتاوى الهندية ج:۱ص:۱۶۰باب الجنائز،الفصل الثانى فى الغسل)۰والمراة تغسل زوجها ......بخلافه اى الرجل فانه لايغسل زوجته لانقطاع النكاح ،واذا لم توجد امراة لتغسيلها يتيممها اى زوجها بخلاف الاجنبى اى فانه يلف يده بخرقة ويتيممها مع كف بصره عن ذراعيها (مراقى الفلاح مع حاشيه الطحطاوى ص:۳۱۳باب الاحكام الجنائز،طبع ميرمحمدكتب خانه)

سړي ته غسل ورکولی شي او ښځه ښځې ته، که چیرې سړي ته غسل ورکونکي څوک سړي نه وي، یا ښځې ته غسل ورکونکي څوک ښځه نه وي؛ نو تیمم دې ورکړل شي.[1]

## نرښځي (ایجړا) ته به غسل څوک ورکوي؟

**سوال:** زموږ په علاقه کې نرښځي (ایجړا) له ډیر وخت نه اوسیږي، مړ شوی خو لا نه دی، خو که چیرې مړشي؛ نوده ته به سړی غسل ورکوي او که ښځه؟ او ایا دده دجنازې لمونځ به کیږي؟

**جواب:** ده ته به غسل نه ورکول کیږي که چیرې دده څوک محرم وي؛ نو ده ته دې تیمم ورکړل شي او که چیرې محرم نه وي؛ نو اجنبي سړی دې لاس ته کپړه واچوي او تیمم دې ورکړي، دا تیمم به د غسل قائم مقام وي او د جنازې لمونځ دې پرې وکړل شي.[2]

## مړي ته دوه ځله د غسل ضرورت نه شته

**سوال:** زما د ترور لور دبچي له پیدا کېدو وروسته وفات شوه او اوس یې درې کاله تیر شوي دي، د مرګ نه یوه ورځ مخکې یې ماته ویلي و چې کله زه وفات شم؛ نو ما ته دې دوه ځله غسل راکړل شي، په دویمه ورځ وفات شو، زما غسل ورکونکو ښځو ته دا خبره بلکل هیره شوه اوس زه دا معلومول غواړم چې ما ته به ددې څه ګناه وي او که نه؟ دویمه خبره دا ده چې دې د دوو ځلو د غسل ولې ویلي و؟ او بل دا چې مړي ته د دوو ځلو غسل څه د وجې نه ورکول کیږي او که نه؟ موږ خو یوازې دا اوریدلي دي چې که ډیرې ناپاکې هم وي؛ نو یوازې یو ځل به غسل ورکول کیږي، جواب راکړی او زموږ شک او پریشاني ختمه کړئ!

**جواب:** د دوه ځله غسل ضرورت نه و، دیو ځل غسل د ټولو ناپاکو له پاره کافي دی، دې مرحومې به د چانه داسې اوریدلي وي، دې ته د مسئلې علم نه و.[3]

## غسل ورکونکي ته اجرت ورکول

**سوال:** مړي ته چې کوم کس غسل ورکوي، هغه د بهر سړی وي په وارثانو کې نه وي؛ نو ایا

---

[1] لومات امراة مع الرجال تیمموها كعكسه بخرقة ،وان وجد ذو رحم محرم تیمم بلا خرقة (نورالایضاح مع مراقی الفلاح ،کتاب الصلاة ،باب احکام الجنائزص:۵۷۲)،ایضًا: ماتت بین رجال اوهو بین نساء یتیممه المحرم فان لم یکن فالاجنبی بخرقة (الدرالمختار،باب الجنائز ج:۲ص:۲۰۱،طبع ایچ ایم سعید کراچی)

[2] جردعن ثیابه ان لم یکن خنثی ......والا بان کان خنثی یتیمم وقیل یغسل فی ثیابه ......الخ (حاشیه الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص:۳۱۰ باب احکام الجنائز وایضًا عالمگیری ج:۱ص:۱۶۰الباب الحادی والعشرون فی الجنائز)

[3] وماخرج منه غسله فقط تنظیفًا ولم یعد غسله ولا وضوءه ......الخ (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ص: ۳۱۱باب احکام الجنائز ،ایضًا :فتاوی عالمگیری ص:۱۵۸ ،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز ،الفصل الثانی)

ده ته به څه ورکول کيږي او که نه؟ زمونږ د کلي د رواج مطابق صابون او خوشبو او د مړي کپړې يا نوې کپړې غسل ورکونکي ته ورکول کيږي.

**جواب:** مړي ته بايد خپل وارثان غسل ورکړي، خو که هغوی اجرت ورکړي او په چا باندې غسل ورکړي؛ نو جائز ده.[۱]

## مړي ته غسل ورکونکي باندې غسل نه واجبيږي

**سوال:** يوکس چې ځان ته دجماعت المسلمين ممبروايي هغه يوکس مړي ته دغسل ورکولونه ددېله وجې منع کړچې دغسل ورکولونه وروسته به په هغه باندې غسل واجبيږي اوپرته دغسل نه هغه د جنازې لمونځ نه شي کولی، دپوښتنې مطلب موداد ی چې ايامړي ته غسل ورکونکي کس باندې په خپله هم غسل کول واجبيږي اوکه نه؟

**سوال:** کوم کس چې مړي ته غسل ورکړي، په هغه غسل واجب نه دی، خو مستحب ده چې غسل وکړي اودا دڅلورو واړو امامانو (امام ابوحنيفهؒ، امام مالکؒ، امام شافعیؒ او امام احمد بن حنبلؒ اجماعي مسئله ده.)[۲]

په ځينوروایاتوکې راځي، چې کوم کس مړي ته غسل ورکړي هغه دې غسل وکړي او کوم کس چې جنازه اوچته کړي هغه دې اودس وکړي (مشکواة ص:۵۵)[۳] مګراول خو اکابرو محدثينو دا روايات کمزوری ګرځولی دی، امام ترمذيؒ دامام بخاريؒ نه نقل کړي دي چې امام احمدبن حنبلؒ اوامام علي بن المدينيؒ فرمايي چې په دې باب کې هيڅ شی صحيح نه شته اودامام بخاريؒ استادمحمدبن يحيی الذهليؒ فرمايي چې په دې مسئله کې دڅه حديث علم نه شته چې ثابت شي.(شرح مهذب ج:۵ ص:۱۸۵)[۴]

---

۱] واما مایستحب للغاسل فالاولى ان يكون اقرب الناس الى الميت فان لم يعلم الغسل فاهل الامانة والورع (البحر الرائق ج:۲ص:۳۶باب الجنائز طبع رشيديه) ويستحب ان يكون اقرب الناس الى الميت فان لم يعلم الغسل فاهل الامانة والورع كذافي الزاهدى (عالمگيرى ج:۱ص:۱۵۹،وايضًا درمختارج:۲ص:۲۰۲)، والافضل ان يغسل الميت مجانا وان ابتغى الغاسل الاجر فان كان هناك غيره يجوز اخذ الاجر....الخ (فتاوى عالمگيرى ج۱ ص۱۶۰ الباب الحادى والعشرون ،الفصل الثانى فى الغسل ،وايضًا فى البحر ج:۲ص:۳۰۴)

۲ ] قال الخطابي لا اعلم احدًا اوجب الغسل من غسل الميت ......قال ابن المنذر فى الاشراف رحمه الله قال ابن عمروابن عباس والحسن البصرى والنخعى والشافعى واحمدواسحاق وابوثور واصحاب الراى لا غسل عليه (المجموع شرح المهذب ج:۵ ص:۱۸۵، ۱۸۶ ،باب غسل الميت طبع دارالفكر بيروت)_

۳] عن ابى هريرة رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :من غسل ميتًا فليغتسل ،رواه ابن ماجه وزاد احمد والترمذى وابوداود:ومن حمله فليتوضاء (مشكوة ج:۱ص:۵۵باب الغسل المسنون ،كتاب الطهارة)

٤ ] حديث ابى هريرة رضى الله عنه هذا رواه ابوداؤد وغيره وبسط البيهقى رحمه الله القول فى ذكر طرقه وقال الصحيح انه موقوف على ابى هريرة قال:وقال الترمذى عن البخارى قال ان احمد بن حنبل وعلى بن المدينى قالا لايصح فى الباب شیء وكذا قال محمد بن يحيى الذهلى....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

له دې نه پرته هغه روايت په کوم کې چې د غسل حکم ورکړل شوی دی هغه په استحباب باندې محمول دي، څنګه چې په جنازه اوچتونکي باندې اودس نه لازمیږي همدغه شان مړي ته غسل ورکونکي باندې غسل نه واجبیږي، بلکې دواړه حکمونه به په استحباب باندې محمول وي، لکه چې امام خطابي رحمه الله په (معالم السنن) کې ليکي: ماته په فقهاوو کې هيڅ يو داسې کس معلوم نه دی چې د مړي د غسل له وجې غسل واجب ګرځوي او نه راته داسې کس معلوم دی چې د جنازې اوچتولو له وجې اودس واجب ګرځونکي وي او داسې معلوميږي چې دا حکم د استحباب له پاره دی، بطور استحباب غسل د دې وجې نه کيدای شي چې د مړي په بدن باندې نجاست وي او د هغې د دارو سره د بدن د ناپاکه کيدو ويره وي، د دې له وجې د غسل حکم ورکړل شوی دی چې که چيرته ګنده څاڅکي پرې پريوتې وي چې هغه صفا شي.[1] (مختصر سنن ابی داود للمنذری مع معالم السنن ج: ٤ ص: ٣٠٥)

## مړي سره په لاس لګولو باندې غسل نه واجبیږي

**سوال:** عرض دا دی چې موږ ته يو مسئله راپيښه ده، هغه دا چې د مړي په لاس لګولو سره غسل واجبیږي او که نه؟ موږ ته که د ا معلومات حاصل شي چې نور فقهاوو د دې مسئلې په باره کې څه ليکلي دي؛ نو موږ ته به ډير اطمينان حاصل شي؟ اميد دی چې تاسو به د فقه حنفي، شافعي، مالکي او حنبلی نه موږ ته د دې مسئلې حل وښايئ!

**جواب:** تر څو پورې چې ماته معلومات شته مړي سره په لاس لګولو باندې د هيچا په نزد هم غسل نه واجبیږي، په يو حديث کې دي چې: چا چې مړي ته غسل ورکړ، هغه دې غسل وکړي او څوک چې مړی اوچت کړ هغه دې اودس وکړي، ، د دې په سند کې محدثينو ته شک دی[2] او فقهاوو دا په استحباب محمول کړی دی، امام ابو سليمان خطابي رحمه الله په (معالم السنن) کې ليکي: ماته

---

...بقيه د تير مخ].. شيخ البخاری لا اعلم فيه حديثاثابتا (شرح المهذب ج:٥ص:١٨٥،باب غسل الميت طبع دارالفکر)۔

١ ] قلت لا اعلم احدا من الفقهاء يوجب الاغتسال من غسل الميت ولا الوضوء من حمله ويشبه ان يکون الامر فی ذلک علی الاستحباب ،وقديحتمل ان يکون المعنی فيه :ان غاسل الميت لايکاد يامن ان يصيبه نضح من رشاش الغسول ، وربماکان علی بدن الميت لنجاسة فاذا اصابه نضحه وهو لايعلم مکانه کان عليه غسل جميع البدن ،ليکون الماء قداتی علی المواضع الذی اصابه النجس من بدنه .......الخ ( مختصرسنن ابی داود للمنذری مع معالم السنن ج:٤ص:٣٠٥باب فی الغسل من غسل الميت ،طبع المکتبة الاثرية ،باکستان)،وفی المرقاة المفاتيح :،فليغتسل) لا زالة الرائحة الکريهة التی حصلت له منه ،والامرللاستحباب وعليه الاکثرللخبرالصحيح ليس عليکم فی ميتکم غسل اذا غسلتموه (رواه ابن ماجه قال ابوداود وهذا منسوخ سمعت احمد بن حنبل سئل عن غسل الميت قال يجزئه الوضوء کذافی التصحيح ......وعلی کل فالامرهنا للندب اتفاقا (مرقاة المفاتيح ج:١ص:٣٧١طبع اصح المطابع بمبئ)۔

٢ ] تيرې شوی څلور واړه حاشيې اوګورئ)۔

هیڅ یوداسې فقیه معلوم نه دی چې مړي ته په غسل ورکولوباندې او دمړي په اوچتولوباندې دغسل او اودس دواجبیدوحکم ورکوي، په هرحال دمړي بدن ته په لاس لګولوسره غسل یا اودس نه واجبیږي یوازې لاس وینځل کافي دي.[۱]

## که د سفرپه دوران کې ښځه وفات شي؛ نوهغې ته څوک غسل ورکړي؟

**سوال:** موږ درې کسان په سفر کې وو اوزموږ سفرپه ریګستان کې و اوزماسره زما یو ډیر ګران ملګری هم و، دهغه ښځه وفات شوه، اوس تاسوراته ووایئ هغې ته څوک غسل ورکړي؟

**جواب:** ښځې ته سړی اوسړیوته ښځې غسل نه شي ورکولی[۲]،که خدای مکړه داسې صورتحال راپیښ شي اوښځې ته دغسل ورکولو له پاره څوک ښځه نه وي،یاسړي ته دغسل ورکولوله پاره څوک سړی موجودنه وي؛ نوهغه ته دې تیمم ورکړل شي اوکه دښځې څوک محرم سړی یادسړي څوک محرمه ښځه موجوده وي؛ نوهغه دې تیمم ورکړي اوکه محرم نه وي؛ نواجنبي دې دخپل لاس نه کپړه تاوکړي اوتیمم دې ورکړي، په ذکرشوې مسئله کې دې خاونددلاس نه کپړه تاوکړي او تیمم دې ورکړي[۳]، ددې مسئلې پوره تفصیل دې دچاعالم نه وپوښتل شي.

## د سړي اوښځې له پاره مسنون کفن

**سوال:** دکفن دفن له پاره لکه څنګه چې نن سباعام رواج دې ۲۲ګزه استعمالیږي، ایا په شرعي ډول داپابندي ضروري ده اوکه نه ده؛ نوصحیح طریقه څه ده؟

**جواب:** دسړي له پاره مسنون کفن دادی:

(۱) لوی څادرپاوکم درې ګزه اوږد اودپاوباندې یوګزنه واخله تریونیم ګزپورې پلن.

(۲) وړوکی څادر، دوه نیم ګزه اوږد، دپاوباندې یوګزنه واخله تریونیم ګزپورې پلن.

(۳) کفني یا کُرته (قیمص) دوه نیم ګزه اوږد او یو ګزپلن، دښځې دکفن له پاره دوه کپړې

---

۱ ] قلت لا اعلم احدا من الفقهاء یوجب الاغتسال من غسل المیت ولا الوضوء من حمله (مختصرسنن ابی داود للمنذری مع معالم السنن ج:٤ص:٣٠٥)_

۲ ]واماالغاسل فمن شرطه ان یحل له النظر الی المغسول فلایغسل الرجل المراة ولا المراة الرجل ......الخ (البحرالرائق ج:۲ص:۱۸۸کتاب الجنائز،طبع دارالمعرفة،بیروت،وایضًا فی الشامی ج:۲ص:۱۹۸طبع سعید)۔

۳ ]واذا ماتت المراة فی السفربین الرجال یتیممها ذو رحم محرم منهما وان لم یکن لف الاجنبی علی یده خرقة ثم یتیممها وکذا اذا مات رجل بین النساء یتیممه رحم محرم منه اوزوجته او امته بغیر ثوب وغیرهن بثوب ...... ولایغسل الرجل زوجته ......الخ (البحر ا لرائق ج:۲ص:۱۸۸)، ماتت بین رجال او هو بین نساء تیممه المحرم ،فان لم یکن فالاجنبی بخرقة (درمختار،کتاب الصلاة ،باب الجنائز ج:۲ص:۲۱۰،دزیات تفصیل دپاره اوګورئ :بدائع الصنائع ،کتاب الصلاة ،باب الجنائزص:۳۰٤نه تر۳۰٦ پورې، فصل واما بیان الکلام فیمن یغسل)_

زياتې وي.[۱] (۱) سينه بند دوه ګزه اوږد او يو ګز پلن.[۲]
(۲) لوپټه يو نيم ګز اوږده او تقريبا يو ګز پلنه، دا ټول له پاره تهبند او دستانې ددې نه پرته وي.

## د کفن له پاره نوې جامه اخيستل ضروري نه ده

**سوال:** که څوک له مخکې نه د کفن له پاره جامه واخلي؛ نو ايا هغه ته به هر کال د کفن له پاره نوې جامه په دويم ځل اخيستل وي؟ اکثر خلک هم دغه وايي چې د کفن جامه يوازې ديو کال له پاره کارامدوي ددې شرعي حيثيت څه دی؟

**جواب:** ددې هيڅ شرعي حيثيت نه شته، د کفن له پاره نوې جامه اخيستل هم ضروري نه دي په وينځل شوې ځادرونو کې هم کفن ورکول صحيح دي.[۳]

## په کفن کې ګنډل شوې جامې استعمالول خلاف سنت دي

**سوال:** کله چې يوه ښځه ياسړی وفات شي، د هغه له پاره ګنډل شوې جامې چې هغه په خپل ژوندکې اغوستې، په کورکې موجودې وي او ددې باوجودپيسې خرچ کولی شي او د کفن اخيستی او ګنډلی شي، ايا په پاجامه قميص ياپرتوږ کې کفن کيدای نه شی؟

**جواب:** په کفن کې ګنډل شوې جامې نه استعماليږي، ګنډل شوې جامې په کفن کې استعمالول خلاف سنت دي.[۴]

---

۱ ] عن ابن عباس رضى الله عنهما قال: كفن رسول الله صلى الله عليه وسلم فى ثلاثه اثواب نجرانية :الحلة ثوبان:وقميصه الذى مات فيه (سنن ابى داود ،كتاب الجنائز، باب فى الكفن ج:۲ص:۹۳طبع امدادية ملتان) قوله وكفنه سنة ازار وقميص ولفافة لحديث البخارى كفن رسول الله صلى الله عليه وسلم فى ثلاثة اثواب سحولية (البحر الرائق كتاب الصلاة باب الجنائز،ج:۲ص:۱۸۹،طبع دارالمعرفة بيروت ،وايضًا عالمگيرى، آلفصل الثالث فى التكفين،الباب الحادى والعشرون ج:۱ص:۱۶۰طبع رشيديه،درمختارج:۲ص۲۰۲طبع سعيد)

۲ ] عن رجل من بنى عروة بن مسعود يقال له داؤد وقدولدته ام حبيبة بنت ابى سفيان زوج النبى صلى الله عليه وسلم ان ليلى بنت قانف الثقفية قالت :كنت فيمن غسل ام كلثوم ابنة رسول الله صلى الله عليه وسلم عند وفاتها ،فكان اول ماعطانا رسول الله صلى الله عليه وسلم الحقاء، ثم الدرع، ثم الخمار، ثم الملحفة، ثم ادرجت بعد فى ثوب آخر ورسول الله (ص) جالس عندالباب ومعه كفنها يناولنا ها ثوبًاثوبًا (سنن ابى داود،كتاب الجنائز،باب فى كفن المراة ج:۲ص:۹٤طبع امدادية ملتان) (قوله وكفنها سنة درع وازار ولفافة وخمار)وخرقة تربط بها ثديا ها لحديث ام عطية ان النبى صلى الله عليه وسلم اعطى اللواتى غسلن ابنته خمسة اثواب(البحرالرائق ج:۲ص:۱۹۰كتاب الجنائزطبع دارالمعرفة بيروت،وايضًادرمختارج:۲ص:۲۰۳كتاب الجنائز)

۳ ] وفى المجتبى :والجديدوالخلق فيه سواء بعد ان يكون نظيفًا من الوسخ والحدث ......الخ (البحرالرائق ج:۲ص:۱۸۹،كتاب الجنائز ،طبع دارالمعرفة ،وايضًا فى الهندية ج:۱ص:۱۶۱فصل فى التكفين ،طبع رشيديه)

٤] (وكفنه سنة ازار وقميص ولفافة) لحديث البخارى ..... والا زار واللفافة من القرن الى القدم والقرن هنا بمعنى الشعرواللفافة هى الرداء طولاً ......والقميص من المنكب الى القدم بلاد حاريص لانها تفعل فى قميص الحى ليتسع اسفله للمشى وبلاجيب ولاكمين ولايكف اطرافه ......الخ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

## دعام سان كفن تيارساتلى شئ، خو په دې باندې آيتونه يا مقدس نومونه مه ليكئ

**سوال:** ايايومسلمان په ژوندكې دځان له پاره كفن اخيستى شي؟اوپه هغې باندې قرآني ايتونه يامقدس نومونه ليكلى شي؟ اوكفن دښه نه ښه واخلم يايوازې دلتهې؟ كفن دخپل ځان له پاره، دمور پلارله پاره، ورونوخويندو له پاره اخيستلى شم اوكه نه؟

**جواب:** ١: كفن تيارساتل صحيح دي.[١]

٢... په كفن باندې ايتونه يامقدس نومونه ليكل صحيح نه دي، دې سره دايات مقدسه اوياكونومونوبې حرمتي به وشي.[٢]

٣...مړ شوى كس چې به څنګه جامې دجمعې په ورځ اوپه اخترونوكې اغوستې اوښځې چې په دپلاركورته دتګ له پاره كومه جامې استعمالولې دهغې معياردجامې كفن استعمالول پكاردي[٣] مګرحكم دادى چې مړى دسپين رنګ په كفن كې دفن كړل شي[۴] ددې له وجې په عام ډول دسپين رنګ لتهې كفن استعماليږي.

---

...بقيه د تير مخ]..(البحرالرائق ج:٢ص:١٨٩كتاب الجنائز،طبع دارالمعرفة ،بيروت ،ردالمحتاركتاب الصلاة ،باب الجنائزج:٢ص:٢٠٢طبع سعيد)_

١ ] عن سهل ان امراة جائت النبى صلى الله عليه وسلم ببردة منسوحة فيها حاشيتها تدرون ما البردة قالوا الشملة قال نعم قالت نسجتها بيدى فجئت لاكسوكها فاخذها النبى صلى الله عليه وسلم محتاجًااليها فخرج الينااوانها ازارة فحسنها فلان فقال اكسنيها مااحسنها فقال القوم :مااحسنت لبسها النبى صلى الله عليه وسلم محتاجًااليها ثم سالته وعلمت انه لا يروه قال:انى والله ماسالته لا لبسه وانما سالته لتكون كفنى ،قال سهل :فكانت كفنه (صحيح البخارى ،كتاب الجنائز،باب من استعدالكفن فى زمن النبى صلى الله عليه وسلم فلم ينكرعليه ،ج:١ص:١٧٠طبع قديمى ،ابن ماجه ص:٢٥٤طبع قديمى)٠والذى ينبغى ان لايكره تهيئه نحو الكفن .......الخ (قوله والذى ينبغى الخ)كذاقاله فى شرح المنية ،وقال لان الحاجة اليه متحققة غالبًا (درمختارمع ردالمحتارج:٢ص:٢٤٤باب الجنائز،كتاب الصلاة)_

٢ ] وقد افتى ابن الصلاح بانه لايجوزان يكتب على الكفن يس والكهف ونحوهما خوفًا من صديد الميت ......وقدمنا قبيل باب المياه عن الفتح انه تكره كتابة القرآن واسماء الله تعالى على الدراهم والمحاريب والجدران ومايفرش وماذالک الا لاحترامه وخشية وطئه نحوه ممافيه اهانة فالمنع هنا اولى مالم يثبت عن المجتهد اوينقل فيه حديث ثابت (شامى ج:٢ص:٢٤٦،٢٤٧،باب الجنائز)_

٣ ]ويكفن بكفن مثله وهوان ينظر الى مثل ثيابه فى الحياة لخروج العيدين وفى المراة ينظر الى ماتلبس اذا خرجت الى زيارة ابويها كذافى الزاهدى (هندية ج:١ص:١٦١كتاب الصلاة فى الشامية ج:٢ص:٢٠٢طبع سعيد)

٤ ]واجب الاكفان الثياب البيض هكذا فى النهاية (هندية ج:١ص:١٦١كتاب الصلاة ،الباب الحادى والعشرون ،فصل فى التكفين وايضافى البخارى ،باب الثياب البيض فى الكفن ،ج:١ص:١٦٩)_

## د کفن جامې ته کولو (راټولولو) سره نه حرامیږي

**سوال:** دا خبره ترکومه حده پورې صحیح ده چې مړي ته کوم کفن اغوستل کیږي که هغه داخیستلونه وروسته راټول کړل شي؛ نو دا د مړي له پاره حرام شي.

**جواب:** دا بالکل مهمل خبره ده.

## اب زم زم سره وینځل شوې جامې کفن ورکول جائزدي

**سوال:** د اب زمزم په اوبوسره وینځل شوې جامې کفن ورکول جائزدي او که نه؟

**جواب:** اب زمزم سره وینځل شوې جامې کفن ورکول جائزدي، البته دغه شان اب زمزم سره دکفن وینځل دبزرګانونه ثابت نه دي. غالبا دبرکت دحاصلولوله پاره په خلکوکې ددې رواج شو.[1]

## په زم زم سره کفن وینځل او کیښودل، د خپل قبر ځای خاص کول

**سوال:** که یو سړی د ځوانۍ په حالت کې د خپل ځان له پاره او د خپلې ښځې له پاره د مکې معظمې نه کفن واخیست او دې ته یې د زم زم په اوبو باندې غسل ورکړ او کې یې ښوده؛ نو ایا دې ته بدعت ویل کیږي؟ او که د مرګ نه مخکې دخپل ځان له پاره قبر اوکني او تیار یې کړ او خپلو متعلقینو ته یې خبر ورکړ چې له وفات نه وروسته ما په دې ځای کې ښخ کړئ؛ نو ایا دا فعل بدعت دی؟

**جواب:** دواړه خبرې جائز دي، بدعت نه دی، خو د ذاتي ملکیت په ځای کې دې جوړ کړي د وقف ځای منع کول صحیح نه دي؟[2]

## مړي ته په کفن کې عهد نامه کیښودل بې ادبي ده

**سوال:** دمړي په کفن کې عهدنامه اچول کیږي، وایي چې ددې په برکت سره بخشش کیږي، ایا دا صحیح ده؟

---

[1] ويحفرقبرًا لنفسه وقيل يكره والذى ينبغى ان لايكره تهيئة نحو الكفن بخلاف القبر وفى شرحه :لاباس به وفى التتارخانية :لاباس به ويوجرعليه ،هكذا عمل عمربن عبدالعزيزوالربيع بن خيثم وغيرهما ،قوله والذى ينبغى ......الخ،كذاقاله فى شرح المنية ،وقال:لان الحاجة اليه متحققة غالبًا بخلاف القبرلقوله تعالى وماتدرى نفس باى ارض تموت (شامى ج:۲ص:۲٤٤باب الجنائز ، كتاب الصلاة ،طبع سعيد)۔

[2] ويحفرقبرًا لنفسه وقيل يكره والذى ينبغى ان لايكره تهيئة نحو الكفن بخلاف القبر وفى شرحه :لاباس به وفى التتارخانية :لاباس به ويوجرعليه ،هكذا عمل عمربن عبدالعزيزوالربيع بن خيثم وغيرهما ،قوله والذى ينبغى ......الخ،كذاقاله فى شرح المنية ،وقال:لان الحاجة اليه متحققة غالبًا بخلاف القبرلقوله تعالى وماتدرى نفس باى ارض تموت (شامى ج:۲ص:۲٤٤باب الجنائز ، كتاب الصلاة ،طبع سعيد)

**جواب:** عهدنامه په قبر کې کېښودل بې ادبي ده، کېښودل پکارنه دي، په درمختار کې دي چې:که دمړي په تندی باندې یا په پټکي باندې یا په کفن باندې ، ،عهدنامه، ،ولیکل شوه؛ نو امید دی چې الله تعالی به د دې مړي ښښنه وکړي،، خو علامه شامي رحمه الله د دې پُرزور تردید کړی دی.[۱]

## دوفات شوې ښځې په ښنوبا ندې نکریزې لګول جائز نه دي

**سوال:** زما مور وفات شوه؛ نو مایوه دمړولامبولو واله ښځه راوسته، هغې په ما باندې نکریزې راوغوښتل، دمور د لامبولو نه وروسته مې د مورپه دواړو ښنو یعنې ددواړو ښنو په تلو باندې یې نکریزې ولګول، زمور کور والو خودیره منع کړله، خوهغې ښځې راته مسئلې مسائل ښودل، مختصر داچې زه دامعلومول غواړم چې کفن کړل شوی لاش (ښځه) ته په ښنوباندې نکریزې لګولو ذکرچیرته راغلی دی اوکه نه؟

**جواب:** هغې غلطي وکړه، مړي ته نکریزې لګول پکارنه و.[۲]

## د کفن اغوستلو په وخت کې مړي ته کافور لګول او د خوشبو پونه (چړکاؤ) ورکول جائزدي

**سوال:** څنګه چې نن‌سبا په مونږ مسلمانانو کې رواج دی چې که د مړي په خوا کې ګربتۍ اولوبان لوږې کیږي، همدغه شان په قبرونو باندې ګربتۍ اوموم بتۍ لګوو، حالانکې زما د معلوماتو مطابق حضور ﷺ فرمایلي دي چې داوورسره مړو ته تکلیف ملاوېږي څه احکام دي؟اوداچې مړیو ته څنګه خوشبوولګول شي؟ دګلونو هاراچولوسره یاخوشبوېږي اچولوسره؟

**جواب:** ۱: مړي ته د کفن اغوستلو نه مخکې دلوبانولو ګې ورکول مسنون دی.[۳]

---

۱ ] کتب على جبهة الميت اوعمامته اوكفنه عهدنامه يرجى ان يغفرالله للميت ،درمختار:وفى الشامية :وقدافتى ابن الصلاح بانه لايجوز ان يكتب على الكفن يس والكهف ونحوهما خوفًا من صديد الميت.......وقدقدمنا قبيل باب المياه عن الفتح انه تكره كتابة القرآن واسماء الله تعالى على دراهم والمحاريب والجدران وما يفرش وما ذالك الا لاحترامه وخشية وطئه ونحوه ممافيه اهانة فالمانع بالاولى مالم يثبت عن المجتهد اوينقل فيه حديث ثابت فتامل(ردالمحتارعلى الدرالمختار ج:۲ص۲٤٦مطلب فيما يكتب على كفن الميت) الاستفسار:قدتعارف فى بلادناانهم يلقون على قبر الصلحاء ثوبًا مكتوبًا فيه سورة الاخلاص هل فيه باس؟ الاستبشار:هواستهانة بالقرآن ،لان هذا الثوب انما يلقى تعظيمًا للميت،ويصير هذا الثوب مستعملاًمبتذلاً وابتذال كتاب الله من اسباب عذاب الله (فتاوى لكهنوى ص٤٠٣)

۲ ] قال فى القنية :اما التزين بعدموتها لايجوز......الخ (البحرالرائق ج:۲ص:۱۸۷)_

۳ ] قوله وتجمر الاكفان اولا وترا لانه عليه السلام امربإجماراكفان امراته والمرادبه التطيب قبل ان يدرج فيهاالميت ......الخ (البحر الرائق ج:۲ص:۱۹۱ كتاب الصلاة باب الجنائز طبع دارالمعرفة بيروت)_

۲:...دمړی په سرکې، ږیره اوپه پوره بدن باندې خوشبولګول اود سجدې په ځایونو (تندی، پوزه، دواړولاسونو، دواړوګونډو او دواړو پښو) باندې کافورلګول مستحب دي.[۱]

۳:...په مړي یاپه قبرباندې ګلونه اچول اوپه قبرونوباندې ګربتۍ بلول غلط دي.[۲]

## د مړي په باره کې د ښځوتوهم پرستي

**سوال:** دا ویل کیږی چې دمړي خوځول اواخوادیخواکول سهي نه دي، ځکه چې دې سره مړي ته سخت تکلیف ورکول کیږي که په هغه کې ساه وای؛ نوتړول به یې شلولي و، زمامحترم بزرګه! په نواب شاه کې داسې یوکار وشو، یوه اینجلۍ وفات شوه، پته نه شته چې غسل یې ورکړ؛ نورایې وسته،دکفن اغوستلونه وروسته هغه اینجلۍ څوک چې وفات شوې وه، غسل ورکونکې دهغې په سترګوکې کاجل ولګول، زمامحترمه! په نواب شاه کې یوغسل واله نه، بلکې په نواب شاه کې چې څومره داسې ښځې دي هغوی ټولې دارسم کوي، کاجل په ګوتې سره لګول، هسې داترکومه حده پورې صحیح ده؟

که دچاپه کورکې څوک ماشوم، هلک یااینجلۍ، ښځه سړی، بډه یا بوډا یا د ډیر عمر واله څوک چې هم وفات شي؛ نوښځې پرهیزکوي، چې زموږ پرهیز یاتعویذ دی، داسې ښځې د مړي کورته نه ځي، حتی چې دهغوی د لسو یا دولسو کلنو اینجلیو هم پرهیزوي ا وتر دې پورې چې د مړي د کور مخې ته به هم نه تیریږي، خدای دې نه کړي دوی پورې د مړي څه روح وې ننخلي، دا پرهیز څلویښت یا ددې نه زیاتې ورځې هم چلیږي، دا پرهیز دهغوی دخپلو سکه خپلوانویعنې وریرونو، خوریونو، یاد برادرئ وغیره نورو عزیزانو خپلوانو ګوانډیانو پورې چلیږي.

---

۱ ] قوله وجعل الحنوط علی راسه ولحیته لا ن التطیب سنة ......والکافورعلی مساجده زیادة فی تکرمتها وصیانة للمیت عن سرعة الفساد وهی موضع سجوده ......الخ (البحرالرائق ج:۲ص:۱۸۷باب الجنائز)۰وکذافی الفتاوی العالمگیریة ،کتاب الصلاة الفصل الثالث فی التکفین ،الباب الحادی والعشرون فی الجنائزج:۱ص:۱۶۱)۔

۲ ] وذکرابن الحاج فی المدخل ،انه ینبغی ان یجتنب ما احدثه بعضهم من انهم یاتون بماء الورد فیجعلونه علی المیت فی قبره وان ذالک لم یرو عن السلف رضی الله عنهم فهوبدعة قال ویکفیه من الطیب ماعمل له وهو فی البیت فنحن متبعون لامبتدعون فحیث وقف سلفنا وقفنا (حاشیه الطحطاوی علی مراقی الفلاح ،فصل فی حملها ودفنها ص:۳۳۳ طبع میرمحمد کتب خانه)۰ واعلم ان النذر الذی یقع للاموات من اکثرالعوام وما یوخذ من الدراهم والشمع والزیت ونحوها الی ضرائح الاولیاء الکرام تقربًا الیهم فهو بالاجماع باطل وحرام ......وقدابتلی الناس بذلک لاسیما فی هذه الاعصار وقدبسطه العلامة قاسم فی شرح دررالبحار (درمختار،قبیل باب الاعتکاف ج:۲ص:۴۳۹ طبع ایچ ایم سعید)، تفصیل دپاره اوګورئ:اختلاف امت اوصراط مستقیم ص:۶۹نه تر ۷۴ پوری)۔

**جواب:** دا هم توهم پرستي ده، چې مړی د خپل ځای نه اخوا دېخوانه کړل شي، مړي ته کاجل یا رانجه لګول منع دي[1] ځينې ښځې چې د مړي کورته نه ځي همدغه شان دزچګۍ واله کورنه پرهيزکوي داد غلطو خلکوخوره شوې ګمراهي ده، هغوی دوی ته داسې تعويذونه ورکوي چې هغوی تېول عمر د دوی د چکرنه ونه وځي

## د مړي له پاره حيله اسقاط او قدمونو شمارلو رسم

**سوال:** زموږ په کلي کې چې کله څوک وفات شي؛ نو اول چې کله د جنازې کټ پورته کوي: نو مولوي صاحب قدمونه شماري، پته نه شته چې دا خبره صحيح ده اوکه نه؟ بيا د جنازې لمونځ کولونه وروسته مولويان صاحبان يوه دايره جوړه کړي اوکينې په لاس کې قرآن پاک واخلي اودې ته هغوی د حيلې نوم وايي، خدای مکړه که چا د خپل مړ شوي حضرت حيله ونکړه: نو مولويان صاحبان د ټولونه مخکې فتوا لګوي،، وګوره، پرته د حيلې نه يې خښ کړ، ددې ښنبه نه کيږي، ايا دا حيله په اسلام کې جائزده، همدغه شان قرآن پاک د ځان سره اوړل، ايا د قرآن پاک بې حرمتي نه ده؟

**جواب:** مستحب داده چې بنده د جنازې کټ تر څلوېښتو قدمونو پورې اوچت کړي، اول په ښي اوږه باندې د مخکني طرف نه لس قدمه دې واخلي، بيا په ګسه اوږه باندې دې لس قدمه دوروسته نه دې واخلي، په ګسه اوږه دې د مخکې طرف نه لس قدمه، بيا په ګسه اوږه د وروسته طرف نه دې لس قدمه واخلي[2]، ظاهره ده چې هرکس دې خپل قدمونه په خپله وشماري، د مولوي صاحب د خلکو قدمونه شمارل بې معنا ده او خپل قدمونه دې وشماري.

ترڅوپورې چې د اسقاط د حيلې تعلق دی په کوم شکل کې چې نن سبا حيله رائج ده دا خالص بدعت دی او ډېرزيات قبيح بدعت[3]،.... او ددې بدعت له پاره د قرآن کريم استعمالول بې شکه د قرآن کريم بې حرمتي ده.

---

۱ ]ايضا)_

۲ ]واما نفس السنة فهى ان ناخذ بقوائهما الاربع على طريق التعاقب بان تحمل من كل جانب عشرخطوات ...... فيحمله على عاتقه الايمن ثم الموخرالايمن على عاتقه ثم المقدم الايسرعلى عاتقه الايسر ثم الموخر الايسرعلى عاتقه الايسر......الخ (فتاوى عالمگيرى ،كتاب الصلاة ،الباب الحادى والعشرون فى الجنائز،الفصل الرابع فى حمل الجنائز ج:١ص:١٦٢)،وينبغى ان يحمل من كل جانب عشرخطوات لماروى فى الحديث من حمل جنازة اربعين خطوة كفرت اربعين كبيرة (البدائع الصنائع ،فصل والكلام فى حمله على الجنائز،ج:١ص:٣٠٩ البحرج:٣ص:٣٣٨)_

۳ ]عن عائشة رضى الله عنها قالت :قال النبى صلى الله عليه وسلم :من احدث فى امرنا هذا ماليس منه فهو رد (صحيح بخارى ،كتاب الصلح ج:١ص:٣٧٠طبع قديمى)٠وعرفها(اى البدعة) الشمنى بانها ما احدث على خلاف الحق المتلقى عن رسول الله صلى الله عليه وسلم من علم اوعمل اوحال بنوع شبهة واستحسان ،وجعل دينًا قويمًا وصراطًا مستقيمًا (ردالمحتارباب الامامة مطلب البدعة خمسة اقسام ج:١ص:٥٦٠)_

# جنازې ته د اوږې ورکولو مسنونه طریقه

**سوال:** کله چې دیوکس جنازه دهغه دکورنه پورته کیږي؛ نو اکثر لیدل کیږي چې خلک جنازې ته اوږه ورکوي اوبیاځه مخصوص قدمونوتلونه وروسته هغه بدل کړي اوکافي لیرې پورې داعمل جاري وي، دې عمل ته داخلک، ،ده قدم، ،وایي ددې عمل (ده قدم) اصل حقیقت څه دی؟ لږ په تفصیل سره مو پوه کړئ، ځکه چې زه دکومې علاقې اوسیدونکی یم، هلته سل په سل خلک داسې کوي.

**جواب:** دمړي جنازې ته اوږه ورکول مسنون دي اوپه ځینواحادیثوکې جنازې ته د څلورو واړو طرفونه د اوږې ورکولوفضیلت هم راغلی دی.

دطبراني په (معجم اوسط) کې په ضعیف سند سره دحضرت انس بن مالک رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

**من حمل جوانب السرير الاربع كفر الله عنه اربعين كبيرة.** (مجمع الزوائد ج:۳ ص:۲۶)

**ترجمه:** کوم کس چې دجنازې دکټ څلورو واړوپښوته اوږه ورکړه الله تعالی به دا د څلویښتو لویو ګناهونو کفاره جوړه کړي.

امام سیوطي رحمه الله په (الجامع الصغیر) جلد۳ صفحه: ۱۷۰ کې دابن عساکر رحمه الله په روایت سره دحضرت واثله رضي الله عنه داحدیث نقل کړی دی.

دامت فقهاوو جنازې ته داوږې ورکولوسنت طریقه دا لیکلې ده چې لومړیو لسوقدمونوپورې دې ښي طرف ته مخکینوپښوته اوږه ورکړي، بیالس قدمه دې هم ددې طرف روستنیوپښوته اوږه ورکړي، بیالس قدمه ګس(چپ) طرف ته مخکینوپښوته، بیالس قدمه ګس طرف ته روستنو پښو ته، که پرته دتکلیف ورکولوپه دې طریقه باندې عمل وشي؛ نوبهترده.[1]

# د جنازې له پاره دریدل بهتر دي

**سوال:** کله چې زمونږ په خواکې جنازه تیریږي اوموږ ناست یو؛نوپه احترام کې دریدل پکار دي اوکه نه؟ځکه چې ځینې کسان په دکانونوکې ناست وي؛ نوودریږي اوځینې نه دریږي؟

**جواب:** دریدل بهتر دي.[2]

---

۱ ] تیره شوی حاشیه (واما نفس السنة فهي ان ناخذ بقوائمها الاربع.....الخ) اوګورئ!_

۲ ] ولايقوم للجنازة الا ان يريدان يشهدها كذافى الايضاح (هندية كتاب الصلاة الباب الحادى والعشرون فى الجنائز،الفصل الرابع فى حمل الجنازة)،ولايقوم احدللجنازة اذا مرت به الا اذا اراد ان يتبعها ،وعليه الجمهور ،وما ورد فى الاحاديث الصحيحة من القيام لها منسوخ بماروى عن على رضى الله عنه قال كان: رسول الله صلى الله عليه وسلم امرنا بالقيام فى الجنازة ثم جلس بعدذلك وامرنابالجلوس ۰رواه ابوداود ......الخ (حلبى كبير فصل فى الجنازة ص:۵۹۳)_

## مړي د دفن کولو له پاره په سورلۍ با ندې وړل

**سوال:** مړی د دفن کولو له پاره په سورلۍ باندې وړل پکار دي او که پلي (پیدل)؟

**جواب:** که قبرستان لرې وي؛ نو بیا په سورلۍ باندې د وړلو هیڅ باك نشته دی.[۱]

## خاوند د خپلې ښځې په جنازه کې شریکیدای شي

**سوال:** په ځینو خلکو کې داخبره مشهوره ده چې کله ښځه وفات شي: نو خاوند نه خود خپلې ښځې مخ ته کتی شي اونه هغې ته لاس لګولی شي، تردې پورې چې د جنازې کټ ته اوږه هم نه ورکوي اونه دې د جنازې په لمونځ کې شریکیږي، په قبر کې هم خاوند خپله ښځه نه شي کوزولی ،اوس تاسو راته معلومات راکړئ چې داخبرې ترکومه حده پورې صحیح دی؟تسو وواییئ چې د ښځې د مرګ نه وروسته آیا خاوند غیر محرم ګرځي؟

**جواب:** د ښځې د مرګ نه پس خاوند د هغې مخ لیدی شي لاس ورسره نه شي لګولی، [۲]جنازې ته اوږه ورکولی شي، د جنازې په لمونځ کې شریکیدای شي، او د ښځې لحد کې د کوزولو له پاره د هغې محرم رشته دار پکار دی، که هغوی نه وي، نو نور خلک دې ښکته کړي، په دوی کې خاوند هم شریکیدای شي[۳] داصحیح ده چې د ښځې د مرګ سره د دنیاوي احکامو په اعتبار سره د ښځې خاوند رشته ختمه شي، او د خاوند په حیثیت سره په یولحاظ سره هغه اجنبي شي.[۴]

## خاوند له مرګه وروسته د ښځې مخ لیدی شي لاس نه شي لګولی

**سوال:** تاسو د یو صاحب د سوال په جواب کې فرمایلي دي چې د خاوند د خپلې ښځې مخ ته کتل جائز دي او د هغې بدن ته لاس لګول جائز نه دي،، تاسو ته درخواست دی چې د قرآن پاک نه څه حواله یا دلیل راکړئ، ځکه چې زما په علم کې خو دا حقیقت دی چې حضرت علي رضی الله عنه له وفات نه وروسته حضرت فاطمه رضی الله عنها ته په خپله غسل ورکړی و او همدغه شان د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه له وفات وروسته د هغه بي بي محترمې هغوی ته غسل ورکړی و، د دې وجې

---

[۱] اما اذاکان عذربان کان المحل بعیدًا یشق حمل الرحال له اولم یکن الحامل الا واحد فحمله علی ظهره فلا کراهة اذن (حاشیه الطحطاوی علی مراقی الفلاح کتاب الجنائزص: ۳۳۱)

[۲] ویمنع زوجها من غسلها ومسها لا من النظر الیها علی الاصح (درمختارمع الشامی ،کتاب الصلاة باب صلاة الجنازة ج:۲ص: ۱۹۸طبع ایچ ایم سعید)۔

[۳] وذی الرحم المحرم اولی بادخال المراة من غیرهم وکذا ذوالرحم غیر المحرم اولی من الاجنبی ،هندیة ج:۱ص:۱۶۶،کتاب الصلاة الباب الحادی والعشرون فی الجنائز،الفصل السادس)۔

[۴] بخلاف ما اذا ماتت المراة حیث لا یغلسها الزوج لان هناک انتهی ملک النکاح لا نعدام المحل فصارالزوج اجنبیًا......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۳۰۴طبع ایچ ایم سعید)، وامابیان الکلام فیمن یغسل (وایضًا ردالمحتارکتاب الصلاة ،باب الجنائزج:۲ص:۱۹۸طبع ایچ ایم سعید)۔

نه دا خبره خوضرور ياثبوت او شرعي دليل ته رسيږي چې دوفات نه پس دخاوند ښځې يا د ښځې دخاوند مخ ته کتل ورسره لاس لګول وغيره نه صرف جائزدي، بلکې غسل ورکول افضل هم دي، صحابه کراموخوبه جائز، بلکې بهترين اوافضل افعال اواعمال سرته رسول، په موږ عامومسلمانانو کې چې کومې خبرې مشهورې دي چې دوفات نه پس نکاح ختمه شي .کتل اولاس لګول ورته منع دي او داسې نور، دا ټولې خبرې غلطې اودکم علمۍ له وجې دي.که زماخبرې غلطې وي؛ نومهرباني وکړئ اوخه شرعي دليل راته پيش کړئ!

**جواب:** دښځې دوفات سره نکاح ختمه شي، همدغه وجه ده چې دهغې دخورسره نکاح کولی شي. ددې وجې نه دخاوند له پاره دښځې له مرګ نه وروسته هغې ته لاس لګول اوغسل ورکول جائزنه دي[۱] اود خاوند په مرګ باندې دنکاح اثردعدت پورې باقي وي ،ځکه ښځې ته د خاوندله وفات وروسته هغه سره لاس لګول اوغسل ورکول صحيح دي، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ته دهغوی دميرمنې په غسل ورکولوکې خوهيڅ شک نشته[۲]خو دحضرت علي رضي الله عنه واقعه کې شک دی، اول خوپه دې سلسله کې درې روايات مروي دي:يوداچې حضرت علي رضي الله عنه غسل ورکړی و ،دويم داچې حضرت اسماء بن عميس رضي الله عنها اوحضرت علي رضي الله عنه غسل ورکړی و[۳]او دريم داچې حضرت فاطمې رضي الله عنها دوفات نه مخکې غسل وکړ .نوې جامې

---

۱ ]ولنا روى عن ابن عباس رضي الله عنهما ان رسول الله صلى الله عليه وسلم سئل عن امراة تموت بين رجال فقال يتيمم بالصعيد ولم يفصل بين ان يكون فيهم زوجها اولايكون ،ولان النكاح ارتفع بموتها فلا يبقى حل المس والنظركمالو طلقهاقبل الدخول ودلالة الوصف انهاصارت محرمة على التابيدوالحرمة على ا لتابيدتنافى النكاح ابتداء وبقاء ولهذا جاز للزوج ان يتزوج باختها واربع سواها واذا زال النكاح صارت اجنبية فبطل حل المس والنظر بخلاف ما اذا مات الزوج لان هناک ملک النكاح قائم ......الخ (البدائع الصنائع ،فصل ومابيان الكلام فيمن يغسل ج:۱ص:۳۰۵)۔

۲ ]اما المراة فتغسل زوجها ......وروى ان ابابكر الصديق رضى الله عنه اوصى الى امراته اسماء بنت عميس ان تغسله بعدوفاته ......ولان اباحة الغسل مستفادة بالنكاح فتبقى مابقى النكاح بعدالموت باق الى وقت انقطاع العدة بخلاف ما اذا ماتت المراة حيث لا يغلسها الزوج لان هناک انتهى ملک النكاح لانعدام المحل فصارالزوج اجنبيًا فلايحل له غسلها (بدائع الصنائع فصل وامابيان الكلام فيمن يغسل ج:۱ص:۳۰٤طبع ايچ ايم سعيد،وايضًا فى البحر ج:۲ص:۱۸۸كتاب الصلاة ،باب الجنائز ،طبع دارالمعرفة بيروت)۔

۳ ]قلنا هذا محمول على بقاء الزوجية لقوله عليه السلام كل سبب ونسب ينقطع بالموت الا سبى ونسبى مع ان بعض الصحابة انكرعليه شرح المجمع للعينى (قوله قولنا......الخ) قال فى شرح المجمع لمصنفه فاطمة رضى الله عنها غسلتها ام ايمن ......ولئن ثبت الرواية فهو مختص به الا ان ابن مسعود رضى الله عنه لما اعترض عليه بذلک اجابه بقوله :اماعلمت ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: ان فاطمة زوجتک فى الدنيا والاخرة فادعاه الخصوصية دليل على ان المذهب عندهم عدم الجواز (فتاوى شامى ،باب صلاة الجنازة ج:۲ ص:۱۹۸)، وروى البيهقى وابو الفرج عن فاطمة رضى الله عنها قالت لاسماء بنت عميس :يااسمآء ! اذا مت فاغسلينى انت وعلى فغسلها قال ابوالفرج فى اسناده عبدالله بن نافع....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

يې واغوستې او وېې فرمايل چې زه رخصتيږم، ما غسل هم کړی دی او کفن مې هم اغوستی دی، د مرګ نه پس دې زما جامې ونه وېستل شي،، دا يې وويل او مخ په قبله څملاسته او روح ترې پرواز وکړ، د هغې د وصيت مطابق غسل ورنکړل شو؛ کله چې روايات په دې سلسله کې متعارض وي؛ نو په دې واقعه باندې څه شرعي مسئلې له پاره بنياد جوړول به هم صحيح نه وي او که د حضرت علي رضي الله عنه د غسل ورکولو روايت صحيح و منل شي: نو زيات نه زيات دا ويلی شو چې دا د حضرت فاطمې رضي الله عنها او حضرت علي رضي الله عنه خصوصيت و، د دې سره عام حکم نه ثابتيږي، له دې وجې نه صحيح مسئله هماغه ده چې ماليکلې ده، چې د ښځې له وفات نه وروسته خاوند د هغې مخ ليدی شي، مګر لاس ورسره نه شی لګولی.[۱]

## په ښځه خاوند کې که څوک مړ شي نو د يو بل مخ ليدی شي او که نه؟

**سوال:** د ځينې خلکو نه مې آوريدلي دي چې په ښځه او خاوند کې يو کس مړ شي؛ نو خاوند د خپلې مړې ښځې مخ نه شي ليدلی، او دا رنګه ښځه د خپل مړ خاوند مخ هم نه شي ليدلی، اوس که چيرې ښځه د خپل مړ خاوند او خاوند د خپلې مړې ښځې د آخري ديدار د پاره يو بل ته ګوري؛ نو په اسلا م کې به دا څه قسمه ګناه وي؟

**جواب:** دواړه د يو بل مخ ليدلی شي، ښځه خپل مړ خاوند ته لاس هم لګولی شي، خاوند مرحومې ښځې ته لاس نه شي لګولی.[۲]

## مړی په کور کې تر کوم وخته کېښودل کيدای شي

**سوال:** چې کله مرګ وشي؛ نو مړی تر کوم وخته پورې کېښودل کيدای شي؟

**جواب:** له وفات نه وروسته چې څومره ممکن وي، زر تر زره يې تجهيز، تکفين او تدفين کول پکار دي[۳].

---

...بقيه د تير مخ].. قال يحيى ليس بشي ء وقال النسائى متروک ورووا احاديث آخرليس فيها مايعتمدعليه (حلبى كبير فصل فى الجنائزص:٦٠٤طبع سهيل اكيدمى)_

۱ ] عن ام سلمة رضى الله عنها قالت: اشتكت فاطمة شكواها الذى قبضت فيه فكنت امرضها فاصبحت يومًا كامثل مارايتها ،وخرج على لبعض حاجته فقالت :ياامه ! اسكبى لى غسلاً فاغتسلت كاحسن مارايتها تغتسل ،ثم قالت:ياامه ! اغطنى ثيابى الجدد فاعطيتها ،فلبستها ،ثم قالت :ياامه !قدمى لى فراشى وسط البيت ففعلت واضطجعت ،فاستقبلت القبلة وجعلت يدها تحت خدها ثم قالت : ياامه !انه مقبوضة الان وقد تطهرت فلايكشفنى احد فقبضت مكانها..انتهى، واعلم ان الحديث ذكره ابن الجوزى فى الموضوعات ......هذا مما لاينسب الى على وفاطمة بل يترهون عن مثل هذا -(نصب الراية لاحاديث الهداية ،كتاب الصلاة ،باب الجنائزج:٢ص:٢٥٠،٢٥١طبع موسسة الريان المكتبة الملكية)_

۲ ] ويمنع زوجها من غسلها ومسها لا من النظر اليهاعلى الاصح ...وهى لاتمنع من ذلک...الخ، وفى الشرح ولعل وجهه ان النظر اخف من المس فجاز لشبهة الاختلاف (شامى ج:٢ص:١٩٨باب الجنائز،كتاب الصلاة)

۳ ] ويستحب ايضًا ان يسارع الى قضاء دينه ابرائه منه ويبادر الى تجهيزه....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

## د خلکو د انتظار له پاره مړی کیښودل

**سوال:** د څه خلکو د انتظار له پاره مړی کیښودل څنګه دي؟

**جواب:** د لرې رشتدارو د انتظار د پاره مړی ډېرې ګڼتې کیښودل او پرېښودل ډېره بده خبره ده.[1]

## د ناپاکه کس جنازې ته اوږه ورکول

**سوال:** کله چې جنازه پورته کیږي؛ نو ډېر خلک جنازې ته اوږه ورکوي، که څوک د ناپاکي (جنابت) په حالت کې جنازې ته اوږه ورکړي؛ نو څه به کیږي؟ که د دغه کس زړه پاک وي او کپړې یې ناپاکه وي نو هغه په دې حالت کې جنازې ته اوږه ورکولی شي او که نه؟

**جواب:** د ناپاکه (جنب) کس له لوري جنازې ته اوږه ورکول مکروه دي، د زړه سره جامې او بدن هم پاکول پکار دي، د کوم کس چې د خپل بدن او جامو پاکو ساتلو اهتمام نه وي؛ نو د زړه د پاک ساتلو به خاورې اهتمام وکړای شي.

## د ښځې مړي ته هر کس اوږه ورکولی شي

**سوال:** ایا د ښځې جنازې ته هر کس اوږه ورکولی شي او که یوازې محرم سړي اوږه ورکولی شي؟

**جواب:** قبر ته خو یې یوازې محرمو سړیو ته ښکته کول پکار دي، (که محرم نه وي یا کافي نه وي؛ نو غیر محرم هم شاملیدای شي)[2] خو اوږې ورکولو تولو ته اجازت دی.[3]

## په قبرستان کې د جنازې کیښودو نه مخکې ناسته د ادب خلاف ده

**سوال:** په قبرستان کې د جنازې په ځمکه باندې د کیښودو نه مخکې د کسانو ناسته څنګه ده؟

**جواب:** د ادب خلاف ده، د جنازې د کیښودو نه وروسته ناسته پکار ده.[4]

---

...بقیه د تیر مخ].. ولایوخر (عالمگیری ج:۱ص:۱۵۷)

[1] وکره تاخیر صلاته ودفنه لیصلی علیه جمع عظیم بعد صلاة الجمعة الا اذا خیف فوتها بسبب دفنه (الدرالمختارمع الردج:۲ص:۲۳۲)، والافضل ان یجعل بتجهیزه کله من حین یموت .....وفی القنیة ولو جهزالمیت صبیحة یوم الجمعة یکره تاخیرالصلاة ودفنه لیصلی علیه الجمع العظیم....الخ(البحرالرائق ج:۲ص:۱۹۱باب الجنائز)

[2] وذو الرحم المحرم اولی بادخال المراة من غیرهم کذافی الجوهرة النیرة وکذا ذوالرحم غیر المحرم اولی من الاجنبی فان لم یکن فلا باس للاجانب وضعها کذافی البحرالرائق (هندیة ج:۱ص:۱٦٦کتاب الصلاة)_

[3] سن فی حمل الجنازة اربعة من الرجال ......الخ (هندیة ج:۱ص:۱۶۲کتاب الصلاة ،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز)،وایضآ یکره الناس ان یمنعوا حمل جنازة المراة لزوجها ......الخ(خلاصة الفتاوی ج:۱ص:۲۲۵)

## د مړي د دفن کولو په وخت کې رسومات

**سوال:** کله چې قبرته مړی بښکته کیږي؛ نو د قبر په دیوالونو باندې او په مړي باندې د ګلابو عرق اونورې خوشبويي شيندي، په مړي باندې، ،عهد نامه، ،وغيره ږدي، دكورنه دمړي دوتوپه وخت کې د مړي له پاره توښه (باقاعده خوراک وغيره) وړي، او په قبرباندې ګلونه او خوشبويئ ني استعمالوي ايا دې شيانو سره مړي ته څه فائده حاصليږي؟ شرعي حیثیت سره یې بيان کړئ!

**جواب:** دا ټول رسمونه غلط دي او د دې هيڅ شرعي سند نشته.[۱]

## په قبر کې مالوچ يا فوم غوړول صحيح نه دي

**سوال:** آيا په قبر کې څه شی غوړ ول مثلا: مالوچ، فوم واو داسې نور... جائز دي؟

**جواب:** په قبر کې هيڅ شی غوړ ول درست نه دي.[۲]

## په قبر کې قرآن يا کلمه کيښودل جائز نه دي

**سوال:** آيا د مړي سره په قبر کې قرآن مجيد، يا د قرآن مجيد څه حصه يا څه دعا يا کلمه طيبه كيښودل جائز دي او که نه؟ د قرآن، حديث، فقه حنفي، او سلف صالحينو د عمل په رڼا کې په تفصيل سره راته جواب راکړئ ډيره مهرباني به مو وي.

**جواب:** په قبر کې د مړي سره قرآن کريم يا د قران کريم څه حصه دفن کول ناجائز دي، ځکه چې مړی په قبر کې پړسيږي او خرابيږي، د قرآن کريم په داسې ځای کې کيښودل بې ادبي ده، همدغه حکم د نورو مقدسو کلماتو هم دی، سلف صالحينو په دې عمل نه دی کړی.[۳]

---

...بقيه د تير مخ]. (هندية ج:۱ص:۱٦۲)،وايضاًويكره لمتبعي الجنازة ان يقعد واقبل وضع الجنازة لانهم اتباع الجنازة والتبع لايقعد قبل قعود والاصل ولانهم انما حضروا تعظيمًا للميت وليس من التعظيم الجلوس قبل الوضع (البدائع الصنائع فصل والكلام في حمله على الجنازة ج:۱ص:۳۱۰)۔

۱ ] كتب على جبهة الميت اوعمامته اوكفنه عهدنامه ......وقدافتى ابن الصلاح بانه لايجوزان يكتب على الكفن يس والكهف ونحوهماخوفًا من صديدالميت......تكره كتابة القرآن ......ونحوه ممافيه اهانة فالمنع بالاولى مالم يثبت عن المجتهد اوينقبل فيه حديث ثابت فتامل (ردالمحتارمع الدرالمختار،مطلب فيمايكتب على الكفن ج:۲ ص:۲٤٦)، وذكرابن الحاج في المدخل انه ينبغي ان يجتنب ماحدثه بعضهم من انهم ياتون بماء الورد فيجعلونه على الميت في قبره وان ذلک لم يروعن السلف رضي الله عنهم فهو بدعة قال ويكفيه من الطيب ماعمل له وهو في البيت فنحن متبعون لامبتدعون فحيث وقف سلفنا وقفنا (حاشيه الطحطاوى على مراقى الفلاح فصل في حملها ص:۳۳۳طبع ميرمحمدكتب خانه)،وكذالک مايفعله اكثرالناس من وضع مافيه رطوبة من الرياحين والبقول ونحوهماعلى القبورليس بشيء (عمدة القارى ،كتاب الوضوء ج:۳ص:۱۲۰،طبع منيرية)

۲ ] ويكره ان يوضع تحت الميت في القبر مضربة اومخدع اوحصيرة اونحو ذلک اه ......الخ(شامى ج:۲ص:۲۳٤)۔

۳ ] او ګورئ تېره شوی حاشيه (كتب على جبهة الميت اوعمامته اوكفنه عهدنامه .....الخ)۔

## د مړي صرف مخ قبلې طرف ته کول کافي نه دي

**سوال:** زموږ ديوخپلوان موروفات شوه. دمرحومې وړوکي زوى اهل حديث دى، هغه قبرستان ته لاړاوقبرته ښکته شواوموريې په ډډه څملوه اوشاته يې ورته كاڼي كيښودل، دتدفين نه وروسته خبره وشوه؛ نوهلك وويل چې خداى دې ماته معافي وكړي ددې نه مخكې ماخپل مرحوم وروروستوني ستغ څملولى و اومخ مې ورته قبلې ته كړى و، خو داخل مې صحيح طريقه اختيار كړه، واضحه دې وي چې باقي ټول خلک اهل سنت والجماعت دي. داسې اوريدوسره هغه هلك موږ ټولوته وويل چې موږ ته په خپل جماعت كې هم داسې ويل شوي و، مولانا صاحب! تاسو راته ووايئ چې مړى په ډډه باندې څملول جائزو؟ چې مخ يې دقبلې طرف ته و، اوكه اوس څملول شوى وي؛ نوپه دې غلطي باندې دوباره څه كيداى شي؟

**جواب:** مړى په قبركې مخ په قبله څملول پكاردي. ستوني ستغ څملول اويوازې مخ قبلې طرف ته كول يې كافي نه دي، دامسئله يوازې داهل حديث نه ده. دفقه حنفي همدغه مسئله ده، خومړى پسې شاته كاڼو لګولوپه ځاى دې دخاورې پشتي سره سهاره وركړل شي، چې دمړي مخ قبلې طرف ته شي.[1]

## دوفات شوې زنانه مخ غيرمحرمه سړيوته ښودل جائز نه دي

**سوال:** داخبره تركومې پورې صحيح ده چې كه دوفات شوې زنانه مخ دهغې كور والو چا غيرمحرمه سړي ته اوښود؛ نوددې ګناه به هم په وفات شوې زنانه ته ملاويږي.؟

**جواب:** غيرمحرمه سړيو ته د مړې شوې زنانه مخ ښودل جائزنه دي[2] اوګناه به دمخ ښودونكو كيږي اوكه وفات شوې زنانه په ژوندكې په دې باندې راضي وه؛ نوهغه به هم ګناه ګاره وي، ګڼي نه[3]، ښځوته وصيت كول پكاردي چې دهغوى دوفات نه وروسته دې دهغوى مخ نامحرمو ته ونه ښودل شي.[4]

---

۱ ] قوله ووجه الى القبلة بذلک امررسول الله صلى الله عليه وسلم ويكون على شقه الايمن ......الخ (البحرالرائق ج:۲ص:۲۰۸كتاب الجنائز)، وايضًاويوضع فى القبرعلى جنبه الايمن مستقبل القبلة ......الخ (هندية ج:۱ص:۱٦٦)ـ

۲ ]وقدرويت انها (اى فاطمة الزهراء بنت رسول الله صلى الله عليه وسلم) اغتسلت لما حضرها الموت وتكفنت وامرت عليًا ان لايكشفها اذا توفيت ......الخ (اسدالغابة فى معرفة الصحابة رقم ۷۱۷۵،مناقب فاطمة بنت رسول الله صلى الله عليه وسلم)ـ

۳ ]والحاصل ان الميت اذا كان له تسبب فى هذه المعصية فالعذاب على حقيقة ويعذب بفعل نفسه حيث تسبب فى ذلک لابفعل غيره ......الخ (حاشيه الطحطاوى على المراقى الفلاح ،باب احكام الجنائز،ص: ۳۰۹طبع ميرمحمدكتب خانه)ـ

٤] ايضا تيره شوى حاشيه(وقدرويت انها (اى فاطمة الزهراء بنت رسول الله صلى الله عليه وسلم) اغتسلت..الخ)

## د قبر د ننه د مړي مخ ښودل ښه نه دي

**سوال:** نن سبا اکثر داسې لیدل شوي دي چې کله مړی په قبر کې کیښودل شي؛ نو قبر ته د ننه یو کس لاړ شي او د مړي د مخ نه کفن لرې کړي، د قبر چارچاپېره ولاړ خلک د مړي آخري دیدار کوي، او د دې نه پس د مړي مخ پټ کړل شي، ایا قبر ته د ننه کولو نه پس یا په قبرستان کې د مړي مخ خلکو ته ښودل جائز دي؟ى

**جواب:** په قبر کې د کیښودو نه وروسته د مړي مخ ښودنه ښه نه ده، کله ناکله په مخ باندې د برزخ اثرات ښکاره کیږي په داسې صورت کې د مرحوم په باره کې خلکو ته د بدګماني موقع ملاوشي[۱]

## په قبر کې مړی په کوم اړخ کیښودل پکار دي؟

**سوال:** ما یو ځای لوستلي و چې مړی کله په قبر کې کیښودل کیږي؛ نو له ښي اړخ څخه، د دې وضاحت باندې پوهیدل غواړم چې مړی په ښي اړخ باندې کولو سره کیږي او که یوازې د ده مخ به قبلې طرف ته کیږي او مړی به نیغ څملولی شي؟ که مړی په ښي اړخ باندې کول وي ؛نو هغه تینګیږي څنګه؟

**جواب:** په اړخ باندې سملول پکار دي لږه شان تکیه به د ملا طرف ته ورکړل شي، نیغ څملول او یوازې مخ قبلې طرف ته کول د سنت خلاف دي[۲]

## لحد ته د مړي له کوزولو وروسته د خاورې اچولو طریقه

**سوال:** مسئله داده چې کله مړی دفن کیږي؛ نو چې څنګه په عام طور سره کیږي چې مړی په لحد کې د څملولو او لحد د پټولو نه پس په جنازې کې راغلي ټول خلق درې درې موټې خاوره اچوي او د دې نه وروسته پرې خاوره اچول کیږي، مهرباني وکړئ او تاسو موږ ته د خاورې د اچولو د اهمیت په باره کې وفرمایئ!

**جواب:** د خاورې درې موټې اچول مستحب دي ، د لومړي موټې اچولو سره ذې،، منها خلقنکم،، اووائې، دویم موټې سره دې، ،وفیها نعیدکم،،او دریم موټې سره ، ،ومنها نخرجکم

---

۱] وینبغی للغاسل ولمن حضر اذا رای مایجب المیت ستره ان یستره ولایحدث به لانه غیبة ،وکذا اذا کان عیبًا حادثًا بعد الموت کسواد وجه ونحوه مالم یکن مشهورًا ببدعة فلاباس بذکره تحذیرًا من بدعته (ردالمحتار باب صلاة الجنازة ج:۲ص:۲۰۲ طبع ایچ ایم سعید، حلبی کبیر ص:۵۸۰ طبع سهیل اکیدمی)۔

۲] ویوضع فی القبر علی جنبه الایمن مستقبل القبلة (عالمگیری ج:۱ص:۱۶۶:کتاب الصلاة آلباب الحادی و العشرون فی الجنائز)ویوضع علی شقه الایمن متوجها الی القبلة(بدائع الصنائع ج:۱ص:۳۱۹(فصل) واماسنة الدفن)

تارة أخرى، ولولي، كه دا عمل ونه كړل شي؛ نوهم څه ګناه نه شته.[1]

## بنديدو ته د نژدې شوي قبر خلاصول

**سوال:** يو مړى د جنازې د لمونځ نه وروسته دفن كيږي، اوس يوازې تختې كينښودل شوې دي او خاوره اچولو والا چې د مړي يو رشتدار وروسته راغې اصرار يې كاو چې ما ته د مړي مخ وښايئ، ده ته تختې لرې كيږي او مخ ورته ښودل كيږي آيا دا عمل درست دى؟

**جواب:** قبر د بنديدو نه وروسته خلاصول بدكار دى، خداى دې نه كړي كه چيرې نامناسبه حالت ووينې؛ نو خلک به واپس وتښتي.[2]

## په قبر باندې اذان كول بدعت دي

**سوال:** قبركې د مړي د دفن كولو نه پس اذان كول جائز دي او كه ناجائز؟ چونكې په ريډيو چې كوم سوال او جواب كيږي په هغه كې يو مولوى صاحب ويلي دي چې جائز دى.

**جواب:** علامه شامي په باب الاذان او كتاب الجنائز كې نقل كړي دي چې په قبر اذان كول بدعت دى.[3]

## په قبر اذان بدعت دى او لږ ساعت په قبر ايساريدل سنت دي

**سوال:** آيا د مړي د دفن كولو وروسته په قبرباندې اذان كول جائز دي؟ او د اذان نه وروسته په قبرباندې ايساريدل او د مړي له پاره استغفار لوستل جائز دي؟

**جواب:** په قبرباندې اذان كول بدعت او د سلف صالحينو نه ثابت نه دى[4] البته د دفن كولو نه وروسته لږ ساعت پورې په قبر ايساريدل او د مړي له پاره دعا او استغفار كول د سنت نه ثابت

---

١ ] وفى الهندية :ويستحب لمن شهد دفن الميت ان يحثو فى قبره ثلاث حثيات من التراب بيديه جميعًا ويكون من قبل راس الميت ويقول فى الحثية الاولى: منها خلقناكم ،وفى الثانية وفيها نعيدكم ،وفى الثالثة :ومنها نخرجكم تارة آخرى،كذا فى الجوهرة النيرة(الهندية ج:ص:١٦٦كتاب الصلاة وايضًافى الشامية ج:٢ص:٢٣٧كتاب الجنائز)

٢ ] ولاينبغى اخراج الميت من القبربعدمادفن (عالمگيرى ج:١ص:١٦٧) ايضاً: وينبغى للغاسل ولمن حضراذا راى مايحب الميت ستره ان يستره ولايحدث به لانه غيبة ،وكذا اذاكان عيبًا حادثًا بعدالموت كسواد وجه ونحوه مالم يكن مشهورًا ببدعة فلاباس بذكره تحذيرًا من بدعته (ردالمحتار باب صلاة الجنازة ج:٢ص:٢٠٢طبع ايچ ايم سعيد،حلبى كبير ص:٥٨٠طبع سهيل اكيدمى)_

٣ ] لايسن الاذان عند ادخال الميت فى قبره كماهو المعتاد الآن وقدصرح ابن حجرفى فتاويه بانه بدعة ......الخ (شامى ،مطلب فى دفن الميت ج:٢ص:٢٣٥وايضًا فتاوى شامى مطلب فى المواضع التى يندب لها الاذان ......الخ ( ج:١ص:٣٨٥طبع ايچ ايم سعيد)_

٤ ] تيره شوى حواله)_

دي.[1]

## کله کله ځمکه ډېر ګناهګار مړی نه قبلوي

**سوال:** داخبره د بول (لانډهي) په خلکوکې عامه شوې ده چې د ګیدړ کالونۍ په قبرستان کې یو مړی دفن کړل شو، کله چې د هغه د دفن کولو نه وروسته خلکو یو څو قدمه راواخیستل نو هغه مړی به د ځمکې نه راوتلی واو دوباره به په ځمکه باندې پروت و، کافی ځله د هغه جنازه وشوه او دفن شو، مګر هرځل کوم خلکو به مړی دفن کولو ناکامه شول، په آخره کې مولوی صاحب وویل چې دی دې په ځمکه باندې واچول شي او خاوره دې پرې واچول شي او په همدې باندې عمل وشو، تاسو نه دا پوښتنه کول غواړم چې آخر داسې ولې کیږي؟ څه خلک وايي چې ډېر ګناهګار و.

**جواب:** غالباً په څه ښکاره ګناه کې په مبتلاو، د حضور ﷺ په زمانه کې هم د دې شان ګڼ واقعات پیښ شوي وو، چې یو مړی څوځله دفن کړل شو، مګر ځمکې به واپس راوښکلو (نعوذبالله من ذالک) په دې باندې حضور ﷺ فرمایلي وچې: ځمکه خو د دې هم زيات ګناه ګار خلک قبلوي، مګر الله تعالی تاسو ته عبرت درکول غواړي.[2] ، د دې واقعاتو تفصيل ماهنامه "بینات"، بابت ربیع الثاني (۱۴۱۰) کې له حوالې سره درج کړل شوی دی.

## مړی په ځمکه کنیستلو سره دفن کول فرض دي

**سوال:** زموږ په محله کې یو صاحب وفات شو، د هغه مړی د سوسایټې په قبرستان کې دفن شو، بلکې خښول به دلته صحیح نه وي، ځکه چې قبر د ځمکه کنیستلو سره نه وجوړ شوی، بلکې د ځمکې دپاسه چاردیواري جوړه شوې وه چې په هغې کې هغه مړې کیښودل شواو دپاسه پرې د سیمټو تختې څلور واړه طرفو ته کیښودلې شوې او په خاورې سره لیووکړې شو، ظاهره ده چې کله باران وشي نو خاوره به ترې وبهيږي او دا وواتوکالوماشوم د غه تختې په آسانۍ سره لرې کولی شوي، دا قسم ډېر قبرونه د مسجد رحمانیه په ګوټ کې دي، تاسو راته ووایئ چې آیا مړی داسې دفن کیدای شي او نه؟ هرکله چې په قرآن پاک کې په ځمکه کې دننه د خښولو راغلي دي.

---

۱ ] قوله وجلوس ساعة بعددفنه......الخ (لمافی سنن ابی داود کان النبی صلی الله علیه وسلم اذافرغ من دفن المیت وقف علی قبره وقال استغفروا لاخیکم واسالوا الله له التثبیت فانه الان یسئل (فتاوی شامی ج:۲ص:۲۳۷)۔

۲ ] عن عمران بن حصین رضی الله عنه قال:بعثنارسول الله صلی الله علیه وسلم فی سریة فحمل رجل من المسلمین علی رجل من المشرکین فذکر الحدیث وزاد فیه :فنبذته الارض فاخبرالنبی صلی الله علیه وسلم وقال:ان الارض لتقبل من هو اشرمنه ولکن الله احب ان یریکم تعظیم حرمة لا اله الا الله (سنن ابن ماجه ،ابواب الفتن ص:۲۸۱طبع نورمحمد) دزیات تفصیل دپاره اوګورئ :دلائل النبوة للبیهقی ،باب ماظهر علی من ارتد عن الاسلام ج:۷ص:۱۲۶نه تر۱۲۸پورې)۔

**جواب:** علامه شامي رحمه الله د درمختار په حاشیه کې لیکي: ،،په دې باندې اجماع ده چې که د مړي دفن کول ممکن وي؛ نو دفن کول یې فرض دي، د دې مطلب دا دی چې که مړی په ځمکه باندې کېښودل شي او پرې د پاسه د قبر شکل جوړ کړل شي؛ نو کافي نه ده او فرض به ادا نه شي.(ردالمحتار ج:۲ ص:۲۳۲)[۱]

## مړی دریاب ته ویشتل

**سوال:** په جاپان کې مړي د دفن کولو په ځای سوځول کېږي، د جاپاني مسلمانانو د دفن کولو له پاره د قبرستان د حاصلیدو رقم موجود وي، عموماً د مرګ نه پس د چندې د جمع کولو ضرورت نه راځي، مړی وطن ته په لیږلو باندې هم د ډیر رقم ضرورت وي چې ډیر خلک هغه نه شي برداشت کولې په دې ملک کې دفن کول قانوناً منع دي،او په یو څو ځایونو کې هلته اجازت دی، هلته هم خلک مخالفت کوي آیا په داسې صورت کې په قبرستان کې دفن کول واجب دي او یا فرض دي ؟ په دې ملک کې (۹۹) فیصده د مړیو سوځولو رواج دی، د دې له پاره خاص ځایونه دي، مسلمان مړي نه شي سوځولی؛ نو آیا مړي دریاب ته ویشتلی شي او که نه؟

**جواب:** مسلمان مړی سوځولی خو نه شي، البته د ده د تجهیز او د تکفین نه پس که د دفن کولو ځای ملاو نه شي، نو دریاب ته ویشتل یې صحیح دي.[۲]

## په خپل ژوند کې قبر جوړول مباح دي

**سوال:** جنګ کې تاسو فتوی ورکړې ده چې په ژوند کې انسان د ځان له پاره قبر تیارولی شي. حالانکې دا د ((وما تدري نفس بأي ارض تموت)) خلاف ده او فتاوی دارالعلوم دیوبند کې مکروه لیکل شوې ده او په تفسیر مدارک کې هم د نظرنه مې تیر شوي دي لهذا سره د حوالې څه وضاحت وکړئ!

**جواب:** فتاوی دارالعلوم دیوبند کې خو دا لیکل شوي دي: ،، مخکې په کفن او قبر تیارولو کې څه حرج او ګناه نشته،،(ج:۵ ص:۴۰۶)
او په کفایت المفتي کې لیکل شوي دي: ،،په خپل ژوند کې قبر تیارول مباح دي ،،(ج:۴ ص:۳۸)
علامه شامي رحمه الله د تاتارخانیه په حوالې سره نقل کړي دي چې د خپل ځان له پاره په قبر

---

۱ ] شروع فی مسائل الدفن —وهو فرض کفایة ان امکن اجماعًا......ومفاده انه لایجزی دفنه علی وجه الارض ببناء علیه ......الخ (ردالمحتار: ۲ص:۲۳۳باب صلاة الجنازة)۔

۲ ] مات فی سفینة غسل وکفن وصلی علیه والقی فی البحر ان لم یکن قریبًا من البر ،وفی الشرح :قوله والقی فی البحر ،قال فی الفتح وعن احمد یثقل لیرسب وعن الشافعیة کذالک ان کان قریبًا من دارالحرب والا شدبین لوحین لیقذفه البحر فیدفن (الدرالمختارمع الرد ج:۲ص:۲۳۵باب صلاة الجنائزدفن المیت)

تیارولو کې هیڅ مضائقه نشته اوپه دې باندې به اجرملاویږي، حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله، ربیع بن خیثم رحمه الله او نورو حضراتوهم دغه شان کړي وو.[1] (شامی ج:۲ ص:۲۴۴ مطبوعه مصرجدید)

په فتاوٰی عالمګیري کې داهم دتاتارخانیه نه نقل شوي دي. (ج:۱ص:۱۶۶)[2]

ترکومې پورې چې ددې آیت شریف تعلق دی په دې کې دقطعي علم نفی نه ده شوې،په زرګونوکارونه دي چې دهغې په باره کې موږ ته قطعي علم نه وی چې ددې آخري انجام به څه وي؟ ددې باوجودهم دظاهری حالاتومطابق موږ دغه کارونه کوو،هم دغه صورت دلته هم ګڼل پکاردي.

## قبر پوخ پکاردی یا کچه؟

**سوال:** خلک په شوق کې عموماً قبرونه په سمیټوښائسته جوړوي، ځینې خلک وایي چې پوخ قبرمنع دی، تاسوراته ووایئ چې ایاپوخ اوښائسته قبرجوړول جائزنه دي؟

**جواب:** په حدیث کې دپوخ قبردجوړولوممانعت راغلی دی،دحضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دی چې: حضور صلی الله علیه وسلم دقبرونو د پخولو نه،په دې باندې دلیکلونه اوددې دپاسه تیریدونه منع وفرمایله.(ترمذی مشکوٰة ص:۱۴۸)[3]

حضرت علي رضی الله عنه فرمایي چې:حضور صلی الله علیه وسلم زه په دې مهم(کار) ولیږلم چې کوم بت ووینم هغه مات کړم اوکوم اوچت قبرچې اووینم هغه هوار کړم.(صحیح مسلم مشکوٰة)[4]

قاسم بن محمد(دام المومنین حضرت عائشه رضی الله عنها وراره دی) فرمایي چې:زه دحضرت عائشه رضی الله عنها په خدمت کې حاضرشوم،او هغوی ته مې درخواست وکړچې:مورجانې! ماته د حضور صلی الله علیه وسلم د ستاسودداړو رفیقانو رضی الله عنهما دقبرونو مبارکو دیدار راکړه،هغوی زما په درخواست باندې درې قبرونه وښودل چې اوچت نه و.اونه بالکل دځمکې برابروو.(چې دقبرنشان نه وي)اوپه هغو باندې د بطحا سره واړه واړه کاڼي پراته وو.(ابوداود،مشکوٰة ص:۱۴۹)[5]

---

۱ ] وفي التتارخانية :لاباس به ويوجر عليه كذا عمل عمربن عبدالعزيز والربيع بن خيثم وغيرهما (ردالمحتارعلى الدرالمختارج:۲ص:۲۴۴باب صلاة الجنازة ،مطلب في اهداء ثواب القرأة للنبي صلى الله عليه وسلم)۔

۲ ] من حفرقبراً لنفسه فلاباس به ويوجرعليه كذافي التتارخانية (هندية ج:۱ص:۱۶۶كتاب الصلاة)۔

۳ ] وعن جابر رضى الله عنه قال: نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم ان يجصص القبر وان يبنى عليه وان يقعد عليه –(مشكوة باب دفن الميت ص:۱۴۸طبع قديمى كتب خانه)۔

۴ ] عن ابي الهياج الاسدى قال:قال لي علي: الا ابعثك على ما بعثني عليه رسول الله صلى الله عليه وسلم ان لا تدع تمثالاً الا طمسته ولا قبرًا مشرفًاالا سويته، رواه مسلم (مشكوة ص:۱۴۸باب دفن الميت)۔

۵ ] وعن القاسم بن محمد قال:دخلت على عائشة فقلت :يا اماه ! اكشفي لي عن قبرالنبي صلى الله عليه وسلم وصاحبيه فكشفت لي عن ثلاثة قبور لا مشرفة ولا لاطئة ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

ددې حديث نه معلومیږي چې دحضور ﷺ اودحضرت ابوبکر رضي الله عنه اوحضرت عمر رضي الله عنه قبرونه هم په روضه اقدس کې پاخه نه دي.

دلته داهم يادساتل پکاردي چې دامت فقهاوو د ضرورت په وخت دکچه قبرونو د ليولو اجازه ورکړې ده[۱] اوکه ضرورت وي نو دنوم دتختې(شناختې) اجازه هم شته،چې هغې سره دقبرپته ولګيږي، مګرقبرونه پاخه جوړول،اوپه هغو باندې دالانونه جوړول،اوپه قبرونوباندې دقرآن کريم آيتونه يادمړي په تعريف کې دشعرونو ليکلو اجازه نشته، په اصل کې قبرونه دزينت شی نه دي،بلکې دعبرت شی دی،په شرح صدور کې حافظ سيوطي رحمه الله ليکلي دي چې نبي (صلى الله عليه وسلم) په قبرستان باندې تيريدو؛نوهغوی ته کشف وشو چې قبرستان والاوو ته عذاب ورکول کيږي، څه موده پس بياپه هغه قبرستان باندې تيريدو؛نومعلومه شوه چې عذاب لرې شوی دی، نبي (صلى الله عليه وسلم) دالله تعالى دعذاب دلرې کولوسبب معلوم کړ،نوارشادورته وشوچې اول ددوې قبرونه تازه وو،اوس زاړۀ شوي دي اوماته شرم راځي چې داسې خلکوته عذاب ورکړم دچادقبرونونښې چې وراني شوې وي.[۲]

## دکچه قبر وضاحت

**سوال:** تاسودیوسوال په جواب کې فرمايلي دي چې قبرکچه پکار دی،په ليدوکې راځي چې اکثرقبرونه دڅلورواړوطرفونونه پاخه وي، البته پورتنی مينځ يې کچه وي،مهرباني وکړئ اودکچه قبر وضاحت وکړئ،څکه چې په ظاهري اواندروني کيفيت باندې مشتمل وي ۲.ايادقبردننه ځمکه (فرش) اود څلورو واړوطرفونو ديوالونه کچه وي،ياپورتنی سطح دسميټوبلاکونوسره بنده کړل شي اوپورته پرې خاوره واچول شي؟ياڅه نورڅه؟

---

...بقيه د تير مخ]..مطبوحة ببطحاء العرصة الحمراء ،رواه ابوداود (مشكوة ص:۱۴۹)۔

۱ ]وقال فى الشرح :وقداعتاد اهل مصر وضع الاحجار حفظًا للقبور عن الاندراس والنبش ولاباس به، وفى الدر: ولا يجصص ولايطين ولايرفع عليه بناء وقيل لاباس به وهوالمختار،وفى النوازل لاباس بتطيينه وفى التجنيس والمزيد لاباس بتطيين القبور ( حاشيه الطحطاوى مع المراقى ص:۳۳۵،وايضًا فى ردالمحتار ج:۲ص:۲۳۷)، وفى الهندية :واذا آخربت القبورفلا باس بتطيينها .......الخ......وان احتيج الى الكتابة حتى لايذهب الاثرولايمتهن فلاباس به فاما الكتابة بغير عذر فلا حتى انه يكره كتابة شيء عليه من القرآن او الشعر اواطراء مدح ونحو ذلک ،حلية ملخصًا ......الخ (فتاوى شامى ص:۲۳۸)۔

۲ ] حدثنا عبدالصمد ابن معقل عن وهب بن منبه قال:مر ارمياء النبى صلى الله عليه وسلم بقبوريعذب اهلها فلماان كان بعدسنة مربهافاذا العذاب قدسكن عنها فقال:قدوس قدوس مررت بهذه القبور عام اول واهلها يعذبون ومررت فى هذه السنة وقدسكن العذاب عنهافاذا النداء من السماء :ياارمياء !تمزقت اكفانهم وتمعطت شعورهم ودرست قبورهم فنظرت اليهم فرحمتهم وهكذا افعل باهل القبورالدراسات والاكفان المتمزقات والشعورالمتمعطات (شرح الصدور ص:۳۱۳،۳۱۴طبع دارالكتب العلمية بيروت)۔

**جواب:** قبر د دننه نه او بهر نه کچه پکار دی، دا صورت چې قبر د څلورو واړو طرفونو نه پوخ کړل شي او په پورتنی سطح باندې څه لږ شان ننبه کچه پریښودل شي دا هم صحیح نه ده.[۱]

۲: د قبر چت هم کچه پکار دی، خو که ځمکه نرمه وي چې د سیمټو د بلاک نه بغیر چت ټینګیدی نه شي (څنګه چې په کراچۍ کې هم دغه شان صورت حال دی) نو د مجبوري له وجې دا صورت جائز دی.[۲]

## د قبر دیوالونه هم د مجبوري له وجې پاخه کیدای شي

**سوال:** د قبر احاطه پخول څنګه دي؟ او دا هم راته ووایئ چې په قبر باندې د نوم تخته (شناخته) لګولی شو یا نه؟

**جواب:** که قبر بغیر د دې نه نه ټینګیږي؛ نو دیوالونه پاخه کیدای شي[۳]. مګر قبر پوخ جوړول ګناه ده[۴]. د شناخت له پاره تختی (شناخته) لګول جائز دي، مګر شرط دا دی چې آیتونه او مقدس کلمات پرې و نه لیکل شي، چې د هغې بې حرمتي و نه شي.[۵]

---

۱ ] (قال) ویسنهم القبرولایربة لحدیث النخعی قال: حدثنی من رای قبررسول الله صلی الله علیه سلم وابی بکروعمررضی الله عنهمامسنمة علیها فلق من مدربیض ولان التربیع فی الابنیة للاحکام ویختارللقبور ماهو ابعد من احکام الابنیة وعلی قول الروافض السنة التربیع فی القبور ولا تجصص لماروی ان النبی صلی الله علیه وسلم نهی عن تجصیص القبوروتربیعها ولان التجصیص فی الابنیة اما للزینة اولا حکام البناء (المبسوط السرخسی ج:۲ص:۶۲باب غسل المیت)۔

۲ ] وصفة اللحدان یحضر القبربتمامه ثم یحفرفی جانب القبلة منه حفیرة فیوضع فیه المیت کذافی المحیط ویجعل ذالک کالبیت المسقف کذافی البحر الرائق فان کانت الارض رخوة فلاباس بالشق کذافی فتاوی قاضی خان وصفة الشق ان تحفرحفیرة کالنهروسط القبرویبنی جانباه باللبن اوغیره ویوضع المیت فیه ویسقف کذافی معراج الدرایة (هندیة ج:۱ ص:۱۶۶کتاب الصلاة الباب الحادی والعشرو ن فی الجنائز،وایضًا فی البحر الرائق ج:۲ص:۲۰۹باب الجنائز)۔

۳ ]فی مبسوط للسرخسی :وانما اختاروا الشق فی دیارنا لتعذر اللحد فان الارض فیها رخاوة فاذا الحد الها علیه فلهذا استعملوا الشق......لاباس باستعمال اللبن ویکره الاجر لانه انما استعمل فی الابنیة للزینة اولاحکام البناء والقبر موضع البلی فلایستعمل فیه الآجر وکان الشیخ الامام ابوبکر محمد بن الفضل رحمه الله تعالی یقول:لاباس به فی دیارنا لرخاوة الارض وکان یجوزاستعمال رفوف الخشب واتخاذ التابوت للمیت حتی قالوا لو اتخذوا تابوتًا من حدیدلم اربه باسًا فی هذه الدیار......الخ (المبسوط للسرخسی ج:۲ص:۶۲باب الجنائز)۔

٤ ]عن جابررضی الله عنه قال:نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم ان یجصص القبروان یبنی علیه وان یقعد علیه (مشکوة ص:۱٤۸باب دفن المیت طبع قدیمی)۔

۵ ] وان احتیج الی الکتابة حتی لایذهب الاثرولایمتهن فلاباس به فاما الکتابة بغیر عذرفلا اهـ، حتی انه یکره کتابة شیء علیه من القرآن او الشعر ......الخ ( شامی ج:۲ص:۲۳۸باب صلاة الجنازة)۔

# د قبر څو احکام

**سوال:** په اسلام کې قبر څنګه جوړيږي پوخ او که کچه؟ د قرآن او حديث په رڼا کې جواب راکړئ مهرباني به مووی.

**جواب:** اسلام چې د قبر په باره کې کوم تعليم ورکړی دی د هغه خلاصه داده:

(۱) قبر دې کشاده او ژور و کنستل شي (کم از کم د بنده د سينې پورې چې وي)[۱]

(۲) قبر دې زيات اوچت نه شي او نه دې بالکل د ځمکې سره برابر وي، بلکې تقريبا يوه لويشت دې د ځمکې نه اوچت وي.[۲]

(۳) قبر دې پوخ نه کړل شي، او نه دې پرې څه دالان جوړيږي، بلکې قبر کچه پکار دی. په خپله د حضور ﷺ په روضه مبارک کې د شيخينو رضي الله عنهما قبرونه مبارک هم کچه دي، البته پرې د خاورې ليوول جائز دي.[۳]

(۴) د قبر دې داسې تعظيم و نه شي چې د عبادت شک پرې و شي، مثلا: سجده کول، د هغه طرف ته لمونځ کول، د هغه چاپيره طواف کول، د هغه طرف ته ړلې دريدل او داسې نور...[۴] او نه دې د قبر بې حرمتي و شي مثلا: د هغه د پاسه تيريدل، هغه ته ډډه وهل، په هغه باندې متيازې پاخانه وغيره کول، په هغه باندې ګندګي ورغوځول او په هغې باندې تو کل وغيره.[۵]

# د وران قبر جوړول

**سوال:** زما د والد محترم وفات (۳۱) دسمبر (۱۹۹۲ء) کې شوی و، تقريباً دوه مياشتې

---

۱ ] ومقدار عمق القبرقدر نصف قامة وذكره فى الروضة وفى الذخيرة الى صدرالرجل او وسط القامة فان زادوافهو افضل وان عمقوا القبرمقدار قامة فهو احسن فعلم بهذا ان الاولى نصف القامة والا على القامة ومابينهما .....الخ (حلبى كبير ص:۵۹۶فصل فى الجنائز،وايضًا فى الشامية ج:۲ص:۲۳۴باب صلاة الجنازة)

۲ ] ورفع قبره من الارض نحوشبر......الخ (حلبى كبير ص:۵۹۵وايضًافى الشامية ج:۲ص:۲۳۷)۔

۳ ] قوله ولا يجصص لحديث جابرنهى رسول الله صلى الله عليه وسلم ان يجصص القبر وان يقعد عليه وان يبنى عليه ......وقال فى الفتاوى اليوم اعتاد والسفط ولاباس بالتطيين ......الخ (البحرالرائق ج:۲ص:۲۰۹وايضًا فى الشامى ج:۲ص:۲۳۷والبدائع الصنائع ج:۱ص:۳۲۰فصل واماسنة الدفن)۔

٤ ]سجده كردن بسوئى قبورانبياء واولياء وطواف كردن ودعا ازآن ها خواستن ونذربرائى آن ها قبول كردن حرام است ،بلكه چيزها ازان بكفرميرساندپيغمبرصلى الله عليه وسلم برآن ها لعنت گفته وازان منع فرمودند گفته كه قبرمرابت نه كنند (مالابدمنه ص:۸۸،ارشادالطالبين ص:۱۸وايضًا فتاوى عالمگيرى ج:۵ص:۳۵۱ كتاب الكراهية ،الباب السادس عشرفى زيارة القبور)۔

٥ ] وكره ابو حنيفة (رح) ان يوطا على قبر ويجلس عليه اوينام عليه اتقضى عليه حاجته من بول اوغائط لماروى عن النبى صلى الله عليه وسلم انه نهى عن الجلس على القبور ......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۳۲۰ (فصل) واما سنة الدفن ،وايضًا فى الشامى ج:۲ص:۲۴۵باب صلاة الجنازة ،وفى البحرالرائق ج:۲ص:۲۰۹)۔

وروسته (۲۷) فروري (۱۹۹۳ء) کې د باران په وجه قبر غرق شو، کله چې هلته لاړم نو ګورکن او یو کس وکتل چې د والد مرحوم لاش بلکل داسې پروت و لکه چې نن دفن شوی وي، داسې کول څه ظاهره وي؟ او دویمه خبره دا چې اوس د قبر سره څه وکړو؟

**جواب:** دمړي د بدن محفوظ کیدل (ان شاء الله) ښه علامه ده، د شهیدانو بدن محفوظ وي او د الله تعالي څه نور نیک بندګان هم د دوی سره ملحق دي،[1] وران شوی قبر دوباره جوړول پکار دي[2]

## د قبر د شناخت د پاره کانی لګول

**سوال:** زماددوست پلاروفات شوی دی،هغه وایي چې په قبرباندې داسې کانی چې پر ې لیکل شوی وي لګولی شواو که نه؟

**جواب:** دشناخت له پاره کانی لګول جائزدي،مګرپه هغه دې آیتونه وغیره نه لیکل کیږي. دشناخت له پاره دې پرې نوم ولیکل شي.[3]

## مړي باندې خاوره اچونکي خلک په قبرستان کې په کوموشیانو عمل وکړي؟

**سوال:** مړي سره خلک دخاورې اچولوله پاره ځي،مګردخلکواکثریت ځپلې پښوکړې وي اوپه قبرباندې خاوره اچوي اودفاتحې ختمیدو نه بغیرلاړشي اویوطرف ته کېني ایاددې خلکوداحرکت جائزدی اوکه نه؟ پوره په تفصیل سره راته جواب راکړئ چې خاوره اچونکوته په قبرستان کې په کومو خبرو باندې عمل کول پکاردي؟

---

[1] واخرج مالک عن عبدالرحمن بن صعصعة انه بلغه ان عمروبن الجموح ،وعبدالله بن عمرو الانصاريين كانا قدحفرا السيل قبرهما،وكان قبرهماممايلي السيل ،وكانا قبرواحد،وهما ممن استشهديوم احد فحفراليغيرا من مكانهما ،فوجدالم يتغيرا كانهما ماتا بالامس ،وكان احدهما قد جرح فوضع يده على جرحه فدفن وهو كذالک فامطيت يده عن جرحه ،ثم ارسلت فرجعت كما كانت وكان بين احد وبين يوم حفر عنهما ست واربعون سنة ۰اخرج البيهقي فى الدلائل من وجه آخر وزاد بعد قوله : فامطيت يده عن جرحه فانبعث الدم فردت الى مكانهما ،فرد الدم ...... واخرج الطبرانى عن ابن عمرو قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :المؤذن المحتسب كالشهيد المتشحط فى ذمه ،واذا مات لم يدوده فى قبره ......واخرج ابن منده عن جابربن عبدالله قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :اذا مات حامل القرآن اوحى الله الى الارض ان لاتاكل لحمه ،فتقول الارض : اى رب! كيف آكل لحمه وكلامک فى جوفه ؟ قال ابن منده : وفى الباب عن ابى هريرة وعبدالله بن مسعود ،واخرج المروزى عن قتاده قال:بلغنى ان الارض لاتسلط على جسدالذى لم يعمل خطيئةً (شرح الصدور ص:۳۱٦نه تر۳۱۸پورى، باب نتن الميت وبلاء جسده الانبياء ومن الحق بهم ،طبع بيروت)

[2] واذا خرجت القبور فلاباس بتطيينها كذافى التتارخانية وهو الاصح وعليه الفتوى (عالمگيرى ج:۱ص:۱٦٦)

[3] وان احتيج الى الكتابة حتى لا يذهب الاثر ولايمتهن فلابأس به فاما الكتابة بغيرعذرفلا ا ه۰حتى انه يكره كتابة شيء عليه من القرآن ......الخ (شامى ج:۲ص:۲۳۸باب صلاة الجنازة)_

**جواب:** په عالمګيري کې دي چې په قبرستان کې دڅپليوسره ګرځيدل جائزدي[۱] بياهم ادب دادی چې څپلۍ وباسي اوداهم ليکل شوي دي چې دمړي ددفن کيدونه وروسته دواپسي له پاره دچانه داجازې اخيستو ضرورت نشته[۲] کوم حضرات چې ددفن کولوپه وخت کې موجودوو ،هغوی دې دتدفين نه وروسته څه لږ ساعت له پاره هلته ايسار شي اودمړی له پاره دې دعاګانې اواستغفارکې مشغول وي.اود مړی له پاره دې دمنکرنکيرپه سوال اوجواب کې دثابت قدمۍ دعاوکړي.[۳]

## په قبربا ندې په غلطي سره د پښې کيښودو تلافي څنګه کيدی شي؟

**سوال:** يوځل مې په غلطي سره پهٔقبرباندې پښه کيښودې وه،نوددې تلافي څنګه ممکن ده؟ اوريدلې مې دي چې ددې سزاډيره زياته سخته وي.

**جواب:** استغفارکول اوخدای ته توبه کول پکاردي.[۴]

## په قبرونودپاسه تلوپه ځای د لرې نه فاتحه ولولئ

**سوال:** په قبرستانونوکې قبرونه اکثرنژدې نژدې وي اويو مخصوص قبرته درسيدلوله پاره په قبرونوباندې تګ ناګزيردی، نوپه داسې حالت کې څه وکړل شي؟

**جواب:** په قبرونوباندې دپاسه تګ جائزنه دی،که بچ بچاوسره هغه قبرپورې تګ کيدای شي نولاړشئ، ګنی دلرې نه فاتحه ولولئ اودقبرونودپاسه تګ نه پرهيز وکړئ.[۵]

## په قبرونو تګ او ډډه وهل جائز نه دي

---

۱ ]والمشى فى المقابربنعلين لايكره عندنا (عالمگيرى ج:۱ص:۱۶۷كتاب الصلاة ،الباب الحادى والعشرون فى الجنائز،الفصل السادس)، فى شرعة الاسلام من السنة ان لايتطأ القبورفى نعليه ويستحب ان يمشى على القبورحافيا ويدعو الله لهم (حاشية طحطاوى على المراقى، فصل فى زيارة القبورص:۳۴۰طبع ميرمحمد)۔

۲ ]وبعدالدفن يسعه الرجوع بغيراذنهم كذافى المحيط (عالمگيرى ج:۱ص:۱۶۵كتاب الصلاة)۔

۳ ] ويستحب اذا دفن الميت ان يجلسواساعة عند القبر بعدالفراغ بقدرماينحرجزور ويقسم لحمها يتلون القرآن ويدعون للميت كذافى الجوهرة النيرة (هندية ج:۱ص:۱۶۶وايضاًفى الشامية ج:۲ ص:۲۳۷)۔

۴ ] وعن عائشة رضى الله عنهاقالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :ان العبد اذا اعترف ثم تاب ،تاب الله عليه ، متفق عليه (مشكوة المصابيح ج:۱ص:۲۰۳باب الاستغفار و التوبة ،الفصل الاول)۔

۵ ] ويكره الجلوس على القبرووطوه ......وفى خزانة الفتاوى وعن ابى حنيفة (رح) لايوطا القبرالا لضرورة ويزارمن بعد......الخ (شامى ص:۲۴۵باب صلاة الجنازة)۔

**سوال:** ځینې خلک د تګ راتګ له پاره په قبرستانو کې خپلې لارې جوړې کړې او د دې دوجې نه کله کله د هغوی پښې د قبرونو د پاسه هم راشي او کله د قبر پټه هم نه لګیږي، ما خلکو ته وویل چې دا ښه خبره نه ده. چې تاسو د قبرونو د پاسه تیریږئ، او د قبرونو بې حرمتي کوئ، مګر په دې خلکو هیڅ اثر نه کیږي آیا په داسې طریقې سره په قبرستان کې د ښځو سړیو تګ راتګ جائز دی؟
**جواب:** په حدیث کې د قبرونو د پاسه تګ، په هغو د ناستې، او تکیه لګولو ممانعت راغلی دی. د دې وجې نه دا کارونه جائز نه دي.[1]

## په قبر د ځناورو نه د ساتلو له پاره پرده اچول

**سوال:** د چا چې د موټر ټکر (ایکسیډنټ) شوی دی، مونږ هغه د خپل پلار نیکه په کلي کې دفن کړی دی، خو هلته د ځنګل په وجه ځناور یا بیزو، میښې وغیره په قبرستان کې په قبر باندې کیني، یا د دوي د ګرځیدو په وجه قبر کیني یا قبر ته نقصان رسوي، مونږ غواړو چې په قبر باندې څادر (پرده) وغوړ وو، چې په دې سره به د قبر بې قدري نه کیږي، هسې د ده عمر خو (۱۳) کاله او (۷) میاشتې دې او ډیر نیک او ښه ماشوم و.
**جواب:** قبرونه خو د ختمولو د پاره دي چې کله سړی نه پاتې کیږي نو قبر کله پاتې کیدای شي؟ په قبر دې پرده نه غوړول کیږي.[2]

## مړی امانت ښخول جائز نه دي

**سوال:** زما ډیر وخت نه دا خواهش و، چې د یوې اهمې قومې مسئلې په باره کې تاسو ته رجوع وکړم، څنګه چې به تاسو ته هم معلومه وي چې زمونږ عظیم شوی رهبر او رهنما چوهدري (رحمت علي) مرحوم باني تحریک پاکستان چاچې مونږ ته د تقسیم برصغیر اصول وښودل، او د دې سلطنت خداداد ته یې د ،،پاکستان،، نامه ورکړه، بطور امانت د انګریزانو په وطن د کیمبرج په قبرستان کې دفن دی، د هغه یو معتقد عیسایي پروفیسر (مسټرویلبورن) هغه د خپلې عقیدې مطابق دفن کړی و، د هغه د وفات په (۳) فروري باندې دیرش کاله پوره شول، او ریدلي مودی چې (جمال الدین افغاني) هم خپل یو هم وطن څلویښت کاله پس په خپل

---

[1] وعن جابررضی الله عنه قال: نهی رسول الله صلى الله عليه وسلم ان يجصص القبروان يبنى عليه وان يقعد عليه. رواه مسلم. وايضاعن جابررضی الله عنه قال: نهی رسول الله صلى الله عليه وسلم ان يجصص القبوروان يكتب عليها وان توطا، رواه الترمذی -(مشكوة المصابيح ج:۱ص:۱۴۹، ۱۴۸باب دفن الميت الفصل الثانی)

[2] فی الاحكام عن الحجة :تكره الستورعلى القبور (شامی ج:۲ص:۲۳۸باب صلاة الجنائز)، ويكره عندالقبرما لم يعهد من السنة والمعهودمنهاليس الازيارته والدعاء عنده قائمًا كذافی البحرالرائق (عالمگيری ج:۱ص:۱۶۶) لاتجصصوا القبور ولاتبنواعليها......لان ذلک من باب الزينة ولاحاجة بالميت اليها ولانه تضييع المال بلافائدة فكان مكروهًا (بدائع الصنائع ج:۱ص:۳۲ (فصل)واما سنة الدفن)

پلرني وطن کې دفن کړی و، اوس ستاسو نه تپوس دادی چې که موجوده حکومت یاد چوهدري رحمت علی میموریل ټرسټ د چوهدري دلاش پاکستان ته دراوړلو بندوبست وکړي؛ نو دهغوی آخري رسومات د دین اسلام مطابق څنګه به اداکیږي؟ اونوردا چې مړی دڅومره وخت پورې امانت دفن کیدای شي؟

**جواب:** مړی دامانت په طور د دفن کولو هیڅ معنا نشته او د دفن کولو نه پس مړی واپس راویستل درست نه دي، عالمګیریه کې له تبیین څخه نقل شوي دي چې که غلطي سره د مړي مخ دقبلې په ځای په بل طرف ته کړل شو، یاهغه په کس طرف باندې څملول شو. یادهغه سردپښو طرف ته اوپښې دسرطرف شوې، نودخاورې اچولو نه پس دهغه دوباره راویستل جائزنه دي او که لا تراوسه پورې پرې خاوره اچول شوې نه وه او دیوازې دلحدخښتې لګول شوې وې؛ نوخښتې دې لرې کړل شي اودسنت مطابق دې بدل کړل شي.(ج:۱ ص:۱۶۷)[۱]

## مړی پلرنی هدیرې ته وړل شرعاً څنګه دي؟

**سوال:** یو سړی په کراچۍ یا حیدر آباد کې مړ شي، ددې په ځای چې مړي ته غسل ورکړي او کفن او جنازې نه فارغ شي او مړې د مسلمانانو قبرستان کې دفن کړل شي. ځینې خلک زمونږه مسلمانانو ورونو یو رسم قائم کړی دی چې مړی به خپل پلرني کلي یا ښار ته ضرور وړل کیږي، که رشتدار د ده د لرې لرې سفر ډیر خرچونه برداشت کولی شي اوکه نه؟ قرض وغیره راواخلي او مړی د هوایي جهاز یا د موټر په ذریعه وړي، ګني؛ نو د پوزې د کټ کیدو خطره محسوسوي، د قرآن او د حدیث په رڼا کې وضاحت وکړئ آیا دا ضروري ده چې که مړي وصیت کړی وي او که نه، د کراچۍ نه د پاکستان د نورو کونجونو نه پلرني کلي (ښار) په سونو یا زرګونو میله لرې وړل جائز دي؟ آیا مرحوم په هغه ځای کې چې په کوم ځای کې یې ساه ورکړې ده، د نورو مسلمانانو قبرستان کې چې هغه په هر ځای کې موجود وي، مړی د دومره مالي او جاني تکلیفونو نه وروسته هلته صرف په دې خیال دفن کول چې د مرحوم نور رشتداران او پلرنی قبرستان هلته دی، صحیح دي؟

**جواب:** شرعي حکم دادی چې څوک په کوم ښار کې وفات شي؛ نوهغه دې دغه ښار په قبرستان کې دفن شي، د هغه ځای نه بل ځای ته منتقل کول مکروه تحریمي دي،[۲] د کوم رواج چې

---

[۱] ولووضع الميت لغيرالقبلة اوعلى شقة الايسراوجعل راسه موضع رجليه واهيل عليه التراب لم ينبش ولوسوى عليه اللبن ولم يهل عليه التراب نزع اللبن وروعى السنة كذافى التبيين (هندية ج:۱ص:۱۶۷ كتاب الصلاة ،الباب الحادى والعشرون)، وفى الشامية :واما نقله (اى الميت) بعددفنه فلامطلقاقال فى الفتح :واتفقت كلمة المشايخ فى امراة دفن ابنها وهى غائبة فى غير بلدها فلم تصبر واردت نقله على انه لايسعها ذلك (فتاوى شامى ج:۲ص:۲۳۹)۔

[۲] قال فى البزازية :نقل الميت من بلدالى بلدقبل الدفن لايكره ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

تاسو ذکر کړی دی، هغه په یو څو وجو ناجائز دی او د پریښودلو لائق دی:
اول: مړی دده پلرني کلي یا ښار ته منتقل کول ضروري ګڼل ګویا د خپل طرف نه د نوي شریعت جوړول دي.
دویم: د یو ناجائز شي له پاره قرضه اخیستل او بې ځایه مصارف برداشت کول حرام کار دی.
دریم: او دې ناجائزه شي نه د پوزې او د عزت مسئله جوړول د حرامو له پاسه حرام دي.
څلورم: په دې منتقل کولو کې ځینې وخت ډیرې ډیرې ورځې لګیږي چې په هغه سره د لاش بې حرمتي کیږي او د مسلمانانو لاشونه داسې ذلیله او خوارول هم حرام دي.
ددې وجو په بنا باندې مړی د یو ښار نه بل ښار ته د منتقل کولو رواج ډیر غلط او د اصلاح لائق دی.

## د قبر په طرفونو کې د ګناهونو په وجه مړی بل ځای ته منتقل کول

**سوال:** د کوم قبر په طرفونو کې چې ګناهونه شروع شي؛ نو مړی بل ځای ته منتقل کولی شي، آیا دا ټیک دی؟

**جواب:** د مړي منتقل کول جائز نه دي، ګناهونه بندول پکار دي[1]

## د مړي بل ځای ته منتقل کولو له پاره تابوت استعمالول

**سوال:** ایامړی بل ځای ته منتقل کېدای شي؟ اوکه وړل کیدای شي نو دتابوت رواج سهي دی؟ اودتابوت جسماني اوساخت څنګه پکاردی؟ اکثرچې تابوت لیدوسره ماته دامشکل راپیښیږي چې کله زه د کراچۍ تابوتونه وینم چې دهغې اوچت والی په مشکله سره دوه (۲) فټه وي.

**جواب:** دلته دوه مسئلې جداجدا دي،یوه مسئله دمړي بل ځای ته وړل،ددې حکم دادی چې ځینې حضراتو دابالکل جائزګرځولی دی،او ځینې فرمايي چې کم ازکم د (۴۸) میله پورې وړل خوصحیح دي، ددې نه زیات مسافت باندې منتقل کول مکروه دي.[2]

---

...بقيه د تیر مخ]..وبعده يحرم . قال السرخسى :وقبله يكره ايضًاالا قدر ميلٍ اوميلين (شامى ج:٦ص:٤٢٨ فصل فى البيع) . قوله ولاباس بنقله قبل دفنه ،قيل مطلقًا وقيل الى مادون مدة السفر،وقيده محمدبقدرميل ا وميلين ،لان مقابرالبلد ربما بلغت هذه المسافة فيكره زاد،قال فى النهر عن عقد الفرائد:وهو الظاهر (شامى ج:٢ص:٢٣٩باب صلاة الجنازة)

[1] ولاينبغى اخراج الميت من القبربعدمادفن (عالمگيرى ج:١ص:١٦٧كتاب الصلاة الباب الحادى والعشرون فى الجنائز)،قال فى ردالمحتار:واما نقله بعد دفنه فلا مطلقًاقال فى الفتح واتفقت كلمة الشيخ فى امراة دفن ابنها وهى غآئبة فى غيربلدها فلم تصبر واردت نقله على انه لايسعها ذالک (شامى ج:٢ص:٢٣٩باب صلاة الجنازة)

[2] (قوله ولاباس بنقله قبل دفنه) قيل مطلقًا ،وقيل الى مادون مدة السفر.....فيكره فيمازاد......الخ (الفتاوى الشامية ج:٢ص:٢٣٩باب صلاة الجنازة)_

دامسئله خودخښولونه مخکې دمنتقل کولوده،خو یوځای کې ددفن کولونه پس د مړي بل ځای ته منتقل کول قطعي ناجائزدي.[۱]

پاتې شوه دتابوت مسئله،نوپه درمختار کې لیکل شوي دي چې که ځمکه نرمه وي: نوپه تابوت کې دفن کول جائزدي، ګني مکروه دي[۲]دتابوت اوچت والی دومره پکاردی چې بنده پکې کېناستی شي،نن سباچې کوم رواج دی چې مړي دلرې لرې ملکونو نه راوړل کیږي اوځو ځو ورځو پورې لاش خرابیږي،دارسم په ډېر وجوهاتوسره قبیح دی.[۳]

## وفات شوي ماشومان، د شفاعت ذریعه

**سوال:** زما د زوی درې میاشتې شوې دي چې وفات شوی دی، د هغې ورځې نه واخله تر ننه پورې ما ته آرام نشته،شپه او ورځ ما ته دماشوم یاد بې آرامي راکوي، تر ننه پورې راته سکون نشته، ماته دا ووایه چې زما دماشوم زوی زما له پاره د څه اجر او ثواب مستحق جوړیږي؟ ما ته زما کور والا د هیرولو د پاره ډېرې خبرې کوي،ځینې خلک وایي چې دا ماشوم د مورو پلار له پاره د جنت د لارو نشانه وي، حالانکې زما خیال دی چې هر څوک که هغه سړی وي یا ښځه د خپل خپل عمل جواب ورکونکي به وي، الله تعالی دې هیچاته هم د اولاد جدایي نه ورکوي، ما ته ووایئ چې ماته به صبر څنګه راځي او زه د دې د پاره څه وکړم؟ آیا دا خبره صحیح ده چې مرحوم ماشوم د والدینو له پاره د رحمت باعث وي؟

**جواب:** الله تعالی دې تاسوته ددغه ماشوم نعم البدل درکړی، د مسلمان مورپلار ماشوم بچی چې مړشي؛ نو دهغوی د شفاعت او بښنې ذریعه جوړیږي، په دې شرط چې د بې صبرۍ څه خبره د خولې نه ونه باسي، بلکې د صبر اوشکر نه کارواخلي، ان شاء الله ستاسو ماشوم به ستاسو له پاره د مغفرت ذریعه جوړیږي.[۴]

---

۱ ] قوله ولاباس بنقله قبل دفنه قبل مطلقًا وقیل الی مادون مدة السفروقیده محمدبقدرمیل اومیلین لان مقابرالبلاد ربمابلغت هذه المسافة فیکره فیمازاد ......وامانقله بعددفنه فلامطلقًا (شامی ج:۲ص:۲۳۹باب صلاة الجنازة ،دفن المیت وایضًافی الهندیة ج:۱ص:۱۶۷طبع رشیدیه)۔

۲ ]قوله ولاباس باتخاذ التابوت ......الخ،ای یرخص ذلک عندالحاجة والا کره......الخ (شامی ج:۲ ص:۲۳۴ ،وایضًافی الهندیة ج:۱ص:۱۶۶طبع رشیدیه)۔

۳ ] عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :اسرعوا بالجنازة فان تک صالحة فخیرتقدمونها الیه وان تک سوی ذلک فشرتضعونه عن رقابکم۔ متفق علیه (مشکوة المصابیح ج:۱ ص:۱۴۴باب المشی بالجنازة والصلاة علیهاوایضًافی البدائع ج:۱ص:۲۹۹،واما صلاة الجنازة طبع سعید)

۴ ] عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لنسوة من الانصار:لایموت لاحد لکن ثلاثة من الولد فتحتسبه الا دخلت الجنة فقالت امراة منهن :اواثنان یارسول الله ؟قال:اواثنان (مشکوة باب البکاء علی المیت ص:۱۵۰)۔وعن ابی موسیٰ الاشعری رضی الله عنه قال :قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :اذامات ولدالعبدقال الله تعالی لملائکة :قبضتم ولدعبدی؟....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

## آیا په مړي باندې ژړل هغه ته د تکلیف سبب جوړیږي؟

**سوال:** ویل کیږي چې د مرګ نه وروسته په مړي باندې ژړل د مړي د تکلیف سبب جوړیږي، زه دا پوښتنه کول غواړم چې تکلیف سره د مړي څه تعلق دی؟ اوهرکله چې روح د بدن نه ووت؛ نو روح چې لطیف شی دی د ژړا د تکلیف احساس ولې او څنګه ورته کیږی؟ ځکه چې ژړل یوقسم وزن دی، آیا دا وزن روح محسوسولی شي؟ یا ددې ژړا تکلیف د غوښې او څرمنې بې ساه بدن ته کیږي؟ حالانکې روح اوجسم یو صورت یعنې د لازم او ملزوم کیدو په صورت کې تکلیف محسوسوي، د مرګ نه وروسته نه، ځکه چې د مرګ نه پس روح او بدن د یو بل نه جدا کیږي؟

**جواب:** دمرګ نه وروسته د روح اوبدن داتعلق نه پاتې کیږي،خو یو خاص قسم بل تعلق د دواړو سره قایمیږي چې په هغه سره مړي ته د برزخ واقعات اودعذاب او د ثواب احساس کیږي[1] او د دې تعلق نوم برزخي ژوندون دی چې هغه د دنیا د ژوند نه مختلف دی، خلاصه دا ده چې په قبر کې مړی یوازې جماد نه دی، بلکې دیوخاص نوعیت ژوند لري په دې وخت کې هم ده ته ژوند حاضلیږي چې په وجه یې ده ته ثواب او عذاب اود خوند او درد احساس د برزخ د شان مطابق کیږي.

## د مړي غم تر څو ورځو پکار دی؟

**سوال:** د مړي وارثانو ته څو ورځې غم کول پکار دي؟

**جواب:** درې ورځې.[2]

## دمړي د خپلوانو دغم موده اود خوراک ورکولو رسم

**سوال:** ځینې خلک وایي چې دمړي کوروالو ته غم (ویر) کول پکاردي اوپه کورکې دې خوراک نه پخیږي، بلکې په برداري کې دې خوراک تقسیم کړل شي، ددې شرعي حکم څه دی؟

**جواب:** دمړي کونډې نه پرته باقي کوروالوته ددریوورځوپورې دغم کولواجازت دی اوپه کونډه باندې دعدت دختمیدوپورې غم کول واجب دي[3] دمړي والا په کورکې دروټۍ پخولو

---

...بقیه دتیرمخ]فیقولون :نعم الیقول :قبضتم ثمرة فواده؟فیقولون :نعم فیقول:ماذا قال عبدی؟فیقولون:حمدک واسترجع ،فیقول الله :ابنوا لعبدی بیتًا فی الجنة وسموه بیت الحمد،رواه احمد والترمذی (مشکوة ص:۱۵۱)

[1] واعلم ان اهل الحق اتفقوا علی ان الله تعالی یخلق فی المیت نوع حیوة فی القبرمایتالم او یتلذذ (شرح فقه اکبرص:۱۲۲طبع مجتبائی دهلی)

[2] ولاباس لاهل المصیبة ان یجلسوا فی البیت اوفی مسجد ثلاثة ایام والناس یاتونهم ویعزونهم (عالمگیری ج:۱ص:۱۶۷کتاب الصلاة الباب الحادی والعشرون فی الجنائزالفصل السادس)

[3] وفی روایة زینب بنت ابی سلمة رضی الله عنها ......سمعت ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

ممانعت نشته،مګرچونکې هغه خلق به دغم دوجې نه دروټې انتظام نه شي کولای، له دې وجې نه دمړي د کوروالـه نژدې عزيزانواوګاونډيانودطرف نه ددوووختوخوراک ورليږل مستحب دي،[۱]په برادري والوکې روټې تقسيمول محض ريا اود ښودنې رسم دی اوناجائزه دی.[۲]

## د مړي کوروالوته د يوې ورځې يوې شپې خوراک ورکول مستحب دي

**سوال:** په کوم کورکې چې مړی وشي،هغوی ته څوورځوپورې نور ګاونډيان خوراک ورکړي؟داواجب دي که مستحب؟

**جواب:** دمړي کوروالوته ديوې ورځې يوې شپې خوراک ورکول مستحب دي.[۳]

## د مړي په کورکې د نغري بلولو مما نعت

**سوال:** دامشهوره ده چې په کوم کورکې څوک مړشي، هلته تردرې ورځوپورې نغرى بليدل پکارنه دي،اواکثرداسې کيږي چې رشته دارو غيره درې ورځې ياکم وبيش هلته روټې وروړي،ددې په باره کې ستاسوڅه رايه ده؟په دې باندې که ديوصحابي واقعه ملاوشي؛ نوډيره به ښه وي.

**جواب:** په کوم کورکې چې مړی وشي، هلته د اخلي پخلی څه ممانعت نه شته،خوچونکې دمړي کوروالا به دغم له وجې دخوراک دپخولوڅه اهتمام نه کوي، ځکه خپلو خپلوانو او ګاونډيانو ته حکم دی چې هغوی کره دې ډوډۍ رسوي،اوپه هغوی دې دخوړلوکوشش کوي،دخپل تره زوی جعفر طيار رضي الله عنه دشهادت په موقعه باندې حضور صلى الله عليه وسلم خپل کوروالوته حکم کړی و اوداحکم بطور استحباب و،که دمړي کوروالا داخلي پخلي څه انتظام وکړي؛ نوهيڅ ګناه نه ده،اونه څه دشرم ياعيب خبره ده.[۴]

---

...بقيه د تير مخ]..رسو ل الله صلى الله عليه وسلم يقول:لايحل لامراة تومن بالله واليوم الاخران تحد على ميت فوق ثلاث ليال الا على زوج اربعة اشهروعشرا......الحديث(ترمذی شريف ج:۱ص:۱۴۳وايضًا فی الهندية ج:۱ص:۱۶۷کتاب الصلاة الباب الحادی والعشرون)۔

۱ ]قوله وباتخاذ الطعام لهم قال فی الفتح :ويستحب لجيران اهل الميت والاقرباء الاباعد تهيئة طعام لهم يشبعهم يومهم وليلتهم لقوله صلى الله عليه وسلم :اصنعوا لآل جعفرطعاما،فقدجاءهم مايشغلهم......الخ (شامی ج:۲ص:۲۴۰)۔

۲ ] ويكره اتخاذ الضيافة من الطعام من اهل الميت لانه شرع فی السرور لاف الشرور وهی بدعة مستقبحة ......الخ (ردالمحتار على الدرالمختار ج:۲ص:۲۴۰ مطلب فی كراهة الضيافة من اهل الميت)۔

۳ ] ايضاً قوله وباتخاذ الطعام لهم قال فی الفتح :ويستحب لجيران اهل الميت والاقرباء......الخ (شامی ج:۲ص:۲۴۰)۔

۴ ] قال فی الفتح :ويستحب لجيران اهل الميت والاقرباء الاباعد تهيئة طعام....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

## تعزيت د مړي په کورکې وکړئ او فاتحه ايصال ثواب په خپل کورکې

**سوال:** زموږ په کلي کې ځينې خلک د مړي کيدو په صورت کې هلته د فاتحې کولو په غرض نه ځي، چې هلته فاتحه کول بدعت دي، موږ د امام صاحب نه پوښتنه وکړه، نو هغه وفرمايل چې په کوم کورکې مړی وشي هلته يوازې درې ورځو پورې تعزيت له پاره تګ پکاردی، خو زموږ په ځای کې اکثر خلک پوره يوه هفته د فاتحې له پاره ناست وي، تاسو راته ووايئ چې دا بدعت دی يا د ثواب کار؟ چې دواړه فريقه په نيغه لار باندې راشي.

**جواب:** تعزيت سنت دی، مطلب يې د مړي کوروالو ته تسلي ورکول، د فاتحې لوستلو له پاره د مړي کورته د تلو ضرورت نشته، د تعزيت له پاره تلل پکاردي، فاتحه او ايصال ثواب په خپل کورکې هم کولی شئ، کوم کس چې يو ځل تعزيت وکړي د هغه په دويم ځل د تعزيت له پاره تلل سنت نه دي، تردريو ورځو پورې دافسوس حکم دی، دلرې ځايونو کسان د دې نه پس هم افسوس کولی شي د فاتحې په غرض کېناستل خلاف سنت دي.[1]

## کونډې ته په دريمه ورځ باندې نوې لوښه پسرول

**سوال:** زموږ طرف ته رواج دی چې کله څوک وفات شي؛ نو د هغه کونډې ته د هغه خپل خپلوان د دريمې په ورځ نوې لوښه پسروي، د غه شان د کونډې سره سپينې لوښې ډيرې زياتې راشي، که د نوې سپينې لوښې په ځای څه نغدې پيسې د مدد له پاره ورکړي؛ نو په دې کې څه نقصان خو نشته؟ او بيا د خاوند په وفات باندې څلورمياشتې لس ورځې غم کول او ښځې ته د ډول او سنګار نه ممانعت دی، د دې وجې په نوې لوښه پسرولو کې څه رازيږي دی؟ په دې کې د ذکر کړې شوې مسئلې خلاف ورزی خو نه کيږي؟ وضاحت راته وکړئ!

**جواب:** کونډې ته د دريمې په ورځ نوې لوښه پسرولو کوم رسم چې تاسو ليکلې دی دا غلط

---

...بقيه د تير مخ].. لهم يشبعهم يومهم وليلتهم لقوله صلى الله عليه وسلم: اصنعوا لآل جعفر طعاماً، فقد جاءهم مايشغلهم. الترمذى (ردالمحتارمع الدر المختارمطلب فى الثواب على المصيبة، ص:۲۴۰وايضاًفتح القدير،بآب صلوة الجنازة قبيل باب الشهيدج:۲ص:۱۴۲)_

[1] التعزية لصاحب المصيبة حسن كذافى الظهيرية وروى الحسن بن زياد اذا عزى اهل الميت مرة فلاينبغى ان يعزيه مرة اخرى كذافى المضرات ووقتها من حين يموت الى ثلاثة ايام ويكره بعدها الا ان يكون المعزى او المعزى اليه غائبًا فلا باس بها......الخ (هندية ج:۱ ص:۱۶۷طبع رشيديه ،وايضًا فى الشامى ج: ۲ ص: ۲۴۰، ۲۴۱مطلب فى كراهة الضيافة)_

اوشریعت خلاف دی[۱]، دکونډې عدت ځلور میاشتې او لس ورځې دی[۲]، اوپه دې دوران کې کونډې ته د نویو جامو اغوستلو اجازت نشته.[۳] معلومه نه ده چې ددې رسم جاري کولو مقصدبه څه وي؟ کیدای شي چې په نورو قومونو کې دارسم دمسلمانانو نه راغلی وي، مقصدترې دکونډې خدمت کول وي، په هرحال دارسم خلاف شرع دی، اوداپرېښودل پکاردي، دکونډې خدمت اومدد له پاره که نغده پیسه ورکړل شي نوپه دې کې هیڅ نقصان نشته، خو داهم رسم جوړول پکارنه دي.

## بزرګان په خانقاه یا مدرسه کې دفن کول د فقهاوو په نزد مکروه دي

**سوال:** بزرګان عام طورسره دعام قبرستان په ځای په خانقاه یامدرسه کې دفن کول(هرکله چې تاریخ صفاوایي چې په اسلافو دصدی یا نیمه صدی تیریدونه وروسته دبزرګانومقبرې دشرک اوبدعت اډې جوړې شوې دي) څنګه دي؟

**جواب:** بزرګان او مشائخ په جوماتونو او د مدرسو په احاطو کې دفن کولو ته فقهاء کرامو مکروه لیکلي دي.[۴]

---

۱ ]عن عائشة رضی الله عنهاقالت :قال النبی صلی الله علیه وسلم :من احدث فی امرناهذا مالیس منه فهو رد (الصحیح البخاری ،کتاب الصلح ج:۱ص:۳۷۰)۔

۲ ]وعدة المتوفی عنها زوجهااربعة اشهر وعشرًا ، سواء دخل بها اولم یدخل بها اذا کانت حرة لقول الله تعالی :والذین یتوفون منکم ویذرون ازواجًا یتربصن بانفسهن اربعة اشهروعشرًا (شرح مختصرالطحاوی ج:۵ص:۲۳۹کتاب الطلاق باب العدد والاستبراء) (ایضًا:وعدة الوفاة علی الحرة اربعة اشهروعشرًا......الخ (قاضی خان علی هامش الهندیة ج:۱ص:۵۵۰باب العدة)۔

۳ ]وتجتنب المعتدة کل زینة نحو الکحل والحناء والخضاب والدهن والتحلی والتطیب ولبس المطیب والمصبوع بالمعصفر والزعفران ......الخ (قاضی خان علی هامش الهندیة ج:۱ص:۵۵٤)۔

٤ ] ولا یدفن صغیر ولاکبیر فی البیت الذی مات فیه فان ذلک خاص بالانبیاء بل ینقل الی مقابرالمسلمین اه ومقتضاه انه لا یدفن فی مدفن خاص کما یفعله من یبنی المدرسة ونحوها ویبنی له بقربها مدفنافتامل (شامی کتاب الصلاة باب الجنائز،مطلب فی دفن المیت،ج:۲ص:۲۳۵طبع ایچ ایم سعید)۔

# ❖ مړي سره متعلق متفرق مسائل ❖

## په هر مسلمان په خپل ژوند کې اووه مړيو ته غسل ورکول فرض نه دي

**سوال:** عام طور سره دا مشهوره ده چې په هر مسلمان باندې په خپل ژوند کې اووه مړي لمبول فرض دي؟ د قرآن او حديث په رڼاکې د دې مسئلې وضاحت وفرمايئ چې دا خبره ترکومې پورې صحيح ده؟

**جواب:** مړي ته غسل ورکول فرض کفايي دي، که څه کسان دا کار وکړي، د ټولو د طرف نه به دا فرض اداشي، د هر مسلمان په ذمه فرض نه دي.[۱]

## د غير مسلم د مرګ خبر اوريدو سره (انا لله وانا اليه راجعون) ويل

**سوال:** کله چې موږ د يو مسلمان د مرګ خبر اورو؛ نو د اوريدو نه پس (انا لله وانا اليه راجعون) وايو خو که د بل مذهب يا د غير مسلم د مرګ خبر واورو؛ نو د دې په باره کې څه حکم دی؟

**جواب:** هغه وخت کې هم خپل مرګ را ياد کړئ او دا ايت دې ولوستل شي.

## د مرحوم قرض دې اداشي ګني د عذاب مستحق به وي

**سوال:** که د مرحوم په ذمه دا سې قرضې وي، چې د هغه وارثانو ته معلومې نه وي او قرض ورکونکي و نه وايي؛ نو په دې سلسله کې څه حکم دی؟

**جواب:** کوم کس چې قرض واخلي او مړشي د هغه معامله ډيره شديده ده، الله تعالی دې هر مسلمان بچ کړي، حضور ﷺ به د دا سې کس جنازه نه کوله، د چا په ذمه به چې قرض و، وروسته چې بيا کله فتوحات وشول؛ نو حضور ﷺ به د مړي قرضه په خپله ذمه اخيسته.[۲]

په يو حديث شريف کې دی چې د مومن روح د هغه د قرض سره اويزان وي، ترڅو پورې چې د هغه قرضه ادا نه کړل شي. (ترمذی، ابن ماجه)[۳]

---

۱] غسل الميت حق واجب على الاحياء بالسنة واجماع الامة كذافى النهاية ولكن اذا قام به البعض سقط عن الباقين كذا فى الكافى (هندية ج:۱ص:۱۵۸كتاب الصلاة ،الباب الحادى والعشرون فى الجنائز ،الفصل الثانى فى الغسل طبع رشيديه كوئته)_

۲] عن ابى هريرة رضى الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يوتى بالرجال المتوفى عليه الدين فيقول:هل ترک لدينه من قضاء ؟ فان حدث انه ترک وفاء صلى عليه والا قال للمسلمين صلوا على صاحبكم ،فلما فتح الله عليه الفتوح قام فقال:انا اولى بالمومنين من انفسهم ....الحديث (ترمذى شريف ج:۱ص:۲۰۵باب ماجاء فى المديون)

۳] عن ابى هريرة رضى الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم انه قال:....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

په یو حدیث کې دي چې حضور ﷺ د سهار لمونځه نه وروسته وفرمایل چې: ایا دلته د فلانی قبیلې خلک شته؟ کورئ ستاسو کس د جنت په دروازه باندې ایسار دی، د هغه قرض له وجې چې د هغه په ذمه دی، اوس که ستاسو زړه غواړی نو د هغهٔ فدیه (قرضه) اداکړئ او هغه خلاص کړئ او که زړهٔ مو غواړې نو هغه د الله تعالی عذاب ته حواله کړئ. (طبرانی، بیهقی)[۱]

یو صحابی فرمايي چې زموږ پلار وفات شو، درې سوه درهمه د هغوی ترکه وه، وروسته د هغه اهل عیال هم وو، او د هغه په ذمه قرض هم و، ما د هغه په اهل عیال باندې د خرچ کولو اراده وکړه؛ نو رسول الله ﷺ وفرمایل: ستا پلار په قرضه کې نیول شوی دی، د هغه قرضه اداکړه! (مسنداحمد)[۲]

د مسلمان بنده په ذمه خو اول قرض پکار نه دی، او که د مجبوري نه یې قرض واخیست؛ نو د خپل وس مطابق یې د زر نه زر اداکیدل پکار دي، خدای مکړه که په داسې حالت کې مرګ راغی نو دا خودغرضه وارثان به یې خدای ته پته ده چې اداهم کړي او که نه؟ که په ژوند باندې د قرض د ادا کیدو امکان نه وي؛ نو وصیت کول فرض دي، چې د هغه په ذمه د و مره د فلاني قرضه ده، هغه دې اداکړل شي[۳]، او که د وصیت نه بغیر مړ شو او کورو الو ته څه پته نشته، نو ګناهګار به هم وي او وبه هم نیول شي، اوس به نه د هغه قرضه اداکیږي او نه به خلاصیږي. (نعوذ بالله).

او که الله تعالی په خپل رحمت سره څه صورت پیدا کړي؛ نو د هغه کرم دی.

د دې تقریر خلاصه داده چې تاسو کوم صورت لیکلی دی؛ نو یو مسلمان ته پکار دي چې داسې صورت بیخي راپیښ نه شي او که بالفرض داسې صورتحال راپیښ شي؛ نو عام اعلان دې وکړل شي چې د دې مړی په ذمه که د چا قرض وي؛ نو زموږ نه دې وصول کړي، حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې: د حضور ﷺ په وفات باندې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه اعلان وکړ چې د کوم کس د حضور ﷺ په ذمه قرض وي یا حضور ﷺ د چا سره څه وعده کړې وه هغه دې زموږ خوا ته

---

...بقیه د تیر مخ]... نفس المومن معلقة بدينه حتى يقضى عنه (ترمذی، باب ماجاء ان نفس المومن معلقة بدينه ج:۱ص:۲۰۶طبع قدیمی کتب خانه)۔

۱ ] عن سمرة رضي الله عنه من هاهنا من رهط فلان ان صاحبكم قد احتبس عن الجنة بدين كان عليه فاما ان تفدوه من عذاب الله واما ان تسلموه (کنز العمال ج:۶ص:۲۳۵، حدیث نمبر:۱۵۵۰۴طبع موسسة الرسالة)

۲ ] عن سعد بن الاطول قال: مات اخى وترك ثلاث ماة ...ا وترك ولدًا صغارًا فاردت ان انفق عليهم فقال لى رسول الله صلى الله عليه وسلم: ان اخاك محبوس بدينه فاذهب فاقض عنه ......الخ (مسنداحمد ج:۴ص:۱۳۶طبع المكتب الاسلامى بيروت)۔

۳ ]والوصية اربعة اقسام، واجبة كالوصية بردالودائع والديون المجهولة ...... وفى المواهب تجب على مديون بما عليه لله تعالى اوللعباد (ردالمحتار ج:۶ص:۶۴۸ کتاب الوصايا، طبع ايچ ايم سعيد)۔

راشي[۱] مګر وارث دڅه ثبوت شرعي نه پرته دقرضې اداکولو پابند نه دی[۲] دامسئله هم یادساتل پکاردي چې دمړي قرضه به دهغه دټول مال نه اداکیږي، که څه هم دهغه د وارثانو له پاره یوپیسه هم پاتې نه شي.[۳]

## مرحوم که ترکه پرې نږدي؛ نووارث د هغه د قرض اداکولو ذمه وارنه دی

**سوال:** کله چې څوک وفات شي اوهغه څه مال پریږدي، هغه به دهغه رشته دار،عزیز ورور او داسې نور... دیوحدمطابق تقسیم کړي،داخو سمه خبره ده،ددې نه علاوه یوبل کس وفات شي په چا چې دخلکوبې حسابه قرض دی،هرکله چې دهغه زوی هم نشته،باقي خلک دي، مثلاً: ښځه، لوڼه، سکه وروڼه،میرني وروڼه او داسې نور....،هغه قرض چې په دنیاکې پریښودو او لاړلو،دهغه رشته داروته شرعاڅه حکم دی؟هرکله چې دمتعلقه کس په وراثت کې دڅلور ګزه جونپړې نه پرته هیڅ نشته،رشته داراووروڼه وغیره هم غریبان دي اودقرض داداکولوقابل نه دي؛ نوقرض به څنګه اداکیږي؟

**جواب:** کله چې مرحوم څه ترکه پرې نښودله؛ نودوارثانوپه ذمه دهغه قرض اداکول لازم نه دي.[۴]

## د مړي د مال اوقرض سره څه وکړل شي؟

**سوال:** زماد ورور واده په( ۱۹ )ستمبر( ۱۹۸۰ )کې وشو اودوه میاشتې وروسته (۲۸) نومبر باندې هغه وفات شو، زماورورد مرګ نه مخکې (۱۴)تولې ګاڼه(زیورات) چې جوړه کړې وه، دهغه څه پیسې باقي پاتې وې، زماورور ددوومیاشتو وعده کړې وه، خوهغه دپیسو ادا کولونه مخکې وفات شو، تاسوراته دقرآن اوسنت په رڼا کې جواب راکړئ، چې رقم به دهلک مور وپلاراداکوي یادهلک جوړ شویو زیوراتو نه به هغه رقم ادا کیږي؟

---

۱ ] لماقبض رسول الله صلى الله عليه وسلم قال ابوبكر لماجاءه مال من البحرين :من كا نت له على النبى عدة ياتينى ،قال فجاء جابربن عبدالله الانصارى فقال:ان النبى وعدنى اذا اتاه مال البحرين ان يعطينى هكذا هكذا هكذا،واشاربكفيه فقال ابوبكر:خذا! فاخذبكفيه فعده خمسمائة درهم فاعطاه اياه والفا،ثم جاء ناس كان وعدهم رسول الله صلى الله عليه وسلم فاخذكل انسان ماكان وعده ثم قسم مابقى من المال فاصاب كل انسان منهم عشرة دارهم (الطبقات الكبرى لابن سعدج:۲ص:۳۱۷طبع بيروت)_

۲ ]قوله ويقدم دين الصحة وهوماكان ثابتا بالبينة مطلقااوبالاقرارفى حال الصحة ......الخ(شامى ج:٦ص:۷٦۰)_

۳ ] يبداء من تركة الميت بتجهيزه ودفنه ثم قضا ديونه ثم تنفيذ وصاياه ،والباقى لوارثه (فتاوى بزازية على الهندية ،كتاب الفرائض ج:٦ص:٤٤۷) ،وايضًا يبدامن تركة الميت الخالية عن تعلق حق الغير بعينها كالرهن ....ثم تقدم ديونه التى لها مطالب من جهة العباد......الخ (درمختار ج:٦ص:۷٦۰كتاب الفرائض ،طبع سعيد)

٤ ] احكام ميت ص:۱٦۰او۱٦۳ ،تاليف :داكترعبدالحئ عارفى رحمه الله)_

**جواب:** که ستاد ورور مرحوم په ذمه قرض دی، کوم زیورات چې هغه جوړکړي و، هغه دې خرڅ شي او قرض اداکول ضروري دي[۱] دموروپلارپه ذمه نه دي، هغه زیورات چې له چاسره وي هغه به دقرض نه اداکولوپه صورت کې ګناهګار وي، دمړي په مال باندې ناجائزه قبضه کول سنګینه خبره ده.

## که دمرحوم قرض ورکول کیږي؛ نوشرعي وارثا نو ته دې اداکړي

**سوال:** مولاناصاحب! ماديودوست نه لس روپۍ قرض اخیستې وې او له هغه سره مې وعده کړې وه چې دوه ورځې وروسته به داپیسې واپس کړم، خوافسوس چې دپیسو واپس کولونه مخکې زما دوست ددې فاني دنیانه رخصت شو، دا راته ووایئ چې اوس زه څه وکړم؟ هغه لس روپۍ اوس زه چاته ورکړم؟

**جواب:** د مړي چې کوم قرض د خلکو په ذمه وي هغه دهغه په میراث کې شامل دی او د کومو خلکو په ذمه چې قرض وي په هغوی فرض دي چې د مړي شرعي وارثانوته قرض اداکړي اوکه دچا څوک وارث موجودنه وي یا معلوم نه وي؛ نو د مړي له طرفه دې هغومره روپۍ صدقه کړي.[۲]

## د مرحوم قرض که څوک معاف کړي؛ نوجائزدی

**سوال:** مرحوم ته یو د وکسانوپیسې ورکړې دي، دبهترین دوست کیدو له وجې هغوی هغه پیسې نه اخلي اوس څه وکړل شي؟

**جواب:** که هغوی یې معاف کړي؛ نوسهي ده.[۳]

## د مرحوم قضا لمونځونه او روژې څنګه اداکړل شي؟

**سوال:** زمامحترمه مورد معراج په شپه باندې وفات شوه، الله تعالی دې هغې ته په جنت الفردوس کې ځای ورکړي امین، اوس زه د هغې قضا لمونځونه اداکول غواړم، بلکې نن سبا ادا کوم، خود مختلفو خلکو مختلفوخبرو زه په شک کې اچولی یم، مثلاخلک وایي چې هرکس دخپل عمل په خپله ذمه واردی، لهذادمړشوي کس قضا لمونځونه نه شي کیدای، خو

---

۱] ثم تقدم دیونه التی لها مطالب من جهة العباد ویقدم دین الصحة علی دین المرض..الخ (درمختار ج:٦ص:٧٦٠)

۲ ] علیه دیون ومظالم جهل اربابها وایس من علیه ذالک من معرفتهم فعلیه التصدق بقدرها من ماله وان استغرقت جمیع ماله هذا مذهب اصحابنا......ومتی فعل ذالک سقط عنه المطالبة من اصحاب الدیون ـ وفی الشامیة :وان لم یجد المدیون ولا وارثه صاحب الدین ولا وارثه فتصدق المدیون او وارثه عن صاحب الدین برئ فی الاخرة (ردالمحتار علی الدرالمختار، کتاب اللقطة ج:٤ص:٢٨٣)۔

۳ ] الدین الصحیح وهوالدین الثابت بحیث لا یسقط الا بالاداء او الابراء کدین القرض ودین المهر ودین الاستهلاک وامثالها (کشاف اصطلاحات الفنون ج:١ص:٥٠٢طبع سهیل اکیدمی لاهور)۔

ځينې خلک وايي چې هرکله دمړي د ګناهونوبوج کمولو له پاره دقرآن کريم ختم لوستلوسره ورته وربښل کيداى شي دمړي دقرض بوج کمولوله پاره دهغه قرض خلاصيداى شي؛ نو اخر بيا قضالمونځونه ولې نه شي اداکيداى، تاسوزماددې د دوه سوالونو زر ترزره جواب راکړئ!

۱: ايازه دخپلې مورمحترمې قضالمونځونه اداکولی شم.

۲: دقضالمانځه داداکولوصحيح طريقه څه ده؟

**جواب:** فرض لمونځ اوروژه يوکس دبل له طرف نه نه شي اداکولی [۱] البته دلمونځ روژې فديه د مرحوم له طرف نه دهغه وارثان اداکولی شي، نوکه ته دخپلې مورله طرف نه قضاشوي لمونځونه اداکول غواړې؛ نو ددې طريقه داده چې که تاسره ګنجائش وي؛ نودهغو لمونځونه حساب وکړه او دهر لمانځه فديه دصدقه فطربرابر ورکړه،دوترو سره به دهرې ورځې شپږ فديې شي، [۲] هسې تاسو دنفلونو ايصال ثواب هم مورته وربښلی شئ! [۳]

## دنيا له وفات وروسته او دڅلويښتې نه مخکې د لمسي واده کول څنګه دي؟

**سوال:** زما د يو خپلوان دلور د واده نيته چې يوکال مخکې مقررشوې وه چې دواده دتاريخ نه لس ورځې وړاندې دهغه بوډۍ موروفات شوه، ددريمې اولسمې نه وروسته هغه دخپلې لوريه مقرر شوې ورځ باندې نکاح او رخصتي وکړه، چې دهغې له وجې دهغه خپلوان په هغه باندې بدوايي چې تاواده کولوسره دشريعت خلاف ورزي کړې ده، په دې ته ګناهګارشولې.

**جواب:** شرعا سوګ (غم) درې ورځې وي اوله دې نه وروسته سوګ کول شرعامنع دي (البته هغه ښځه دچاچې خاوندوفات شوی وي هغه به څلور مياشتې لس ورځې سوګ کوي) [۴] ستا رشته دار په مقرره تاريخ باندې د خپلې ماشوم نکاح وکړه، بالکل سهي يې وکړل، کوم

---

۱ ]ولايصح ان يصوم الولى ولاغيره عن الميت ولايصح ان يصلى احدعنه لقوله صلى الله عليه وسلم :لايصوم احد عن احدولايصلى احدعن احدولكن يطعم عنه......الخ (مراقى الفلاح على هامش الطحطاوى ،فصل فى اسقاط الصلاة والصوم ص:۲۳۸)،قوله فلانيابة فيهااصلاً لان المقصود من العبادة البدنية اتعاب البدن وقهر النفس الامارة بالسوء ولايحصل بفعل النائب ......الخ (شامى ج:۱ص:۳۵۵ مطلب فيمايصيرالكافربه مسلمان من الافعال)_

۲ ]اذامات وعليه فوائت فدفع الوارث عن الميت لكل صلاة نصف صاع من بر اوقيمته لكل مسكين اومسكين واحد عن كل الفوائت يجوز......الخ (فتاوى سراجيه ص:۱۷)_

۳ ] الاصل فى هذا الباب ان الانسان له ان يجعل ثواب عمله لغيره صلاة كان اوصومًا او صدقة ......الخ (هندية ج:۱ص:۲۵۷،وايضًا فى الشامى ج:۲ص:۵۹۵،مطلب فى اهداء ثواب الاعمال للغير)_

٤ ] ووقتها من حين يموت الى ثلاثة ايام ويكره بعدها ......الخ (هندية ج:۱ص:۱۶۷)،وايضًا فى رواية زينب بنت ابى سلمة رضى الله عنها......سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول:لايحل لامرأة تومن بالله واليوم الاخر ان تحد على ميت فوق ثلاث ليال الا على زوج اربعة اشهروعشرًا......الحديث (ترمذى ج:۱ص:۱٤۳باب ماجاء فى عدة المتوفى عنها زوجها)_

خلک چې هغه ته گناهګار وايي دا د هغوی ناداني او جهالت دی.

## شهید څوک دی؟

**سوال:** د تیر تحریک (نظام مصطفی ﷺ) په دوران کې چې کوم کسان د پولیسو له لاسه په ګولیو لګیدلي وو او له دې دنیا نه رخصت شوي وو هغوی ته شهیدان ویل کیږي. بل طرف که د پولسو او ډاکوانو ترمینځه مقابله وي او په هغوکې څوک ووژل شي او نور کوم چې قتل کوي په هغو کې قاتل هم مسلمان وي او مقتول هم، مهرباني وکړئ او دا راته ووایئ چې مسلمان ته کله شهید ویل کیږي؟ یوازې د غیرمسلم له لاسه قتل کیدونکي ته، یا د چا مسلمان له لاسه هم؟ امیدلرم چې تسلي بخش جواب به راکړئ!

**جواب:** د دنیاوي احکامو په لحاظ سره شهید هغه دی:

**الف:**......څوک چې کافرانو، یا باغیانو یا ډاکوانو قتل کړی وي.

**ب:**......یا هغه د مسلمانانو او کافرانو ترمینځه د جنګ په دوران کې مقتول و موندل شي.

**ج:**......یا چا مسلمان په ظلم او قصد قتل کړی وي.

دا اصول په جزیاتو باندې په خپله منطبق کړئ.[1]

## ایا د مرګ د سزا مجرم شهید دی؟

**سوال:** ایا یو کس د چا په باره کې چې عدالت د پانسي یا د مرګ د سزا فیصله ورکړي، د پانسي کیدو نه وروسته به ور ته شهید ویل کیږي؟

**جواب:** .....داسې مجرم ته شهید نه ویل کیږي.[2]

## په اوبو کې ډوبیدونکی او د دین د علم د حاصلولو په دوران کې مړکیدونکی به معنوي شهید وي

**سوال:** ایا په اوبو کې ډوبیدونکی شهید دی؟

**جواب:** هو! خو په ده به د دنیاوي شهید احکام نه جاري کیږي، معنوي شهید دی.[3]

---

۱ ] وهوفى الشرع من قتله اهل الحرب والبغى وقطاع الطرق او وجد فى معركة وبه جرح ......اوقتله مسلم ظلمًا......الخ ( هندية ج:۱ص:۱۶۷،۱۶۸کتاب الصلاة ،الفصل السابع ،وايضًافى الدرمع الردج:۲ ص:۲۴۸،۲۴۹)_

۲ ] قتل ظلمًا بغيرحق، ......الخ،وفى الشرح :ويقوله ظلمًا لما ياتى من انه لوقتل بحداوقصاص مثلاً لايكون شهيدًا (الدرالمختارمع ردالمحتارج:۲ص:۲۴۸)،ايضًا:وكل من صار مقتولاً بمعنى غيرمضاف الى العدو لايكون شهيدًاكذافى المحيط (هندية ج:۱ص:۱۶۹،كتاب الصلاة ،الباب الحادى والعشرون فى الجنائز،الفصل السابع فى الشهيد)_

۳ ] لو.....حرق اوغرق او هدم لم يكن شهيدًا فى حكم الدنياوان كان شهيد الاخرة.....الخ (شامى ج:۲ ص:۲۴۸باب الشهيد،وايضًافى البدائع الصنائع ج:۱ ص:۳۲۰)_

**سوال:** ....ایاحصول علم، چې په کې په کالج کې ورکړل کیدونکي (این سي سي) فوجي ټریننګ هم شامل دی له پاره تلونکی که دحصول علم په دروان کې وفات شي؛ نو ایاهغه شهید دی؟

**جواب:** دیني علم یاددیني علم دحاصلولوپه دوران کې وفات کیدونکی معنوي شهید دی.[1]

## ایا په محرم کې وفات کیدونکي ته به شهید ویل کیږي؟

**سوال:** اکثر مو اوریدلي دي چې دمحرم الحرام په میاشت کې دوفات کیدونکي درجه د شهید د درجې برابر وي په ځانګړي ډول دمحرم په نهم اولسم تاریخ باندې دوفات کیدونکي، ایا داخبره صحیح ده؟

**جواب:** په محرم کې وفات کیدونکی به هلته شهیدوي کله چې یې مرګ دشهادت وي یوازې په دې میاشت کې وفات کیدل شهادت نه دی.

## دد ندې(وظیفې ) په اداکولوکې مسلمان مقتول به شهیدوي

**سوال:** ایا د پولیس یوکس که دجرائم پیشه کسانوسره په مقابله کې، یادحکومت نه باغیانو خلکو سره چې سرکاري اونجي املاک ته نقصان رسوي یادحکومت افسران مثلا: دمملکت سربراه، یاد وزیرانو وغیره حفاظت کولوکې اوخپله ډیوټي فرض ګڼل اودحمله کونکوسره په مقابله کې مړشي؛ نو ایاهغه به شهیدوي؟ اوکه شهید تصورکړل شي؛ نوڅنګه؟ اوکه نه وي نه ولې؟ دقرآن اوحدیث په رڼا کې وضاحت وکړئ!

**جواب:** اصول دادي چې کوم مسلمان په ظلم سره قتل شي، هغه شهید دی، داصولومطابق د پولیس سپاهي که په خپله وظیفه اداکولو کې مړشي (په دې شرط چې مسلمان وي)؛ نو یقینا شهیدبه وي.[2]

## د غسل نه وروسته که دمړي له پوزې وینه روانه شي، هغه شهید نه ګڼل کیږي

**سوال:** دغسل نه وروسته ترقبرستانه پورې په اوړلوکې که دپوزې نه دومره وینه وبهیږي چې دډولۍ نه وبهیږي اوځمکې پورې راشي؛ نو ایا دادشهاد ت نښه ده؟ نورداچې په اسلام کې دشهید ویل کیدو څه نښانه ده؟

---

١ ] ......ومن مات وهو يطلب العلم ......الخ۰وفی الشرح: بان کان له اشتغالاً به تاليفا اوتدريسًا اوحضورًا فيما يظهر، ولو کل يوم درسًاوليس المراد الانهماک (ردالمحتارمع الدرالمختار،باب الشهيد،مطلب فی تعداد الشهداء ج:۲ص:۲۵۲طبع ايچ ايم سعيد)۔

۲ ] قال فی التنوير:باب الشهيد هو کل مکلف مسلم طاهر......قتل ظلمًابغيرحق ......الخ (درمختارج:۲ ص:۲٤۷باب الشهيد)

**جواب:** شهید خو هغه ته ویل کیږي کوم چې کافرانو قتل کړی وي یا چامسلمان په ظلم سره قتل کړی وي[1]، دپوزې نه وینه بهیدو سره شهید نه جوړیږي.[2]

## که ښځه په خپل عزت ساتلو کې مړه شي: نو شهیده به وي

**سوال:** که یوه ښځه دخپل عزت ساتلو له پاره خپل ځان قربان کړي: نو ایا دابه خودکشي وي؟ او هغې ته به ددې خبرې په اخرت کې سزا ملاویږي او که نه؟

**جواب:** که دخپل عزت بچ کولو له پاره مړه شي؛ نو شهیده به وي.[3]

## دانساني لاش څیرل او په هغه باندې تجربې کول ناجائز دي

**سوال:** نن سبا چې کوم ډاکټران جوړیږي مختلف قسم تجربې کوي، په کوم کې چې پوسټ مارټم هم شامل دی، په کوم کې چې دانساني اندامونو بې حرمتي کیږي داترکومې پورې صحیح ده؟په قرون اولی کې ددې هیڅ ثبوت نه ملاویږي، دځینو حضراتو وینا ده چې د مسلمان په لاش باندې تجربې نه شي کیدای اودغیرمسلم په لاش باندې کیدای شي. داترکومه پورې صحیح ده؟

**جواب:** دهیڅ انساني لاش بې حرمتي جائزنه ده نه دمسلمان اونه د غیرمسلم.[4]

## د پوسټ مارټم شرعي حیثیت

**سوال:** نن سبا چې کوم خلک په ګولی وویشتل شي او قتل شي ددې مړي په هسپتال کې پوسټ مارټم کیږي چې د هغه نه دا معلومیږي چې په جسم باندې څومره ګولی لګېدلی دي؟ کوم کوم ځای باندې لګېدلي دي؟ د پوسټ مارټم دا طریقه وي: مړی بربنډ کړي او په میز باندې یې کیږدي، بیا ډاکټر راځي او د ده معاینه کوي، د ښځې او د سرې دواړو په دې طریقې سره پوسټ مارټم کیږي. ایا په شریعت کې پوسټ مارټم جائز دی؟ حالانکې د مړي وارثان منع کوي چې موږ پوسټ مارټم نه کوو یو ظلم په فائرنګ کې قتل او بیا بل ظلم د قتل وروسته د پوسټ مارټم په ذریعې سره کولی شي، ددې شرعي حکم څه دی؟

---

۱ ]ایضًا )_

۲ ] قوله کخروج الدم ای ان کان الدم یخرج من مخارقه ینظران کان مرضعًایخرج منه الدم من غیر آفة فی الباطن کالانف ......لم یکن شهیداً وان المرء قد یبتلی بالرعاف ......الخ (شامی ،باب الشهید ج:۲ ص:۲٤۹ ،وایضًافی الهندیة ج:۱ص:۱٦۹ ،کتاب الصلاة الباب الحادی والعشرون ،الفصل السابع فی الشهید)

۳ ] ومن ماتت صابرة علی الغیرة لها اجر شهید (شامی ج:۲ص:۲٥۲مطلب فی تعدادالشهداء)_

٤ ] امدادالفتاوی ج:۱ص:۵۰۸،۵۰۹وایضًا:وحرمته الانتفاع باجزاء الآدمی لکرامته لئلا یتجاسر الناس علی من کرمه الله بابتـــذال اجزانه ......الخ (شرح العنایة علی الهدایة برحاشیة فتح القدیرج:۱ص:٦۵)_

**جواب:** د پوستېږ مارټم کومه طریقه چې تاسو ذکر کړې ده دا په ښکاره ډول ظلم دی[1] او دا په فحاشي کې شمیرل کیږي[2] او کله چې یو سړی مړشي او دده د قاتل هم پته نه لګیږي؛ نو ددې لاش د بې حرمتي څه فایده؟ لاش دې وارثانو ته حواله شي او که چیرې لاش بې وارثه وي: نو دده تدفین دې و شي، په هر حال بربنډه پورسټ مارټم د حد نه زیات تکلیف والا دې خصوصاً چې کله د سړیو او د ښځو یو شان پورسټ مارټم وشي، دا د یو څو قباحتونو مجموعه ده، حکومت ته پکار دي چې دا د قانون په زور باندې بند کړي.

## د لاش شلولو شرعي حکم

**سوال:** ایا د سائنسي تحقیق له پاره د اسلامي شریعت په نزد باندې د مړو شلول جائز دي؟ ایا ددې له وجې د مړیو د بې حرمتي ویره خونه وي او په مړیو کې ښځې او سړي دواړه شامل وي او مړي بالکل بربنډ وي او شلونکو کې ښځې او سړي دواړه شامل وي، که چیرې بې حرمتي ده: نو ددې سزا څه ده؟ او ایا جینکو له پاره داسې تعلیم حاصلول جائز دي؟ او بیا د سړیو په موجودګي کې دا کار کول جائز دي، ګني سزایې څه ده؟

**جواب:** د مړي شلول په شرعي ډول حرام دي[3] خاص ډول د مخالف جنس د مړي بې حرمتي کول نور هم سخت جرم دی او بیا د جینکو په مخکې نور هم بدکاردی[4] حکومت ته ددې د منع کولو مطالبه کول پکار دي او تر څو پورې چې داسې نه وي: نو دا ناجائز ګڼلو سره استغفار کول پکار دي.

---

[1] وعن عائشة رضی الله عنها ان رسو ل الله صلی الله علیه وسلم قال: کسرعظم المیت ککسره حیًا، رواه مالک وابوداود وابن ماجه (مشکوة ص: ۱٤۹، باب دفن المیت، الفصل الثانی)

[2] وتسترعورته بخرقة من السرة الی الرکبة کذافی محیط السرخسی. صورة استنجائه ان یلف الغاسل علی یدیه خرقة ویغسل السواة لان مس العورة حرام کالنظر الیهاکذافی الجوهرة النیرة (عالمگیری ج:۱ص: ۱۵۸) وقال فی ردالمحتار: لقوله علیه الصلاة والسلام لعلی: لاتنظرالی فخذ حی ولامیت، لان ماکان عورة لایسقط بالموت ولذا لایجوز مسه، حتی لوماتت بین رجال اجانب یتیممها رجل بخرقة ولایمسها......الخ (شامی ج:۲ص: ۱۹۵، القراءة عند المیت)

[3] عن عائشة رضی الله عنها قالت: ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: کسرعظم المیت ککسره حیًا (رواه مالک، ابوداؤد وابن ماجه ص: ۲۲۰) عن عمروبن حزم قال: رآنی النبی صلی الله علیه وسلم متکئًا علی قبر فقال: لاتوذصاحب هذا القبر، او: لاتوذه، رواه احمد (مشکوة ص: ۱٤۹) قال ابن عابدین: لان المیت یتاذی بمایتاذی به الحی (ردالمحتارج: ۲ص: ۱۹٦ مطلب فی القراءة عندالمیت)_

[4] قال فی شرح المنیة: ان الثانی هو الماخوذ به لقوله علیه الصلوة والسلام لعلی: ..... لاتنظر الی فخذ حی ولامیت،، لان ماکان عورة لایسقط بالموت ولذا لایجوزمسه، حتی لو ماتت بین رجال اجانب تیممها رجل بخرقة ولایمسها......الخ، وفی الشرنبلالیة: وهذا شامل للمراة والرجل لان عورة المراة للمراة کالرجل للرجل (ردالمحتارج: ۲ص: ۱۹۵)_

## د شپږ میاشتو حمل لرونکې ښځې د مرګ نه وروسته اپریشن کولو سره ماشوم راویستل

**سوال:** داسلامي عقیدې مطابق د (۱۲۰) ورځونه وروسته دموریه خیټه کې ماشوم ژوندی ګڼل کیږي، په (۱۲۰) ورځوکې دموریه خیټه کې موجودماشوم کې ساه راشي اودمیډیکل دتهیوري (نظریه) مطابق هم په ۱۲۰ ورځوکې ماشوم کې ساه پیداشي. اوس مسئله داده که چیرې د څه ناروغي له وجې یادزږه دوره راتلو له وجې حمل لرونکې ښځه دشپږ میاشتوحمل سره وفات شي او دماشوم پیداینښ په نهه میاشتوکې کیږي. اوس که چیرې ماشوم داپریشن په ذریعه دمړې شوې موردخیټې نه راویستل شي؛ نوکیدای شي چې هغه بچ شي، خوکه چیرې دمورخیټه کې پریښودل شي اومړه شوې ښځه خښنه شي؛ نوساه لرونکي ماشوم به هم ژوندی خښ شي، اوس دې صورت کې که چیرې ښځه دشپږ میاشتو حمل سره مړه شي: نودهغه ماشوم به څه کیږي کوم چې دموریه خیټه کې ژوندی و؟

**جواب:** که چیرې ددې یقین وي چې ماشوم ژوندی دی اوداچې که چیرې داپریشن په ذریعه باندې راوویستل شي؛ نودهغه د ژوندی پاتې کیدو امکان وي؛ نوداپریشن په ذریعه باندې ماشوم راویستل صحیح دي.[1]

## ❖ سترګې عطیه کول او د اندامونو پیوندکاري ❖

### د سترګو د عطیه کولو له پاره وصیت کول شرعي ډول با ندې څنګه دي؟

**سوال:** دغم ځیپلوخلکوخدمت کول ډیرغټ ثواب دی، ایااسلام کې داجائزدي چې یوسړی دمرګ نه مخکې وصیت وکړي چې دمرګ نه وروسته دې زماسترګې چیرته ړانده سړي ته ورکړل شي؟

**جواب:** لږوخت مخکې مولانامحمدشفیع رحمه الله اومولانامحمدیوسف بنوري رحمه الله دعالمانو یو بورډ مقررکړی و، دغوعالمانو ددې مسئلې په مختلف اړخونو باندې غوراوفکر کولونه وروسته دا اخري فیصله وکړه چې داسې وصیت جائز نه دی او دا پوره کول هم جائز نه دي. دافیصله دانسان د اندامونو دپیوندکاري نوم سره چاپ شوې ده.

---

[1] ولى فتاوى ابى الليث رحمه الله تعالى فى امراة حامل ماتت وعلم ان مافى بطنها حى فانه يشق بطنها من الشق الايسروكذلك اذاكان اكبررايهم انه حى يشق بطنها كذافى المحيط وحكى انه فعل ذلك باذن ابى حنيفة فعاش الولد،كذافى السراجية (عالمگيرى ج:۵ص:۳۶۰،الباب الحادى والعشرون فيمايسع من جراحات ......الخ،طبع مكتبة رشيديه)۔

کیدای شي دا وویل شي چې داخو د غم ځپلو انسانانو خدمت دی، دې کې د ګناه څه خبره ده؟ زه داسې قسمه دلیل وړاندې کونکو ته خواست کول غواړم چې که چیرې تاسو په ریښتیا باندې دا دانسانیت خدمت او د ثواب کار ګڼئ؛ نو دې له پاره د مرګ انتظارولې کوئ؟ بسم الله، رامخکې شئ او خپلې دواړه سترګې ورکول او سره د انسانیت خدمت وکړئ او ثواب حاصل کړئ. که دواړه نه شئ ورکولی؛ نو کم نه کم یوه سترګه ورکړئ. دانسانیت خدمت به هم وشي او د مساوات غوښتنې به هم پوره شي.

کیدای شي د دې جواب کې دا وویل شي چې ژوندي ته خو د سترګو په خپله ضرورت وي او مرګ نه وروسته سترګې بې کاره شي؛ نو دا بل چا ته وقف کول پکار دي.

همدا هغه اصل نکته ده، چې د هغې له وجې د سترګو د عطیه کولو جواز وړاندې کیږي او دا ډیر د ثواب کار ګڼل کیږي، خو غور کولو نه وروسته به معلومه شي چې دا نکته د اسلامي ذهن پیداوار نه دی، بلکې د حیات بعد الموت (د مرګ نه وروسته ژوند) نه انکار کول دي.

د اسلام عقیده ده چې د مرګ نه وروسته د انسان د ژوند سلسله نه ختمیږي، بلکې د ژوند یوه مرحله پوره کولو نه وروسته دویمه مرحله شروع شي، د مرګ نه وروسته هم انسان ژوندی دی، خو د هغه د ژوند اثر د دې دنیا باندې نه ښکاره کیږي، د ژوند دریمه مرحله به د حشر نه وروسته شروع کیږي او هغه به دائمي وي.

کله چې دا خبره ومنل شوه چې له مرګ نه وروسته هم د ژوند سلسله شروع ده، خو د دې شکل او صورت بدل شي؛ نو اوس دې باندې غور کول پکار دي چې ایا انسان ته د کتلو ضرورت یوازې هم دې ژوند کې دی؟ ایا د مرګ نه وروسته ژوند کې کتلو له پاره هغه ته د سترګو ضرورت نه شته؟ معمولي عقل لرونکی او سوچ کونکی کس به د دې جواب دا ورکوي که چیرې له مرګ نه وروسته په هر قسمه صورت کې ژوند وي؛ نو څنګه چې د ژوند نورو کارونو او شیانو ضرورت وي د غه شان به د نظر هم ضرورت وي.

کله چې دا خبره هم ومنل شوه چې کوم کس د سترګو د عطیه کولو وصیت کوي د هغه باره کې به دوه خبرو کې یو خبره کیدای شي، یا دا چې له مرګ نه وروسته هغه ژوند باندې ایمان نه لري یا دا چې هغه د ایثار او قرباني په ډول خپل نظر بل چا ته ورکول او په خپله د بینایي نه محرومیدل خوښوي، خو د یو مسلمان باره کې دا تصور هم نه شي کیدای چې هغه له مرګ نه وروسته د ژوند قایل نه وي، که چیرې یو مسلمان د سترګو د عطیه کولو وصیت کوي؛ نو د دې مطلب هم دا کیدای شي چې هغه د انسانیت د خدمت له پاره په خپله خوښه باندې ړندیدل غواړي، بې شکه دا ډیره غټه قرباني ده، خو مونږ به هغه ته دا ضرور وایو چې هغه د همیشه له پاره په خپله خوښه باندې ړندیدل غواړي؛ نو د دې یو څو ورځو ژوند کې هم دا قرباني وکړئ او د قرباني له پاره د مرګ انتظار مه کوئ.

زموږ د دې تحقیق نه معلومه شوه چې: (۱) د سترګو عطیه کولو په مسئله کې د اسلام خیال د مرګ نه مخکې او وروسته حالت دواړه یو شان دی.

(۲) ژوندکې انسان ته په خپل وجود او اندامونو باندې اختیار حاصل وي، خو د دې باوجود خپل اندام ختمول نه قانونا صحیح دي نه شرعا او نه اخلاقا، دغه شان له مرګ نه وروسته د خپل اندام دختمولو وصیت کول هم شرعي ډول صحیح نه دي او اخلاقي ډول باندې هم، د ضرورت مطابق د مسئلې وضاحت شوی دی، خو بیا به هم مناسب وي چې د دې موقع باندې د حضور ﷺ یو څو ارشادات نقل کړل شي. **عن عائشه رضی اللہ عنہا قالت ان رسول الله ﷺ قال: کسرعظم المیت ککسره حیاً.** (رواه مالک ص ۲۲۰، ابوداؤد ص ۴۵۸ ابن ماجه ۱۱۷)

حضرت عایشې رضی اللہ عنہا نه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي، د مړي هډوکي ماتول، د هغه په ژوندکې د هډوکو ماتولو په شان دي.

**عن عمرو بن حزم قال: رآني النبي ﷺ متکئاً علی قبر. فقال: لاتوذ صاحب هذا القبر اولاتوذه.** (رواه احمد، مسند احمد مشکاة ص ۱۴۹)

عمرو بن حزم رضی اللہ عنہ فرمایي چې نبي کریم ﷺ زه ولیدلم چې ما قبرته ډډه وهلې وه؛ نو حضور ﷺ وفرمایل چې: قبروالاته تکلیف مه رسوه. **عن ابن مسعود اذی المومن فی موته کاذاه فی حیاته.** (ابن ابی شیبه حاشیه مشکاة ص ۱۴۹)

حضرت عبدالله بن مسعود رضی اللہ عنہ نه روایت دی چې مومن ته له مرګ نه وروسته تکلیف ورکول داسې دي لکه هغه ته په ژوندکې تکلیف ورکول.

حدیث کې د یو صحابي رضی اللہ عنہ هم اوږده کیسه راغې چې هغه هجرت کولو سره د حضور ﷺ خدمت کې حاضر شو، په یو جهاد کې د هغه لاس زخمي شو. د درد تکلیف نه برداشت کیدوله وجې هغه خپل لاس ځان نه کټ کړ او د هغه له وجې هغه مړ شو. د هغه یو ملګري هغه یو څو ورځې وروسته خوب کې ولید چې جنت کې ګرځي، خو د هغه لاس په جامه کې تړل شوی دی، لکه چې زخمي وي هغه ترې پوښتنه وکړه؛ نو ورته یې وویل چې د حضور ﷺ په خدمت کې د حاضریدو له وجې زه وبښل شوم او د لاس باره کې الله تعالی وفرمایل چې کوم تا پخپله خراب کړی دی هغه به زه نه صحیح کوم[1]

---

[1] عن جابران الطفیل بن عمرو الدوسی لماهاجرالنبی صلی الله علیه وسلم الی المدینة هاجر الیه وهاجر معه رجل من قومه فمرض فجزع فاخذ مشاقص له فقطع بها براجمه فشخبت یداه حتی مات فرآه الطفیل بن عمرو فی منامه وهیئته حسنة ورآه مغطیًا یدیه فقال له :ماصنع بک ربک ؟فقال:غفرله بهجرتی الی نبیه صلی الله علیه وسلم فقال:مالی اراک مغطیًایدیک ؟قال:قیل لی:لن نصلح منک ماافسدت .فقصهاالطفیل علی رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم :اللهم ولیدیه فاغفر۰رواه مسلم (مشکوة ص: ۳۰۰ کتاب القصاص)۔

له دې احاديثونه ښکاري چې دمړي يواندام کټ کول داسې دي لکه چې دهغه په ژوندکې کټ کړل شي اوداهم معلومه شوه چې انسان کوم اندام کټ کړی وي، يادهغه دکټ کولووصيت يې کړی وي هغه دمرګ نه وروسته هماغه شان وي، دانه چې دهغې په ځای ورته نوراندامونه ورکړل شي، ددې نه دځينې حضراتواستدلال ختم شي چې کوم کس دخپلوسترګودعطيه کولووصيت وکړي الله تعالی به هغه ته نورې سترګې عطيه کړي.

بې شکه الله تعالی ته قدرت حاصل دی چې هغه ورته نوې سترګې ورکړي، خوددې جواب کې داهم ويل کيږي چې الله تعالی تاسوته هم نوې سترګې درکولی شي؛ نوتاسودې (کولی شي) باندې اعتمادکولوسره خپلې سترګې يوړوندته عطيه کړئ اوالله تعالی هغه ړوندته نظرورکولی شي؛ نوبياهغه ته دسترګودعطيه کولووصيت ولې کوئ؟

**خلاصه** داچې کوم کس له مرګ نه وروسته هم ژوندمني، دهغه له پاره د سترګو دعطيه کولووصيت صحيح نه دی اوکوم کس چې دحيات بعدالموت نه منکروي، هغه سره دې باره کې خبرې کول فضول دي.

## دسترګوعطيه کول ولې ناجائزدي حالانکې انسان په قبرکې خرابيږي؟

**سوال:** دسترګودعطيه کولوباره کې چې تاسوکوم خيال ښکاره کړی دی. هغه باندې پوره مطمئن يم، خوپوڅوخبرې ذهن کې شک پيداکوي، جواب راکولوسره دشکريه اداکولوموقع راکړئ. زموږ دمسلمانانودا عقيده ده چې قبرته تلونه يوکال وروسته دانسان ټول وجودختم شي يعنې ځمکه کې چې کومې مادې وي هغه دانسان بدن هغې سره يوځای شي اويوازې د انسان روح وي کوم چې دالله تعالی سره وي اوقبرکې هيڅ هم پاتې نه شي اود مسلمانانو دا د يرې يوخاص حدوي له هغه نه وروسته هغه اديره ختمه شي اودهغه له پاره نورقبرونه جوړيږي، له دې وجې که چيرې له مرګ نه وروسته که چيرې سترګې يوژوندي کس ته ورکړل شي؛ نودې کې څه بده خبره ده؟ ځکه چې کله الله تعالی ځمکه کې خاورې شوي انسان ته بل ژوندورکوي او ايا د سترګونه به يې محروم ساتي؟ (نعوذبالله)

**جواب:** هو! قانون هم دادی چې کوم شی په خپل اختيار پخپله ضائع کړل شي هغه به واپس نه ورکول کيږي اوکه الله تعالی دچا ګناه معاف کړي يادګناه سزاورکولوسره هغه شی ورکړي، دې کې دچااعتراض کيدای شي؟ خوموږدالله تعالی دقانون پابنديو، دې جرات سره خپلې سترګې ويستل چې الله تعالی به نورې راکړي، کم عقلي ده اوداخيال غلط دی چې قبرکې د انسان بدن بالکل ختم شي. بدن خاورې شي اودخاورودې ذروسره (که هغه هرطرف ته والوځي) دروح تعلق باقي وي، دهغه له وجې برزخ کې (يعنې دمحشردورځې نه مخکې) دعذاب اوراحت سلسله شروع وي.[1]

---

[1] واعلم ان اهل الحق اتفقوا على ان الله تعالى يخلق فى الميت نوع حياة ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

**سوال:** خواست دی چې هرانسان اوده هغه ژوند دالله تعالی امانت دی. دمړشوي بدن سترګه د مړي له پاره بیکاره ده، هغه دالله تعالی امانت دبل ژوندي سترګوته منتقل کړي. داژوندی انسان هم دالله تعالی امانت دی؛ نو یوامانت بل امانت ته ورکړل شو اوددې عمل له وجې هغه ژوندی انسان دالله تعالی جوړ شوي نعمتونه ووینې اودالله تعالی شکراداکړي، په ظاهره خوداډیرنیک کاردی اوکله چې دا انسان مړشي؛ نوداسترګه به هم واپس خښنه شي اوله چانه چې داسترګه قرض اخیستل شوې وه هغه ته به واپس ملاوشي. دویمه خبره داده چې کله دا سترګه اجازې سره اخیستل شوې وه، ځکه چې انسان دهمدردي له وجې اجازه ورکړي: نو ددې له وجې به امانت هم امانت وي، دعالمانوپه فیصله باندې خپله تسلي غواړم.

**جواب:** دې باره کې خوصحیح فیصله عالمان کولی شي او موږته دهغوی په فیصله باندې اعتمادکول پکاردي، سترګه که چیرې دالله تعالی امانت دی؛ نوموږته دې امانت کې دتصرف کولواختیارهم دالله تعالی په حکم باندې ملاویدای شي. بحث دادی چې ایاددې تصرف حق شریعت ورکړی دی؟ دامت دعالمانوخیال دادی چې ددې تصرف حق شریعت نه دی ورکړی.

**سوال:** محترم! تاسودسترګوعطیه ناجائزلیکلې ده،یوځوورځې مخکې په روزنامه "نوائے وقت،،کې یومفتي صاحب دډیرو دلیلونوسره جائزګرځولې دي چې دعلاج له پاره دحرامو شیانو استعمال هم جائزدی اوهسې هم.

درد دل کے واسطے پیدا کیا انسان کو
ورنہ طاعت کے لئے کچھ کم نہ تھی کروبیاں

مطابق په زرګونواو لکونو ړندوته نظرملاوشي؛ نوداسلام د انسانیت دخدمت نه منع کول نه دي پکار.

**جواب:** ضروري نه ده چې هرهیوه مسئله کې دې نورحضرات ماسره متفق وي ,,دردل کے واسطے پیدا کیاانسان کو،، څه شرعي قاعده نه ده اوددې ویلوجرات زه نه شم کولی چې اسلام د فلانکي شي نه ولې منع کوي اوفلانکي نه، نه، عقل حاکم ګڼل داهلسنت دعقیدې خلاف دي[1] اسلام دانساني داندامونودمنتقل کولواجازه نه ده ورکړې.

...بقیه د تیر مخ]..فی القبرقدرمایتالم اویتلذذ (شرح فقه اکبر،ضغطة القبرص:۱۰۱)۰فیعذب اللحم متصلاً بالروح والروح متصلاً بالجسد وان کان خارجا عنه (ابوالمعین علی هامش شرح العقائد، عذاب القبر ص:۷۲)۰ ان عذاب القبرهو عذاب البرزخ ،فکل من مات وهو مستحق العذاب ناله نصیبه منه قبر اولم یقبر فلو اکلته السباع اواحرق حتی صار رماذا ونسف فی الهواء اوصلب اوغرق فی البحروصل الی روحه وبدنه من العذاب مایصل الی القبور (کتاب الروح ،المسئلة السادسة ص:۸۱طبع دارالکتب العلمیة بیروت)۔

[1] ومنها ان القول بالرای والعقل المجرد فی الفقه والشریعة بدعة ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

## د وینې د عطیې اهتمام کول او مریضا نو ته ورکول شرعي طور با ندې څنګه دي؟

**سوال:** موږ په داود میډیکل کالج کې د ډاکټرۍ تعلیم حاصلوو او چونکې د دریم او څلورم کال نه زموږ تعلق د مریضانو د خیال ساتلو سره وي، هغه کې موږ خلکو محسوس کړل چې ډیر مریضان د غریبي په وجه باندې خپل علاج صحیح طریقې سره نه شي کولی، او نه دوایانې اخیستلې شي، په دې وجه باندې موږ یو امدادي جماعت "پیشنټ ویلفیئر ایسوسي ایشن"، (د مریضانو امدادي جماعت) په نوم باندې جوړ کړ، دې کې موږ د مختلفو خلکونه چنده اخیستو سره دوایانې اخلو او بیا یې پخپله مریضانوته ورکوو اوس زموږ دې جماعت په خپل کالج کې "بلډبنک"، جوړول هم شروع کړي دي، دې کې به موږ وینه جمع کوو او مرګ ته نږدې مریضانوته به یې ورکوو، د دې طریقه به داسې وي چې موږ به د مریض د یو رشته دارنه وینه واخلو او هغه به خپل بنک کې کیږدو او د هغه د مریض د نمبر وینه به هغوی ته ورکړو، ایا د غه شان د مریضانو له پاره وینه جمع کول او بیا مریضانو ته ورکول د شریعت مطابق صحیح دي او که نه او موږ ته به د دې ثواب ملاویږي؟

**جواب:** د اضطرار په حالت کې د مریض بچ کولو له پاره هغه ته وینه ورکول جائز دي او د همدې ضرورت له وجې وینه ورکول او د دې اخیستل او خرخول جائز دي او د انسانیت خدمت کله چې د حد جواز کې دننه وي؛ نو ښکاره خبره ده چې ډیر د ثواب کار دی.[1]

## د انساني اندامونو پیوندکاري او د وینې مسئله

**سوال:** مولانا صاحب! نن سبا د انساني اندامونو پیوند کاري سلسله روانه ده، ایا دا جائز ده؟ نویو تحقیقاتو او سائنسي ایجاداتو زموږ له پاره دیو چیلنج شکل اختیار کړی دی، ځینې خلک د دې تحقیقاتو نه نفع اوچتولو ته عقل مندي او په دې سلسله کې د غیر شرعي تحقیقاتونه د بچ کیدو والا حضراتو ته تنګ نظره وايي، همدغه شان د وینې ورکولو مسئله ده، تاسو په دې سلسله کې زموږ رهنمایي وکړئ!

---

...بقیه د تیر مخ]..وضلالة فاولى ان يكون ذلک فى علم التوحيدوالصفات بدعة وضلالة ،فقدقال فخر الاسلام على البزدوى فى اصول الفقه انه لم يردفى الشرع دليل على ان العقل موجب ولا يجوزان يكون موجبًا وعلة بدون الشرع اذا لعلل موضوعات الشرع وليس الى العباد ذلک لانه يترع اى يسوق الى الشركة فمن جعله موجبًا بلادليل شرعا فقدجاوزحد العباد وتعدى عن حدالشرع على وجه العناد (شرح فقه الاكبرص:۷،۸طبع مجتبائى)_

۱] الضرورات تبيح المحظورات اى ان الاشياء الممنوعة تعامل كالاشياء المباحة وقت الضرورة (شرح المجلة ص:۲۹)

**جواب:** په دې سلسله کې اوس اوس دحضرت مفتي صاحب (مدفیضهم) تازه تالیف (انساني اعضاءپیوندکاري) په نامې سره شائع شوی دی، په کوم کې چې د دې مسئلې په باره کې دګڼ شمیرعالمانو(چې نومونه یې حضرت مفتي صاحب په تمهید کې ذکرکړي دي) دهغوی متفقه تحقیق دکتاب، سنت اودفقه اسلامي دلائلوپه رڼاکې درج شوي دي، ددې مختصرشان خلاصه پیش کوم دتفصیل له پاره دې اصل کتاب وکتل شي.

**تمهید**: زیرنظرمسئله دانساني وینې اوانساني اندامونودتبادلې معامله، په دې زمانه کې یوه عامه معامله ده اودفقې په کتابونوکې ددې په باره کې هیڅ منصوص نه شته، کله چې ددې په باره کې دپاکستان اوبهرملکونونه په ګڼ شمیرکې سوالونه راغلل؛ نوما(مفتي صاحب) د اکابرو دسنت مطابق دامناسب وګڼل چې دانفرادي رایې په ځای دماهرو عالمانویوه ډله دې په دې باندې غور، فکر، بحث وتمحیص نه وروسته څه رایه متعین کړي، ددې له پاره یوه سوال نامه جوړه کړل شوه اودفقهې اوفتوا مراکزو، پاکستان کې: کراچی، ملتان، پشاور وغیره اوبه انډیا کې دیوبند، سهارنپور، دهلي وغیره ته ولیږل شوه، داکثروحضراتوجوابونه ملاوشول؛ نوپه هغې باندې هم اجتماعي سوچ اوفکرکول مناسب و، مګرملک ګیر وسائل هم اسان نه و او ددې له پاره چې دومره وخت اواوږدفرصت ضرورت و دهغه ملاویدل هم ګران و، ددې له وجې دحکم...، مالایدرک کله لایترک کله،، داصورت مواختیارکړ، چې یوازې دکراچی داهل فتوا عالمان راجمع کړواوپه دې باندې غوروکړي،دا اجتماع چې کومې نتیجې ته ورسیږي هغه منضبط کړواوملک دننه اوبیرون ملک ارباب فتوا ته ولیږل شي اوبیاپرې دهغوی آراء اوفتوا حاصلې کړل شي چې دادماهرین اهل فتوا اجتماعي فتوا شي، په دې اجتماع کې لاندې حضراتو شرکت وکړ اوپه مختلفوتاریخونوکې په پنځو نشستونو کې دبهرنه راغلي جوابونه اوددې مسئلې په هراړخ باندې غور وشو اوددې معاملې په باره کې د څلورو واړو مذهبونوکتابونه مخې ته کیښودل شو، دامجلس درایې په اتفاق سره دې نتیجې ته ورسید کوم چې په آینده صفحاتوکې سره د دلائلو لیکل کیږي، دمجلس دشرکاوو نومونه دادي:

## دارالعلوم کراچی نه

۱: محمدشفیع خادم دارالعلوم کراچی. ۲: مولانا محمدصابرصاحب نائب مفتي.
۳: مولانا سلیم الله صاحب مدرس دارالعلوم. ۴: مولاناسبحان محمودصاحب دارالعلوم کراچی.
۵: مولانا محمدعاشق الهی صاحب دارالعلوم کراچی.
۶: مولانامحمدرفیع صاحب دارالعلوم کراچی. ۷: مولانامحمدتقي صاحب دارالعلوم کراچی.

## مدرسه عربیه اسلامیه نیوټاون کراچی نه

۸: حضرت مولانا محمدیوسف صاحب بنوري شیخ الحدیث ومهتمم مدرسه.

۹: مولانامحمدولي حسن صاحب مفتي مدرسه عربيه اسلاميه نيوټاون کراچي.
۱۰: مولانامحمدادريس صاحب مدرس مدرسه عربيه اسلاميه

## اشرف المدارس نه

۱۱: مولانامفتي رشيد احمد صاحب مفتي ومهتمم مدرسه.

## د بهر نه هغه حضرات دچا تحقيقيي فتواوې چې موصول شوې دهغوی نومونه دادي:

۱: حضرت مولانامفتي مهدی حسن صاحب مفتی دارالعلوم ديوبند.
۲: حضرت مولانامفتي محمدعبدالله صاحب مفتي خيرالمدارس ملتان.
۳: مولاناعبدالستارصاحب مفتي خيرالمدارس ملتان.
۴: مولانامحمداسحاق صاحب نائب مفتي خيرالمدارس ملتان.
۵: مولاناجميل احمد صاحب تهانوي مفتي جامعه اشرفيه لاهور.
۶: مولانامفتي محمودصاحب مفتی مدرسه قاسم العلوم ملتان.
۷: مولاناعبداللطيف صاحب معين مفتي مدرسه قاسم العلوم ملتان.

دې مجلس دوينې اواندامونودمسائلونه علاوه هم ددې په شان په نوروعام مسائلوباندې دبحث کولونه وروسته فيصله وشوه اوالحمدلله تراوسه پورې ډيراهم مسائل په زيربحث مجلس کې درايې ترحدپورې مقررشوې اومنضبط شوې دي،په کوموکې چې لاندينې مسائل شامل دي:

۱: دژندبيمه.
۲: پراويډنټ فنډپه سودباندې اوددې په فنډپه رقم باندې دزکات مسئله.
۳: دبلاسودبينکاري مفصل نظام.
۴: ديهوداونصاری ذبيحه اودهغې غوښې داخيستلومسئله.
۵: دمشيني ذبيحې مسئله.

تردې وخت پورې چې دوينې اواندامونوزيربحث مسئلې په باره کې څومره جوابونه دبيرون ملک حضراتونه وصول شوي دي ياارکان مجلس پرې خپل تحقيق ليکلی دی،په هغو ټولوباندې دغورکولونه وروسته مجلس په دې نتيجه باندې ورسيد ، کوم چې په دې پاڼوکې پيش کيږي،دهريوجداجداليکلوسره تکرارهم راځي، ځای هم ډيرنيسي،ددې وجې نه دبحث او تمحيص نه وروسته چې فيصله شول هغه ټول په يوترتيب سره وليکل شول اودلائل اوحوالې د عوامو د سهولت له پاره جداجداکړل شوې دي (والله المستعان)

# مقدمه

## څو اصولي مسائل

دمسائلودتفصیل نه مخکې په څواصولوخبروباندې پوهیدل ضروري دي،چې راتلونکو مسائلوباندې پوهیدوکې سهولت وي.

### اول: هرحرام شی دانسانیت له پاره مضردی:

الله تعالی چې کوم کوم شیان دبندګانوله پاره حرام ګرځولي دي، که څه هم هغه په ظاهره هر څومره ګټور په نظرراځي، خو په حقیقت کې هغه دانسان اودانسانیت له پاره مضردي اود ګټې په ځای دتاوان اړخ پرې غالب دی،دانقصان کله بدني وي اوکله روحاني ، بیاکله خو دومره واضحه وي چې هرعام اوخاص یې پیژني اوکله کم وی، کوموباندې ډاکټراوطبیب پوهیدای شي اوکله دومره کم وي چې نه خودافلاطون اوارسطوعقل دهغه ځای پورې رسیدی شي اونه دڅه جدیدالې په ذریعه دهغه دریافت کیدای شي،بلکې په حاسه د وحي اوفراست د نبوت سره لیدل کیدای اوپیژندل کیدای شي.(انی اعلم من الله مالاتعلمون)[1]

### دویم: دانسان تکریم اودهغه دوه طرفونه

الله تعالی په خپل مخلوق کې انسان ته ظاهري او معنوي شرف او امتیاز ورکړی دی ، هغه په شکل او صورت کې د ټولو نه حسین او په علم او ادراک کې په ټولو باندې فائق شوی دی او دده ته د کائنات مخدوم او مکرم جوړ شوي دي، د دې تکریم او شرف یو اړخ دا دی چې تمام کائنات دده په خدمت باندې مامور دی، ډیر شیان دده دخوراک او دوا له پاره حلال شوي دي[2] اوبه اضطراري حالت کې دحرامو شیانوداستعمال اجازه هم ورکړل شوې ده[3] اودویم اړخ داچې د انسان اندامونه دغذا اودوا له پاره ممنوع او ددې اخیستل اوخرڅول ناجائزګرځول شوي دي.[4]

---

[1] سورة ۱۲ یوسف :۹۶)_

[2] ]وسخرلکم اللیل والنهاروالشمس والقمر (سورة ۱۶ النحل :۱۲)وهوالذی سخرالبحرلتاکلوا منه لحما طریا (سورة ۱۶ النحل : ۱٤۰)وسخرلکم الفلک لتجری ف البحر (سورة ۱۴ ابراهیم :۳۲) وسخرلکم مافی السموات ومافی الارض جمیعا (الجاثیة:۱۳)_

[3] ]فمن اضطرغیرباغ ولاعادفلا اثم علیه (البقرة : ۱۷۳)_

[4] ] ولانه یحرم الانتفاع بشعرالآدمی وسائراجزائه لکرامته بل یدفن شعره وظفره وسائراجزائه (امام نووی رحمه الله،شرح مسلم ج:۲ص:۲۰٤باب تحریم فعل الواصلة والمستوصلة والواشمة والمستوشمة والنامصة والمتنمصة......الخ)

## دريم: په علاج کې شرعي اسانتياوې

داسلام په نظرکې دانسان جان په حقيقت کې دالله تعالی امانت دی، چې ضائع کول يې انتهايي سنګين جرم دی، ددې دحفاظت له پاره لوی لوی سامان تيار شوی دی اود کوم داستعمال چې حکم ورکړل شوی دی اوداسې تدابيراوعلاج معالجه ضروري ګرځول شوې ده د کومې سره چې دمريض جان بچ شي، دمريض دسهولت له پاره لمونځ، روژه، غسل، طهارت، وغيره احکام جدا وضع شوي دي، ددې نه زيات به نورڅه وي چې په اضطراري حالت کې د سر دبچ کولوله پاره کلمه کفرويلو (چې اسلام په نظرکې بدترين جرم دی) اجازه ورکړل شوې ده.[۱] همدغه شان کوم کس چې دلوږې له وجې مري؛ نودهغه له پاره دسردبچ کيدوپه خاطر خنزيراو مرداره هم مباح، بلکې ضروري ګرځول شوي دي.[۲]

## څلورم: داضطرارصحيح درجه څه ده؟

ناواقفه حضرات هرمعمولي حاجت ته د ،،داضطراري حالت،،نوم ورکوي، ددې له پاره ضروري ده چې ددې وضاحت وشي.

علامه حموي رحمه الله په ،،شرح اشباه،،کې ليکي چې: دلته پنځه درجې دي، ضرورت (اضطرار) حاجت، منفعت، زينت اوفضول.

**اضطرار**:.... دادی چې دمنع شوي شي داستعمال نه پرته دسردبچ کيدوهيڅ صورت نه وي، همدغه هغه اضطراري صورت دی په کوم کې چې خاص شرطونوسره دحرام شي استعمال مباح ګرځي.

**حاجت**: .... دادی چې دممنوعه شي نه استعمالولوسره دهلاکت ويره نه شته، **خومشقت اوتکليف به ډيرزيات وي، په دې حالت کې لمونځ، روژه، طهارت وغيره داحکامو سهولتونه خوبه وي، مګرحرام شيان به مباح نه ګرځي.**

**منفعت**:.... دادی چې ديوشي داستعمال سره بدن ته تقويت اوفائده رسيږي اودنه کولوسره يې نه د هلاکت ويره وي اونه شديدتکليف، په دې حالت کې نه دڅه حرام شي استعمال جائزدی اونه د روژې ماتولو اجازه شته،که څه حلال شي سره دانفع حاصليدای شي؛ نواودې کړي، ګني صبردې وکړي.

**زينت**: .... دادی چې دې سره بدن ته هم څه تقويت نه وي يوازې تفريح طبع وي، ظاهره ده چې ددې له پاره دڅه ناجائزه شي دجوازګنجائش له کومې کيدای شي؟

---

۱ ]وان اکره (علی الکفر) بالله تعالی اوسب النبي صلی الله عليه وسلم مجمع ،وقدوری (بقطع اوقتل رخص له ان يظهرما امربه)علی لسانه ويوری (وقلبه مطمئن بالايمان) (الدرالمختار:ج:٦ص: ١٣٤،کتاب الاکراه)۔

٢ ] فمن اضطر غير باغ ولاعاد فلااثم عليه (البقرة :١٧٣)۔

**فضول:**..... داد تفریح نه هم مخکې دی چې مقصدتړې یوازې هوس رانې وي.[۱]

زمونږ بحث داضطرار د حالت په باره کې دی، ددې له وجې په دې باندې ښه پوهیدل پکار دي چې په اضطراري حالت کې دیو حرام شي داستعمالولو درې شرطونه دي.

الف: دمریض حالت په رښتیا داسې وي چې دحرام شي د استعمال نه کولو سره یې دسرخطره وي.

ب: داخطره یوازې وهمي نه وي، بلکې یومعتمد حکیم یا ډاکټر د وینا مطابق یقیني وي او دحلال شي سره ددې علاج ممکن نه وي.

ج: ددې حرام شي سره دسربچ کیدل هم دچاقابل اعتماد حکیم یاډاکټر په رایه کې عادتا یقیني وي.

ددې شرطونوسره دحرام شي استعمالول مباح شي. مګربیابه هم څه صورتونه ددې نه مستثنی وي، مثلا دیوکس دسربچ کولو له پاره دبل کس وژل جائزنه دي، ځکه چې ددواړو سریو شان محترم دی.[۲]

## پنځم: په غیراضطراري حالت کې په علاج کې شرعي سهولتونه

که اضطراي حالت نه وي (دکوم له وجې چې دسرخطره وي) مګردناروغي اومرض دزیات والي له وجې مریض ته ډیرتکلیف دی، (همدغه حالت پورته په حاجت سره تعبیر شوی دی)؛ نوپه دې صورت کې دحرام اونجس دوا استعمالول جائزدی اوکه نه؟ ددې حکم په قرآن اوحدیث کې په وضاحت سره نه دی ذکر شوی، ددې له وجې دامت دفقهاوو په دې کې اختلاف دی، دځینو حضراتوپه نزدجائزنه دی اوجمهورفقهاء دپورته ذکر شویو شرطونوسره ددې اجازه ورکوي، یعنې دچا معتمدډاکټریاحکیم درایې مطابق ددې نه پرته بل علاج نه وي اوددې حرام شي سره دشفاء حاصلولومکمل یقین وي.[۳]

---

۱ ] قوله ما ابیح للضرورة فی الفتح القدیرههنا خمسة مرات ضرورة ،وحاجة ،ومنفعة ،وزینة وفضول فالضرورة بلوغه حدا ان لم یتناول الممنوع هلک اذا قارب وهذا یبیح تناول الحرام والحاجة کالجائع الذی لولم یجدمایاکله لم یهلک غیرانه یکون فی جهدومشقة وهذا لایبیح الحرام ویبیح الفطرفی الصوم والمنفعة کالذی یشتهی خبز البر ولحم الغنم والطعام الدسم والزینة کالمشتهی بحلوی والسکر والفضول التوسع بأکل الحرام والشبهٔة......الخ (الاشباه والنظائرمع حاشیة الحموی ج:۱ص:۱۱۹طبع ادارة القرآن)۔

۲ ] قالوا لو اکره علی قتل غیره بقتل لایرخص له فان قتله اثم لان مفسدة نفسه اخف من مفسدة قتل غیره (الاشباه والنظائر ج:۱ص:۱۱۹،القاعدة الخامسة الضرریزال)۔

۳ ] ولم یبیح الارضاع بعدمدته لانه جزء آدمی والانتفاع به لغیرضرورة حرام علی الصحیح شرح الوهبانیة وفی البحر:لا یجوز التداوی بالمحرم فی ظاهر المذهب ،اصله بول الماکول کمامر،الدرالمختار۔وفی الشرح : (قوله وفی عبارته)وعلی هذا ای الفرع المذکور لایجوز الانتفاع به للتداوی قال فی الفتح :واهل الطب یثبتون للبن البنت ای الذی نزل بسبب بنت مرضعة نفعًا لوجع العین ،واختلف المشایخ فیه ،قیل لایجوز،وقیل یجوز اذاعلم انه یزول به الرمد۔ولایخفی ان حقیقة العلم متعذرة ،فالمراد اذا غلب علی الظن والا فهو معنی المنع اه۔ولایخفی ان التداوی بالمحرم لایجوز فی ظاهر المذهب اصله ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

ددې مقدماتو په رڼا کې اوس د دوا پوزیر بحث مسئلو حکم لیکل کیږي.

## د وینې مسئله

**سوال:** د یو انسان وینه د بل انسان بدن ته داخلول جائز دي او که نه؟

**جواب:** وینه، د انسان برخه ده، کله چې د بدن نه وویستل شي: نو نجسه هم ده د انسان د جزیه حیثیت سره ددې مثال به د ښځې د پیوپه شان وي، د کوم استعمال چې د علاج له پاره فقهاوو (رحمهم الله) جائز لیکلی دی.(عالمگیری ج:٤ ص:١١٢ طبع مصر)[1] وینه هم که په دې باندې قیاس شي؛ نو دابه د قیاس نه بعید نه وي، البته ددې د نجاست پیش نظر ددې به هم هغه حکم وي چې د حرام او نجس شیانو د استعمال پورته په مقدمه کې ذکر شوی دی یعنې:

۱: کله چې مریض داضطرار په حالت کې وي او د ماهر ډاکټر په نظر کې د وینې ورکولو نه پرته د سر بچ کیدو هیڅ لار نه وي؛ نو وینه ورکول جائز دي.

۲: کله چې د ماهر ډاکټر په نظر کې د وینې ورکولو ،،حاجت،، وي یعنې د مریض د هلاکت ویره نه وي، خو د هغه په رایه د وینې ورکولو نه پرته د صحت مند کیدو هیڅ امکان نه وي؛ نو بیا هم وینه ورکول جائز دي.

۳: کله چې د وینې نه ورکولو په صورت کې د ماهر ډاکټر په نزد د مرض اوږدوالي ویره وي؛ نو په دا سې صورت کې هم د وینې گنجائش شته، مگر اجتناب بهتر دی.

**كما فى الهندية: وان قال الطبيب يتعجل شفائك فيه وجهان..**(ج:٥ ص:٣٣٥)

۴: کله چې وینې ورکولو سره-یوازې منفعت یا زینت مقصود وي، یعنې د هلاکت یا مرض د طوالت ویره نه وي، بلکې محض طاقت زیاتول او په حسن کې اضافه کول ترې مقصود وي؛ نو په دا سې صورت کې وینه هیڅ کله ورکول پکار نه دي.

**دویم سوال:** ایا چا مریض ته وینه ورکولو له پاره ددې داخیستلو خرڅولو او قیمت اخیستل هم جائز دي؟

**جواب:** د وینې خرڅول جائز نه دي، خو په کومو حالاتو کې او په کومو شرطونو سره چې اول نمبر کې مریض ته وینه ورکول جائز وگرځول شي په دې حالت کې که چاته پرته د قیمت نه وینه ملاو نه شي؛ نو قیمت ورکولو سره وینه حاصلول د صاحب ضرورت له پاره جائز دي، مگر د وینې ورکونکي له پاره ددې قیمت اخیستل جائز نه دي.

---

...بقيه د تیر مخ]..بول مايوكل لحمه فانه لايشرب اصلا اه .... قوله بآلمحرم اى المحرم استعماله طاهرًاكان او نجسًا ،قوله كما مراى قبيل فصل فى البئرحيث قال: فرع اختلف فى التداوى بالمحرم، وظاهرالمذهب المنع كما فى ارضاع البحرلكن نقل المصنف ثمة وهناعن الحاوى :وقيل يرخص اذاعلم فيه الشفاء ولم يعلم دواء آخر كما خص الخمرللعطشان وعليه الفتوى.اه (ردالمحتارمع الدرالمختارج:٣ ص:٢١١باب الرضاع)_

۱ ] ايضاً پورتنی حواله)_

**دریم سوال:** دکافرو ینه دمسلمان په بدن کې داخلول جائزدي او که نه؟

**جواب:** په نفس جوازکې هیڅ فرق نه شته، خو څنګه چې ظاهره ده چې دکافریافاسق فاجر انسان په وینه کې کوم خبیث اثرات وي: نو دهغې دمنتقل کیدواوپه اخلاق باندې د اثر انداز کیدو قوي خطره ده، ددې له وجې دامت نېکان دفاسقې ښځې پې ورکول هم ناخوښه کړي دي، ددې له وجې دکافر فاسق فاجرانسان دوینې نه دخپل وس ترحدپورې اجتناب کول ضروري دي.

**څلورم سوال:** دښځې اوخاوندپه خپل مینځ کې دوینې دتبادلې څه حکم دی؟

**جواب:** که دښځې خاوندوینه یوبل ته ورکړل شي: نوشرعا په نکاح باندې څه اثرنه پریوځي او نکاح هماغه شان قائمه وي. والله اعلم!

## دانساني اندامونو مسئله

**سوال:** دیوناروغ یامعذوره انسان دعلاج له پاره دبل ژوندي یامړه انسان اعضاء (بندونه) لګول څنګه دي؟

**جواب:** تردې وخت پورې ډاکټرانوهم دژوندي انسان داندامونواستعمال چیرته تجویزکړی نه دی ددې له وجې په دې باندې دنوربحث ضرورت نه شته، بحث طلب مسئله هغه ده چې نن سباپه هسپتالونو کې راپیښیږي اودکوم له پاره چې اپیلونه کیږي هغه داچې کوم انسان ددنیانه روان دی که څه هم دکوم عارض په سبب یاپه څه جرم کې دقتل کیدو له وجې . ددې اجازه دې واخیستل شي چې دمرګ نه وروسته دې دهغه فلانی اندام واخیستل شي اوبل انسان ته دې ولګول شي.

په ظاهره خوپه دې کې هرطرف ته فائده ده، ځکه چې دمړکیدونکي تمام اندامونه فنا کیدونکي دي، که په دې کې یواندام دیوژوندي کس په څه کارباندې راشي اودهغه دمصیبت علاج جوړشي؛ نوپه دې کې څه نقصان دی؟ داداسې معامله ده چې دعامو خلکو نظریوازې ددې په مفیدو اړخونوباندې پریوځي اوددې هغه مهلک نتیجې یې دنظرنه پټې وي دڅه لږ شان ذکرچې په شروع کې شوې ده (په اصل کتاب کې ددې په مضرو اړخونوباندې په تفصیل سره بحث شوی دی ، تلخیص کې هغه برخه حذف شوې ده)

مګرشریعت اسلام له پاره،کوم چې دانسان اوُدانسانیت دظاهري اومعنوي اصلاح اوفلاح ضامن دی، ددې دمضراومهلک نتیجونه یوازې نظرکول اومحض دظاهري فائدوله وجې سره ددې اجازه ورکول ممکن نه دي،شریعت اسلام نه یوازې دژوندي انسان د کار آمد اندامونو، بلکې قطع شوې بیکاره اندامونواواجزاء استعمالول هم حرام ګرځولی دی اود مړانسان یواندام کټ کولوته یې هم ناجائزه ویلي دي اوپه دې سلسله کې دچارضامندي او

اجازه هم دده د اندامونو داستعمال اجازه نه ورکوي اوپه دې سلسله کې دمسلمان او کافر دواړو له پاره یوشان حکم دی، ځکه چې دادانسانیت حق دی چې په ټولوکې برابردي. تکریم انسانیت ته شریعت اسلام هغه حق ورکړی دی چې هیڅ وخت کې، په هیڅ حالت کې، دهیڅ یو انسان اعضاء اواجزاء حاصلولو بیخي طمع ونه ساتي اودغه شان دامخدوم کائنات اودده اندامونه دعام استعمال دشیانو نه بالاتر پاتې شي.کوم چې کټ کولوسره. یاخوراک او دوایانوله پاره اوپه نورومفاداتوکې استعمالیدای شي، په دې باندې څلورواړه امامان اوپوره امت متفق دی[1] اونه یوازې شریعت اسلام، بلکې شرائع سابقه اوتقریباً هرمذهب اوملت کې دغه قانون دی،والله اعلم

## دانساني اندامونو حرمت

**سوال:** زه د(ایم بي بي ایس) اخري کال طالبعلمه یم، زه ستاسومشورې په جنګ اخبارکې لولم، دې وخت کې هم زه دیوې مسئلې سره حاضره شوې یم، په دې وخت کې زماډیوټي د سول هسپتال په وارډS.I.U.T (سنده انسټیټیوټ آف یورولوجی اینډ ټرانسپلانټیشن)کې لګیدلې ده، اوس اوس څه لږ موده مخکې په پاکستان کې په اول ځل cadaver kidney transplantation (د مړي وجودنه ګرده ویستل او ژوندي کس ته لګول) شوي دي. s.i.u.t کې هم دا کارشوی دی اونن سباپه کې هم ددې نوعیت بل اپریشن کیدونکی دی، دا دواړه ګردې چې مړه کس له وجودنه ویستل شوې دي دبهرملک نه رالیږل شوې دي.

اوس مسئله داده چې د وارډکوم ایډمنسټریشن ده هغه موږ سټوډنټس سره په دې باندې خبرې اترې کول غواړي چې که ایا موږ نه یوکس داسې ووایي چې زموږ له مرګ نه وروسته زموږ دبدن یو اندام دیومړکیدونکي کس دسربچ کولوله پاره ورکړو؛ نوزموږ به څه ردعمل وي؟ دهغه وینا ده، چې څه خلک په اسلامي نقطه نظرسره داخبره غلطه ګڼي؛ نوسعودي عرب هم یواسلامي ملک دی، هلته داوو یا اتوکلونو راهیسې دکیډرټرانسپلانټ کیږي، زمادځه دوستانودا ویناده چې په حدیث شریف کې راغلي دي چې دیوانسان سربچ کول دټول انسانیت سربچ کول دي؛ نوکه ددې له پاره موږ donorcard ډک کړو؛ نو زموږ له مرګ نه وروسته زموږ دبدن یواندام وویستل شي؛ نوپه دې کې هیڅ نقصان نه شته.

زمایه دې باره کې خپل خیال دادی چې داسې کول دمړي بې حرمتي ده اوداپه اسلام کې جائزنه دي، اوس زما تاسوته دا درخواست دی چې تاسو دقرآن اوسنت په رڼاکې وفرمایئ

---

[1] ]وقدفصله اصحابناقالوا ان وصلت شعرها بشعر آدمی فهو حرام بلاخلاف سواء كان شعررجل او امرأة وسواء المحرم والزوج وغيرها بلاخلاف لعموم الاحاديث ولانه يحرم الانتفاع بشعرالآدمی وسائراجزائه لكرامته بل يدفن شعره وظفره وسائراجزائه(شرح مسلم ج:۲ص:۲۰٤باب تحريم الواصلة والمستوصلة والواشمة والمستوشمة والنامصةالخ)

چې ستاسو په دې باره کې څه خيال دی؟ لطفا خپل دليلونه سره له ثبوت راکړئ چې ماته ستاسوموقف نوروته رسولواوپوهولوکې اساني وي.

**جواب:** په دې مسئله کې ستاسوموقف صحيح دی اوستاسودملګروموقف غلط دی، په دې سلسله کې څوخبرې په ذهن کې وساتئ:

۱: ستاسودتحريرنه پته لګيږي چې که يوکس له مرګ نه مخکې داسې وصيت وکړي چې دهغه دبدن نه دې اندامونه وويستل شي اوضرورت مندو په بدن کې دې ولګول شي؛ نوبيا خو دهغه دبدن نه اندامونه ويستل کيدای شي،ګني نه، ګويادا اصول تسليم شوي دي چې دمړکس داجازې نه پرته دهغه دبدن اندامونه استعماليدای نه شي.

۲: اوس کوم کسان څوک چې دڅه دين يامذهب قائل نه دي ياددين اومذهب قائل دي، خو دهغوی خيال دادی چې دمذهب زموږ دژوند دهرجائزاوناجائزسره کارنه شته، دداسې خلکو له پاره پورته ذکر شوې اجازت نامې له پاره دمذهب نه داجازت اخيستلوهيڅ ضرورت نه شته، خو ديومسلمان په حيثيت به موږ دې ته کتل وي چې ايازموږ دين اومذهب ددې اجازه ورکوي اوکه نه؟ که دمذهب له طرف نه اجازه وي؛ نوذکر شوی وصيت به جائزوي، ګني دغسې وصيت به غلط لغواوباطل وي.

۳: دا اصول مقررشول؛ نواوس دې ته کتل دي چې ايا الله تعالی انسان ته ددې اندامونو او وجود مالک جوړکړی دی؟ بنده که لږ شان غورهم وکړي؛ نوورته پته به ولګيږي چې دانسان وجود او دهغه اندامونه دهغه ملکيت نه دي.

بلکې داټول سرکاري مشينري ده،کومه چې داستعمال له پاره دې خلکوته ورکړل شوې ده، اوداسرکاري شي ګڼلوسره ددې حفاظت اونګراني هم دده په ذمه لګول شوې ده، لهذاده ته ددې اندامونودتلف کولواجازه نه شته، نه ورته دخرڅولواجازه شته[۱]، همدغه وجه ده چې ده ته د خودکشي اجازه نه شته، بلکې ورته فرمايل شوي دي چې کوم کس خودکشي وکړي دقيامت تر ورځې پورې به په دغه عذاب کې راګيروي[۲]، کله چې انسان دخپل وجود

---

۱ ]مضطر لم يجدمية وخاف الهلاک فقال له رجل :اقطع يدی وکلها اوقال:اقطع منی قطعة وکلها لايسعه ان يفعل ذالک ولايصح امره به کما لايسع للمضطر ان يقطع قطعة من نفسه فياکل ،کذا فی فتاوی قاضی خان (عالمگيری ج:۵ص:۳۳۸،الباب الحادی عشر فی الکراهة فی الاکل ومايتصل به)۔

۲ ]عن ابی هريرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :من تردی من جبل فقتل نفسه فهو فی نارجهنم يتردی فيها خالدًا مخلدًا فيهاابدا، ومن تحسی سما فقتل نفسه فی يده يتحساه فی نارجنهم خالدًا مخلدًا فيها ابدًا ،ومن قتل نفسه بحديدة فحديدته فی يده يتوجّا بهافی بطنه فی نارجنهم خالدًا مخلدًا فيها ابدًا — متفق

مالک نه دی؛ نوانداًمونه خرڅولی هم نه شي اونه يې هبه کولی شي اونه ددې وصيت کولی شي اوکه داسې وصيت وکړي؛ نوداوصيت به دغيرملک کيدوله وجې باطليږي.[1]

۴: ددې پرته داحترام انسانيت همدغه غوښتنه ده چې دده انداًمونه دې دخرڅ مال يا داستعمال شی جوړنه شي، داندامونودهبه کولووصيت کول داحترام آدميت خلاف دي.

۵: په عام ډول داګنېل کيږي چې دمرګ نه وروسته بنده بې حسه شي، داخيال هم صحيح نه دی، هغه يوازې زموږ ددنيادمشاهدې په اعتبارسره بې حسه په نظرراځي، ګني دبل ژوندپه اعتبار سره په هغه کې احساس موجود دی، ددې له وجې دمړي دبدن ټکړې ټکړې کول جائزنه دي اودې سره مړي ته همدغه شان تکليف ملاويږي څنګه چې ژوندي انسان ته ملاويږي، دحضور ﷺ ارشادمبارک مضښ يعني: دمړي هډوکي ماتول هغه شان دي، لکه د ژوندي هډوکي ماتول، ،(مشکوة باب دفن الميت .فصل دوم آخری حديث نبر ۱۷۱۴)[2]

۶: خلک په خپل ژوندکې نه دسترګوعطيه ورکوي اونه دګردو، ځکه چې هغوی ته پته ده چې په دې ژوندکې هغوی ته په خپله ددې انداًمونوضرورت دی، خوله مرګ نه وروسته ډيرپه فياضي سره ددې وصيت کوي، ددې سبب دادی چې ژوندخوژوندګني، خو له مرګ نه وروسته په ژوند يې ايمان نه شته، داسې ګني چې له مرګ نه وروسته به اندامونه سخا اوخاورې شي، په خاورو کې به خاورې شي اوددې اندامونوضرورت به هيڅ راپيښيږي نه، همدغه عقيده دکفارمکه هم وه اوهمدغه عقيده دنن دکافرانوهم ده، کوم مسلمانان چې داسې وصيت کوي، دهمدې کافرانو دعقيدې مطابق له مرګ نه وروسته په ژوند باندې ايمان نه لري.

غرض داچې:

دانساني اندامونوپيوندکاري جائزنه ده اوددې اندامونودهبه کولووصيت باطل دی.

---

عليه، وعنه قال:قال رسول ا لله صلى الله عليه وسلم :الذى يخنق نفسه يخنقها فى النار ،والذى يطعنها يطعنها فى النار ،رواه البخارى (مشكوة ص:۲۹۹كتاب القصاص ،طبع قديمى كتب خانه)۔

۱ ] ومن شرائط الوصية ان يكون الرجل مالكًا وكون الشىء قابلاً للتمليك (البحرالرائق ج:۸ ص:۴۰۳ ردالمحتارج:۶ص:۶۴۹كتاب الوصايا،طبع ايچ ايم سعيد)۔

۲ ] عن عائشة رضى الله عنها ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: كسرعظم الميت ككسره حيًا ،رواه مالك وابوداود وابن ماجة)۔

# ❖ د جنازې لمونځ ❖

## د حضور ﷺ د جنازې لمونځ او تدفين څنګه وشو او د خلافت فيصله څنګه وشوه؟

**سوال:** دنبي اکرم ﷺ له وفات نه وروسته دهغه مبارک جنازه چا وکړه؟ او د حضور ﷺ تدفين اوپه غسل کې کوموکوموحضراتوبرخه واخيسته؟ اودحضور ﷺ نه وروسته د خلافت په منصب باندې څوک مقرر شواوايا دافيصله په اتفاق سره شوې وه؟

**جواب:** ۳۰ صفر(اخري چارشنبه) باندې دحضور ﷺ دمرض الوفات ابتداء وشوه[۱] په (۸) ربيع الاول باندې دزيارت په ورځ په ممبرباندې تشريف فرماشو او ارشاد يې وفرمايه، چې په هغه کې يې ډېروامورو په باره کې تاکيداونصيحت وفرمايه[۲]، په (۹) ربيع الاول دجمعې په شپه مرض شدت اختيارکړ اودرې ځله بې هوشه شو، ددې له وجې يې جومات ته لاړ نه اودرې ځله يې وفرمايل چې: ابوبکر ته ووايئ چې خلکوته لمونځ ورکړي، دا لمونځ حضرت ابوبکر رضي الله عنه ورکړ اوباقي درې ورځې هم هغه امامت وکړ، ګويا دحضور ﷺ په ژوند مبارک کې حضرت ابوبکر رضي الله عنه د اوولسو لمونځونو امامت وکړ، دکوموسلسله چې دماخسوتن دلمانځه نه شروع شوه اوپه (۱۲) ربيع الاول ددوشنبې په ورځ دسهارپه لمانځه باندې ختمه شوه[۳].

دناروغي په ورځوکې يوه ورځ دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها په کورکې(چې بيا وروسته

---

۱ ]فصل فى حوادث السنة الحادية عشرة من الهجرة ..... وفيها مرض رسول الله صلى الله عليه وسلم فى آخر الاربعاء من صفر، وكان ذلک اليوم ثلثين من شهر صفر المذكور ..... وكانت مدة مرضه صلى الله عليه وسلم ثلاثة عشر يوماً على القول المشهور الذى عليه الاكثرون (بذل القوة فى حوادث سنى النبوة ص:۲۹٦ طبع جامعة السند حيدرآباد پاكستان)

۲ ] وفيها مرض رسول الله صلى الله عليه وسلم فى آخرالاربعاء من صفروكان ذالک اليوم الثلاثين من شهر صفرالمذكور......وفيهافى ايام ذالک المرض خرج الى المنبر فخطب عليه قاعدًا لعذر المرض واخبر فيها بامور كثيرة تحتاج اليه امته وكانت تلک الخطبة يوم الخميس الثامن من شهر ربيع الاول....الخ. (بذل القوة فى حوادث سنى النبوة ص:۲۹٦نه تر۲۹۸پورى فصل فى حوادث السنة الحادية عشرة من الهجرة)

۳] فيها لمااشتدعليه صلى الله عليه وسلم المرض ليلة الجمعة التى هى التاسعة من شهر ربيع الاول فاغمى عليه صلى الله عليه وسلم ثلاث مرات ،ولم يستطع الخروج الى صلاة العشاء ،قال ثلاث مرا ت :مروا ابابكرفليصل بالناس !فصلى ابوبكررضى الله تعالى عنه مقام النبى صلى الله عليه وسلم تلک العشاء ثم لم يزل يصلى بهم الصلوة الخمس فى تلک الايام الثلاثة الباقية ،حتى كانت صلوة ابى بكر رضى الله عنه التى صلاها بهم فى حياته صلى الله عليه وسلم سبع عشرة صلوة مبداها صلاة العشاء من ليلة الجمعة ومنتهاها صلوة الفجرمن يوم الاثنين الثانى عشرمن شهر ربيع الاول (بذل القوة ص:۳۰۰)

د حضور ﷺ اخري ارام ګاه هم جوړ شوه ) اکابرو صحابه کرامو ته يې نصيحت وفرمايلو:
((له وفات نه وروسته ماته غسل راکړئ اوکفن راته واغوندوئ اوزماکټ زمادقبرپه خوا کې (چې په همدې کورکې به وي)کيږدئ اود لږساعت له پاره بهرووځئ، زما جنازه به اول جبرائيل ﷺ وکړي، بيا ميکائيل ﷺ، بيااسرافيل ﷺ، بياعزرائيل ﷺ، دهريوسره به د فرښتو عظيم لښکرونه وي، بيازماداهل بيت سړي، بيا ښځې، له امام نه پرته (ځانته ځانته)بياتاسوخلک ډلې ډلې راشئ اوځانته ځانته لمونځ وکړئ[۱]))
دهمدې مطابق عمل وشو، اول ملائيکود حضور ﷺ جنازه وکړه، بياداهل بيت سړيو، بياښځو، بيا مهاجرينو، بياانصارو،بياښځو، بياماشومانو، ټولوځانته ځانته لمونځ وکړ اوهيڅ يوکس امام نه و[۱].
حضور ﷺ ته غسل حضرت علي (کرم الله وجهه) ورکړ، حضرت عباس اودهغه زامنوفضل اوقثم ﷺ دهغه مددکولو، نورداچې دحضور ﷺ دوه ازاد شوي غلامان: حضرت اسامه بن زيداوحضرت شقرآن ﷺ هم په غسل کې شريک وو، حضور ﷺ ته درې سخولي (دسخول جوړکړې شوې)جاموکې کفن ورکړل شو[۲].
دحضور ﷺ دوفات په ورځ (۱۲ربيع الاول) په سقيفه بني ساعده کې دحضرت ابوبکر صديق ﷺ په لاس باندې دخلافت بيعت وشو، اول اول دخلافت په مسئله باندې مختلفې رايې وړاندې شوې، خو دمعمولي بحث نه وروسته بالاخردحضرت ابوبکر صديق ﷺ په انتخاب باندې اتفاق وشو اوتمام اهل حل وعقد دهغه په لاس باندې بيعت وکړ[۳].

## د حضور ﷺ د جنازې لمونځ چا ورکړی و؟

**سوال:** دحضور ﷺ دجنازې لمونځ شوی و اوکه نه؟ اودحضور ﷺ د جنازې لمونځ چاورکړی و؟ مهرباني وکړئ اوجواب راکړئ، ځکه چې نن سبادامسئله زموږ ترمينځه دلوی بحث وجه

---

۱ ] وفيها فى ايام مرضه صلى الله عليه وسلم وكونه صلى الله عليه وسلم فى بيت عائشة رضى الله عنها اوصى لاصحابه فقال:اذا انا مت فاغسلونى وكفنونى واجعلونى على سريرى هذاعلى شفيرقبرى فى بيتى هذا ثم آخرجوا عنى ساعة فاول من يصلى على جبريل ،ثم ميكائيل ،ثم اسرافيل ،ثم ملك الموت ،كل واحدمنهم بجنوده ،ثم يصلى على رجال اهل بيتى ،ثم نسائهم ،ثم ادخلوا انتم فوجًا فوجًا فصلوا على .فوقع كماقال صلى الله عليه وسلم فصلى عليه صلى الله عليه وسلم اولاً الملائكة عليهم السلام ثم رجال اهل بيته ،ثم نساءهم ثم رجال المهاجرين ،ثم الانصار،ثم النساء ،ثم الغلمان فصلوا كلهم افذادا منفردين لايومهم احد (بذل القوة ص:۲۹۹، فصل فى حوادث السنة الحادية عشرة من الهجرة)
۲ ] وفيها وقع انه لما توفى صلى الله عليه وسلم غسله على وحضرمعه العباس وابناه الفضل وقثم ومولیا رسول الله صلى الله عليه وسلم ورضى الله عنهما اسامة وشقرآن ......رضى الله عنهم وكفن فى ثلاثة اثواب بيض سحولية (بذل القوة ص:۳۰۲فصل فى حوادث السنة الحادية عشرة من الهجرة ،طبع حيدرآباد)۔
۳ ] البداية النهاية ج:۵ص:۲۲۳تا ۲۷۰،طبع دارالفكر،بيروت)

جوړه شوې ده.

**جواب:** دحضورﷺدجنازې لمونځ دعام دستور په شان دجمعې سره نه وه شوې اونه څوک امام جوړ شوی و، ابن اسحاق رحمه الله اوداسې نور... داهل سيرنه نقل کړي دي چې تجهيز او تکفين نه وروسته دحضورﷺ جنازه مبارکه په حجره شريفه کې کيښودل شوه، اول سړي راغلل او ډلې ډلې لمونځ يې وکړ، بيا ښځو، بيا ماشومانو[1]۔

حضرت حکيم الامت اشرف علي تهانوي رحمه الله په نشرالطيب کې ليکي:

اوپه ابن ماجه کې دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دی چې: دحضورﷺجنازه تياريدونه وروسته کيښودل شوه، اول سړي راغلل په ډلې ډلې يې لمونځ وکړ، بيا ښځې راغلې، بياماشومان راغلل اوپه دې لمانځه کې څوک امام نه شو. (نشرالطيب ص:۲۴۴مطبوعه تاج کمپنی)

علامه سهيلي رحمه الله په ,,الروض الانف،،(ج:۲ص:۳۷۷مطبوعه ملتان) کې ليکي: ,, دا د حضورﷺ خصوصيت و اوداسې د حضورﷺ په حکم باندې شوي و اوداابن مسعود رضی الله عنه نه روايت دی چې حضورﷺ ددې وصيت فرمايلی و[2]،،

علامه سهيلي رحمه الله داروايت دطبراني اوبزارپه حوالې سره، حافظ نورالدين هيثمي رحمه الله (مجمع الزوائد)(ج:۹ص:۲۵)کې د(بزاراوطبراني)[3]په حوالې سره اوحضرت تهانوي رحمه الله (نشرالطيب) کې د واحدي رحمه الله په حواله سره داروايت نقل کړی دی اوددې الفاظ دادي:

,, موږ عرض وکړ: يارسول الله! په تاسوباندې به جنازه څوک کوي؟ ويې فرمايل کله چې دغسل او کفن نه فارغ شئ؛ نوزما جنازه دقبرسره خواکې کيږدئ اولرې شئ، اول به ملائيکې د جنازې لمونځ کوي، بياتاسوډلې ډلې راځئ اولمونځ کوئ، اول دې اهل بيت سړي لمونځ

---

۱ ]وقال محمد بن اسحاق لما مات رسول الله صلى الله عليه وسلم ادخل الرجال فصلوا عليه،بغير امام ارسالاً حتى فرغوا ثم ادخل النساء فصلين عليه ثم دخل الصبيان فصلوا عليه ... لم يؤمهم على رسول الله صلى الله عليه وسلم احد ، وقال الواقدى لما ادرج رسول الله صلى الله عليه وسلم فى اكفانه وضع على سريره ثم وضع عى شفير حفرته ثم كان الناس يدخلون عليه رفقاء لا يؤمهم عليه احد (البدايه والنهايه ج:۵،ص: ۲۶۵ كيفية الصلوة عليه صلى الله عليه وسلم وايضاً فى الروض ج:۲،ص: ۳۷۷)

۲ ] وذكر ابن اسحاق وغيره ان المسلمين صلوا عليه افذاذاً لا يؤمهم احد، كلما جاءت طائفة صلت عليه وهذا خصوص به صلى الله عليه وسلم ولا يكون هذا الفعل الا عن توقيف وكذلک روى انه اوصى بذلک ذكره الطبرى مسند ....... وقد رواه البزار ايضاً عن طريق مرة عن ابن مسعود .....الخ (الروض الانف ج:۲، ص:۳۷۷ كيف صلى على جنازته عليه السلام طبع ملتان)

۳ ]د مجمع الزوائد عبارت دا دی : فقلنا : فمن يصلى عليک منا ؟ فبكينا وبكى وقال ..... اذا غسلتمونى و وضعتمونى على سريرى فى بيتى هذا على شفير قبرى فاخرجوا عنى ساعة فان اول من يصلى على خليلى وجليسى جبريل ..... ثم الملائكة صلى الله عليه وسلم ، ثم ادخلوا علىّ فوجاً فوجاً فصلوا على وسلموا تسليماً ...... وليبدا بالصلوة على رجال اهل بيتى ثم انتم بعد .... رواه البزار .... ورواه الطبرانى فى الاوسط بنحوه (مجمع الزوائد ج:۸،ص: ۴۲۷ باب فى وداعه صلى الله عليه وسلم ، طبع دارالكتب العلمية بيروت)

وکړي بیا د هغوی ښځې بیا تاسو خلک.،،

په سیرة المصطفی ﷺ کې د طبقات ابن سعد په حوالې سره د حضراتو ابوبکر او عمر رضی الله عنهما دیوې ډلې سره د لمونځ کول نقل دي.[1]

## د بیلمازه د جنازې لمونځ وشي او که نه ؟

**سوال:** یو مولانا صاحب په خپل تقریر کې وویل چې حضور ﷺ کله هم د بیلمازه جنازې نه وه کړې، تردې پورې چې یولک نهه ویشت زره صحابه کرامو رضی الله عنهم هم کله د چا بیلمازه جنازه خو پریږده د هغه د لاس اوبه هم نه وې څښلې او حضرت غوث الاعظم عبدالقادر جیلاني رحمه الله کله هم د بیلمازه جنازه نه کوله، تاسو ته مو عرض دادی چې تاسو هم د دوی پیروکار یئ تاسو ټول مولانا صاحبان د بیلمازه د جنازې کولو نه په یوځای بائیکاټ ولې نه کوئ؟ که تاسو داسې وکړئ؛ نو څوک به هم بیلمازه پاتې نه شي.

**جواب:** د حضور ﷺ په زمانه کې به هیڅوک بیلمازه نه و، په هغه زمانه کې به خوبې ایمانه منافقانو هم خلکو ته د ښودنې له پاره لمونځونه کول، حضرت پیران پیر د حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله مقلدو او د امام احمدبن حنبل رحمه الله په مذهب کې د تارک الصلوة په باره کې دوه روایتونه دي، یو دا چې کوم کس پرته د شرعي عذر نه درې لمونځونه محض د سستي له وجې پریږدي؛ نو هغه کافر او مرتد دی او د خپل دارتداد له وجې واجب القتل دی، د قتلیدو نه وروسته دې نه هغه ته غسل ورکړل شي او نه دې هغه د مسلمانانو په قبرستان کې دفن شي. ممکنه ده چې حضرت پیران پیر رحمه الله هم په دې قول باندې عمل کولو، دویم روایت دادی چې هغه مسلمان دی، خو د سزا په ډول به قتل شي او د قتل کیدو نه وروسته به د هغه جنازه هم اداکیږي او هغه به د مسلمانانو په قبرستان کې دفن کیږي، امام ابن قدامه په ،،المغنی،، کې په دې مسئله باندې په تفصیل سره لیکلي دي، اهل علم رجوع وفرمایي.[2] (المغنی مع الشرح الکبیر ج:۲ ص:۲۹۸-۳۰۱)

د امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله مذهب هماغه دی چې پورته د امام احمد رحمه الله په دویم روایت کې ذکر شو، چې تارک الصلوة کافر نه دی، مګر د هغه سزا قتل دی او د قتل نه وروسته به د هغه

---

۱ ] البدایة والنهایة ج:۵ ص:۲۶۵، طبع دارالفکر بیروت)۔

۲ ] وان ترکها تهاونًا اوکسلاً دعی الی فعلها وقیل له :ان صلیت والا قتلناک ،فان صلی والا وجب قتله، ولایقتل حتی یحبس ثلاثاویضیق علیه فیها.،ویدعی فی وقت کل صلاة الی فعلها ویخوف بالقتل ،فان صلی والا قتل بالسیف وبهذا قال مالک وحماد بن زید ووکیع والشافعی ......والثانیة لایجب قتله حتی یترک ثلاث صلوات ویضیق وقت الرابعة عن فعلها ......فروی انه یقتل لکفره کالمرتد فلایغسل ولایکفن ولایدفن بین المسلمین ......والروایة الثانیة یقتل حدا مع الحکم باسلامه کالزانی مع المحصن وهذا اختیار ابی عبدالله بن بطة وانکرقول من قال انه یکفر.....وهذا قول اکثرالفقهاء وقول ابی حنیفة ومالک والشافعی ......الخ (المغنی والشرح الکبیر ج:۲ص:۲۹۹، ۳۰۰)

جنازه هم کیږي او د مسلمانانو په قبرستان کې به دفن کیږي (شرح مهذب ج:۳ص:۱۳)[۱]

د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد تارک الصلوة دې قید شي او هغه دې و وهل شي تر دې پورې چې په دې حالت کې هغه مړ شي[۲]، له مرګ نه وروسته به د هغه جنازه هم کیږي[۳] د دې تفصیل نه معلومه شوه چې د بیلمازه سزا ډیره سخته ده، خو د هغه جنازه جائز ده، الله تعالی دې ټول مسلمانان د ترک الصلوة له ګناه نه بچ کړي.

## د جنازې د لمانځه په وخت د شریکیدو په ځای جدا دریدل

**سوال:** زیاتر دا په نظر راځي چې خلک د یوې جنازې سره راځي او کله چې د جنازې لمونځ اداء کیږي؛ نو زیات تعداد جدا یو طرف ته دریږي، څومره د تکلیف او د افسوس خبره ده چې کوم خپلوان د دې دنیا نه رخصت شوي دي د هغوی اخري لمونځ هم موږ نه شو اداء کولی، حالانکې د کور نه خو د دې مقصد له پاره راغلي و او بیا د لمانځه نه مخ اړوي، د لمونځ نه داسې قسم نفرت کونکو له پاره په قرآن او سنت کې څه احکامات دي؟

**جواب:** دا وینا خو شاید چې صحیح نه وي چې د دوی د لمونځ نه نفرت دی، البته دا وینا صحیح ده چې له دوی سره د لمانځه اهتمام نه شته، پنځه وخته لمونځ فرض عین دی[۴] او د جنازې لمونځ فرض کفایه دی[۵] کوم خلک چې فرض عین نه شي اداء کولی د دوی نه د فرض کفایه د اداء کولو څه شکایت دی؟

## د بیلمازه د جنازې لمونځ

**سوال:** په یو کلي کې یو انسان مړ شو، هغه ډیر بیلمازه و، د هغه کلي امام وویل چې زه د ده جنازه نه کوم، د دې جګړې له وجې د کلي خلکو دویم مولوي صاحب راوست، هغه فتوا ورکړه

---

۱ ] ومن وجبت علیه الصلاة وامتنع من فعلها .......وان ترکها وهو معتقد لوجوبها وجب علیه القتل ...... (فرع) اذا قتل فالصحیح انه یغسل ویصلی علیه ویدفن فی مقابرالمسلمین (شرح المهذب ج:۳ص:۱۳، ۱۵)

۲ ]وتارکها عمدًا مجانة یحبس حتی یصلی (درمختار) وفی الشامیة:ویحبس حتی یموت اویتوب .......الخ (ردالمحتارمع الدرالمختار ج:۱ص:۳۵۳،۳۵۲کتاب الصلاة)۔

۳ ]فکل مسلم مات بعدالولادة یصلی علیه صغیرًا کان اوکبیرًا ،ذکرًا کان او انثی ......لقول النبی صلی الله علیه وسلم :صلوا علی کل بروفاجر.......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۳۱۱) وایضًا:عن عبدالله بن عمر قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :صلوا علی من قال لا اله الا الله ولان ذالک اجماع المسلمین فانا لا نعلم فی عصرمن الاعصار احدًا من تارکی الصلاة ترک تغسیله والصلاة علیه ودفنه فی مقابرالمسلمین (المغنی والشرح الکبیر ج:۲ص:۳۰۱)۔

۴ ] والفرض نوعان:فرض عین وفرض کفایة ،وفرض العین نوعان :احدهما الصلوات المعهودة فی کل یوم ولیلة والثانی صلاة الجمعة .......الخ (بدائع الصنائع ج:۱ص:۸۹کتاب الصلاة)

۵ ] انها فرض کفایة اذا قام به البعض یسقط عن الباقین..الخ (بدائع ج:۱ص:۳۱۱صلاة الجنازة ،طبع سعید)

چې دبیلمازه جنازه کیدای شي، لهذادغه دویم مولوي صاحب دجنازې لمونځ وکړ، مهرباني وکړئ اوموږ ته دقرآن اوسنت په رڼا کې ووایئ چې دبیلمازه جنازه جائزده اوکه نه؟

**جواب:** بیلمازه که دالله تعالی اودرسول ﷺ دحکم نه منکرنه و؛ نو دهغه دجنازې لمونځ کول پکاردي، دکلي مولوي صاحب که دخلکو دعبرت له پاره دهغه جنازه ونه کړه؛ نو هغه هم غلط وکړ اوکه هغه داوايي چې دده جنازه صحيح نه ده؛ نودابه غلطه خبره وه.[1]

## د بیلمازه مړي راښکل جائز نه دي او د هغه د جنازې لمونځ هم جائز دی

**سوال:** زموږ په محله کې يوصاحب اوسيده، هغه وفات شو، هغه چاپه لمونځ کولوباندې نه و ليدلی، ددې له وجې خلکودهغه مړی څلويښت قدمه راښکلواوبيايې خښ کړ، زه ډیرحیران شوم اوديو بزرګ نه مې پوښتنه وکړه چې داسې يې ولې وکړل؟ هغه راته جواب راکړ، چې که يوکس په خپل ټول عمرکې يولمونځ هم ونکړي؛ نودهغه له پاره حکم دی چې دهغه مړی دې څلويښت قدمه پورې راښکل کيږي؟

**جواب:** لمونځ نه کول کبيره ګناه ده اوپه قرآن کريم او حديث کې د بيلمازه له پاره سخت الفاظ راغلي دي، خوکه يوکس دلمانځه نه منکرنه وي؛ نودهغه دمړي بې حرمتي جائزنه ده[2] اودهغه جنازه به هم کيږي[3] البته که هغه دلمانځه دفرضيت قائل نه و؛ نوهغه مرتددی اودهغه جنازه جائزنه ده.[4]

## د ناواده کړي جنازه جائزده

**سوال:** ډیرو خلکونه مې اوريدلي دي چې که سړی ددويشتوکلونونه زيات شي او واده ونه کړي او ناواده کړئ مړشي؛ نودهغه جنازه نه دي کول پکار، ايادا دقرآن اوحديث په رڼا صحيح ده؟ که چاتعليم حاصلولواو واده کول ونه غواړي؛ نودهغه په باره کې تحرير وفرمايئ!

**جواب:** تاغلط اوريدلي دي، دناواده کړي جنازه هم ضروري اوفرض ده، څنګه چې دواده

---

۱] تيره شوی حاشيه(فکل مسلم مات بعدالولادة يصلی عليه صغيرًاکان اوکبيرًا ذکرًا کان...الخ) اوګورئ!)

۲ ]عن عائشة ان رسول الله صلی الله عليه وسلم قال:کسرعظم الميت ککسره حيًا،يعنی فی الاثم ،کمافی رواية قال الطيبی اشارة الی انه لا يهان ميتا کمالايهاحيًا قال ابن الملک والی ان الميت يتالم ......وقداخرج ابن ابی شيبة عن ابن مسعود قال:اذی المومن فی موته کاذاه فی حياته (مرقاة شرح مشکوة ج:۲ص:۳۸۰)_

۳ ] الصلاة علی الميت ثابتة بمفهوم القرآن قال الله تعالی :ولاتصل علی احد منهم مات ابدًا ،والنهی عن الصلاة علی المنافقين يشعربثبوتها علی المسلمين الموافقين وثابتة بالسنة ايضًاقال عليه السلام :صلوا علی من قال لا اله الا الله ولا خلاف ذالک وهی فرض علی الکفاية ويسقط فرضها بالواحد......الخ ( الجوهرة النيرة ج:۱ص:۱۰۷)_

۴ ] واما المرتد فيلقی فی حفرة کالکلب ......الخ (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۲۳۰)_

کړي ده[1] خو نکاح د عفت محافظه ده.

## د جنازې د لمانځه د جواز له پاره ایمان شرط دی واده نه

**سوال:** که یو سړی واده ونه کړي او مړشي؛ نو د هغه جنازه جائز نه ده، همدغه شان که یو ښځه واده ونه کړي یا د هغې رشته رانه شي او واده نه شي؛ نو ایا د هغې جنازه جائز ده؟ نن سبا جینکۍ ډیرې دي او ډیر جینکو عمرونه زیات شي، خو د هغوی رشته نه راځي او په دې حالت کې هغوی وفات شي.

**جواب:** دا غلطه ده چې که یو سړی واده ونه کړي او مړشي؛ نو د هغه جنازه جائز نه ده، ځکه چې د جنازې د جائز کیدو له پاره د مړي مسلمان کیدل شرط دي واده کیدل شرط نه دي.[2]

## د ځان وژونکي د جنازې لمونځ دې د معاشرې ممتاز خلک نه اداکوي

**سوال:** یو کس خودکشي وکړه، د جنازې په وخت کې په حاضرینو کې اختلاف پیدا شو، په دې باندې د نژدې دوو مولویانو صاحبانو نه پوښتنه و شوه؛ نو معلومه شوه چې دیوې خاص ډلې خلک یعنې مفتي، عالم، دین دار وغیره نه جنازه ورکولی شي او نه جنازه کولی شي، اوس کوم فریق چې په جنازه کې شریک و، هغوی غیرشامل فریق ته وایي چې تاسو خلک د ثواب نه محروم پاتې شوئ او دویم فریق اولنې ته وایي چې تاسو ګناه کړې ده، مهرباني وکړئ او تاسو د دواړو ډلو شرعي حیثیت نه موا ګاه کړئ!

**جواب:** خودکشي ډیر لوی جرم دی، د دې له وجې فقها کرامو لیکلي دي چې مقتدا او ممتاز خلک دې د ده جنازه نه کوي، چې خلک د دې کار نه نفرت وکړي[3] عوام دې وکړي[4] البته په کونکو باندې هیڅ ګناه نه شته او نه په ترک کونکو باندې، د دې له وجې د دواړو ډلو په یو بل باندې طعن او الزام قطعي غلط دی.

---

۱ ] تیره شوی حاشیه (الصلاة علىٰ الميت ثابتة بمفهوم القرآن قال الله تعالى :ولاتصل...الخ)۔

۲ ] تیره شوی حاشیه (الصلاة على الميت ثابتة بمفهوم القرآن قال الله تعالى :ولاتصل...الخ) و ایضاً وشرطها اسلام الميت......الخ (هندية ج:۱ص:۱٦۲)۔

۳ ]ولايصلى على البغاة وقطاع الطريق عندنا وقال الشافعي يصلى لانهم مسلمون ......فدخلوا تحت قول النبي صلى الله عليه وسلم :صلوا على كل بر وفاجر. ولنا ما روى عن على انه لم يغسل اهل نهر وان ولم يصل ،فقيل له :اكفارهم؟فقال:لا ! ولكن هم اخواننا بغوا علينا،اشار الى ترك الغسل والصلاة عليهم اهانة لهم ليكون زجرًا لغيرهم وكان ذالك بمحضر من الصحابة رضى الله عنهم ولم ينكرعليه احد فيكون اجماعًا وهو نظير المصلوب ترك على خشبة اهانة له وزجرًا لغيره (بدائع الصنائع ج:۱ص:۳۱۲،والكلام فى صلاة الجنازة فى مواضع ،طبع سعيد)۔

٤ ]من قتل نفسه ولو عمدًا يغسل ويصلى عليه به يفتى وان كان اعظم وزراً من قاتل غيره......الخ (درمختارمع الشامي ج:۲ص:۲۱۱)۔

## د ځان وژونکي د جنازې لمونځ

**سوال:** که يو سړي د زهرو ګولۍ وخوړه، يعنې خودکشي يې وکړه او مړشو؛ نو دده د جنازې د کولو له پاره يو عام سړي ته وويل شي يا د مسجد خطيب يا امام ته، په دې کې کوم يو سړی بهتره دی چې د جنازې لمونځ پرې وکړي؟ او داسې جنازه کول پکار ده اوکه نه؟

**جواب:** دځان وژونکي په جنازه کې اختلاف دی، صحيح داده چې دده د جنازې لمونځ دې وکړل شي اوبهتره داده چې عام خلک يې ادا کړي، معززه خلک دې نه اداء کوي.[۱]

## د غير الله نه د خير او شر د توقع کونکي د جنازې لمونځ اداء کول

**سوال:** يو سړی چې په ظاهرکې مسلمان وي او د شرک پشان عمل هم کوي، يعنې د غير الله نه د خير او د شر توقع ساتي داسې سړی که مړ شي نو دده د جنازې لمونځ اداء کول او دده له پاره د مغفرت دعا کول جائز دي اوکه نه؟

**جواب:** د ايماني کمزوري په وجه د غير الله نه د خير توقع ساتل او دده د شر نه ويريدل دا عامه خبره ده په دې وجه يوازې د دې وجې نه د يو مسلمان د جنازې لمونځ پريښودل نه دي پکار، الله تعالی دې ګناه ورته معاف کړي.[۲]

## د مقروض په جنازه کې د حضور ﷺ شرکت او د قرض اداکول

**سوال:** ماپه رحمة اللعالمين، دويم جلد ص: ۴۲۱ کې لوستلي دي چې کوم مسلمان باندې قرض پاتې شي اووفات شي، زه به دهغهٔ قرض اداکوم، کوم مسلمان چې ورثه پريږدي اووفات شي دهغه وارثان به يې سنبالوي.

**جواب:** داحديث چې تاسو، رحمت للعالمين، په حوالې سره نقل کړی دی صحيح دی، حضور ﷺ به دمقروض جنازه نه کوله، بلکې نوروته به يې د کولوحکم ورکاو، کله چې الله تعالی وسعت ورکړ؛ نو حضور ﷺ به دمقروض قرض په خپله ذمه اخيست اوجنازه به يې کوله.[۳]

---

[۱] من قتل نفسه ولو عمدًا يغسل ويصلى به يفتى ......الخ (الدرالمختارمع الردج:۲ص:۲۱۱)، ومن قتل نفسه عمدًا يصلى عليه عند ابی حنيفة ومحمد رحمهماالله وهو الاصح كذافی التبيين (عالمگيری ج:۱ص:۱۶۳)

[۲] فالدليل على فرضيتها ما روی عن النبی صلى الله عليه وسلم انه قال:صلوا على كل بر وفاجر (بدائع الصنائع ج:۱ص:۳۱۱كتاب الصلاة ،والكلام فی صلاة الجنازة ،طبع سعيد)

[۳] عن ابی هريرة رضی الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يوتی بالرجل المتوفی عليه الدين فيقول :هل ترک لدينه من قضاء ؟ فان حدث انه ترک وفاء صلى عليه والا قال للمسلمين:صلوا على صاحبكم ،فلمافتح الله عليه الفتوح قام فقال:انا اولی بالمومنين من انفسهم فمن توفی من المومنين وترک دينًافعلی قضاءه ومن ترک مالا فهو لورثته ،وايضًا:ان النبی صلى الله عليه وسلم اتی برجل ليصل عليه فقال النبی صلى الله عليه وسلم :صلوا على صاحبكم فان عليه دينًا قال ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

## د شهید د جنازې لمونځ ولې؟ کله چې شهید ژوندی دی؟

**سوال:** په قرآن کریم کې د الله تعالی ارشاد دی چې: مومن که د الله تعالی په لاره کې ووژل شي نو هغوی ته مړشوی مه وایئ، بلکې هغه ژوندی دی، ددې حقیقت نه دا سوال پیدا کیږي چې چونکې شهید ژوندی دی، نو بیا د شهید د جنازې لمونځ ولې کیږي؟ د جنازې لمونځ خو د مړو کیږي؟
**جواب:** ستاد سوال جواب مخکې په همدې آیت کې موجود دی. هغوی ژوندي دي مګر (تاسو د هغوی د ژوند) شعور نه لرئ!
ددې آیت نه معلومه شوه چې قرآن کریم د شهیدانو د کوم ژوند ذکر فرمایلی دی، هغه د دوی دنیاوي ژوند نه دی، بلکې بل قسم ژوند دی، کوم ته چې برزخي ژوند وایي او کوم چې زموږ د شعور او فهم نه اوچت دی، د دنیا ژوند ترې مراد نه دی، چونکې هغه حضرات و دنیاوي ژوند پوره کړاو د دنیا نه رخصت شوي دي، ددې وجې نه موږ د هغوی د جنازې په لمونځ او د هغوی په تدفین مکلف یو او د هغوی وراثت تقسیمیدای شي او د هغوی کونډې د عدت نه وروسته دویمه نکاح کولی شي.[1]

## د باغي، ډاکو او د مورپلار د قاتل د جنازې لمونځ نشته

**سوال:** قاتل که د سزا په طور سره قتل کړل شي یا ورته پانسي ورکړل شي؟ د هغه د جنازې د لمونځ په باره کې څه حکم دی؟ که د مورپلار قاتل وي؛ نو په دې صورت کې څه حکم دی؟ د فاسق، فاجر او زناکار په مرګ باندې د جنازې د لمونځ په باره کې څه حکم دی؟
**جواب:** د جنازې لمونځ د هر ګناه ګار مسلمان له پاره دی، خو که باغي او ډاکو په مقابله کې مړه کړل شي؛ نو د هغوی جنازه دې نه کیږي، نه دې هغوی ته غسل ورکول کیږي،[2] همدغه شان چا چې په خپل مورپلار کې څوک قتل کړی وي، هغه دې په قصاص کې قتل کړل شي؛ نو د هغه جنازه به هم نه کیږي او که په خپل مرګ مړشي؛ نو د هغه جنازه به کیږي؛ خو بیا هم قابل احترام خلک دې د هغه په جنازه کې شرکت نه کوي.

---

...بقیه د تیر مخ]..ابوقتادة:هوعلي! فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم :بالوفاء فقال:بالوفاء فصلى عليه (ترمذی شریف ج:۱ص:۲۰۵)۔

۱ ] فقداخبر الله تعالى فيها عن الشهداء انهم احياء فى الجنة يرزقون ولامحالة انهم ماتوا وان اجسادهم فى التراب وارواحهم حية كارواح سائرالمومنين (قرطبي ج:٤ص:۱۷۲)۰وایضاًفی البدائع :فامافی حق احکام الدنيا فالشهيد ميت يقسم ماله وتنكح امراته بعدانقضاء العدة......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۳۲۵حکم الشهادة فى الدنيا)

۲ ]وهی فرض على كل مسلم مات خلا اربعة بغاة طريق فلايغسلوا ولايصلى عليهم (درمختار ج:۲ص:۲۱۰،کتاب الصلاة ،باب صلاة الجنازة)۔

## د مرتد او غیر مسلم د جنازې لمونځ

**سوال:** یو سړی د معلوماتو باوجود د یو مرتد د جنازې په لمانځه کې شریکیږي او دی د مسلمانانو په قبرستان کې دفن کوي، دده له پاره دمغفرت دعا ګانې کوي،آیا داسې کونکي مسلمانان پاتې کیږي او که نه؟

**جواب:** د یو مرتد د جنازې لمونځ کول جائز نه دي،[۱] نه هغه د مسلمانانو په قبرستان کې دفن کول جائز دي،[۲] د قرآن کریم د صریح نص[۳] نه پس کوم سړی چې د یو مرتد جنازه جائز ګڼي، دده ایمان ځي[۴] او نکاح یې هم ماته شوه، په ده باندې د ایمان د تجدید نه پس دوباره نکاح لازمه ده[۵]

## د مرتد مړي ته د غسل ورکونکي شرعي حکم

**سوال:** کوم مسلمان چې د مرتد مړي ته غسل ورکړ، د معلوماتو باوجود، ددې ټولو په باره کې چې کوم شرعي حکم دی هغه ولیکئ، او بل دا چې ددوی د نکاح څه حکم دی، ماتیږي او که نه؟

**جواب:** مرتد ته غسل ورکول هم جائز نه دي کوم سړی چې دا جائز ګڼي دده هماغه حکم دی کوم چې پورته لیکل شوی دی.[۶]

## د قادیاني د جنازې لمونځ اداء کول

**سوال:** آیا د قادیاني د جنازې لمونځ اداء کول جائز دي؟

**جواب:** قادیاني غیر مسلم دي، د دوی جنازه جائز نه ده،[۷] کومو خلکو چې د قادیانانو

---

[۱] الصلاة على الجنازة فرض كفاية ....... وشرطها اسلام الميت......الخ (عالمگيرى ج:۱ص:۱۶۲)

[۲] واما لوكان مرتدًا يلقيه فى حفرة كالكلب ......الخ (حلبى كبير ج:۱ص:۶۰۳)۰وفى الاشباه والنظائر:واذا مات اوقتل على ردته لم يدفن فى مقابرالمسلمين ولا اهل ملة وانما يلقى فى حفرة كالكلب ......الخ (الاشباه والنظائرج:۱ص:۲۹۱كتاب السير،باب الردة)

[۳] ولاتصل على احدمنهم مات ابدًا ولاتقم على قبره انهم كفروا بالله ورسوله وماتواوهم فسقون (التوبة :۸۴)

[۴] من اعتقد الحرام حلالاً اوعلى القلب يكفر......وفيمااذاكان حرامًالعينه انمايكفراذاكانت الحرمة ثابتة بدليل مقطوع به (عالمگيرى ج:۲ص۲۷۲،الباب التاسع فى احكام المرتدين)

[۵] مايكون كفرًا اتفاقًايبطل العمل والنكاح ......ومافيه خلاف يومربالاستغفار والتوبة وتجديد النكاح (الدرالمختار مع الرد ج:۴ص:۲۴۷،باب المرتد)

[۶] واما لوكان مرتدًا يلقيه فى حفرة كالكلب دفعًا لاذى جيفته عن الناس من غيرغسل ولاتكفين ......الخ (حلبى كبيرج:۱ ص:۶۰۳فصل فى الجنائز،طبع سهيل أكيدمى لاهور)

[۷] قال الله تعالى :ولاتصل على احدمنهم مات ابدًا ولاتقم على قبره....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

جنازه اداءکړې ده، هغوی دې الله تعالې ته توبه وباسي او آئنده دې د ګناه نه کولو وعده وکړي.

## د جنازې په لمانځه کې د کافرانو او بې ايمانه شرکت

**سوال:** د جنازې په لمونځ کې که چيرې بې دينه خلک يا غير مذهبه خلک شامل شول لکه: مرزائيان، پرويزيان او داسې نور... نو څه فرق خو نه غورځيږي؟

**جواب:** د کافرانو او د بې ايمانه په جنازه کې شرکت درحمت موجب نه دی بلکه د لعنت موجب دی.[1]

## د قاديانانو جنازه جائز نه ده

**سوال:** موضع داته ضلع مانسهره (چې دويمه ربوه ده) کې يوکس مرزا ډاکټر محمدسعيد په مرګ باندې د داته مسلمانانوديومسلمان امام په امامت کې دقادياني دجنازې لمونځ وکړ، ددې نه پس قاديانانو دمسمی مذکور جنازه وکړه،شرعاامام مذکوره اوعامو مسلمانانو متعلق څه حکم دی؟

دمسلمانانوجينکۍ دقاديانانوپه کورونوکې دښځوپه حيثيت سره اوسيږي اود مسلمانانو والدين دې قاديانانوسره دزوم و خسرپه شان تعلقات دې ايادشريعت محمدي ﷺ په رڼاکې ددوی پيداکيدونکي اولادبه حلالي وي اوکه ولدالحرام به ورته ويل کيږي؟

دعامومسلمانانودقاديانانوسره دکافرانوپه شان تعلقات نه دي،بلکې دمسلمانانوپه شان تعلقات دي،دهغوی سره کېني پاځي، خوراک څښاک اوپه غم وخوشالي کې سره شريکيږي او کله چې ديوبل سره ملاويږي؛نوالسلام عليکم،،ويلوسره ملاويږي،په غم ښادي کې ډوډۍ ورکوي،په فاتحه کې سره شريکيږي،دشريعت محمدی ﷺ په رڼا کې دوی مسلمانان دي اوکه نه؟

**جواب:** ...دجواب نه مخکې څه اموردتهميد په ډول ذکرکوم:

**اول:**...کوم کس چې کفريه عقائد لري اوخپل ځان داسلام طرف ته منسوبوي اوپه نصوص شرعيه کې غلط تاويلونه پيش کوي اوخپلوغلطوعقيدوته داسلام نوم ورکوي دوی ته ،،زنديق،،ويل کيږي. علامه شامي په ،،باب المرتد،، کې ليکلي دي:

---

...بقيه د تير مخ]... انهم كفروا بالله ورسوله وماتوا وهم فسقون (التوبة :٨٤) الصلاة على الجنازة فرض كفاية ......وشرطها اسلام الميت ......الخ (عالمگيرى ج:١ص:١٦٢)،وفى اشباه والنظائرج:١ص:٢٩١ والمرتداقبح كفرًامن الكافرالاصلى

[1] لان هذه الصلاة شرعت للدعاء والشفاعة للميت (بدائع الصنائع ج:١ص:٣١٧) ايضًا:ومانهى الله عزوجل عن الصلاة على المنافقين والقيام على قبورهم للاستغفارلهم ،كان هذا الصنيع من اكبرالقربات فى حق المومنين فشرع ذالك وفى فعله الاجرالجزيل (تفسيرابن كثيرج:٣ص:٤٢٧،طبع رشيديه كوئته )

,,فان الزنديق يموه كفره ويروج عقيدته الفاسدة ويخرجها في الصورة الصحيحة وهذا معنى ابطال الكفر،،(شامی ج:٤ ص٢٤٣ طبع جديد)

**ترجمه:** چونکې زنديق په خپل کفرباندې طمع کوي اوخپلو فاسدو عقيدوته رواج ورکول غواړي اوهغه په ظاهره په صحصح صورت کې دخلکوپه وړاندې پيش کوي اوهمدغه دکفر دپټولو معنا ده.

اوامام الهندشاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله په (مسوى شرح عربي موطا)کې ليکي:

بيان ذالک ان المخالف للدين الحق ان لم يعترف به ولم يذعن له لاظاهرا ولا باطنا فهو كافروان اعترف بلسانه وقلبه على الكفر فهو المنافق،وان اعترف به ظاهرا لكنه يفسر بعض ما ثبت من الدين ضرورة بخلاف مافسره الصحابة والتابعون واجتمعت عليه الامة فهو الزنديق..،(ص:١٣٠ مطبوعه رحيميه دهلى) **ترجمه:** ددې تشريح داده چې کوم کس دحق دين مخالف دی،که هغه ددين اسلام دسره اقرارنه کوي

اونه دين اسلام مني، نه په ظاهري طور سره اونه په باطني طورسره،هغه ته کافرويل کيږي، اوکه په ژبې سره ددين اقرارکوي،خو ددين دځينوقطعياتوداسې تاويلونه کوي چې صحابه کرامو،تابعينواواجماع امت نه خلاف وي؛ نوداسې کس ته،،زنديق،،ويل کيږي.

وړاندې دصحيح اوغلط تاويل فرق بيانولوکې شاه صاحب رحمه الله ليکلي:

,,ثم التاويل تاويلان:تاويل لايخالف قاطعا من الكتاب والسنة واتفاق الامة،وتاويل يصادم ماثبت بقاطع فذالک الزندقة،،(ص:١٣٠)

**ترجمه:** بياتاويل دوه قسمه دی:يوهغه تاويل دی چې دكتاب اوسنت اواجماع امت نه ثابت شوې څه قطعي مسئلې خلاف نه وي اودويم تاويل هغه دی چې دداسې مسئلې خلاف وي چې دقطعي دليل نه ثابته وي، داسې تاويل،،زندقه،،دی.

او وړاندې دزنديقه تاويلونومثالونه ذکرکوي او ليکي:

,,اوقال ان النبي ﷺ خاتم النبوة ولكن معنى هذاالكلام انه لايجوز ان يسمى بعده احد بالنبي واما معنى النبوة وهوكان الانسان مبعوثا من الله تعالى الى الخلق مفترض الطاعة معصوما من الذنوب ومن البقاء على الخطا فيمايرى فهوموجود في الامة بعدفهوالزنديق.(مسوى ج:٢ ص:١٣٠ مطبوع رحيميه دهلى)

**ترجمه:**ياڅوک داسې ووايي چې نبي کريم ﷺ بې شکه خاتم النبيين دی،خو ددې مطلب دادی چې دحضور ﷺ نه وروسته به دچانوم نبي نه کېښودل کيږي، دنبوت مفهوم يعنې ديوانسان دالله تعالى دطرف نه دمخلوق طرف ته مبعوث کيدل،دهغه اطاعت فرض کيدل،اودهغه

ګناهونو او خطاباندې قائم پاتې کیدونه معصوم کیدل، د حضور ﷺ نه وروسته هم په امت کې موجود دی؛ نو دا کس ,,زندیق،، دی

خلاصه دا چې کوم کس خپل کفریه عقائد د اسلام په رنګ کې پیش کوي د اسلام د قطعي متواترو عقائدو خلاف د قرآن او سنت تاویلونه کوي، دا سې کس ته ،،زندیق،، ویل کیږي

**دویم:** ...دا چې زندیق د مرتد په حکم کې دی، بلکې په یو اعتبار سره زندیق د مرتد نه هم بدتر دی، ځکه که مرتد توبه وکړي او اسلام ته دوباره داخل شي؛ نو د هغه توبه په اتفاق سره قابل قبول ده ،خو د زندیق توبه قبلیدو یا نه قبلیدو کې اختلاف دی، لکه چې په درمختار کې دي

**,,(و)كذا لكافر بسبب (الزندقة) لاتوبة له وجعله فى الفتح ظاهر المذهب لكن فى حظر الخانية الفتوى على انه (اذا اخذ) الساحر او الزنديق المعروف الداعى (قبل توبته) ثم تاب لم تقبل توبته ويقتل ولو اخذ بعدها قبلت،،** (شامی ج:٤ ص:٢٤١ طبع جدید)

**ترجمه:** او همدغه شان کوم کس چې د زندقیت له وجې کافر شي، د هغه توبه قابل قبول نه ده، او په فتح القدیر کې دې ته ظاهر مذهب ویل شوی دی، خو په فتاوی قاضي خان کې کتاب الحظر کې دي، چې فتوا په دې باندې ده ،کله چې جادوګر او زندیق چې معروف او داعی وي د توبې نه مخکې ګرفتار شي او بیا د ګرفتاریدو نه وروسته توبه وباسي؛ نو د هغوی توبه قبوله نه ده، بلکې هغوی به قتلیږي او که د ګرفتاري نه مخکې یې توبه کړې وه؛ نو توبه به یې قبلیږي.

بحرالرائق کې دي: **,,لاتقبل توبة الزنديق فى ظاهر المذهب وهو من لايتدين بدين....وفي الخانية قالوا ان جاء الزنديق قبل ان يوخذ فاقر انه زنديق فتاب عن ذالك تقبل توبته وان اخذ ثم تاب لم تقبل توبته ويقتل،،** (ج:۵ ص:۱۳۶ دارالمعروفه بیروت)

**ترجمه:** ظاهر مذهب کې د زندیق توبه قابل قبول نه ده او زندیق هغه کس دی چې د دین قائل نه وي او په فتاوی قاضی خان کې دي چې که زندیق د ګرفتاریدو نه مخکې په خپله راشي او اقرار وکړي چې هغه زندیق دی، په هغه دې توبه وکړي؛ نو د هغهٔ توبه قابل قبول ده او که ګرفتار شو او بیا یې توبه وکړه؛ نو د هغه توبه به نه قبلیږي؛ بلکې هغه به قتل کیږي.

**دریم:** ...د قادیانانو زندیق کیدل بالکل واضح دي، ځکه چې د هغوی عقائد د اسلامي عقائدو قطعا خلاف دي او د هغوی د قرآن او سنت په نصوص کې غلط تاویلونه کوي او جاهلانو ته دا باور ورکوي چې په خپله خو هغوی ښه پاخه او رښتوني مسلمانان دي او د هغوی نه علاوه ټول امت ګمراه او کافر او بې ایمان دی، څنګه چې د قادیانانو د دویم مشر انجهاني مرزا محمود لیکلي چې: ,, پرون چې کوم مسلمانان د مسیح موعود ( مرزا) په بیعت کې شامل نه شو، که څه هم هغوی د مسیح موعود نوم هم اوریدلی نه وي، هغوی کافران دي او د اسلام د دائرې نه خارج دي (ائینه صداقت ص:۳۵)

## د مرزایانو ملحدانه عقائد دا دي:

۱:......داسلام قطعي عقیده ده چې نبي کریم ﷺ خاتم النبیین دی، دحضور ﷺ نه پس هیڅوک په منصب نبوت باندې فائزکیدی نه شي، ددې په خلاف قادیانان نه یوازې داسلام ددې قطعي عقیدې نه منکردي، بلکې (نعوذبالله) هغوی مرزاغلام احمدقادیاني دنبوت نه بغیراسلام مرده تصورکوي. لکه دغلام مرزا احمدوینا ده چې:

،،زموږ مذهب خودادی چې په کوم دین کې دنبوت سلسله نه وي؛ هغه مرده دی، دیهودانو، عیسایانواوهندوانومذهب ته چې موږ مرده وایو؛نوځکه چې په دې کې اوس څوک نبي نه راځي، که داسلام همدغه حال وي؛ نوموږ هم قصه پرېاتې شو،له څه وجې نه ده ته موږ د نورو دینونونه اوچت وایو،اخرځه نه څه امتیاز خوپکاردی،...په موږ باندې دڅوکالوراهیسې وحي نازلیږي اودالله تعالی څومره نښاناتوددې دصدق ګواهي ورکړې ده.نوځکه زه نبي یم،دامرحق په پیژندګلوکې دهیڅ قسمه اخفاء ساتل پکارنه دي.،، (ملفوظات مرزاجلد:۱۰ص:۱۲۷ طبع شده ربوه)

۲:......داسلام قطعي عقیده ده چې دنبوت دوحي دروازه دحضور ﷺ نه پس بنده شوې ده اوکوم کس چې دحضور ﷺ نه پس دنبوت دوحي دعوی وکړي هغه داسلام ددائرې نه خارج دی،خو قادیانان د مرزا احمدځان نه جوړکړې شوې وحې باندې ایمان لري اوهغه د قرآن کریم په شان مني، دقرآن کریم دنوموننه یونوم ،،تذکره،، دی، قادیانانودغلام مرزا احمد،،وحې،،ته دیوکتاب په شکل مرتب کړی دی اودهغه نامه یې ،،تذکره،،کیښودې ده، داګویا قادیاني قرآن دی....نعوذبالله....

او دا قادیاني وحې څه معمولي قسم والا الهام نه دی، کوم چې اولیاء الله ته کیږي بلکې دهغوی په نزدباندې داوحي دقرآن کریم همځنګ ده،په خپله وګورئ!

۱:......اوزه چې څنګه دقرآن کریم په آیتونوباندې ایمان لرم همدغه شان دیوې ذرې دفرق نه بغیردالله تعالی په دې ښکاره وحې باندې ایمان راوړم چې ماته شوې ده.(ایک غلطی کاازاله ص:۶ طبع شده ربوه)

۲:......زماپه خپل وحې باندې ایمان دی څنګه چې په تورات اوانجیل اوقرآن کریم باندې.(اربعین ص:۱۱۲ طبع شده ربوه)

۳:......زه په خدای قسم خورم او وایم چې زه په دې الهامات باندې هغسې ایمان راوړم څنګه چې په قرآن شریف باندې،اودالله تعالی په نوروکتابونوباندې،اوڅنګه چې زه قرآن کریم په یقیني اوقطعي طورسره دالله تعالی کلام ګڼم هماغه شان داکلام کوم چې په ماباندې نازلیږي دالله تعالی د کلام یقین پرې کوم.(حقیقة الوحی ص:۲۲۰ طبع شده ربوه)

۴:......داسلام عقیده ده چې دحضور ﷺ نه پس دمعجزې ښودنې دعوې کول کفردي،ځکه چې

معجزه ښودل يوازې دنبي خصوصيت دی، کوم کس چې دمعجزې ښودنې دعوی وکړی هغه دنبوت مدعي کيدو په وجه باندې کافردی

په شرح فقه اکبرکې علامه ملاعلي قاري رحمه الله ليکي: ،،التحدی فرع دعوی النبوة ودعوی النبوة بعدنبيناصلی الله عليه وسلم کفربالاجماع.،،(ص:۲۰۲)

**ترجمه:** دمعجزې ښودنې دعوی ددعوی نبوت فرع ده،اودنبوت دعوی زمونږ دنبي کريم ﷺ نه پس بالاجماع کفردی.،،

ددې برعکس قاديانان،دمرزاغلام احمددوحي سره سره دهغه په معجزاتوباندې هم ايمان لري.اودحضور ﷺ معجزات (نعوذبالله) قيصې ګرځوي اودحضور ﷺ په دې صورت کې نبي منلوته تياردي چې کله مرزا غلام احمدقادياني هم نبي ومنل شي،ګني دهغوی په نزدباندې نه خوحضور ﷺ نبي دی اونه دين اسلام دين دی،مرزاغلام احمدليکي:

،،هغه دين،دين نه دی اونه هغه نبي،نبي دی دچامتابعت سره چې انسان الله تعالی ته دومره نژدې نه شي چې مکافات الهي سره مشرف شي،هغه دين لعنتي اوقابل نفرت دی چې داښيي چې صرف يوڅونقل شويو خبرو( اسلامي شريعت چې دحضور ﷺ نه منقول دی ناقل)دانساني ترقياتو انحصاردی،اودالله تعالی وحي مخکې نه ، بلکې وروسته پاتې شوې ده، پس داسې دين ته په نسبت ددې چې رحماني وويل شي دشيطاني ويلوزيات مستحق دی.،، (روحانی خزائن ج:۲۱ ص:۳۰۶ ضميمه براهين احمديه حصه پنجم ص:۱۳۹)

داڅومره لغوه اوباطله عقيده ده چې داسې خيال وکړل شي چې دحضور ﷺ نه پس دوحې دروازه دهميشه له پاره بنده شوه اوآينده ترقيامته پورې ددې هيڅ اميدنشته،يوازې دقيصو پسې روان يئ، داسې مذهب هم څه مذهب کيدای شي چې په هغه کې براه راست دالله تعالی هيڅ پته نه لګيږي...زه په الله تعالی باندې قسم خورم چې په دې زمانه کې زما نه زيات بيزار به دداسې مذهب نه بل څوک نه وي،زه دداسې مذهب نوم شيطاني مذهب ږدم رحماني نه.،،

(روحانی خزائن، ج:۲۱ ص:۳۵٤ ضميمه براهين احمديه حصه پنجم ص ۱۸۳)

،،که په رښتيارانه تپوس کوئ چې زمونږ په قرآن کريم باندې اوپه رسول کريم ﷺ باندې هم ددې (مرزا) په ذريعه ايمان حاصل شوی دی،مونږ دقرآن کريم دالله تعالی دکلام کيدوپه وجه باندې يقين کوو چې ددې په وجه (دمرزا) نبوت ثابتيږي،مونږ دمحمد ﷺ په نبوت باندې ددې وجې نه ايمان راوړ چې ددې دوجې نه د (مرزا) دنبوت ثبوت ملاويږي،نادان په مونږ باندې اعتراض کوي چې مونږ مسيح موعود(مرزا) نبي منو،اوولې دهغه په کلام باندې دالله تعالی دکلام يقين کوو، هغه ته پته نشته چې په قرآن کريم باندې يقين مونږ ته دهغه کلام دوجې نه شوی دی چې دمحمد ﷺ په نبوت باندې يقين ددې (مرزا) دنبوت نه ملاويږي.

(دمرزابشيرالدين تقرير،،الفضل،،قاديان جلد:۳ مورخه ۱۱جولائی ۱۹۲۵)

دمرزاصاحب دپورتنودواړه عبارتونونه واضحه ده چې که په مرزا صاحب باندې دوحي الهي نزول ونه منل شي اومرزاغلام احمد نبي ونه منل شي؛نودحضرت محمد ﷺ نبوت هم ددوی په نزد باندې...نعوذبالله...باطل دی اودین اسلام صرف دقیصو افسانو مجموعه ده،مرزاصاحب داسې اسلام ته لعنتي،شیطاني اوقابل نفرت ګرځولوسره ددې نه دبې زارۍ اظهارکوي. بلکې دټولودهریانو نه زیات دخپل ځان ددهري کیدواعلان کوي،مسلمانانوته دعبرت دنظرسره ورته کتل پکاردي، ایاددې نه زیات څه کفراوالحاداوزندقیت کیدای شي چې حضور ﷺ ته اودین اسلام ته دومره په مړه خیټه کنځل وکړل شي.؟

۴:.....دمسلمانانوعقیده ده چې نبی کریم ﷺ ,,محمدرسول الله،، دی، خو مرزاغلام احمد قادیاني په اشتهار ''این غلطي کاازاله،، کې دخپل الهام په بنیادباندې دادعوی کړې ده چې هغه په خپله ,,محمدرسول الله،،دی...نعوذبالله...چونکې قادیانیان دمرزاغلام احمدپه ''وحې،، باندې قطعي ایمان لري، ددې وجې نه هغوی ,,محمدرسول الله،،مني،اوکوم کس چې مرزا ,,محمدرسول الله،، ونه مني هغه کافرګڼي.

۵:.....دقرآن کریم اواحادیث متواتره په وجه دمسلمانانوعقیده ده چې حضرت عیسی علیه السلام ژوندی آسمانونوته پورته شوی اوهغه به قیامت ته نژدې راکوزیږي اودجال به قتلوي[۱]،خو د مرزایانو عقیده ده چې مرزاغلام احمدقادیاني عیسی دی اوپه قرآن اوحدیث کې دحضرت عیسی علیه السلام دنازلیدوچې کوم خبر ورکړل شوی و،دهغه نه مراد،مرزاغلام احمدقادیاني دی.

د قادیانانو دغه شان بیشمیره زندیقانه عقائددي.په کوموچې دامت عالمانو بې شمیره کتابونه لیکلي دي،ددې وجې نه د مرزایانو کافر اومرتداوملحداوزندیق کیدل درڼاورځې په شان واضح دي.

**ځلورم**:.....دجنازې لمونځ یوازې دمسلمانانو کیږي، دهیڅ یو غیرمسلم جنازه جائزنه ده،په قرآن کریم کې دي:

**,,ولاتصل على احدمنهم مات ابدا ولاتقم على قبره انهم كفروا بالله ورسوله وماتوا وهم فاسقون.،،**(التوبه:۸۳)

**ترجمه**: اوپه دوی کښکه څوک مړشي؛ نوددوی جنازې باندې هیڅ کله لمونځ مه کوه اونه ددفن کیدو له پاره ددوی په قبرباندې درېږه،ځکه چې دوی الله تعالی اودهغه په رسول کفرکړی

---

۱ ]عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :والذی نفسی بیده! لیوشکن ان ینزل فیکم ابن مریم حکمًا عدلاً فیکسرالصلیب ویقتل الخنزیر ویضع الجزیة ویفیض المال حتی لایقبله احدحتی تکون السجدة الواحدة خیرًا من الدنیا ومافیها ،ثم یقول ابوهریرة :فاقروا ان شئتم :وان من اهل الکتب الا لیومنن به قبل موته ......الآیة ،متفق علیه (مشکوة الفصل الاول ،باب نزول عیسی علیه السلام)،تفصیل دپاره اوګورئ: التصریح بماتواترفی نزول المسیح طبع دارالعلوم کراچی)۔

دی،اوهم د کفرپه حالت کې مړه شوي دي..

اودامت ټول فقهاء په دې باندې متفق دي چې دجنازې دجائز کیدوله پاره شرط دی چې مسلمان وي،دغیرمسلم جنازه بالاجماع جائزنه ده،نه دهغه له پاره دمغفرت ددعااجازه شته،اونه هغوی دمسلمانانوپه قبرستان کې دفن کول جائزدي.

ددې تمهیدنه وروسته اوس په ترتیب سره دسوالونوجوابونه لیکم.

**د اولني سوال جواب:**.....کومومسلمانانوچې دمرزایي مرتدجنازه کړې ده، که هغوی دهغه د عقائدونه ناخبره وو؛نوهغوی بدوکړل،په دې باندې هغوی ته استغفارکول پکاردي:ځکه چې دمرزایي مرتدجنازه کولو سره هغوی دیوناجائزه کارارتکاب کړی دی.

اوکه هغوی ته معلومه وه چې داکس مرزاغلام احمدقادیاني نبي مني،دهغه په وحې باندې ایمان لري،اودحضرت عیسی علیه السلام د نازلیدونه منکردی ،ددې معلوماتوباوجودهغوی دی مسلمان وګڼلو اومسلمان ګڼلوسره یې دهغه جنازه وکړه ،هغه ټول کسان کوم چې په جنازه کې شریک وو،هغوی ته دخپل ایمان اونکاح تجدید کول پکاردي،ځکه چې دیومرتدعقائدولره اسلام ګڼل کفردی[1]،ددې وجی نه ددوی ایمان هم لاړ،اونکاح یې هم باطله شوه[2]،په دوی کې که یوکس حج کړی و؛نوپه هغه باندې دویم ځل حج کول لازم دي.[3]

دلته داذکرکول هم ضروري دي چې دقادیانانوپه نزد د مسلمانانوجنازه جائزنه ده،تردې پورې چې دقادیانانوپه نزد مسلمانانودماشوم بچي جنازه هم جائزنه ده،لکه چې دقادیانانودویم خلیفه مرزامحمودپه خپل کتاب ،،انوارخلافت،، کې لیکي:

یو سوال بل پاتې کیږي چې غیراحمدي (مسلمان) خو دحضرت مسیح موعود(غلام احمد قادیاني) نه منکرشول،ددې وجې نه دهغوی جنازه کول پکارنه دي،خو که دچاغیراحمدي ماشوم بچی مړشي؛ نودهغه جنازه دې ولې ونه شي، هغه خودمسیح موعود منکرنه دی؟

زه ددې سوال کونکي نه پوښتنه کوم چې که داخبره صحیح ده نو بیا د هندوانو او عیسائیانو د ماشومانوجنازه ولې نه کیږي؟ څومره خلک دی چې ددوی جنازه کوي؟ اصل خبره داده چې کوم د مورپلارمذهب وي شریعت هماغه مذهب دبچي هم ګرځوی،د غیراحمدي

---

۱ ]وفی المحیط من رضی بکفرنفسه فقدکفرای اجماعًا وبکفر غیره اختلف المشائخ وذکر شیخ الاسلام ان الرضا بکفرغیره انما یکون کفرًا اذاکان یستجیزه ویستحسنه (شرح فقه اکبرص:۲۲۱طبع دهلی)۰وفی ردالمحتار:قوله من هزل بلفظ کفر...... وکذا مخالفة او انکارما اجمع علیه بعدالعلم به لان ذلک دلیل علی ان التصدیق مفقود (ردالمحتارعلی الدرالمختارج:٤ص:۲۲۲باب المرتد،طبع ایچ ایم سعید)۔

۲ ]وفی شرح الوهبانیة للشرنبلالی :مایکون کفرًا اتفاقًا یبطل العمل والنکاح واولاده اولاد الزناومافیه خلاف یومربالاستغفاروالتوبة وتجدیدالنکاح (الدرالمختارمع ردالمحتارج:٤ص:۲٤۷)۔

۳ ] من ارتدثم اسلم وقدحج مرة فعلیه ان یحجح ثانیًا (خلاصة الفتاوی ،کتاب الفاظ الکفر ج:٤ص:۳۸۳طبع کوئته ردالمحتار،باب المرتدج:٤ص:۲٥۲)۔

بچي غیراحمدی شو،ددې وجې نه دهغه جنازه کول پکارنه دي،زه بیاوایم چې ماشوم ګناه ګارنه وي دهغه دجنازې ضرورت څه دی؟دماشوم جنازه خودعا وي دهغه د پسماندګانو له پاره او دهغهٔ پسماندګان زموږ څخه نه دي،بلکې غیراحمدیان دي.له دې وجې دماشوم جنازه هم پکارنه ده.،،(انوارخلافت ص:۹۳)

اخبار،،الفضل،،مورخه ۲۳اکتوبر۱۹۲۲کې دمرزا محمود یوه فتوا شائع شوه چې:

,,څنګه چې دعیسایي ماشوم جنازه نه شي کیدای اګرچې هغه معصوم وي، همدغه شان د یو غیراحمدي ماشوم جنازه هم نه شي کیدای.،،

دخپل مذهب پیروي کې چوهدري ظفرالله خان دقائداعظم جنازه ونه کړه او په منیرانکوائري عدالت کې چې کله دهغه نه پوښتنه وشوه؛نوهغه وویل:

``دجنازې د لمونځ امام مولانا شبیراحمد عثماني احمدیان کافر، مرتد، او واجب القتل ګرځولي دي،له دې وجې نه ما دهغه په جنازه کې دشرکت فیصله ونه کړې شوه دکومې امامت چې مولانا کاو.(رپورت تحقیقاتی عدالت پنجاب ص:۲۱۲)

خو دعدالت نه بهرچې کله دهغه نه ددې خبرې پوښتنه وشوه چې تادقائداعظم جنازه ولې ونکړه؟ نوهغه جواب ورکړ: ,,تاسو ماد کافر حکومت مسلمان وزیروګڼئ یادمسلمان حکومت کافر نوکر،، (زمیندار،،لاهور ۸فروری ۱۹۵۰)

اوچې کله په اخبارونوکې دچوهدري ظفرالله خان ددې ضد او انکار شهرت وشو؛ نو د جماعت احمدیه ربوه ددطرف نه ددې داجواب ورکړل شو:

``جناب چوهدري ظفرالله خان باندې یودا اعتراض کیږي چې دوی دقائداعظم جنازه ولې ونکړه، ټولې دنیاته پته ده چې قائداعظم احمدي نه و،لهذادجماعت احمدیه دیوکس دهغه جنازه نه کول څه قابل اعتراض خبره نه ده.،،(تریکټ احراري علماء کی راست ګوئی کانمبر، ناشرمهتمم نشرواشاعت انجمن احمدیه ربوه ضلع جنګ،

دقادیانانواخبار،،الفضل،،ددې په جواب کې لیکلي دي:

آیا داحقیقت نه دی چې ابوطالب هم دقائداعظم په شان دمسلمانانوډیرلوی محسن و،خو مسلمانانونه دهغه جنازه وکړه اونه رسول الله صلی الله علیه وسلم.(الفضل،،ربوه ۲۸اکتوبر۱۹۵۲)

څومره دشرم خبره ده چې قادیانان دمسلمانان دهندوانو، عیسایانوپه شان کافرګڼي اوددوی دلوی نه لوی بنده جنازه نه کوي اونه ددوی دبې ګنا ماشومانو،ایادیومسلمان له پاره داجائزدي چې هغه دقادیاني مرتدجنازه وکړي؟ایادهغه غیرت دابرداشت کولی شي؟

**د دویم سوال جواب:**.....کله چې معلومه شوه چې قادیاني کافراو مرتددی؛ نوددې نه داهم واضح کیږي چې دهیڅ یوې مسلمانې انجیلی نکاح د مرزایي مرتدسره نه کیږي[1] اوداسلام

[1] ]ولایصلح ان ینکح مرتداومرتدة احدالناس مطلقًا (الدر المختارمع الردالمحتار ج:۳ص:۲۰۰)_

په رڼاکې داخالص زنا ده او که چامسلمان د لاعلمي او بې خبري په وجه چامرزايي ته خپله لور واده کړې وي ؛نو دهغه فرض دی چې معلوميدونه پس دخپلې ګناه نه توبه وباسي او انجيلې دې دقاديانانو دقبضې نه راخلاصه کړي.

واضحه دې وي چې دمرزايانوپه نزددمسلمانانوهماغه حيثيت دی چې زمونږ په نزد د يهوديانو او عيسايانودی، د مرزايانو په نزدمسلمانانې جينکۍ اخيستل جائزدي خو مسلمانانو ته ورکول جائزنه دي،دمرزامحمودفتوا ده:

,,کوم کس چې خپله لورر غيراحمدي ته ورکوي زماپه نزد هغه احمدي نه دی.،،

**سوال:** ....کوم نکاح خوان چې داسې نکاح وکړی دهغه په باره کې څه حکم دی؟

**جواب:** دداسې نکاح خوان په باره کې به مونږ هماغه فتوا ورکووچې دهغه چا په په اړه ورکول کيدای شي چاچې ديوې مسلمانې جينۍ نکاح ديوعيسايي ياهندوهلک سره کړې وي.

**سوال:** .....آيا داسې کس چاچې دغيراحمدي سره دجينۍ رشته کړې وي هغه نوراحمديان په واده کې رابللی شي؟

**جواب:**....په داسې واده کې شريکيدل جائزنه دي.، ، (اخبارالفضل،،قاديان ۲۳مۍء ۱۹۲۱)

څنګه چې دمرزامحمودپه نزدباندې هغه کس دمرزايي جماعت نه خارج دی چې يومسلمان هلک ته خپله لورواده کړي،همدغه شان هغه مسلمان هم ددائره اسلام نه خارج دی چې دقاديانانو دعقايدونه خبريدونه وروسته چامرتدمرزايي ته خپله لورورکول جائز وګڼي اوڅنګه چې دمرزامحمودپه نزدباندې ديوې مرزائي انجيلې دچامسلمان هلک سره نکاح کول داسې دي لکه څنګه چې دعيسايي ياهندوسره،همدغه شان مونږ وايوچې مرزايي مرتدزوم جوړول داسې دي لکه چې هندو،سيک،چوړې يې خپل زوم جوړکړی وي.

**د دريم سوال جواب:** يومسلمان ته دمرزايي مرتدينوسره دمسلمانانوپه شان سلوک کول حرام دي،دهغوی سره ناسته پاسته،خوراک څښاک، دهغوی په واده ،مړي کې شريکيدل، قطعي حرام دي،کوم کسان چې په دې معامله کې درواداری نه کاراخلي هغوی ته د مرزايانوسره ددې قسمه تعلقات ختمول پکاردي،قاديانان دخدای اودرسول ﷺ دښمنان دي اودخدای اودهغه درسول دښمنانوسره دوستانه تعلقات ساتل ديومومن کارنه شي کيدی.

په قرآن کريم کې دي: ،،**لاتجدقوما يومنون بالله واليوم الاخريوآدون من حادالله ورسوله، ولوکانوا ابآءهم اوابناءهم اواخوانهم اوعشيرتهم اولئک کتب فی قلوبهم الايمان وايدهم بروح منه، ويدخلهم جنت تجری من تحتهاالانهر خلدين فيها،رضی الله عنهم ورضوا عنه ،اولئک حزب الله،الاان حزب الله هم المفلحون**،،(المجادله:۲۲)

**ترجمه:** کوم خلک چې په الله تعالی اوقيامت يه ورځ باندې(پوره پوره)ايمان لري،تاسوبه هغوی

نه وينئ چې هغوی داسې کسانوسره دوستي وساتي چې دالله تعالی اودهغه درسول خلاف دي، که څه هم هغوی ددوی پلرونه، زامن، ورونه، اويا ددی له قوم څخه وي اوددې خلکو په زړونوکې الله تعالی ايمان خښ کړی دی اودهغوی زړونوته يې په خپل فيض سره قوت ورکړی دی. (دفيض نه مراد نور دی) اوهغوی به په داسې باغونوکې داخلوي چې دهغو لاندې به نهرونه جاري وي په هغه کې به هميشه اوسيږي، الله تعالی به دهغوی نه راضي وي اوهغو ی به دالله تعالی نه راضي وي، دا خلک دالله تعالی ډله ده، اوښه واورئ، چې دالله تعالی ډله فلاح (کاميابي) موندونکې ده. (ترجمه:حضرت تهانوی)

په آخره کې داعرض کول هم ضروري دي چې دپاکستان په قانون(آئين) کې قاديانان غيرمسلم اقليت گرځول شوي دي، خو قاديانانو تراوسه پورې نه خودافيصله منلې ده اونه هغوی په پاکستان کې دغيرمسلم شهري (ذمي) په حيثيت سره داوسيدو معاهده کړې ده. له دې وجې ددوی حيثيت دذميانوپه شان نه دی. بلکې دمحاربو کافرانوپه شان دی، او د محاربينو سره دهيڅ قسم تعلق ساتل شرعاً جائزنه دي.[۱]

## د قاديانيانو مړی د مسلمانانوپه مقبره کې ښخول او فاتحه، دعا او استغفارکول پرې حرام دي

**سوال:** قادياني مړی دمسلمانانوپه مقبره کې ښخول، اودهغوی سره دمسلمانوتلل، فاتحه کول، کورته ورتگ اوغم کول، دهمدردي اظهارکول، اودايصال ثواب له پاره په قرآن خواني کې شرکت کول څنگه دي؟

**جواب:** قادياني کافر، مرتداوزنديق دی، دهغه په دفن کې شرکت کول، دهغه فاتحه لوستل، او دهغه له پاره دعااواستغفارکول حرام دي. مسلمانانوته له دوی سره مکمل قطع تعلق پکاردی.[۲]

## قادياني مړی د مسلمانانوپه مقبره کې دفن کول ناجائزدي

**سوال:** تاسوعالمان څه فرمايئ په دې سلسله کې چې کله قاديانان مړی دمسلمانانوپه مقبره

---

۱ ] يعلم مماهناحكم الدروز والتيامنة ...... ويتكلمون فى جناب نبينا صلى الله عليه وسلم كلمات فظيعة ......ونقل عن علماء المذاهب الاربعة انه لايحل اقرارهم فى ديارالاسلام بجزية ولاغيرها ولاتحل مناكحتهم ولا ذبائحهم وفيهم فتوى الخيرية ايضافراجعها —والحاصل انهم يصدق عليهم اسم الزنديق والمنافق والملحد......الخ (ردالمحتار ج:٤ص:٢٤٤باب المرتد،طبع ايچ ايم سعيد)۔

۲ ] ولاتصل على احدمنهم مات ابدًا ولاتقم على قبره (التوبة :٨٤)٠وفى التفسير:والمراد من الصلاة المنتهى عنها صلاة الميت المعروفة وهى متضمنة للدعاء والاستغفاروالا ستشفاع ......الخ (تفسيرروح المعانى ج:١٠ ص:١٥٥،طبع داراحياء التراث العربى ،بيروت)۔

کې دفن کوي اوبیادمسلمانانوله طرف نه مطالبه کیږي چې دی دې وویستل شي؛نو آیا دقادیانیانودمسلمانانوپه مقبره کې دفن کول جائزنه دي؟اوددې مسلمانانوددې طرزعمل څه جوازدی؟

**جواب:** قادیانې غیرمسلم اوزندیق دی،اوپه دوی باندې دمرتدینو احکام جاري کیږي، دغیرمسلم جنازه هم جائزنه ده،چنانچې په قرآن کریم کې ددې صفاممانعت موجوددی.

دالله تعالی ارشاد دی: ،،**ولاتصل علی احدمنهم مات ابدا ولاتقم علی قبره انهم کفروا بالله ورسوله وماتوا وهم فاسقون**.،،(التوبه:۸٤)

**ترجمه:** اوکه په دوی کې څوک مړه شي په هغه لمونځ مه کوه اومه دریږه ددوی په قبر باندې، هغوی منکر شول دالله تعالی اودهغه درسول نه اونافرمانه مړشول .(ترجمه حضرت شیخ الهند)

همدغه شان څوک غیرمسلم دمسلمانانوپه قبرستان کې دفن کول جائزنه دي،څنګه چې د آیت کریمه دالفاظو،،**ولاتقم علی قبره**،،نه معلومیږي،چنانچې اسلامی تاریخ ګواه دی چې د مسلمانانو اوغیرمسلموقبرستانونه همیشه جداجداوي، دیومسلمان د اسلامي حقونونه یو حق داهم دی چې هغه دې دمسلمانانوپه قبرستان کې دفن کړل شي . علامه سعدالدین مسعود بن عمربن عبدالله التفتازانی(المتوفی ۷۹۱هجری)،شرح المقاصد ،،کې دایمان دتعریف مختلف اقوال نقل کولوکې لیکي چې که ایمان دزړه اوژبې دتصدیق کولونوم وي؛ نواقراربه دایمان رکن وي اوایمان به تصدیق مع الاقرارته ویل کیږي،

خو که ایمان یوازې دتصدیق قلبي نوم وي : ``**فان الاقرارحینئذشرط لاجراء الاحکام علیه فی الدنیا من الصلاة علیه وخلفه، والدفن فی مقابر المسلمین والمطالبة بالعشوروالزکاوات ونحوذلک**.(شرح المقاصدج:۲ ص:۲٤۸ مطبوعه دارالمعارف النعمانیه لاهور)

**ترجمه:** نو اقرارپه دې صورت کې،په دې کس باندې په دنیاکې داسلام یاحکاموجاري کیدو له پاره به شرط وي، یعنې دهغه دجنازې لمونځ،هغه پسې شاته لمونځ کول،هغه دمسلمانانوپه قبرستان کې دفن کول،اودهغهٔ نه دعشراوزکات مطالبه کول اوددغه شان نورکارونه .،،

ددې نه معلومه شوه چې یوکس دمسلمانانوپه قبرستان کې دفن کول هم داسلامي حقوقونو څخه دی، چې یوازې دمسلمان سره خاص دي اوداچې څنګه دیوغیرمسلم په اقتداء کې لمونځ جائزنه دی، دهغه دجنازې لمونځ جائزنه دی اوله هغه څخه دعشراوزکات مطالبه درست نه ده، همدغه شان یو غیر مسلم مړي ته دمسلمانانوپه قبرستان کې ځای ورکول هم جائز نه دي اوداچې دامسئله دټول امت مسلمه متفق علیه اومسلمه مسئله ده .په دې کې دهیچا هیڅ اختلاف نشته، دڅلورو واړومذهبونو دمستندوکتابونونه ددې مسئلې تصریحات نقل کیږي،والله الموفق!

## فقه حنفي:

شيخ زين الدين ابن نجيم المصري(المتوفي ۹۷۰هـ) ,,الاشباه والنظائر،،دفن اول ددوهمه قاعدې لاندې ليکي: ،،قال الحاکم في الکافي من کتاب التحري:

**واذا اختلط موتى المسلمين وموتى الكفار فمن كانت عليه علامة المسلمين صلى عليه ومن كانت عليه علامة الكفار ترک.فان لم تكن عليهم علامة والمسلمون اكثر غسلوا وكفنوا وصلى عليهم وينوون بالصلاة والدعا للمسلمين دون الكفار،ويدفنون في مقابر المسلمين ،وان كان الفريقان سواء اوكانت الكفار اكثر لم يصل عليهم ،ويغسلون ويكفنون ديدفنون في مقابر المشركين.،،**(الاشباه والنظائر ج:۱ ص:۱۵۲ مطبوعه ادارة القرآن والعلوم الاسلاميه کراچی)

**ترجمه**:امام حاکم،،الکافی،،په کتاب التحري کې فرمايي:اوکله چې مسلمان اوکافرمړي ګډوډشي،نوپه کومومړوچې دمسلمانانو نښه وي دهغوی دجنازې لمونځ به کيږي اوپه چاچې دکفارو نښه وي دهغوی جنازه به نه کيږي اوکه په هغوی څه شناختي علامت نه وي؛ نوکه د مسلمانانوتعدادزيات وي؛ نوټولوته به غسل اوکفن ورکړل شي اوجنازه به يې وکړل شي او نيت به دا وکړل شي چې مونږ يوازې دمسلمانانوجنازه کوو،اودهغوی له پاره دعا کوو، او هغوی به دمسلمانانوپه قبرستان کې دفن کړل شي اوکه دواړه فريقه برابروي يا د کافرانو اکثريت وي نودهغوی دجنازې لمونځ به نه کيږي هغوی ته به غسل اوکفن ورکړل شي او د غيرمسلموپه قبرستان کې به دفن کړل شي.،،

داهم وګورئ: **نفع المفتي والسائل**،،مولاناعبدلحی لکهنوي (المتوفي ۱۳۰۴ هجري) اوآخرکتاب الجنائز.

د پورتنۍ مسئلې نه معلومه شوه چې که کافران اومسلمان مړي سره ګډوډ شي او د مسلمانانو شناخت کيږي؛ نوکه دواړه فريقه برابروو،يادکافرانومړواکثريت وي؛ نوپه داسې صورت کې به دمسلمانانومړي هم داشتباه په وجې سره دمسلمانانوپه قبرستان کې دفن کول جائزنه وي، له همدې نه دامعلوميږي چې کوم مړی قطعي طورسره غيرمسلم وي، مرتد او قادياني وي،نودهغه مړی دمسلمانانوپه قبرستان کې دفن کول په درجه اولی جائزنه دي، اوهيڅ صورت کې به هغوی دمسلمانانوپه مقبره کې نه دفن کيږي.

نورداچې د ،،**الاشباه والنظائر**،،**فن ثانی،کتاب السير،باب الردة**،،لاندې ليکل شوي دي:

**،،واذا مات اوقتل على ردته لم يدفن في مقابر المسلمين ولا اهل ملة وانما يلقى في حفرة كالكلب ،،**(الاشباه الظائرج:۱ ص:۲۹۱ مطبوعه ادراة القرآن والعلوم الاسلاميه کراچی)

**ترجمه**:اوکله چې مرتدمړشي يادارتدادپه حالت کې قتل کړل شي؛ نونه خودې هغه د

مسلمانانو په قبرستان کې خښ کړل شي اونه دبل ملت په قبرستان کې،بلکې هغه دې لکه دسپي په شان په کنده کې واچول شي.،،

پورتنۍ جزئيه تقريباً په ټولو فقهي کتابونوکې په کتاب الجنائزاوکتاب السير،باب المرتدکې ذکرشوې ده، مثلاً په درمختارکې دي: ،،**اماالمرتد فيلقى فى حفرة كالكلب**.،،

**ترجمه:** مرتددې لکه دسپي په شان په کنده کې وغورځول شي .،،

علامه محمدامين بن عابدين شامي رحمه الله ددې لاندې ليکلي دي: ،،**ولايغسل ولايكفن ولايدفع الى من انتقل الى دينهم بحر عن الفتح**،،(ردالمحتار،ج:۲ ص:۲۳۰ مطبوعه کراچی)

**ترجمه:** نه دې غسل ورکول کيږي،نه دې کفن ورکول کيږي اونه دې هغو خلکوته حواله کيږي دچامذهب چې دې مرتداختيارکړی وي.،،

قاديانيان چونکې زنديق اومرتددي، له دې وجې که دچا عزيزقادياني مرتدشي؛ نونه دې هغه ته غسل ورکول کيږي اونه دې کفن،نه دې هغه مرزايانوته حواله کيږي، بلکې کنده دې وکنستل شي اولکه دسپي په شان دې په کې واچول شي،هغه نه يوازې دمسلمانانوپه قبرستان کې خښول ناجائزدي، بلکې دبل مذهب اوملت په قبرستان يامرګهټ مثلاً: د يهودانو په قبرستان کې اودنصرانيانوپه قبرستان کې خښول هم جائزنه دي.

## فقه مالکي

قاضی ابوبکرمحمدبن عبدالله المالکي الاشبيلي المعروف بابن العربي(المتوفى ۵۴۳ هجري) دسوره اعراف دآيت ۱۷۲: دلاندې دمتاولينوپه کفرباندې خبروکولودقدريه په باره کې ليکي: **اختلف علماء المالكية فى تكفيرهم على قولين،فالصريح من اقوال مالك تكفيرهم**.،

**ترجمه:** مالکي عالمانو کې ددوی په تکفيرباندې دوه قولونه دي، دامام مالک رحمه الله دقول نه صفاطورسره ثابته دي چې هغوی کافردي.

مخکې دويم قول (عدم تکفير)دتضعيف کولونه وروسته دامام مالک رحمه الله په قول باندې تفريع کولوکې ليکي:

،،**فلاينا كحوا ولايصلى عليهم فان خيف عليهم الضيعة دفنوا كما يدفن الكلب.فان قيل: واين يدفنون؟ قلنا: لايوذى بجوارهم مسلم**.،(احکام القرآن لابن العربی جلد:دوم صفحات مسلسل:۸۰۲ بيروت)

**ترجمه:** نه دې دوی سره خپلوي کيږي اونه دې ددوی دجنازې لمونځ کيږي اوکه ددوی دلاش دضائع کيدو ويره وي؛ نودسپي په شان دې په کنده کې واچول شي.

که داسوال وکړل شي چې دی چېرته خښ کړل شي؟نوزموږ جواب دادی چې هيڅ يو مسلمان ته دې دده په ګاونډيتوب سره تکليف نه ورکول کيږي(دی دمسلمانانوپه قبرستان کې خښ نه کړل شي.)

## فقه شافعي

الشيخ الامام جمال الدين ابواسحاق ابراهيم بن علي بن يوسف الشيرازي الشافعي رحمه الله (متوفى ۴۷۶ هجر) اوامام محي الدين يحيى بن شرف النووي رحمه الله (المتوفى ۶۷۶ هجری) ليکي:

،،قال المصنف رحمه الله ولا يدفن كافر في مقبرة المسلمين ولا مسلم في مقبرة الكفار.

**الشرح:** اتفق اصحابنا رحمهم الله على انه لا يدفن مسلم في مقبرة كفار. ولا كافر في مقبرة مسلمين، ولوماتت ذمية حامل بمسلم ومات جنينها في جوفها ففيه اوجه (الصحيح) انها تدفن بين مقابر المسلمين والكفار. ويكون ظهرها الى القبلة لان وجه الجنين الى ظهرامه هكذا قطع به ابن الصباغ والشاشي وصاحب البيان وغيرهم وهوالمشهور،، (شرح مهذب ج:۵ ص:۲۸۵ مطبوع بيروت)

**ترجمه:** مصنف رحمه الله فرمايي: اودمسلمانانو په مقبره کې دې هيڅ يو کافر دفن نه کړل شي اونه دې يو مسلمان دکافرو په مقبره کې دفن کړل شي.

**شرح:** په دې مسئله کې زموږ داصحابو (شافعيه وو) اتفاق دی چې يو مسلمان دکافرانو په مقبره کې او څوک کافر دمسلمانانو په مقبره کې نه دفن کيږي اوکه څوک ذمۍ ښځه مړه شي چې د خپل مسلمان خاوندنه حامله وه، اودهغې دخيټې ماشوم هم مړشي؛ نو په دې کې څووجې دي ، صحيح داده چې هغه دې دمسلمانانو او کافرانو دمقبرو په مينځ کې ځانته دفن کړل شي، اودشا دقبلې طرف ته کيږي ځکه چې دخيټې دماشوم مخ دمورد ملا طرف ته وي. ابن الصباغ، شاشي، صاحب البيان اونورحضراتوهم داقول جزما اختيارکړی دی. اوهمدغه زموږ دمذهب مشهورقول دی.،،

## فقه حنبلي

الشيخ الامام موفق الدين ابومحمد عبدالله بن احمدبن محمدبن قدامة المقدسي الحنبلي رحمه الله (المتوفى ۶۲۰ هجری) (المغني) کې اوامام شمس الدين ابوالفرج عبدالرحمن بن محمدبن احمدبن قدامه المقدسي الحنبلي رحمه الله (المتوفى ۶۸۲ هجری) په (الشرح الكبير) کې ليکي:

**مسألة: قال:** وان ماتت نصرانية وهي حاملة من مسلم دفنت بين مقبرة المسلمين ومقبرة النصارى، اختارهذا احمد، لانها كافرة لاتدفن في مقبرة المسلمين فيتأذوا بعذابها، ولافي مقبرة الكفارلان ولدها مسلم فيتأذى بعذابهم ، وتدفن منفردة، مع انه روى عن واثلة بن الاسقع مثل هذالقول، وروى عن عمر انها تدفن في مقابر المسلمين ، قال ابن المنذر: لايثبت. ذلک قال اصحابنا ويجعل ظهرها الى القبلة على جانبها الايسر ليكون وجه الجنين الى القبلة على جانبه الايمن، لان وجه الجنين الى ظهرها. (المغنى مع الشرح الكبير ج:۲ ص:۴۲۳ مطبوع بيروت ۱۴۰۳ ھ)،

,,اوکه نصرانۍ ښځه چې دخپل مسلمان خاوندنه حامله وه، مړه شي،نوهغه به(نه خو د مسلمانانوپه قبرستان کې دفن کیږي اونه دنصاراوو په قبرستان کې)بلکې د مسلمانانو دقبرستان اود نصارئ دقبرستان په مینځ کې به ځانته دفن کړل شي، امام احمد دا له دې وجې اختیارکړی دی،چې هغه ښځه خوکافره ده،هغه به دمسلمانانوپه قبرستان کې نه دفن کیږي، چې دهغې عذاب سره مسلمانانومړو ته تکلیف ونه رسیږي اونه به هغه دکافرانوپه مقبره کې دفن کیږي ؛ځکه چې دهغې په خیټه کې مسلمان ماشوم دی،هغه ته به دکافرانودعذاب نه تکلیف وي،ددې وجې نه به داجدادفن شي،ددې سره دحضرت واثله بن الاسقع رضي الله عنه نه هم ددې قول په شان مروي دی اودحضرت عمر رضي الله عنه نه چې کوم مروي دی چې داسې ښځه به د مسلمانانو په قبرستان کې دفن کیږي ابن المنذر وايي چې دارروایت دحضرت عمر رضي الله عنه نه ثابت نه دی،زموږ اصحابو ویلي دي چې دانصرانۍ ښځه به په ګس(چپ) طرف باندې څملولې شي اوشادې قبلې طرف ته کړل شي، چې دماشوم مخ دقبلې طرف ته وي اوهغه دې په ښي اړخ باندې وي؛ ځکه چې په خیټه کې دماشوم مخ دښځې دشاطرف ته وي،،

د پورتنیو تصریحاتونه معلومه شوه چې دا داسلامي شریعت متفق علیه اومسلمه مسئله ده، چې هیڅ یوغیرمسلم دمسلمانانوپه قبرستان کې نه شي دفن کیدای،داسلامي شریعت دامسئله دومره صفا اوواضحه ده چې مرزاغلام احمدقادیاني هم په خپلوتحریرونو کې ددې حواله ورکړې ده. د دروغو د نبوت دمدعیانوپه باره کې مرزالیکلي دي:

,,حافظ صاحب یادساته،چې کوم څه په (قطع الوتین) رساله کې ددروغومدعیان نبوت په نسبت سره بې سروپای خبرې لیکل شوې دي چې حکایتونه دهغه وخت پورې یوه ذره هم د اعتبار قابل نه دي ترڅوپورې چې داثابته نه وي چې دروغژنو خلکوپه خپله دعوی باندې اصرارکړی دی اوتوبه یې ونه کړه اواصرارځنګه ثابتیدای شي ترڅوپورې چې ددې زمانې د څه تحریرپه ذریعه سره داامرثابت نه شي چې هغه خلک هم ددې دروغوپه دعوی نبوت باندې مړه شول او دهغوی هغه وخت کې هیڅ یومولوي جنازه ونه کړه اونه دمسلمانانوپه قبرستان کې دفن کړل شو..(تحفة الندوة ص:۷ روحاني خزائن ج:۱۹ ص:۹۵ مطبوعه لندن)

په همدې رساله کې مخکې لیکل شوي دي: ,,بیادحافظ صاحب په خدمت کې لنډه خبره داده چې زمادتوبې کولوله پاره به صرف دومره کافي نه وي چې که بالفرض والمحال څه الهامي کتاب دنبوت دمدعي راووځي،کوم چې هغه دقرآن شریف په شان(ځنګه چې زمادعوی ده)دخدای داسې وحې ورته وايي چې دکوم په صفت کې هیڅ شک نشته،ځنګه چې زه وایم اوبیا دا ثابت شي چې که هغه بغیردتوبې نه مړشي اومسلمانانو هغه په خپل قبرستان کې خښ نه کړ.(تحفة الندوة ص:۱۲ روحاني خزائن ج:۱۹ ص۹۹-۱۰۰مطبوعه لندن)

دمرزاغلام احمدقادیاني ددې دواړوعبارتونونه درې خبرې واضحه شوې:

**لومړۍ:** داچې ددروغومدعي نبوت کافراومرتد دی،همدغه شان دهغه منونکي هم کافر او

مرتد دي او هغوی د هیڅ اسلامي سلوک حقدار نه دي.

**دویمه**: داچې د کافرو مرتد د جنازې لمونځ نه وي، او نه هغه د مسلمانانو په قبرستان کې دفن کیږي.

**دریمه**: داچې مرزا غلام احمد قادیاني د نبوت دعوی کوي او خپل شیطاني ،،وحې،، (نعوذ بالله) د قرآن کریم په شان ګڼي.

که د تیر شوي دور د دروغو مدعیان نبوت د دې مستحق وي چې هغوی په اسلامي رورولۍ کې شامل نه کړل شي؛ نو مرزا غلام احمد قادیاني د چا د نبوت دعوی چې لمر په شان ښکاره ده. د هغه د منونکوله پاره هم دغه حکم دی چې نه د دې د هغوی د جنازې لمونځ وکړل شي او نه دې هغوی د مسلمانانو په قبرستان کې دفن کیدو ته پریښودل شي.

پاتې شوه داخبره که قادیاني په پټه باندې خپل مړی د مسلمانانو په مقبره کې خښ کړي نو د هغه څه وکړل شي؟

د دې جواب دادی چې پته لګیدو نه وروسته د هغه راویستل واجب دي، د دې څو وجې دي:

**اول**:.....داچې د مسلمانانو قبرستان د مسلمانانو د دفن کولو له پاره وقف دی، د چا غیر مسلم په دې کې دفن کول ,,غصب ،، دی او کوم مړی چې د غصب په ځمکه کې خښ کړل شي؛ نو د هغه راویستل لازم دي، څنګه چې د فقهې په کتابونو کې د دې وضاحت موجود دی[1] ځکه چې د کافر او مرتد لاش هر کله چې په غیر محل کې خښ شوی وي د احترام لائق نه دی، لکه چې امام بخاري رحمه الله د صحیح بخاري په کتاب الصلواة کې باب جوړ کړې دی: **باب هل ینبش قبور مشرکي الجاهلیة** .....الخ،، او د دې لاندې یې داحدیث نقل کړی دی چې د مسجد نبوي له پاره کومه ځمکه واخیستل شوه په هغې کې د کافرانو قبرونه وو.

**,,فأمر النبی صلی الله عیله وسلم بقبور المشرکین فنبشت،،**

(الصحیح بخاری ج:۱ ص:۶۱ مطبوعه حاجی نورمحمداصح المطالع)

**ترجمه**: حضور ﷺ د مشرکانو د قبرونو د ویستلو حکم وکړ، نو هغه وویستل شو.

حافظ ابن حجر رحمه الله د امام بخاري رحمه الله د دې باب په شرح کې لیکي:

**,,ای دون غیرها من قبور الانبیاء واتباعهم لما فی ذالک من اهانة لهم بخلاف المشرکین فانهم لاحرمة لهم،،** (فتح الباری ج:۱ ص: ۵۲٤ مطبوعه دارالنشر لاهور)

**ترجمه**: د مشرکانو قبرونه به د بیخه ویستل کیږي، د انبیاء کراموا و د هغوی د متبعینو قبرونه

---

[1] اذا دفن المیت فی ارض غیره بغیرمالکها فالمالک بالخیار ان شاء امر باخراج المیت وان شاء سوی الارض وزرع فیها کذافی التجنیس (عالمگیری ج:۱ص:۱۶۷،طبع رشیدیه کوئته)۰ اذا دفن فی ارض مغصوبة اوکفن فی ثوب مغصوب ولم یرض صاحبه الا بنقله عن ملکه اونزع ثوبه جازان یخرج منه باتفاق (مراقی الفلاح شرح نورالایضاح مع حاشیة طحطاوی ص:۳۳۷،فی حملها ودفنها ،طبع میرمحمدکتب خانه)۔

نه،ځکه چې په دې کې اهانت دی، دمشرکینو په خلاف،ځکه دهغوی هیڅ حرمت نشته.

حافظ بدرالدین عیني رحمه الله (المتوفی ۸۵۵هجری)ددې حدیث لاندې لیکي:،،(**فان قلت**) **کیف یجوزاخراجهم من قبورهم والقبر مختص بمن دفن فیه فقد حازه فلایجوز بیعه ولانقله عنه...**

(**قلت**)**تلک القبورالتی امرالنبی صلی الله عیله وسلم بنبشها لم تکن املاکا لمن دفن فیها بل لعلها غصبت،فلذلک باعها ملاکها،وعلی تقدیر التسلیم انها خبست فلیس بلازم.انما الازم تحبیس المسلمین لاالکفار،ولهذا قالت الفقهاء اذا دفن المسلم فی ارض مغصوبة یجوزاخراجه فضلاعن المشرک،،**(عمدة القاري ج:۲ ص:۳۵۹ طبع دارالطباعة العامره)

**ترجمه**:که دا وویل شي چې دکافرانواومشرکانومړي ددوی دمقبرونه راوویستل څنګه جائز کیدای شي؟ هرکله چې قبر د مدفون سره مختص وي،ځکه نه ددې ځای خرڅول جائزدي اونه دمړي دهغه ځای نه متقل کول جائزدي.

ددې جواب دادی چې داقبرونه دکومودراویستلوحکم چې نبي کریم ﷺ وکړغالبا ددفن کیدونکونه و،بلکې هغه ځای غصب شوی و،ځکه مالکانوهغه خرڅ کړ. اوکه دا فرض کړل شي چې داځای ددغه مړوله پاره خاص شوی و،نو بیاهم دالازمه نه ده؛ ځکه چې د مسلمانانو په قبرونوکې ساتل لازم دي دکافرانونه،په همدې وجه فقهاوویلي دي چې هرکله مسلمان په غصب شوې ځمکه کې دفن شوی وي ،دهغه راویستل جائزدي ؛نوبیاخوبه کافراومشرک خامخاراویستل کیږي.،،

کوم قبرستان چې دمسلمانانوله پاره وقف وي په هغه کې څوک قادیاني خښول دهغه ځای غصب دی؛ځکه چې وقف کونکي دادمسلمانانوله پاره وقف کړی دی،څوک کافرمرتدپه دې کې خښول په وقف شوي ځای کې تصرف دی اوپه وقف کې دناجائزه تصرف داجازت ورکولواختیارهیڅوک نه لري ، بلکې داناجائزه تصرف په هرحال کې ختمول ضروري دي،له دې وجې کوم قادیاني چې دمسلمانانوپه قبرستان کې دفن شوی وي، دهغه راویستلو سره ددې غصب ازاله کول ضروري دي اوکه مسلمانان په دې تصرف بې جااوغاصبانه حرکت باندې خاموش پاتې شي اوددې غصب دازالې کوششونه ونه کړي؛ نوټول به ګناه ګاروي اوددې مثال به بالکل داسې وي چې کوم ځای دجومات له پاره وقف وي اوپه هغه کې دګرجې یا مندر جوړولو اجازت ورکړل شي یاهغه ځای باندې غیرمسلم قبضه وکړي اوخپلې عبادت خانې پکې جوړې کړي؛نو ددې ناجائزه تصرف اوغاصبانه قبضې ازاله کول به په مسلمانانو باندې فرض وي،همدغه شان دمسلمانانوپه قبرستان کې کوم چې دمسلمانانوله پاره وقف دی ،که غیرمسلم قادیاني ناجائز تصرف اوغاصبانه قبضه وکړي؛ نودهغه ازاله به واجب وي.

دويمه وجه داده چې څوک کافر د مسلمانانو په قبرستان کې خښول د مسلمانانو مړو له پاره د تکليف سبب دی[1] ځکه چې کافر ته په خپل قبر کې عذاب ورکول کيږي او د هغه قبر محل لعنت او غضب دی، د هغه عذاب سره به مسلمانانو مړو ته تکليف وي، د دې وجې نه يو کافر د مسلمانانو په مقبره کې دفن کول جائز نه دي او که دفن شوی وي، نو د مسلمانانو له تکليف څخه د ساتلو له پاره د هغه راويستل ضروري دي، د هغه د لاش حرمت نشته، بلکې د مسلمانانو مړيو لحاظ ضروري دی.

امام ابوداود رحمه الله په «کتاب الجهاد، باب النهی عن قتل من اعتصم بالسجود» کې د حضور ﷺ ارشاد نقل کړی دی: «انا بری من کل مسلم يقيم بين اظهر المشرکين، قالوا: يارسول الله ﷺ لم؟ قال: لاترايا ناراهما». (ابوداود ج:۱ ص:۳۵۶ مبطبوعه ايچ ايم سعيد کراچی)

**ترجمه**: زه بري يم د هر هغه مسلمان څخه چې د کافرانو تر مينځه اوسيږي. صحابه وو عرض وکړ يارسول الله! د اولې؟ وېې فرمايل: د دواړو اور يو بل ته په نظر راتلل پکار نه دي.

او امام ابوداود رحمه الله په اخر کتاب الجهاد، «باب فی الاقامة بارض الشرک» کې دا حديث نقل کړی دی: «من جامع المشرک وسکن معه فانه مثله». (ابوداود ج:۲ ص:۲۹ ايچ ايم سعيد کراچی)

**ترجمه**: کوم کس چې د مشرک سره سکونت اختيار کړي هغه به هم د هغه په شان وي.

هر کله چې د دنيا په عارضي ژوندکې د کافر او مسلمان په يو ځای اوسيدل خوښ نه شو؛ نو د قبره په اوږد ژوندکې به دا اجتماع څنګه خوښيدای شي؟

دريمه وجه داده چې د مسلمانانو د قبرستان د زيارت او د هغوی له پاره د دعا او استغفار حکم دی[2] او د هيڅ يو کافر له پاره دعا، استغفار او ايصال ثواب جائز نه دي[3] د دې له وجې لازمه ده چې هيڅ ديو کافر قبر هم د مسلمانانو په قبرستان کې پرينښودل شي، د څه له وجې چې زائرين دوکه نه شي او هغوی د کافرانو مړيو په قبرونو باندې ودريږي او دعا او استغفار شروع نه کړي.

د مرزا غلام احمد په ملفوظاتو کې د يو بزرګ واقعه داسې ذکر شوې ده:

---

۱ [ويکره ان يدخل الکافر قبر احد من قرابته من المومنين، لانه الموضع الذی فيه الکافر تنزل فيه السخطة واللعنة فينزه قبر المسلم عن ذلک (البدائع الصنائع ج:۱ ص:۳۱۹ صلاة الجنازة، سنة الدفن طبع سعيد)۔

۲ [عن بريدة قال: کان رسول الله صلی الله عليه وسلم يعلمهم اذا خرجوا الی المقابر السلام عليکم اهل الديار من المومنين والمسلمين وانا ان شاء الله بکم لاحقون، نسال الله لنا ولکم العافية ۰ رواه مسلم (مشکوة الفصل الاول بابه زيارة القبور ص:۱۵۴، طبع قديمی کتب خانه)۔

۳ [ولاتصل علی احد منهم مات ابدًا ولاتقم علی قبره (التوبة: ۸۴) وفی التفسير: امر الله تعالی ورسوله صلی الله عليه وسلم ان يبرا من المنافقين، وان لايصلی علی احد منهم اذا مات وان لايقوم علی قبره ليستغفر له اويدعو له، لانهم کفروا بالله ورسوله وماتوا عليه، وهذا حکم عام فی کل من عرف نفاقه (تفسير ابن کثير ج:۳ ص:۴۲۵ طبع کوئته)۔

,,يو بزرګ په يو ښارکې د يرزيات ناروغ شو او د مرګ ترحالت پورې هلته ورسيده؛ نو خپلو ملګرو ته يې وصيت وکړ چې ما د يهودانو په قبرستان کې دفن کړئ، دوستان يې حيران شول چې دا خو عابد او زاهد انسان دی، د يهودانو په قبرستان کې د خښيدو خواهش ولې کوي؟ کيدای شي چې د ې وخت کې د ده حواس صحيح نه وي، هغوی ترې بيا پوښتنه وکړه چې دا تاسو څه فرمايئ؟ بزرګ ورته وويل چې تاسو زما په خبره مه حيرانه کيږئ ، زه په هوش او حواسو کې خبره کوم او اصل واقعه داده چې د ديرشو کلونو راهيسې زه دا دعا کوم چې ما ته دې مرګ په طوس ښارکې راشي، که زه نن دلته مړشم؛ نوچې د کوم کس د ديرشو کلونو دعا قبوله نه شي هغه مسلمان نه دی، زه نه غواړم چې په داسې صورت کې د مسلمانانو په قبرستان کې خښ شم چې اهل اسلام ته دوکه ورکړم او خلک ما مسلمان وګڼي او راځي او زما په قبرباندې فاتحه ولولي،، (ملفوظات غلام احمد قاديانی ج:۷ص:۳۹۶مطبوعه لندن)

فقهاوو د کافر او مسلم فرق کولو کې دومره رعايت کړی دی چې که د يو غيرمسلم مکان د مسلمانانو په محله کې وي؛ نو په هغه باندې نښه ضروري ده چې دا د غير مسلم مکان دی چې هلته مسلمان ونه دريږي او دعا او سلام ونه کړي، څنګه چې په (کتاب السيرباب احکام اهل الذمة) کې فقهاوو د دې وضاحت کړی دی.[1]

خلاصه داده چې هيڅ يو غيرمسلم خصوصا قادياني مرتد د مسلمانانو په مقبره کې دفن کول هيڅ کله جائزنه دي او که دفن شوی وی؛نو د هغه ويستل او د مسلمانانو قبرستان د هغه مردارنه پاکول ضروري دي.

## په نوي زيږيدلي ماشوم کې که ساه وي؛ نو د مرګ نه وروسته به د هغه د جنازې لمونځ کيږي

**سوال:** زموږ په کلي کې چې کله ماشوم پيداشي، اواز وکړي يا وژاړي، د ژوند نښې په کې ښکاره شي، دا ذان مهلت ورته پيدا نه شي او هغه ماشوم د دوو څلورو ساه ګانونه وروسته وفات شي، د کليوال د دې ماشوم د دې له وجې چې د دې ماشوم په غوږ کې اذان نه دی شوی د هغه ماشوم جنازه نه کوي او نه د ماشوم مړی د مسلمانانو په مقبره کې دفن کوي، د مقبرې د ديوال نه يې بهر دفن کوي، که ستاسو په خيال کې د جنازې لمونځ کول ضروري وي؛ نو په داسې صورت کې د جنازې دومره وخت د لمانځه نه کولو څه کفاره ده؟

**جواب:** کوم ماشوم کې چې د پيدايښ په وخت کې د ژوند نښې ښکاره شي د هغه جنازه ضروري ده، که څه هم هغه درې منټه وروسته وفات شوی وي[2] د داسې ماشومانو جنازه د دې له وجې

---

[1] ويأخذ الذمي بالتميز عنا في المركب والملبس....وتجعل على دورهم علامة (الاشباه والنظائرج:۲ص:۱۷۷)

[2] [قوله ومن استهل صلى عليه والا لا ......وفي الشرع ان يكون منه....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

نه کول چې دده په غوږ کې اذان نه دی شوی د جهالت خبره ده او د ناواقفي له وجې داسې څومره جنازې نه دي شوي ،په هغه دې توبه او استغفاروکړل شي همدغه يې کفاره ده.

## د حاملې ښځې هم يوه جنازه وي

**سوال:** زموږ په کلي کې يوه ښځه وفات شوه، دهغې په خيټه کې ماشوم و، زموږ امام صاحب دهغې جنازه وکړه، اوس ډير خلک وايي چې ددې دوه جنازې کول پکار و، دليل وايي چې فرض کړئ يوه حامله ښځه قتل شي؛ نوپه هغه باندې ددوو قتلونو الزام دی.

**جواب:** کوم خلک چې وايي دوه جنازې کول پکاروې، هغوی غلط وايي جنازه به يوه کيږي[1] او د دوومړيوجنازه په يوځای هم کيږي[2]هرکله چې ماشوم دموړپه خيټه کې مړشو دهغه جنازه نه شته.[3]

## که د پنځو شپږو مياشتو ماشوم لږ وخت ژوندی وي او مړشي؛ نوايا دهغه د جنازې لمونځ کيږي؟

**سوال:** که ديوې ښځې دپنځوشپږو مياشتودوران کې مړماشوم پيداشي، يادپيداکيدونه وروسته په دنيا کې دوه څلورساه ګانې اخيستونه وروسته وفات شي؛ نوپه دواړه صورتونوکې دغسل، کفن او د جنازې په باره کې راته ووايئ؟

**جواب:** کوم ماشوم چې دپيداکيدونه وروسته وفات شي، يوڅومنټه ژوندی وي، هغه ته دې غسل ورکړل شي اودهغه جنازه دې هم و شي، ، خوکوم ماشوم چې مړپيداشي دهغه جنازه نه شته هغه ته دې غسل ورکړل شي اوپه جامه کې دې ونغښتل شي اوپرته له جنازې دې دفن شي، مګرپه هغه نوم کيښودل ضروري دي.[4]

## په جوماتکې د ننه جنازه کول مکروه دي

**سوال:** دلته اکثرليدل کيږي چې جنازه په محراب کې دننه کيښودل شي اودمحراب په سر باندې امام صاحب ودريږي او مقتديان په جومات کې په صفونوکې ودريږي، وروسته بيا

---

...بقيه د تير مخ]..يدل على حياته من رفع الصوت اوحركة عضو ......حكمه الصلاة عليه ويلزمه ان يغسل ......الخ (البحرالرائق ج:۲ص:۲۰۲كتاب الجنائز)

۱ ]ولايصلى على ميت الا مرة واحدة ......الخ (هندية ج:۱ص:۱٦۳،الباب الحادى والعشرون فى الجنائز)۔

۲ ]قوله:وان جمع جازاى بان صلى على الكل صلاة واحدة ......الخ (شامى ج:۲ص:۲۱۹باب صلاة الجنازة)

۳ ] ومن ولدفمات يغسل ويصلى عليه ويرث ويورث ويسمى ان استهل ......(والا) يستهل غسل وسمى ......ولم يصل عليه ،.....الخ (درمختارمع الشامى ج:۲ص:۲۲۷،مطلب مهم ،باب صلاة الجنازة)۔

٤ ] ايضًا)۔

دجنازې لمونځ وشي، ايا داطريقه صحيح ده؟ اوعذردا وړاندې کوي چې دخاى دکمي له وجې داسې کيږي.

**جواب:** په جومات کې دجنازې دلمانځه درې صورتونه دي اوداحنافورحمه الله عليهم په نزددرې واړه على الترتيب مکروه دي.

(۱): داچې جنازه په جومات کې وي اوامام اومقتديان هم په جومات کې وي.

(۲): داچې جنازه بهروي اوامام اومقتديان دواړه په جومات کې وي.

(۳): داچې جنازه امام اوڅه مقتديان دجومات نه بهروي اوڅه مقتديان جومات کې دننه وي[۱] که د څه عذرله وجې يې په جومات کې جنازه وکړ: نوجانزده [۲]

## د ماشوم د دفن کولو نه وروسته معلومه شوه چې هغه د پيدايښ په وخت ژوندی و؛ نواوس څه وشي؟

**سوال:** يوکال مخکې زما زوی مړشو. يعنې له پيدا کيدو لس منټه وروسته، خوموږ ته په هسپتال کې دا معلومات وشو چې هغه مړ پيدا شوی دی له دې وجې موږ هغه دجنازې د لمانځه اوغسل نه پرته په قبرستان کې دفن کړ، کله موږ وروسته د هسپتال رپورټ ولوست؛ نو په دې کې يې د ماشوم په باره کې دا ليکلي وو چې د پيدا کيدو لس منټه وروسته مړ شوی و او حالانکې موږ د ماشوم نوم هم نه و ايښی، آيا په دې صورت کې به موږ ګناهګار يو، حالانکې موږ د بې علمي له وجې د جنازې لمونځ نه و کړی او نه مو ده نوم ايښی و؟

**جواب:** د بې علمي له وجې داسې وشول له دې وجې ګناه لازمه نه شوه او اوس خو د جنازې د لمونځ په باره کې هيڅ صورت نه کيږي[۳] البته د ماشوم نوم اوس هم کيښودلی شئ.[۴]

## په مسجد کې د جنازې لمونځ کول

**سوال:** عرض دا دی چې زموږ په جامع مسجد کې د جنازې لمونځ اداء کيږي، د محراب مخې ته ګيرلی کې مړی او د امام نه پرته ټول لمونځ کونکي په مسجد کې د جنازې لمونځ

---

[۱] وكرهت تحريمًا فى مسجدجماعة هو اى الميت فيه وحده اومع القوم واختلف فى الخارجة عن المسجدوحده اومع بعض القوم والمختار الكراهة مطلقًا ، درمختاروفى الشامية:قوله مطلقااى فى جميع الصورالمتقدمة كمافى الفتح عن الخلاصة(درمختارمع الشامى ج:۲ص:۲۲۵مطلب فى كراهة صلاة الجنازة وايضًافى الهندية ج:۱ص:۱۶۵)

[۲] تتمه انما تكره فى المسجدبلاعذر،فان كان فلا (ردالمحتارج:۲ص:۲۲۶ مطلب مهم)۔

[۳] ولودفن الميت قبل الصلاة اوقبل الغسل فانه يصلى على قبره الى ثلاثة ايام والصحيح ان هذا ليس بتقدير لازم بل يصلى عليه مالم يعلم انه قدتمزق كذافى السراجية(عالمگيرى ج۱ص:۱۶۵،الباب الحادى والعشرون فى الجنائز)

[۴] ومن استهل بعدالولادة سمى وغسل وصلى عليه (عالمگيرى ج:۱ص:۱۵۹،الباب الحادى والعشرون)

کوي، ګزارش دادی چې د فقه حنفي په رڼا کې ددې شرعي حیثیت څه دی؟

**جواب:** که د مسجد نه پرته د جنازې ځای موجود وي (مثلاً د مسجد سره نژدې میدان)؛ نو په مسجد کې د جنازې لمونځ اداء کول مکروه دي[1] او که چیرې ځای نه وي؛ نو د مجبورۍ نه جائز دی.[2]

## په مسجد کې د جنازې لمونځ اداء کول

**سوال:** د پاکستان د جوړیدو نه مخکې به د جنازې لمونځ د مسجد د صحن د حدودو سره پیوست ځای چې عام ډول د ځپلیو دویستلو له پاره وي، که چیرې خلک کم وو نوهلته به کیده اوکه حاضرین به زیات وو؛ نو د مسجد نه به بهر لمونځ کیده، په اول کې په پاکستان کې هم دا طریقه وه، د وخت سره سره یې دوی ته وسیع النظري وایي یا لبرالزم Liberalism په دې طریقې سره تبدیلي راغله، دځینې مسجدونو د امامانو د مصلې مخې ته په دیوال کې به یې یوه مختصره کړکی کوله چې هغه په مشکله سره ۱×۱ فټ جوړیده، جنازه به یې بهر کیښوده او امام به د خپلې مصلې نه لمونځ اداء کاو، اوس په ځینې مسجدونو کې دروازې هم جوړې شوې دي په ځینې مسجدونو کې به امام او دوه درې سړي بهر دریدل او باقي لمونځ کوونکي به په خپل ځای باندې لمونځ اداء کاوو، هغه امام چې هغه یو وخت بهر د لمونځ له پاره مسئله بیانوي یوازې دا وجه بیانوي چې بهر تیلې والاوړ دي، دننه لمونځ اداء کوي، زما مراد ددې تفصیل نه دادی چې اسلامي فقه (واضح دې وي دا ټول امامان د دیوبند نه استفاده کوي) په دې مسئله کې څه لاره ښایي؟ که چیرې په مسجد کې امام د خپلې مصلی نه یا درې سړي د امام سره بهر ووځي او باقي لمونځ کوونکي په خپل ځای کې په لمونځ کې شامل وي، که په دې کې د کراهت یا د منع حکم نه وي؛ نو بهتره دا ده چې ددې وضاحت د ټولو امامانو صاحبانو نه وشي.

**جواب:** مسئله داده چې د جنازې لمونځ په مسجد کې مکروه دي، مګر دا چې د څه عذر په بنا په بهر اداء کول مشکل وي؛ نو بیا په مسجد کې د جنازې د اداء کولو یو څو صورتونه دي:

(۱): مړی، امام او مقتدیان په مسجد کې.

(۲): مړی بهر وي او امام او مقتدیان په مسجد کې وي.

---

[1] واختلف فی الخارجة عن المسجد وحده اومع بعض القوم والمختارالکراهة مطلقًا (الدرالمختارمع الردج:۲ ص:۲۲۵باب صلاة الجنازة،مطلب فی کراهة صلاة الجنازة فی المسجد)

[2] انما تکره فی المسجدبلاعذر، فان کان فلا، ومن الاعذار المطرفی الخانیة ......وانظرهل یقال ان من العذرماجرت به العادة فی بلادنامن الصلاة علیها فی المسجدلتعذرغیره اوتعسره بسبب اندراس المواضع التی کانت یصلی علیها فیها......واذا ضاق الامراتسع ......واذا کان ماذکرناعذرًافلاکراهة اصلاً (شامی ج:۲ص:۲۲۶،۲۲۷باب صلاة الجنازة مطلب مهم)

(۳): مړی، امام او څه مقتدیان بهر وي او باقي خلک په مسجد کې وي.

دا ټول صورتونه مکروه دي، البته اولني او دویم صورت نه په دریم صورت کې زیات کراهت دی[1] که چیرې صورت حال دا وي بهر د جنازې لمونځ اداء کول ممکن یا ډیر مشکل وي؛ نو په مسجد کې اداء کول د مجبوري له وجې جائز دي.[2]

## د جنازې د لمانځه په ځای کې فرض لمونځ کول

**سوال:** ایا دا خبره صحیح ده چې کوم ځای کې د جنازې لمونځ کیږي هلته فرض لمونځ نه شي کیدای؟

**جواب:** دا خو صحیح نه ده چې کوم ځای کې د جنازې لمونځ کیږي، هلته فرض لمونځ نه شي کیدای، البته مسئله د دې برعکس ده چې کوم جومات د پنځه وخته لمانځه له پاره جوړ شوی وي، هلته پرته د څه عذر نه د جنازې لمونځ کول مکروه دي.[3]

## د جنازې د لمانځه له پاره په حطیم کې دریدل

**سوال:** په حرم شریف کې تقریبا روزانه د جنازې لمونځ کیږي، اکثر خلک په حطیم کې دریږي او د جنازې لمونځ کوي، هرکله چې امام مقام ابراهیم سره ولاړ وي: نو ایا په حطیم کې د جنازې لمونځ اداکیږي او که نه؟

**جواب:** متقدمینو نه خو دا مسئله منقول نه ده، البته علامه شامي رحمه الله دیو رومي عالم خبره نقل کړې ده چې هغه دا صحیح نه ګڼله او علامه شامي لیکي چې هغه په خپله دا صحیح ګڼي. (ج:۲ ص:۲۵۶ طبع جدید)[4] تر څو چې ماته پته ده په عامو لمونځونو کې هم او د جنازې په لمانځه کې هم خوک په حطیم کې دریدو ته نه پریښودل کیږي.

## په حرمین شریفین کې د جنازې لمونځ ولې کیږي؟

**سوال:** په نوې ګڼه کې تاسو فرمایلي دي چې په کوم ځای کې پنځه وخته لمونځ کیږي، هلته

---

[1] ویکره تحریمًا وقیل تنـــزیهًا فی مسجدجماعة هوای المیت فیه وحده اومع القوم واختلف فی الخارجة عن المسجد وحده اومع بعض القوم والمختارالکراهة مطلقًا (ألدرالمختارمع الردج:۲ص:۲۲۵باب صلاة الجنازة)

[2] انماتکره فی السجدبلاعذرفان کان فلا (شامی ج:۲ص:۲۲۶باب صلاة الجنازة مطلب مهم)

[3] وکرهت تحریمًافی مسجد جماعة ۰ درمختاروفی الشامیة قوله فی مسجد جماعة ای المسجدالجامع ومسجدالمحلة ......الخ(شامی ج:۲ص:۲۲۵باب صلاة الجنازة مطلب فی کراهیة صلاة الجنازة فی المسجد)۔

[4] وهو مالوکان المقتدی فیها والامام خارجها ،والظاهر الصحة ان لم یمنع منها مانع من التقدم علی الامام عند اتحادالجهة....قلت :ولما حججت سنة ثلاث وثلاثین ومائتین والف اجتمعت فی منی سقی الله عهدها مع بعض الفاضل الروم من قضاة المدینة المنورة فسالنی عن هذه المسئلة فقلت له ماتقدم فقال :لایصح الاقتداء لان المقتدی یکون اقوی حالاً من الامام لکونه داخلها والامام خارجها(شامی ج:۲ص:۲۵۵،باب الصلاة فی الکعبة ،طبع ایچ ایم سعید)

دجنازې لمونځ مکروه دی، هرکله چې په کعبه شریفه، مسجدنبوي اونوروجوماتونوکې په هم هاغه ځای کې دجنازې لمونځ کیږي؛ نو ایاهغوی ته کول پکاردي؟

**جواب:** دعذراومجبوري حالت مستثنی دی، په حرمین شریفین کې دومره لوی ځای ته دومره لویه مجمع په سهولت سره نه منتقل کیدل پوره عذردی.[۱]

## په بازارکې د جنازې لمونځ مکروه دی

**سوال:** زموږ په بازارکې اکثردجنازې لمونځ کیږي، چې دهغه له وجې ټریفک والاهم دریږي اود خلکو تګ راتګ بندشي، کله چې ورسره نژدې روډباندې ددې له پاره ځای هم جوړشوی دی، خو بیاهم دلته جنازه کیږي؛ نو ایا داطریقه صحیح ده؟

**جواب:** له څه عذرنه پرته په بازاراو لاره کې دجنازې لمونځ کول مکروه دي.[۲]

## د سهاراو مازدیګر نه وروسته د جنازې لمونځ

**سوال:** دامام ابوحنیفه رحمه الله په مسلک باندې تلونکوله پاره دسهاردلمانځه نه وروسته ترڅو پورې چې لمر را ونه خیژي اودمازدیګردفرض لمانځه وروسته ترڅوپورې چې دماښام فرض لمونځ ونه شي هیڅ لمونځ کول پکار نه دي اواکثرځل کله چې الله تعالی په خپل فضل اوکرم سره د حرمینو شریفینوزیارت راته نصیب کوي؛ نواکثرداواقعه راپیښیږي، دسهار دفرض لمانځه وروسته، یعنې دسلام ګرځولوپسې جنازه شروع شوه؛ نوپه داسې حالت کې موږ ته څه کول پکار دي؟ او همدغه شان د مازدیګردلمانځه وروسته کیږي؛ نوپه داسې حالت کې موږ ته څه کول پکاردي؟دجنازې لمونځ وکړو اوکه نه؟

**جواب:** دسهاراومازدیګرنه وروسته نوافل جائزنه دي (په دې کې دوګانه طواف هم شامل دی) مګر دجنازې لمونځ، سجده تلاوت اود قضا لمونځونواجازه شته، له دې وجې دجنازې لمونځ ضرورکول پکاردي.[۳]

## د جنازې لمونځ دې دسنتو نه وروسته وکړل شي

**سوال:** زموږ دعلاقې په جومات کې دڅو ورځو راهیسې داسې کیږي چې هریولمانځه په دوران کې که چیرته جنازه راشي؛ نودجومات امام صاحب دفرضو نه فورا وروسته دجنازې

---

۱ ] واذاکان ماذکرناه عذرًا فلاکراهةً اصلاً والله تعالى اعلم (شامی ج:۲ص:۲۲۷،باب صلاة الجنازة ،مطلب مهم ،وایضًا فی الهندیة ج:۱ص:۱۶۵،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز)_

۲ ] وتکره ایضًافی الشارع (شامی ج:۲ص:۲۲۵،باب صلاة الجنازة ،وایضًافی الهندیة ج:۱ص:۱۶۵)_

۳ ] تسعة اوقات یکره فیها النوافل ومافی معناها لا الفرائض ...... فیجوزفیها قضاء الفائتة وصلاة الجنازة وسجدة التلاوة....منها مابعدصلاة الفجرقبل طلوع الشمس.....ومنها مابعد صلاة العصرقبل التغیر......الخ (هندیة ج:۱ص:۵۲،۵۳،الباب الاول فی المواقیت ومایتصل بها ،وایضًافی الشامی ج:۱ص:۳۷۵)_

لمونځ وکړي، هرکله چې په نورو جوماتونوکې اوزموږ په جومات کې به دپوره لمونځ نه وروسته د جنازې لمونځ کیده، مګر اوس دځوورځوراهیسې زموږ په جومات کې دفرض لمانځه نه وروسته دجنازې لمونځ وشي اودغه شان ډیرلمونځ ګزارقبرستان پورې په جنازې کې دشرکت کولونه پاتې شي، تاسوته دادرخواست دی چې دقرآن اوسنت په رڼاکې دفرض لمانځه نه فورا وروسته دجنازې داداکولوپه باره کې څه حکم دی؟

**جواب:** اصل مسئله خوهمدغه ده چې دفرض لمانځه نه وروسته دې جنازه وشي بیادې سنت وشي، مګرپه درمختارکې دبحرنه منقول دي چې فتوا په دې باندې ده چې جنازه دې دسنتونه وروسته وشي.[۱]

## څپلیو سره دجنازې لمونځ کول

**سوال:** دجنازې په لمانځه کې ددریدوپه وخت خپلې څپلې وباسواوکه نه؟ لیدل شوي دي چې خلک څپلې وباسي اودهغو له پاسه ودریږي، داعمل څنګه دی؟ اومهرباني وکړئ اوداراته ووایئ چې پښې ابله پښې صحیح دي یا دڅپلیوسره یادڅپلوله پاسه دریدل؟

**جواب:** څپلې که پاکې وي: نوپه هغو باندې دریدل اودجنازې لمونځ کول صحیح دي اوکه پاکې نه وي؛ نونه خودهغو سره دجنازې لمونځ کولی شئ اونه په هغو پښې کیښودوسره د جنازې لمونځ کول صحیح دی اوکه له پورته صفاوي، مګرله لاندې صفانه وي؛[۲] نوپه هغو باندې پښې کیږدئ! ځکه که وچه (صفا)وي؛ نوپښې ابله دریدل صحیح دي.

## د څپلیو په پښو کولو سره د جنازې د لمانځه اداء کول

**سوال:** د جنازې په لمانځه کې چې کله لمونځ اداء کیږي نو عام طور باندې جنازه د مسجد نه بهرپه کچه ځای باندې کیښودل کیږي، او ځینې خلک د پیذار سره او ځینې خلق د څپلیو سره دجنازې په لمونځ کې شرکت کوي، آیا دپیذار او څپلیو اچولوسره د جنازې لمونځ اداء کیږي؟

**جواب:** که چیرې پیذار او څپلې پاکې وي: نو د دې په اچولو سره د جنازې لمونځ اداء کول صحیح دي او ګني نو جائز نه دي.[۳]

---

۱ ] لکن فی البحرقبیل الاذان عن الحلبی الفتوی علی تاخیر الجنازة عن السنة .......الخ (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۱۶۷،باب العیدین)_

۲ ]ولو افترش نعلیه وقام علیها جازفلایضرنجاسة ماتحتها لکن لابدمن طهارة نعلیه ممایلی الرجل لاممایلی الارض ......الخ (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص:۳۱۹،باب احکام الجنائز،فصل الصلاة علیه)_

۳ ]وکل مایعتبرشرطًا لصحة سائر الصلوات من الطهارة الحقیقیة والحکمیة ......یعتبرلصحة صلاة الجنازة (عالمگیری ج:۱ص:۱۶٤،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز)،وصلاته فیهماافضل ای فی النعل والخف الطاهرین افضل مخالفة للیهود ،تاتارخانیة (شامی ج:۱ص:۶۵۷،مطلب فی احکام المسجد)_

## بيړه کې د جنازې لمونځ په تيمم سره جائز دی

**سوال:** که دجنازې لمونځ بالکل تيار وي اوانسان پاک وي، نو له اوداسه پرته به دجنازې لمونځ وشي؟ اوکه داودس له پاره کېنې نود جنازې لمونځ به ترې شوی وي؟په داسې صورت کې به ايا دجنازې لمونځ وشي؟ اوکه نه کيږي؛ نوبه داسې صورت کې څه کول پکاردي؟

**جواب:** که داويره وی چې که اودس ته کېنم دجنازې لمونځ به رانه فوت شي؛ نوبه داسې صورت کې تيمم وکړئ اودجنازې په لمونځ کې شريک شئ[1]،خودا تيمم به يوازې دجنازې د لمانځه له پاره وي،نورلمونځونه په دې تيمم سره کول جائزنه،بلکې اودس کول به ضروري وي.[2]

## له اوداسه پرته د جنازې لمونځ

**سوال:** تيرو ورځوکې زموږ په کالج کې غائبانه نمازجنازه وکړل شوه،هغه داسې چې دکالج دبس نه دکوزيدوسره څه طالبعلمانو وويل چې غائبانه دجنازې لمونځ کيږي،په دې کې شرکت کوو، موږ په دغه وخت کې بې اودسه وو،بلکې ټول طالبعلمان بې اودسه وو، خو داودس سهولت نه کيدوبه وجه چې هسې نه چې ملګري مودخپل ځان نه جدا وګڼي دمجبوري نه موږ دجنازې په لمانځه کې شرکت وکړ،دجنازې په دې لمونځ کې په ګڼ شمير کې هندوان طالب علمان هم شامل وو،تاسوراته دا ووايئ چې آيا داغائبانه دجنازې لمونځ وشو؟ اوزموږ دبې اودسه شرکت کفاره څه ده؟

**جواب:** دحنفيانو په نزدباندې خوغائبانه دجنازې لمونځ کيږي هم نه،[3] که تاسوبه دې کې شرکت کولو؛ نوتيمم به موکړی و اوبيا به شريک شوي وئ،دطهارت نه پرته دجنازې لمونځ جائزنه دی،[4] ددې کفاره اوس څه کيدای شي؟سواددې نه چې دالله تعالی نه معافي وغواړئ،په دې پوه نه شوم چې هندوان هلکان په دې کې ولې شامل شول؟

## د جنازې دلمانځه له پاره يوازې دمشرزوی اجازه ضروري نه ده

**سوال:** اکثرمولويان دجنازې کولونه مخکې پوښتنه وکړي چې دمړي مشرزوی څوک دی؟زماپه نظر دمشرزوی دشريعت په لحاظ سره څه اهميت نه شته،مولويانوصاحبانوته

---

١ ]وکل مايعتبرشرطًا لصحة سائر الصلوات من الطهارة الحقيقية والحکمية ......يعتبرلصحة صلاة الجنازة (عالمگيری ج:١ص:١٦٤،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز)٠وصلاته فيهماافضل ای فی النعل والخف الطاهرين افضل مخالفة لليهود ٠تاتارخانية (شامي ج:١ص:٦٥٧،مطلب فی احکام المسجد)_

٢ ] قوله وجازلخوف فوت صلاة الجنازة ای ولوکان الماء قريبًا (شامي ج:١ص:٢٤١،باب التيمم)_

٣ ] اماالتيمم لخوف فوت الجنازة ای ولوکان الماءقريبًا (شامي ج:١ص:٢٤٢باب التيمم)_

٤ ] وشرطهاايضًاحضوره ووضعه وکونه هو او اکثره امام المصلی وکونه للقبلة فلا تصح علی غائب ....الخ (درمختارمع الشامي ج:٢ص:٢٠٨،باب صلاة الجنازة،مطلب هل يسقط فرض الکفاية بفعل الصبی؟)

دمړي دوارث په باره کې پوښننه کول پکاردي او وارث وروړهم کيداى شي.دوست هم.آيا په دې سلسله کې دمشر زوى شرط ضروري دى؟ ايا دمشرزوى شرط شرعي دى؟

**جواب:** دجنازې له پاره دولې نه اجازه اخيستل کيږي اوچونکې(دپلارنه وروسته) زوى دټولونه مقدم دى اوپه هلکانوکې دټولونه زيات حق دمشرزوى وي، له دې وجې دهغه نه اجازه اخيستل مقصود وي[1]، هسې خوله اجازې پرته هم جنازه اداکيږي[2]

## د سيدپه موجوديت کې د جنازې لمونځ دويم کس هم ورکولى شي

**سوال:** زموږ په ځاى کې جنازه وشوه،هلته خلکوامام صاحب ته وويل چې سيد موجودنه دى، ددې وجې نه دجنازې لمونځ مه کوه،ايا دسيدپه غيرموجوديت کې دجنازې لمونځ اداکيداى نه شي؟دقرآن پاک په رڼاکې جواب راکړئ!

**جواب:** دجنازې کولوله ټولونه زيات حقدار دمړي ولى وي،دهغه نه وروسته دمحلې امام[3]،په هرحال دسيدپه غيرموجوديت کې دجنازې لمونځ صحيح دى،اوداخيال بالکل غلط دى چې ترڅوپورې سيد موجودنه وي دويم کس جنازه نه شي کولى،بلکې دسيدپه موجوديت کې هم دويم کس دجنازې لمونځ کولى شي[4]

## د جنازې دلمانځه د اداء کولو حقدار څوک دي؟

**سوال:** د جنازې د لمانځه د اداء کولو کوم حضرات حقدار دي؟

**جواب:** د مړي ولي زيات حقدار دى، په دې شرط چې د جنازې د لمونځ د اداء کولو اهل وي، دا رنګه دمحلې دامام حق دى او د يو نيک متقي نه د جنازې د لمونځ د کولو اهتمام کول پکار دي[5]

---

۱ ]اماالشروط التى ترجع الى المصلى فهى شروط بقية الصلوات من الطهارة الحقيقة بدناوثوبا ......الخ (شامى ج:۲ص:۲۰۷باب صلاة الجنازة مطلب فى صلاة الجنازة)_

۲ ] قوله والاولياءعلى الترتيب ...... والاب افضل ولذا يقوم الاسن عند الاستواء كما فى اخوين شقيقين ......الخ ( فتح القدير ج:۱ص:٤٥٧،باب صلاة الجنازة)_

۳ ]فان صلى غيرالولى اوالسلطان اعاد الولى ......ثم هو ليس بمنحصرعلى السلطان بل كل من كان مقدما على الولى فى ترتيب الامامة فى صلاة الجنازة على ماذكرنا فصلى هولا يعيدالولى ثانيا......الخ (شرح العناية على الهداية فى فتح القديرج:۱ص:٤٥٨)_

٤] قوله ثم الولى اى ولى الميت الذكر البالغ العاقل....قال فى شرح المنية :الاصل ان الحق فى الصلاة للولى،ولذا قدم على الجميع......الخ (شامى ج:۲ص:۲۲۰،باب صلاة الجنازة ،مطلب تعظيم اولى الامرواجب) (٤) اما شروط وجوبها فهى شروط بقية الصلوات من القدرة والعقل والبلوغ والاسلام..الخ (شامى ج:۲ص:۲۰۷)

٥] ثم امام الحى المراد به امام مسجدمحلته لكن بشرط ان يكون افضل....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

## د نږدې ولي له اجازې پرته د اداء شوې جنازې حکم

**سوال:** که یو سړی د خپل وطن نه بهر د الله تعالی په حکم سره وفات شي او هلته د مړي د برابر درجې په ولیانو کې د یو کس په موجودیت او اجازې د جنازې لمونځ اداء شوی وي او بیا وطن ته راوړل شي؛ نو دده به دوباره د جنازې لمونځ اداء کیږي اوکه نه؟

**جواب:** دمړي چې په کوم ځای کې انتقال وشي هلته یې دفن کول پکار دي [1] که د زیات نږدې ولي نه پرته مسلمانانو دده د جنازې لمونځ اداء کړ (ځکه چې نږدې ولي موجود نه و) نو فرض اداء شو، بیا هم نږدې ولي د جنازې لمونځ اداء کولی شي او دده سره په جنازه کې نور خلک هم شریکیدلای شي. [2]

## دچا د جنازې لمونځ چې غیر مسلم وکړ په هغه دوباره لمونځ کول پکار دي

**سوال:** نوی کراچی سیکټر-۵ ډي کې دغیرمسلم ډلې جومات دی، فلاح دارین،دهغه دپیش امام تعلق دیو دیندارجماعت سره دی،چې چن بشویشورمني،خو دانه ظاهروي،خلک دوکه وخوري، کله چې هغوی ته پته ولګیږي؛ نوبیاپښیمانه وي،تردې پورې چې یوصاحب وفات شو،چې دسني عقیدې والا و،دهغهٔ دجنازې لمونځ ددې جومات امام صاحب وکړ،تاسوراته ووایئ چې دسني عقیدې والا دجنازې لمونځ قادیاني کولی شي؟اوکه نه یې شي کولی؛نوددویم ځلي لمونځ به څه طریقه وي؟

**جواب:** ددین دارانجمن دخلکوتعلق دقادیانانودیوشاخ سره دی،له دې وجې نه داخلک مسلمانان نهي،دا امام صاحب دې فورا لرې کړل شي،غیرمسلم دمسلمان جنازه نه شي کولی، که چاغیرمسلم د مسلمان جنازه وکړه؛ نودوباره دجنازې لمونځ کول فرض دي اوکه بغیر دجنازې نه دفن کړل شو؛نوټول مسلمانان به ګناهګاروي. [3]

---

...بقیه د تیر مخ]... من الولی والا فالولی اولی منه ......الخ (مراقی الفلاح ج:۱ص:۳۲۳،باب احکام الجنائز، فصل السلطان احق بصلاته ،طبع میرمحمد)

[1] ویستحب فی القتیل والمیت دفنه فی المکان الذی مات فی مقابراولئک القوم ......الخ (عالمگیری ج:۱ص:۱۶۷،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز)

[2] فان صلی غیرالولی اوالسلطان اعادالولی ان شاء کذافی الهدایة (ایضًا ج:۱ص:۱۶٤،الباب الحادی والعشرون)

[3] ثم امام الحی المراد به امام مسجد محلته لکن بشرط ان یکون افضل من الولی والا فالولی اولی منه ..... الخ (مراقی الفلاح ج:۱ص:۳۲۳،طبع سعید)_

## د جنازې دلمونځ طريقه

**سوال:** دجنازې دلمونځ طريقه څه ده؟

**جواب:** دجنازې په لمونځ کې څلورتکبيرونه وي،دلومړي تکبيرنه وروسته ثناء، ددويم نه وروسته درود شريف، د دريم نه وروسته دمړي له پاره دعا اود څلورم نه وروسته سلام.[1]

## د جنازې د لمونځ نيت څنګه دی؟ که دعا ياده نه وي نوڅه وکړو؟

**سوال:** .که دجنازې دلمونځ دعاياده نه وي؛ نوڅه لوستل پکاردي؟ او نيت څنګه وکړل شي؟

**جواب:** دجنازې په لمونځ کې دجنازې نيت کيږي،[2]دلومړي تکبيرنه وروسته ثناء وايو،ددويم تکبيرنه وروسته دلمونځ والا درودشريف وايو،ددريم تکبيرنه وروسته دمړي له پاره دعاوايواودڅلورم تکبيرنه وروسته سلام ګرځوو[3].که دعاياده نه وي نويادول يې پکاردي،کومه چې لاندې ليکل شوې ده،ترڅوپورې چې دعاياده نه وي ,,**اللهم اغفرلنا وللمومنين والمومنات**،،لولئ ياخاموش دريږئ.[4]

## دُعاګانې دادي:

### دبالغ مړي له پاره دعا:

**((اللهم اغفرلحينا وميتنا وشاهدنا وغائبنا وصغيرنا وكبيرنا وذكرنا وانثانا، اللهم من احييته منا فاحيه على الاسلام ومن توفيته منا فتوفه على الايمان))**[5]

### د نا بالغه ماشوم له پاره دعا:

**((اللهم اجعله لنا فرطا واجعله لنا اجرا وذخرا واجعله لنا شافعا ومشفعا))**[6]

---

۱ ] وهى اربع تكبيرات يرفع يديه فى الاولى فقط ويثنى بعدها ويصلى على النبى صلى الله عليه وسلم بعد الثانية ويدعوا بعدالثالثة ويسلم بلا دعاء بعدالرابعة....تنويرالابصارمع الدر ج:۲ص:۲۱۲باب صلاة الجنازة)

۲ ]ولو تفكر الامام بالقلب انه يودى صلاة الجنازة يصح ولو قال المقتدى اقتديت بالامام يجوز (هندية ج:۱ ص:۱٦٤،الباب الحادى والعشرون فى الجنائز)_

۳ ] ايضاً تيره شوى حاشيه (وهى اربع تكبيرات يرفع يديه فى الاولى فقط.....الخ) اوګورئ!)_

٤ ] ثم افاد ان من لم يحسن الدعاء بالماثوريقول: اللهم اغفرلنا ولوالدينا وله وللمومنين والمومنات ( شامى ج:۲ص:۲۱۲،باب صلاة الجنازة ،مطلب هل يسقط فرض الكفاية بفعل الصبى؟)_

٥ ] مشكوة المصابيح ص:۱٤٦،باب المشى بالجنازة ،ايضًا:شامى ج۲ص:۲۱۲،هندية ج:۱ص:۱٦٤)_

٦ ] ايضاً)_

## د نا بالغې ماشومې له پاره:

((اللهم اجعلها لنا فرطا واجعلها لنا اجرا وذخرا واجعلها لنا شافعة ومشفعة)) [۱]

## د جنازې په لمونځ کې دعاګانې سنت دي

**سوال:** ايا د جنازې په لمونځ کې دعا لوستل ضروري دي او که نه؟

**جواب:** د جنازې په لمونځ کې څلور تکبيرونه فرض دي او دعاګانې سنت دي،[۲] که چا ته دعاګانې يادې نه وي؛ نو يوازې تکبيرونو و يلو سره به هم فرض اداشي،خو د جنازې د لمونځ دعاګانې زده کول پکار دي، ځکه چې د دې نه پرته به مړی د شفاعت نه محروم پاتې کيږي او لمونځ به هم خلاف سنت وي.

## که د وړو او لويانو يو د جنازې لمونځ وشي نو د لويانو دعا لولئ !

**سوال:** ...په حرمين شريفين کې د ماشومانو او لويانو د جنازې لمونځ په يو ځای کيږي په داسې صورت کې به کومه دعا اداکيږي؟

**جواب:** اجتماعي جنازه کې به هماغه دعا ولولې چې د لويانو د جنازې په لمونځ کې لوستل کيږي،په دې کې به د ماشوم له پاره هم دعا شامله شي.[۳]

## که معلومه نه وي چې جنازه د سړي ده يا د ښځې؛ نو د بالغ دعا لولئ !

**سوال:** د جنازې د لمونځ جمعه ولاړه ده،او يو کس وروسته راځي او په جنازه کې شامليږي، تر او سه پورې هغه ته معلومه نه ده چې جنازه د چا کيږي؟ آيا مړی سړی دی يا ښځه او که ماشوم څوک دی؟ په داسې صورت کې هغه څه نيت وکړي او څه ووايي؟

**جواب:** د سړي او ښځې د جنازې دعا يوه ده،البته د ماشوم او ماشومې له پاره د دعا الفاظ جدا جدا دي، بيا هم که د ماشوم په جنازه کې د بالغ سړي يا ښځې والا دعا ولوستل شي؛ نو صحيح ده،ځکه چې که وروسته راتلونکي ته پته نه وي نو هغه دې د مطلق جنازې نيت وکړي او د بالغانو دعا دې ولولي.[۴]

---

۱ ] ايضاً_

۲ ]ورکنها شيئان التکبيرات الاربع ......وسنتها ثلاث، التحميد والثناء والدعاء فيها......الخ (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۲۰۹باب صلاة الجنازة)_

۳ ] ثم يکبر آخری ويدعوا للميت وجميع المسلمين وليس فيها دعاء موقت وعن رسول الله صلى الله عليه وسلم انه کان يقول:اللهم اغفر لحينا.....وهذا اذاکان يحسن ذلک فان کان لايحسن ياتی بای دعاء شاء......الخ(هندية ج:۱ص:۱٦٤)_

۴ ] ايضاً_

## د جنازې او اخترونو د لمانځه نیت اورول

**سوال:** زموږ په علاقه کې د جنازې د لمونځ نه مخکې او د اخترونو د لمونځونه نه مخکې په اوچت آواز سره د نیت اورولو رواج دی، چونکې ځینې شریکان د دې لمونځونو د اداء کولو د بنیادي شرطونو او فرضونو نه هم نا اشنا وي، د دې باوجود دا شان د نیت اورول بدعت خو نه دي؟

**جواب:** نیت اورول یوازې یو رواج دی، ځکه چې خلک د جهالت له وجې نا خبره دي، په دې وجه کوشش کوي چې دوي ته صحیح نیت وښودل شي، که نه، نیت خو صرف دومره کافي دی چې د جنازې لمونځ اداء کوم[1]

## د جنازې په لمونځ کې د دعا شرعي حیثیت

**سوال:** هسې خو د جنازې د لمونځ دعا د بالغ سړي او ښځې له پاره جدا او د نابالغه هلک او جینې د پاره جدا وي، مسئله دا ده چې جنازه خو ظاهره ده چې امام به یې اداء کوي، خو په دې صورت کې عرض دادی چې مقتدي ته هم د امام نه پرته ثناء او درود ابراهیمي لوستل پکار دي او که یوازې لکه په فرض لمونځونو کې مقتدي ته یوازې د ثناء لوستلو حکم دی، د ځینې ملایانو حضراتو نه مې پوښتنه وکړه، خو څه تسلي والا جواب ملاو نه شو د هر یو مختلفه رایه ده، که چیرې مقتدي د ثناء او د درود نه پرته د جنازې لمونځ وکړي؛ نو د جنازې لمونځ به وشي او که نه؟ په هر حال د دې مسئلې متعلق تفصیل د قرآن او د سنت په رڼا کې بیان کړئ!

**جواب:** د جنازې تکبیرونه خو فرض دي، باقي دعاګانې سنت دي د امام د پاره هم او د مقتدیانو له پاره هم.[2]

## د جنازې په لمانځه کې رکوع او سجده نشته

**سوال:** دجنازې په لمونځ کې څلورتکبیرونه څنګه لوستلې کیږي؟ یعنې رکوع سجده وغیره کیږي او که نه؟ دویم داچې مادنهم جماعت(ټولګي) په اسلامیاتو کې لوستلي ووچې دا څلور تکبیرونه د څلورو رکعتونو قائم مقام وي.

**جواب:** دجنازې په لمونځ کې اذان،اقامت ،رکوع اوسجده نشته،بس لومړي تکبیرویلوسره نیت وتړل شي،ثناء ویلونه وروسته دویم تکبیر وویل شي، درود شریف ویلونه وروسته دریم تکبیر وویل شي او بیا دمړي له پاره دعاوکړل شي اودڅلورم تکبیرنه وروسته سلام وګرځول

---

[1] ولوتفکر الامام بالقلب انه یودی صلاة الجنازة یصح ولو قال المقتدی اقتدیت بالامام یجوز کذافی المضمرات (عالمگیری ج:۱ص:۱٦٤،کتاب الصلاة ،الباب الحادی والعشرون فی الجنائز)

[2] وصلاة الجنازة اربع تکبیرات ولو ترک واحدة منها لم تجزصلاته هکذا فی الکافی (عالمگیری ج:۱ص:۱٦٤)

شي[1] دا څلور تکبیرونه ګویا د څلورو رکعتونو قائم مقام ګڼل کیږي.[2]

## د جنازې په لمونځ کې سوره فاتحه او نور سورتونه ویل څنګه دي؟

**سوال:** زه په یوه جنازه شریک شوم، کله چې مې نیت وتړلو؛ نوامام د جنازې لمونځ په زوره سره شروع کړ، چې په هغې کې یې سورتونه تلاوت کول، مثلا سوره فاتحه، سوره اخلاص ،درودشریف او داسې نور، د سلام ګرځولونه وروسته مقتدیانو دیوبل سره بحث شروع کړ، مهرباني وکړئ اودقرآن اوسنت په رڼاکې ددې جواب راکړئ!

**جواب:** دجنازې په لمونځ کې دلومړي تکبیرنه وروسته دسوره فاتحې امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله قائل دي، امام مالک رحمه الله اوامام ابوحنیفه رحمه الله قائل نه دي، که بطور حمد او ثناء وویل شي نوڅه حرج پکې نشته،[3] دسوره اخلاص په ویلو څلوروواړوامامانوکې څوک هم قائل نه دي، همدغه راز په اوچت آوازسره دجنازې دلمانځه هم په څلوروواړوامامانوکې څوک قائل نه دي.[4]

## د جنازې د لمونځ دهرتکبیرسره سر د آسمان طرف ته اوچتول

**سوال:** ایادجنازې په لمونځ کې دهرتکبیرسره سرآسمان طرف ته اوچتول پکار دي؟

**جواب:** نه! جی.

## د جنازې په دوران کې شاملیدونکی لمونځ څنګه پوره کړي؟

**سوال:** دجنازې لمونځ کیږي ،که څوک په دویم یادریم تکبیرکې راورسیږي؛ نواوس به هغه څه لولي؟ اوکوم تکبیرونه چې پاتې دي هغه به څنګه اداکوي؟ اوکه هغه ته پته نه وي چې څومره تکبیرونه شوي دي؛ نوبیا به څه لولي؟

**جواب:** داسې کس ته پکاردي چې دامام دراتلونکي تکبیرانتظار وکړي، چې کله بل تکبیر وشي نوهله دې په لمونځ کې شریک شي او څومره تکبیرونه چې دهغه پاتې شوي دي دامام دسلام ګرځولونه وروسته اود جنازې داوچتولونه مخکې یوازې هغومره تکبیرونه ووایي

---

۱ ]وهی اربع تکبیرات کل تکبیرة قائمة مقام رکعة یرفع یدیه فی الاولی فقط......ویثنی بعدها ویصل علی النبی صلی الله علیه وسلم کمافی التشهدبعدالثانیة ......ویدعوبعدالثالثة ......ویسلم بلادعاء الرابعة (درمختار ج:۲ص:۱۲،۱۳)_

۲ ] قوله وعین الشافعی الفاتحة وبه قال احمد.....مذهبناقول عمر وابنه وعلی وابی هریرة وبه قال مالک کمافی شرح المنیة (درمختار ج:۲ص:۲۱۳،باب صلاة الجنازة)_

۳ ]ولوقراء الفاتحة بنیة الدعاء فلاباس به ......الخ (هندیة ج:۱ص:۱۶٤،کتاب الصلاة ،باب الجنائز)_

٤ ] ویخافت فی الکل الافی التکبیر کذافی التبیین ولایقرأ فیهاالقرآن ......الخ (هندیة ج:۱ص:۱۶٤،وایضًا فی البدائع الصنائع ج:۱ص:۳۱۳صلاة الجنازة طبع سعید)_

اوسلام دې وګرځوي، کله چې دامام سره شامل شي نوچې کومه دعا او ثناء ويلې شي ودې وايي دهغه لمونځ به وشي.[۱]

## که دجنازې په لمونځ کې د مقتدي نه څه تکبيرونه پاتې شي نوڅه وکړي؟

**سوال:** څنګه چې دجمعې په لمانځه کې يورکعت پاتې شي، هغه دامام دسلام ګرځولونه وروسته پوره کووهمدغه شان که دجنازې په لمونځ کې تکبيردوه پاتې شي، نوهغه به څنګه اداکوو؟

**جواب:** داکس دې دامام دسلام دګرځولونه وروسته اودجنازې اوچتولونه مخکې خپل پاتې شوې تکبيرونه ووايي اوسلام دې وګرځوي.هغه ته په دې تکبيرونوکې دڅه ويلوضرورت نشته،يوازې تکبيرونه دې پوره کړي اوسلام دې وګرځوي.[۲]

## د جنازې د لمونځ په پای کې لاسونه پريښودل

**سوال:** دجنازې په لمونځ کې دڅلورم تکبيرنه وروسته لاسونه پريښودل پکاردي ياکله چې ښي طرف ته سلام وګرځول شي؛ نوښي لاس پريږدواوکله چې چپ طرفته سلام وګرځول شي؛ نوکس(چپ) لاس پريږدو؟

**جواب:** د واړه طريقې صحيح دي.

## د جنازې د لمونځ نه وروسته دعا غوښتل

**سوال:** دجنازې لمونځ کولونه وروسته فوراً دعاغوښتل جائزدي؟

**جواب:** جنازه په خپله دعاده،ددې نه وروسته دعاکول دسنت نه ثابت نه ده، له دې وجې داسنت ګڼل اوياېې دسنتو په شان اهتمام کول صحيح نه دي.[۳]

---

۱ ] واذا جاء رجل وقدكبرالامام التكبيرة الاولى ولم يكن حاضرًا انتظره حتى يكبرالثانية ويكبرمعه فاذا فرغ الامام كبرالمسبوق التكبيرة التى فاتت قبل ان ترفع الجنازة ......وكذا ان جاء وقد كبرالامام تكبيرتين اوثلاثا ......ثم يكبرثلاثًا قبل ان ترفع الجنازة متتابعا لا دعاء فيها ......الخ (هندية ج:۱ص:۱٦٤،۱٦٥،كتاب الصلاة ،الباب الحادى والعشرون فى الجنائز،وايضًا درمختارمع الشامى ج:۲ص:۲۱٦ ،باب صلاة الجنازة)۔

۲ ] ايضًا ،اوګورئ:بدائع الصنائع ج:۱ص:۳۱٤)۔

۳ ] عن عائشة رضى الله عنهاقالت:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :من احدث فى امرناهذا ماليس منه فهو رد (صحيح البخارى ج:۱ص:۳۷۱،كتاب الصلح)،وفى المرقاة :من احدث اى جدد وابتدع واظهر واخترع فى امرنا هذا اى فى دين الاسلام ......فهو رد اى مردود عليه ......قال القاضى :المعنى من احدث فى الاسلام رايالم يكن له من الكتاب اوا لسنة سند ظاهر اوخفى ،ملفوظ اومستنبط فهو مردود عليه ،قيل فى وصف الامربهذا اشارة الى امرالاسلام كمل وانتهى ،وشاع وظهر ظهور المحسوس بحيث لايخفى على كل ذى بصر وبصيرة فمن حاول الزيادة فقدحاول امراغيرمرضى لانه من قصور...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

## د جنازې د لمونځ نه وروسته په قبر لاس اوچتول او دعا کول

**سوال:** دجنازې دلمونځ نه وروسته لاس اوچتول اودعاكول،دقبرپه وړاندې لاس اوچتول او دعا كول، دقبرسر اوپښوطرف ته ددعا لوستلو په وخت كې دشهادت ګوته اوچته ساتل ضروري دي او كه نه؟ اياددې فضيلت دحديث نه ثابت دى؟

**جواب:** دجنازې نه وروسته لاس اوچتولوسره دعاكول بدعت دي[1] په قبر باندې دعا جائزده[2] دقبر سرطرف ته دسوره بقرې ابتدايي آيتونه او دپښوطرف ته دسوره بقرې آخري آيتونه لوستل هم جائز دي[3] په قبرباندې ګوته كېښودل ثابت نه دي.

## كه د مړي دجنازې لمونځ ونه شي نوڅه وكړي؟

**سوال:** (۱۹۴۷)كې دانډيا نه پاكستان ته هجرت كولوپه وخت كې په لاره كې دوزيراباد په مقام باندې زمامورروفات شوه،هغه وخت كې حالات داسې وو چې لوړوتندو وهلي وواوبې كوره وو،ددې نه علاوه خطره هم وه،په مونږ كې ددين ناواقفي هم وه،ددې اسبابو له وجې نه مونږ له جنازې پرته يوازې څلوروكسانو مې والده محترمه دفن كړه،اوس هركله چې الله تعالى دعلم دين نه واقفيت راكړ؛ نو سوچ كوم چې مورډجنازې لمونځ ونكړ،ددې دحل له پاره اوس مونږ ته څه كول پكار دي؟

**جواب:** دمړي دجنازې لمونځ فرض كفايه دى،ددې فرض نه اداكولوپه وجه ټول خلك ګناهګارشواوس ددعااواستغفارنه پرته ددې هيڅ تدارك نه شي كيداى.[4]

**يادونه:**....كه چاته دجنازې دعاګانې يادې نه وي نواودس دې وكړي، جنازې ته دې مخامخ د

---

...بقيه د تيرمخ]. فهمه رآه ناقصًا (مرقاة المفاتيح ،كتاب الايمان ،باب الاعتصام بالكتاب والسنة ،الفصل الاول ج:۱ص:۱۷۷،۱۷۸)•وليس فى ظاهر المذهب بعد التكبيرة الرابعة دعاء سوى السلام...... الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۳۱۳طبع ايچ ايم سعيد)_

۱ ]ايضًا)_

۲ ]عن عثمان بن غفان رضى الله عنه قال:كان النبى صلى الله عليه وسلم اذا فرغ من دفن الميت وقف عليه فقال: استغفروالاخيكم واسالوا له بالتثبيت، فانه الآن يسئل (سنن ابى داود ج:۲ص:۱۰۳،كتاب الجنائز،وهكذا فى الدر المختار ج:۲ص:۲۳۷باب صلاة الجنازة)•والدعاء عنده قائمًا كذافى البحر (هندية ج:۱ص:۱٦٦،كتاب الصلاة ،باب الجنائز)

۳ ]وعن عبدالله بن عمر قال:سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول :اذامات احدكم فلا تحبسوه واسرعوا به الى قبره ،وليقرا عندراسه فاتحة البقرة وعند رجليه بخاتمة البقرة •رواه البيهقى فى شعب الايمان (مشكوة ج:۱ص:۱٤۹باب البكاء على الميت ،طبع قديمى)_

٤ ] الصلاة على الجنازة فرض كفاية اذاقام به البعض ......سقط عن الباقين واذا ترک الكل اثموا هكذا فى التتارخانية (هندية ج:۱ص:۱٦۲كتاب الصلاة ،الباب الحادى والعشرون فى الجنائز)_

جنازې د لمانځه نیت وتړي، تکبیرونه دې ووایي او سلام دې وګرځوي؛ نو هم فرض به اداشي.[1]

## د جنازې د کټ سپکیدل د نیکۍ نښه نه ده

**سوال:** اوریدلي مو دي چې انسان مړشي، که د هغه جنازه سپکه(بې وزنه)وي؛ نو هغه به نیکو کار وي او د چا جنازه چې درنه وي، هغه به ګناهګاروي، آیا دا صحیح ده؟

**جواب:** دا خیال غلط دی.

## د جنازې سره ټولګي جوړول او په لوړ آواز کلمه طیبه یا کلمه شهادت ویل بدعت دي

**سوال:** ځینې خلک د جنازې سره ټولګي ټولګي جوړ کړي او په اوچت آواز کلمه طیبه وایي او ځینې د دې مخالفت کوي، تاسو راته دا اووایئ چې کوم یو صحیح دی؟ زه به د زړه له کومې ستاسو شکر ګزاریمه.

**جواب:** فتاوی عالمګیري کې دي:

,,وعلی متبعی الجنازة الصمت ویکره لهم رفع الصوت بالذکر وقراءة القرآن کذا فی شرح الطحاوی فان اراد ان یذکر الله یذکر فی نفسه کذا فی فتاوی قاضی خان..،،(ج:۱ص:۱۶۲)

**ترجمه:** د جنازې سره په تلونکو باندې خاموش پاتې کیدل لازم دي او په اوچت آواز سره ذکر کول او د قرآن مجید تلاوت کول مکروه دي (شرح طحاوي)او که څوک د الله تعالی ذکر کول غواړي؛ نو په زړهٔ کې دې کوي.

د دې روایت نه معلومه شوه چې تا د ټولګي جوړولو سره د کلمې طیبې د لوستلو د کوم رواج ذکر کړی دی، هغه مکروه او بدعت دی او کوم کسان چې مخالفت کوي هغوی صحیح کوي، البته کلمه طیبه په په کم آواز سره ویل پکار دي.

## د مړي سره د تللو په وخت په اوچت آواز سره د شهادت کلمه ویل

**سوال:** د مړي سره د تللو په وخت یو صاحب بیا بیا په اوچت آواز سره د شهادت کلمه وایي، آیا دا کار د حضور اقدس (صلي الله علیه وسلم) او د صحابه کرامو(رضي الله عنهم)نه ثابت دی؟

**جواب:** د نبي کریم (صلي الله علیه وسلم) او خلفاء راشدینو(رضي الله عنهم) په زمانه کې د دې رواج نه و، حضراتو فقهاوو د جنازې سره د تللو په وخت په اوچت آواز سره د ذکر کولو ته

---

[1] ثم یکبر آخری ویدعوا للمیت وجمیع المسلمین ولیس فیها دعاء موقت وعن رسول الله صلی الله علیه وسلم انه کان یقول:اللهم اغفر لحینا......وهذا اذاکان یحسن ذلک فان کان لایحسن یاتی بای دعاء شاء......الخ(هندیة ج:۱ص:۱٦٤)۔

بدعت ويلي دي.[۱]

## ډېر ځله د جنازې لمونځ کولو جواز

**سوال:** تاسو او علمائي كرام او مفتيان د شرع متين په دې باره كې څه فرمايئ چې د مړي د جنازې لمونځ يو ځل كول پكار دي يا زيات ځله؟ ځكه چې د بعضو خلقو وينا ده چې يو ځل پكار ده. هر كله چې د علماء كرامو جنازې درې ځله شوي دي؟

**جواب:** كه د مړي ولي جنازه كړې وي نو د جنازې لمونځ په دويم نه شي كيدې او كه هغه نه وي كړې نو هغه دويم باره كولې شي. او په هغه دويم جماعت كې نور كسان هم چا چې د جنازې لمونځ كړې نه وو شريكيدې شي.[۲]

## له يو وار څخه زيات د جنازې لمونځ اداء كول

**سوال:** په يوه علاقه كې دا رواج جوړ شوى دى چې د يو مړي د جنازې لمونځ دوه درې ځله اداء كيږي او د خاص لوي سړي د جنازې په لمونځ كې يو څو كسان پاتې كيږي نو چا چې د جنازې لمونځ نه دى اداء كړې هغوى يې دوباره اداء كوي، آيا دا طريقه صحيح ده او كه نه؟

**جواب:** د حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد د جنازې په لمونځ كې تكرار جائز نه دى، چې د مړي د جنازې لمونځ يو ځل اداء شي؛ نو دوباره نه اداء كيږي، خو كه چيرې د مړي وارثانو لمونځ نه وي كړې او اجنبي خلكو د جنازې لمونځ اداء كړې وي: نو وارثان دوباره د جنازې لمونځ اداء كولې شي.[۳]

## د غائبانه جنازې شرعي حيثيت

**سوال:** د غائبانه جنازې په اسلام كې څه حيثيت دى؟ آيا حضور پاک صلي الله عليه وسلم د دې تاكيد فرمايلى دى؟

**جواب:** غائبانه جنازه د امام شافعي (رحمه الله) او د امام احمد (رحمه الله) په نزد جائز ده، او د

---

[۱] ويكره رفع الصوت فيها بالذكر وقراء ة القرآن ذكر فى فتاوى العصرانها كراهة تحريم ......الخ (حلبى كبير ج:١ص:٥٩٤)،وعلى متبعى الجنازة الصمت ويكره لهم رفع الصوت بالذكر وقراءة القرآن كذافى شرح الطحاوى فان ارادان يذكر الله يذكره فى نفسه كذافى فتاوى قاضيخان (عالمگيرى ج:١ص:١٦٢،طبع رشيدية كوئته)

[۲] وان صلى عليه الولى لم يجز لاحد ان يصلى بعد........فان صلى غير الولى او السلطان اعاد الولى ان شاء كذا فى الهداية (هندية ج١ ص١۶۴، وايضاً فى الشامية ج٢ ص٢٢٢، طبع سعيد كراچى)۔

[۳] ولايصلى على ميت الا مرة واحدة والتنفل بصلاة الجنازة غير مشروع كذافى الايضاح......فان صلى غير الولى او السلطان اعاد الولى ان شاء كذافى الهداية (عالمگيرى ج:١ص:١٦٤،١٦٣طبع رشيدية كوئته)

امام ابو حنیفه رحمه الله او د امام مالک رحمه الله په نزد جائزه نه ده.[۱]

## دغائبانه جنازې لمونځ

**سوال:** څوورځې مخکې، بلکې تراوسه پورې دګڼ شمیرخلکو غائبانه دجنازې لمونځ ادا کیږي، او تردې پورې چې په مدینه منوره اومکه مکرمه کې هم دملک دیوې لویې هستې دجنازې لمونځ غائبانه ادا کړل شو، تاسونه دپوښتنې مقصدمې دادی چې په حنفي مسلک کې ایا دغائبانه جنازې لمونځ صحیح دی؟ اوکه نه دی؛ نوپه کوم مسلک کې صحیح دی؟ اودمدینې منورې اومکې مکرمې امام صاحب دکوم مسلک سره تعلق ساتي؟ ځکه چې زمونږ دعلاقې دمسجدامام چې یوسندیافته او جیدعالم دی اودخپلومسایلوتصحیح مونږهم دهغه په ښودلې شوې طریقې سره کوو، هغوی د احادیثو د کتابونو نه دلائل ورکړل او ویې فرمایل چې غائبانه نمازجنازه داحنافوپه نزدباندې صحیح نه ده.

**جواب:** غائبانه نمازجنازه دامام ابوحینفه رحمه الله اوامام مالک رحمه الله په نزد باندې جائزنه ده، البته امام شافعي رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله په نزدجائزده، دحرمینوشریفینوامامان دامام احمد مقلدین دي، له دې وجې نه دخپل مسلک مطابق دهغوی غائبانه نمازجنازه صحیح ده [۲]

## غائبانه جنازه د امام ابوحنیفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نزد جائز نه ده

**سوال:** آیا د یوکس غائبانه جنازه کیدای شي؟ځکه چې په ,,پندره روزه تعمیر حیات،، (لکهنو) کې دمولاناطارق ندوي رحمه الله نه سوال وشو، هغوی جواب ورکړچې: داحنافوپه نزد جائزنه ده، ددې برعکس,,معارف الحدیث،، جلدهفتم کې مولانامحمد منظورنعماني رحمه الله لیکي چې: کله دحبشې بادشاه (نجاشی) وفات شو، حضور صلی الله علیه وسلم ته دوحې په ذریعه ددې اطلاع وشوله، حضور صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو (رضوان الله عنهم اجمعین) ته ددې اطلاع ورکړه، اوپه مدینه منوره کې دهغه غائبانه نمازجنازه وکړه، ددواړومسایلووضاحت وکړئ!

**جواب:** دامام مالک اوامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدباندې غائبانه جنازه جائزنه ده، څنګه چې مولانا طارق ندوي رحمه الله لیکلي دي، دنجاشي غائبانه جنازه حضور صلی الله علیه وسلم کړې وه، دادنجاشي خصوصیت ګڼل کیږي، ګني دغائبانه جنازې عام معمول نشته، امام شافعي رحمه الله د نجاشي د قیصې له وجې ددې دجوازقائل دی، دامام احمد رحمه الله په مذهب کې دوه روایتونه دي، یو د جواز، اودویم دمنع.[۳]

---

[۱] رای الحنفیة والمالکیة :عدم جواز الصلاة علی الغائب ورای الشافعیة والحنابلة :جواز الصلاة علی المیت الغائب عن البلد (الفقة الاسلامي وادلته ج:۲ص:۵۰٤طبع دارالفکر بیروت)

[۲] وعلی هذا قال اصحابنا لایصلی علی میت غائب وقال الشافعي یصلی علیه ......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۳۱۲، کتاب الصلاة ،صلاة الجنازة ،طبع سعید ،وایضاف الدرالمختارمع الشامي ج:۲ص:۲۰۹)۔

[۳] وان صلی علیه الولي لم یجز لاحد ان یصلی بعد.....فان صلی غیر الولي...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## د جنازې په لمونځ کې د ښځو شرکت

**سوال:** ایا ښځه دجنازې په لمانځه کې شرکت کولی شي؟ یعنې د جماعت نه شاته ښځې دریدای شي؟

**جواب:** جنازه سړیو ته کول پکار دي ښځوته نه[۱]، البته که هغوی دجماعت شاته ودریږي نو لمونځ به دهغوی هم وشي.[۲]

## دحضرت حذیفه بن یمان رضی الله عنه او حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه دمړي واقعه

**سوال:** آوریدلي مې دي چې په عراق کې ددې پېړۍ(صدۍ) په دویمه او دریمه برخه کې دوه اصحاب رسول حضرت حذیفه بن یمان رضي الله عنه او حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه لاشونه راویستل شوي وو او د دوی د جنازې لمونځ دوباره اداء کړل شو او د دوی لاشونه یې د دوي د لومړنیو مزاراتو نه منتقل کړل او د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه مزار سره نژدې یې دفن کړل، آیا دا صحیح دي؟

**جواب:** دا واقعه زموږه د هوش نه مخکې ده آوریدلي مو دي چې په دغه وخت ډېر خلک مسلمانان شوي هم وو.

## د مړي وړلو کټ غیر مسلم ته ورکول

**سوال:** څه وایي علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې د جنازې وړلو یو کټ دی، چې د ضرورت په وخت یې محلې والا استعمالوي، سوال دادی چې زمونږه په علاقه کې غیر مسلم هم دي؛ نو آیا د مسلمانانو د دې جنازې د اوچتولو د پاره کټ د غیر مسلم د استعمال د پاره ورکول جائز دي اوکه نه؟ یو ځل په غلطۍ سره امام صاحب د لاعلمي په وجه د غیر مسلمو د استعمال د پاره کټ ورکړی و، په دې سره څه فرق خو نه غورځیږي؟

---

...بقيه د تیر مخ].. او السلطان اعاد الولى ان شاء كذا فى الهداية (هندية ج١ ص١٦٤، وايضاً فى الشامية ج٢ ص٢٢٢، طبع سعيد كراچى) وايضًا فلا تصح على غائب ......وصلوة النبى صلى الله عليه وسلم على النجاشى لغوية اوخصوصية ......الخ (درمختارمع الشامى ،باب صلاة الجنائزج:٢ص:١٩٢) وعلى هذا قال اصحابنا لايصلى على ميت غائب.....الخ (البدائع الصنائع ج:١ص:٣١٢،كتاب الصلاة ،صلاة الجنازة ،طبع سعيد ،وايضافى الدرالمختارمع الشامى ج:٢ص:٢٠٩)_

١ ]ولاحق للنساء فى الصلاة على الميت (هندية ج:١ص:١٦٣طبع رشيدية كونته)_

٢ ] الصلاة على الجنازة فرض كفاية اذاقام به البعض واحدًا كان اوجماعة ذكرًا كان او انثى سقط عن الباقين (عالمگيرى ج:١ص:١٦٣،كتاب الصلاة ،الباب الحادى والعشرون فى الجنائز)_

**جواب:** د مسجد د نوروشیانو په شان د مړي دا کټ هم د مسجد له پاره وقف دی او د دې مصرف صرف او صرف د مسلمانانو مړي دي، لکه څنګه چې مسجد د مسلمانانو له پاره دی همدغه شان د متعلقه شیانو مصرف هم مسلمانان دي، د دینه علاوه د وقف کولو والانیت هم دا وي چې دا به مسلمانان استعمالوي، په دې وجه دغیر مسلمو د استعمال له پاره د جنازې کټ ورکول جائز نه دي، د لاعلمي په وجه چې کوم څه شوې دي په دې باندې هیڅ مؤاخذه نشته ، البته آینده به دې باندې په سختۍ سره عمل کیږي او د یو غیر مسلم مړي له پاره دې کټ ور نه کړل شي.[۱]

## د جنازې د لمونځ په آخري صف کې زیات ثواب

**سوال:** آیا د جنازې د لمونځ په آخري صف کې د لمونځ د اداء کولو ثواب زیات وي ؟

**جواب:** هو ! د عام لمونځونو نه پرته د جنازې د لمونځ آخري صف افضل وي[۲]

## آیا د جنازې د لمونځ په صفونو کې طاق تعداد ضروري دی؟

**سوال:** د جنازې په لمونځ کې څومره صفونه پکار وي؟ که صفونه د طاق کیدو په ځای جفت شي؛ نو څه فرق خوبه نه وي؟

**جواب:** د جنازې صفونه درې، پنځه، اووه یعنې طاق پکار دي.[۳]

## د جنازې لمونځ او مکروه وخت

**سوال:** لکه د دولسو بجو په وخت کې یا په نورو مکروه وختونو کې سجده کول جائز نه دي نو دغه وخت کې د جنازې لمونځ اداء کول هم پکار نه دي؛ ځکه چې د جنازې په لمونځ کې خو سجده نشته ، دا مسئله په یو څو ورځو کې راپیښه شوې ده چې کله زمونږه یو کلیوال دلته وفات شوی و ،دا مسئله مې په دغه وخت کې واوریدله، چا وویل چې جنازه زر اداء کړئ بیا وروسته د جنازې لمونځ نه اداء کیږي.

**جواب:** د لمر د ختلو په وخت، د ماسپښین په وخت او د نمر د پریوتلو په وخت، په دې دریو وختونو کې که هغه اداء لمونځ وي یا قضاء جائز نه دی، د جنازې لمونځ هم چونکې حکماً لمونځ دی ، په دې وجه هغه هم جائز نه دی،هو البته که چیرې جنازه د دې دریو

---

[۱] شرط الواقف کنص الشارع فی المفهوم والدلالة ووجوب العمل (الدرالمختار مع الرد ،کتاب الوقف ج:٤ص:٤٣٣،٤٣٤طبع ایج ایم سعیدکراچی) (٤) وفی القنیة :افضل صفوف الرجال فی الجنازة آخرها وفی غیرها اولها (حلبی کبیر ج:١ص:٥٨٨)

[۲] وفی القنیة: افضل صفوف الرجال فی الجنازة آخرها وفی غیرها اوّلها. (حلبی کبیر ج:١، ص٥٨٨)

[۳] ویستحب ان یصفوا ثلاثة صفوف حتی لوکانوا سبعة یتقدم احدهم للامامة ویقف وراء ثلاثة وراهم اثنان ثم واحدذکره فی المحیط (حلبی کبیر ج:١ص:٥٨٨فصل فی الجنائز،طبع سهیل اکیدمی لاهور)

وختونو نه په یو وخت کې تیاره شوې وي؛ نو بغیر د کراهت نه جائز بلکې افضله ده او ورستو والې یې مکروه دی.[۱]

## د جنازې لمونځ اداء کونکو ته پیسې ورکول

**سوال:** کوم سړی چې د جنازې لمونځ اداء کړي آیا ده ته څه شی ورکول جائز دي که نه؟

زمونږه تر لسو ورځو پورې د ورکولو رواج دی.

**جواب:** د جنازې د لمونځ اجرت اخیستل او ورکول جائز نه دي[۲]

## په مزار باندې احتراماً سجده کول

**سوال:** جناب که د یو مسلمان په زړه کې یقین کامل وي چې الله یو دی او دده سره څوک شریک نشته هغه واحد دی،وحده لاشریک دی،د یو مسلمان په مزار باندې احتراماً سجده کوي، آیا دا سجده جائز ده او که نه؟

**جواب:** زمونږه په شریعت کې غیر الله ته سجده کول جائز نه دي،آیا د نبي کریم (صلی الله علیه وسلم) نه مقدس څوک کیدای شي؟ خو نبي کریم صلي الله علیه وسلم د صحابه کرامو رضي الله عنهم د اصرار باوجود خپل ځان ته یا خپل قبر ته د سجدې کولو اجازت نه دی ورکړی، کوم مسلمان چې په الله او د هغه په رسول باندې ایمان ساتي ده لره دا معلومول پکار دي چې الله او دهغه رسول غیر الله ته سجده کول حرام کړي دي.[۳]

## قبرستان ته تلل څنګه دي حالانکې ایصال ثواب د کور نه هم کیږي

**سوال:** قبرستان ته تلل څنګه دي؟ حالانکه په کور کې په ناسته هم ایصال ثواب کیږي؟

**جواب:** د قبرونو د حالت نه عبرت حاصلول، دوي ته سلام کول،ددوی له پاره د عاء او استغفار غوښتل او دوي ته د تلاوت وغیره په ذریعې سره نفع رسولو په غرض سره د قبرستان د زیارت

---

[۱] ثلاث ساعات لاتجوزفیها المکتوبة ولا صلاة الجنازة ولاسجدة التلاوة :اذا طلعت الشمس حتی ترتفع وعند الانتصاف الی ان تزول ،وعند احمرارها الی ان تغیب ......وهذا اذا وجب صلاة الجنازة وسجدة التلاوة فی وقت مباح واخرتا الی هذا الوقت ......اما لو وجبتا فی هذا الوقت وادیتافیه جاز......وفی صلاة الجنازة التاخیرمکروه (عالمگیری ج:۱ص:۵۲کتاب الصلاة)

[۲] الاصل ان کل طاعة یختص بها المسلم لایجوزالاستنجاء عندنا...... ولان القربة متی حصلت وقعت علی العامل ،ولهذا تتعین اهلیته فلایجوزله اخذ الاجرة من غیره کما فی الصوم والصلاة هدایة (شامی ج:٦ص:۵۵)

[۳] عن جندب رضی الله عنه قال:سمعت عن النبی صلی الله علیه وسلم یقول :الا وان من کان قبلکم کانوا یتخذون قبور انبیاء هم وصالحیهم مساجد،الا فلا تتخذوا القبور مساجدانی انها کم عن ذلک ،رواه مسلم (مشکوة ص:٦۹)عن عائشة ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال فی مرضه الذی لم یقیم منه :لعن الله الیهود والنصاری اتخذوا قبور انبیائهم مساجد ،متفق علیه (مشکوة ص:٦۹باب المساجدومواضع الصلاة)

حکم دی او مستحب دی، لیکن شرط دادی چې هلته تللی شي، چې هیڅ کار د شریعت خلاف و نه کړي.[1]

## د بزرګ په مزار باندې مراقبه کول

**سوال:** د یو بزرګ په مزار ته تلل او د مراقبې کولو شرعي حیثیت څه دی؟

**جواب:** د شریعت مطابق که چیرې په مزار باندې حاضري وکړي او دعا وکړي نو جائز دي[2]

## د قبر سر ته دریدل او د څه لوستلو شرعي حیثیت

**سوال:** ځینې حضرات د مړي د دفن کولو نه پس د قبر سر طرف ته په قبر باندې ګوته ایږدي او څه وایي ددې عمل څه حیثیت دی؟

**جواب:** حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه روایت کې دي چې د قبر سر ته د سورة بقرې ابتدايي آیاتونه او پښو طرف ته د سورة بقرې آخري آیاتونه لوستل کیږي.[3]

## د قبرستان سره نژدې په اوچت آواز ګانې غږول

**سوال:** د قبرستان او مړو د احترام په باره کې څه حکم دی؟ ځینې خلک چې د هغوي کور بلکل د قبر ستان سره ملحق وي په اوچت آواز سره ګانې (سندرې) غږوي، ددې څه حکم دی؟

**جواب:** د قبرستان احترام کول پکار دي او کوم خلک چې د قبرستان سره نژدې د ګانو د

---

[1] قوله وبزيارة القبور اى لاباس بها بل تندب كما فى البحر عن المجتبى.....وتزارفى كل اسبوع كما فى مختارات النوازل ،قال فى شرح لباب المناسک الا ان الافضل يوم الجمعة والسبت والاثنين والخميس، فقد قال محمدبن واسع الموتى يعلمون بزوارهم يوم الجمعة ويوما قبله ويومابعده فتحصل ان يوم الجمعة افضل ....قلت استفيدمنه ندب الزيارة القبور وان بعد محلها......الخ (شامى ج:۲ص:۲۴۲،مطلب فى زيارة القبور)

[2] قوله وبزيارة القبوراى لاباس بهابل تندب كما فى البحرعن المجتبى ...... وهل تندب الرحلة لها كمااعتيدمن الرحلة الى زيارة خليل الرحمن واهله واولاده وزيارة السيدالبدوى وغيره من الاكابرالكرام؟ لم ارمن صرح به من ائمتنا ......واما الاولياء فانهم متفاوتون فى القرب من الله تعالى ،ونفع الزائرين بحسب معارفهم واسرارهم ،قال ابن حجر فى فتاويه :ولاتترک لمايحصل عندها من منكرات ومفاسدكاختلاط الرجال بالنساء وغيرذلک لان القربات لاتترک لمثل ذلک بل على الانسان فعلها وانكارالبدع بل وازالتها ان امكن (شامى ج:۲ص:۲۴۲مطلب فى زيارة القبور)

[3] وكان ابن عمريستحب ان يقرأ على القبربعد الدفن اول سورة البقرة وخاتمتها (ردالمحتارمطلب فى دفن الميت ج:۲ص:۲۳۷)،فقدثبت انه عليه الصلاة والسلام قرأ اول سورة البقرة عند راس ميت وآخرها عند رجليه (شامى ج:۲ص:۲۴۲،طبع ايچ ايم سعيد)

غږولو کار کوي په دوي باندې ډير لوی وبال دی.[۱]

## په قبر باندې اوبه شيندل او شنه لښته خښول

**سوال:** کله چې مونږ مشران قبر ته لاړ شو نو آيا اوبه پرې شيندلی شو؟ او شنه لښته چې د قبرستان نه بهر ملاويږي اخيستلی او په قبر لګولی شو؟ لکه څنګه چې حضور اکرم (صلی الله عليه وسلم) په يو قبر باندې لګولې وه ؟

**جواب:** جائز دي خود حضور (صلی الله عليه وسلم) شنه لښته کيښودل د ډيرو اهل علمو په نزد د نبي اکرم صلی الله عليه وسلم خصوصيت و، بيا هم د سنتو د اتباع مطابق که چيرې څوک لښته خښه کړي نو هيڅ باك نشته .[۲]

## د قبر په شناخته قرآني آياتونه ليکل

**سوال:** هفته (۲۲) جمادي الثاني (۱۴۱۰ھ) په مطابق د (۲۰) جنوري (۱۹۹۹ء) په قبرستان کې الله تعالي يوه عجيبه واقعه وښودله چې هغه مې اوکتله نو زړه مې وريږيده او د الله تعالي ويره مې په زړه کې راغله، اوهغه داسې چې په يوقبر باندې آيت کرسي ليکل شوې وه، يو سپی راغی او په دې تخته باندې يې بول وکړل، چې داسې مې اوليدل نو ډير افسوس مې راغی او په زړه کې مې راغلل چې تاسو ته دخط په ذريعه وليکم اودجنګ په اخبار کې ددې جواب راشي چې ټولومسلمانانو ته معلومه شي چې آيا داسې تختې وغيره لګول درست دي اوکه نه؟

**جواب:** دقبرستان په تختو باندې قرآني آياتونه ليکل جائز نه دي دا د قرآن کريم بې حرمتي ده.[۳]

---

[۱] استماع صوت الملاهی کضرب قصب ونحوه حرام لقوله عليه السلام استماع الملاهی معصية والجلوس عليها فسق والتلذذبها کفر (ردالمحتار، کتاب الحظروالاباحة ج:۲ص:۳۴۹طبع سعيد)

[۲] ان التخفيف ......ببرکة يده الشريفة صلی الله عليه وسلم او دعائه لهما ولايقاس عليه غيره ......ويوخذ من ذلک ومن الحديث ندب وضع ذلک للاتباع (حاشية ردالمحتار، مطلب فی وضع الجريدج:۲ص.۲۴۵)

[۳] ويکره ان يبنی علی القبراويقعد......اويعلم بعلامة من کتابة ونحوه (عالمگيری ج:۱ص:۱۶۶)، فاما الکتابة بغير عذر فلا اه ،حتی انه يکره کتابة شیءعليه من القرآن اوالشعر اواطرا ء مدح له ونحوذلک ......الخ (ردالمحتارعلی الدرالمختارج:۲ص:۲۳۸طبع سعيد)

# ❖ د قبرونو زيارت ❖

## په قبرستان باندې د څومره لرې نه سلام اچول کيږي؟

**سوال:** قبرستان ته تلوسره، یاورسره نژدې تیریدوکې،،السلام علیکم یااهل القبور،،ویل پکار دي، پوښتنه داده چې په بس، ټرين، یاڅه بل څه سورلۍ په دوران کې که قبرستان یامزارپه نظر راشي نو،،السلام علیکم یااهل القبور،،یا،،السلام علیکم یاصاحب مزار،، ویل پکاردي اوکه نه؟

**جواب:** که خواکې ورسره تیریږئ ؛نو،،السلام علیکم یااهل القبور،، ویل پکاردي.[1]

## قبرستان ته په کومه ورځ اوکوم وخت کې تلل پکاردي؟

**سوال:** قبرستان ته دتګ له پاره دتړلونه بهترین وخت اوورځ کومه ده؟

**جواب:** قطعي طورسره دڅه خاص وخت اوورځې تعلیم نه دی ورکړل شوی.تاسوچې کله، وغواړئ نو تلی شئ،هلته دتلواصلي مقصدعبرت حاصلول اود مرګ او آخرت یادول دي،خو په ځینو روایاتو کې شب برات کې دحضورﷺ دمدینې قبرستان(بقیع)ته تشریف وړل اود هغوی له پاره دمغفرت دعا غوښتل راغلي دي، ځینوحضراتوپه دې روایاتوباندې کلام کړی دی اودې ته یې ضعیف ویلي دي[2]په یومرسل روایت کې دي چې چاڅپل مور او پلار یا په هغوی کې د یوکس دقبردجمعې په شپه زیارت وکړ،دهغه بښنه به وشي اوهغه به دڅپل موراوپلارسره دحسن سلوک والاو لیکل شي.(مشکواة ازشعب الایمان بیهقی)[3]
فی الجمله له دې روایاتونه په مبارکه ورځ قبرستان ته دتلو اهتمام معلومیږي،علامه شامي رحمه الله لیکي: هره هفته دې دقبرونو زیارت وکړل شي څنګه چې په ،،مختارالنوازل،، کې

---

۱ ] عن ابن عباس رضی الله عنهما قال:مرالنبی صلی الله علیه وسلم بقبور بالمدینة فاقبل علیهم بوجهه فقال:السلام علیکم یااهل القبور......الحدیث (مشکوة باب زیارة القبورص:۱۵٤)_

۲ ]عن عائشة رضی الله عنها قالت:فقدت رسول الله صلی الله علیه وسلم لیلة فاذاهو بالبقیع فقال:اکنت تخافین ان یحیف الله علیک ورسوله ؟قلت:یارسول الله!انی ظننت انک اتیت بعض نسائک ،فقال:ان الله تعالی ینزل لیلة النصف من شعبان الی السماء الدنیافیغفر لاکثرمن عدد شعرغنم کلب ،رواه الترمذی وابن ماجه وزاد رزین :ممن استحق النار،وقال الترمذی :سمعت محمدًا یعنی البخاری یضعف هذا الحدیث (مشکوة ص:۱۱۵باب قیام شهررمضان)، دزیات تفصیل دپاره اوګورئ: اصلاحی مواعظ ج:۲ص:۲۱۷ از حضرت مولانا محمد یوسف لدهیانوی)_

۳ ] عن محمد بن النعمان یرفع الحدیث الی النبی صلی الله علیه وسلم قال:من زارقبر ابویه اواحدهما فی کل جمعة غفرله وکتب برا (رواه البیهقی فی شعب الایمان مرسلاً (مشکوة ص:۱۵٤باب زیارة القبور)_

دي اويه ,,شرح لباب المناسک،، کې ليکل شوي دي چې د جمعې، هفتې، او پير (دوشنبې) او جمعرات (پانشنبې) ورځ افضله ده او محمد بن واسع رحمه الله فرمايي چې د جمعې په ورځ، يوه ورځ مخکې، اويوه ورځ وروسته مړی خپل زايرين پېژني، د دې نه معلومه شوه چې د جمعې ورځ افضله ده.،[1] (ردالمحتارج:۲ ص:۲۴۲)

## پاخهٔ مزارونه ولې جوړيږي؟

**سوال:** په حديث شريف کې دي چې بهترين قبرهغه يې چې نشان يې نه وي اوکچه (خام) وي، بيا په ټول پاکستان اوهندوستان کې دومره مزارونه ولې دي؟کوم چې خلک د عبادت ترحده پورې ښکلوي اوسوالونه پرې کوي؟

**جواب:** د بزرگانو قبرونه يا خو عقيدتمندو يا بادشاهانو پاخه کړي دي، يا دکاندارانو منجورانو، او د دې خلکوکارڅه شرعي دليل نه دی.

## مزارونوته تګ جائزدی، خوهلته دې شرک او بدعت نه کوي

**سوال:** آيا مزارونو ته تګ جائزدی؟ کوم خلک چې ځي؛ نوشرک خونه کوي؟

**جواب:** دقبرونوزيارت له پاره تګ مستحب دی[2] د دې له وجې داولياو مزارونوته تګ شرک نه دې؛خوهلته تګ نه وروسته شرک اوبدعت کول سخته ګناه ده.[3]

## د بزرګانوپه مزارونوباندې نذرمنل حرام دي

**سوال:** ډيرځايونوکې دبزرګانومزارونه جوړيږي.(اونن سباخو ځينې نقلي هم جوړيږي)اوپه هغو باندې هرکال عرس هم کيږي، غلافونه پرې خوريږي هلته سوالونه کيږي، داترکومه حده پورې صيحح دي؟

**جواب:** داټولې خبرې بالکل حرام اوناجائزه دي، د دې ضروري تفصيل دې زماپه رساله ,,اختلاف امت اورصراط مستقيم،،کې وکتل شي.[4]

---

۱ ]وتزارفی کل اسبوع کمافی مختارات النوازل قال فی شرح لباب المناسک الا ان الافضل يوم الجمعة والسبت والاثنين والخميس فقد قال محمد بن واسع :الموتی يعلمون بزوارهم يوم الجمعة ويومًا قبله ويومًا بعده فتحصل ان يوم الجمعة افضل اه (ردالمحتار ج:۲ص:۲۴۲)_

۲ ]قوله بزيارة القبور ای لاباس بها بل تندب کما فی البحر عن المجتبی (ردالمحتارعلی الدرالمختار ج:۲ ص:۲۴۲) مطلب فی زيارة القبور،طبع سعيد)٠دزيات تفصيل دپاره اوګورئ دص:۳۹۹حاشيه نمبر۳،۲)

۳ ] ان الشرک لظلم عظيم ٠الآية ٠وايضًا ويکره عند القبرمالم يعهد من السنة والمعهود منها ليس الا زيارته ......الخ (هندية ج:۱ص:۱۶۶)_

۴ ] دتفصيل دپاره اوګورئ ``اختلاف امت اوصراط مستقيم،، صفحه ۶۳نه تر۷۸پورې طبع مکتبة لدهيانوی)_

## په مزارونو باندې پیسې ورکول کله جائز دي او کله حرام؟

**سوال:** زه چې په کومه لاره باندې موټر چلوم، په هغه لاره کې یو مزار راځي، خلک ماته پیسې راکوي چې په مزار باندې ورکړه، په مزار باندې پیسې ورکول څنګه دي؟

**جواب:** په مزار باندې چې کومې پیسې ورکول کیږي، که د هغې مقصد په فقیرانو او مسکینانو باندې صدقه کول وي نو جائز ده او که د مزار نذرانه ترې مقصود وي؛ نو ناجائزه او حرام دي.[۱]

## په مزارونو راجمع شوې پیسې چیرته خرچ کول پکار دي؟

**سوال:** په مزارونو یا قبرونو باندې چې کومې پیسې راجمع کیږي دا څنګه دي؟ (راجمع کول یې څنګه دي) که ناجائزه وي؛ نو چې داول نه کومې جمع دي هغه چیرته خرچ کړل شي؟

**جواب:** داولیاء الله په مزارونو باندې چې کومې چړهاوې چړهاویږي هغه ,,ما اهل به لغیر الله،، کې داخلیدو په وجه حرام دي[۲] او ددې مصرف دحرام مال مصرف دی، یعنې دثواب له نیت پرته دې دغه مال چا د زکات مستحق ته ورکړل شي.[۳]

## د اولیاء الله په مزارونو باندې چیلی (وزه) وغیره ورکول حرام دي

**سوال:** کوم خلک چې داولیاء الله په مزارونو باندې چیلی وغیره ورکوي آیا دا جائز دي؟ حالانکې دهغوی نیت دخیرات وي، دهغوی په خواوشا کې مسکینان هم موجود دي.

**جواب:** داولیاء الله په مزارونو باندې چې کوم چیلی دنذرا ونیاز په طور سره ورکول کیږي، هغه قطعاً حرام او ناجائزه دي او دهغې خوراک دهیچا له پاره جائز نه دی[۴] تر دې پورې چې مالِک دخپل فعل نه توبه و باسي او چیلی بېرته واخلي او کوم چیلی چې د هغه ځای دغریبانانو له پاره رالیږل کیږي، هغه د هغو دغریبانو له پاره حلال دی.[۵]

---

۱ ] واعلم ان النذر الذی یقع اللاموات من اکثرالعوام ومایوخذ من الدراهم والشمع والزیت ونحوها الی ضرائح الاولیاء الکرام تقربا لهم فهو بالاجماع باطل وحرام مالم یقصدوا صرفها لفقراء الانام وقد ابتلی الناس بذالک ولا سیمافی هذه الاعصار ......الخ (درمختار ج:۲ص:۴۴۰، ۴۳۹ قبیل باب الاعتکاف ،طبع سعید)۔

۲ ]قوله باطل وحرام لوجوه منها انه نذر لمخلوق والنذر للمخلوق لایجوز لانه عبادة والعبادة لاتکون لمخلوق ......الخ (ردالمحتار ج:۲ص:۴۳۹ مطلب فی النذر الذی یقع للاموات من اکثرالعوام)۔

۳ ] لان سبیل الکسب الخبیث التصدق ......الخ (شامی فصل فی البیع ج:۶ص:۳۸۵)،ایضًا ویتصدق بها بلانیة الثواب انما ینوی به براة الذمة (قواعدالفقه ص:۱۱۵)۔

۴ ] اوګورئ تیره شوی حاشیه (واعلم ان النذر الذی یقع للاموات من اکثر العوام....الخ) او وریسی حاشیه (قوله باطل وحرام لوجوه منها انه نذر لمخلوق....الخ)۔

۵ ] وذکر الشیخ انما هو محل لصرف النذر لمستحقیه القاطنین برباطه اومسجده فیجوزبهذا الاعتبارولایجوزان یصرف ذلک لغنی ولاشریف منصب اوذی نسب اوعلم مالم....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

## مړی، قبرته راتلونکی پیژني او د هغه د سلام جواب ورکوي

**سوال:** په قبر د چاعزیز مثلاً مور پلار، رور، خور، یا اولادته ورشي نو آیا د هغه کس روح داکس درشتې سره پیژني؟ په هغوی کې دلیدو، خبرواو اوریدو قوت وي؟

**جواب:** د حافظ سیوطي رحمه الله نه،، په شرح الصدور،، کې ددې مسئلې په باره کې ښمیر روایات نقل دي چې مړی هغه کسان چې ددوی قبرونو ته ورشي ویني اوپیژني اوددوی دسلام جواب ورکوي،[۱] په یو حدیث کې ارشاددې چې کوم کس چې دخپل مومن ورور قبرته ورشي چې هغه په دنیاکې پیژنداه، ورشي اوسلام وکړي نوهغه دی پیژني اوهغه ته جواب ورکوي، داحدیث په،،شرح الصدور،، کې دحافظ ابن عبدالبر د،،استذکار،، او،،تمهید،، په حوالې سره نقل شوی دی اولیکلي یې دي چې محدث عبدالحق داصحیح ګرځولی دی.(ص:۸۸)[۲]

## قبربا ندې لاس اوچتولو سره دعا غوښتل

**سوال:** په قبرستان کې یاپه یو قبربانديې په اوچت لاس سره دعا غوښتل څنګه دي؟

**جواب:** په فتاوی عالمګیري(ج: ۵ ص: ۳۵۰) کې لیکل شوي دي چې که څوک په قبربانديې که دعا غواړي؛ نو قبرطرف دې شاکړي اود قبلې طرف ته مخ کړي اودعادې اوغواړی.[۳]

## قبرستان کې د فاتحې او دُعا طریقه

**سوال:** په قبرستان کې فاتحه لوستل کیږي،په دې فاتحه نومې دعا کې څه لوستل کیږي؟ (یعنې څه دعاغوښتل پکاردي)

**جواب:** قبرستان ته چې ورشئ نواول خوهغوی ته سلام کول پکاردي،دهغه الفاظ په حدیث

---

...بقیه د تیر مخ]. . یکن فقیرًا......الخ (ردالمحتارعلی الدرالمختارج:۲ص:۴۳۹)_

۱ ] عن عائشة رضی الله عنها قالت:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :مامن رجل یزورعن قبراخیه ویجلس عنده الا استانس ورد علیه حتی یقوم ،واخرج ایضًا والبیهقی فی الشعب، عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:اذا مرالرجل بقبریعرفه فسلم علیه رد علیه السلا م وعرفه ،واذا مربقبرلایعرفه فسلم علیه ،ردعلیه السلام ......واخرج ابن ابی الدنیا فی القبور،والصابونی فی المائتین ،عن ابی هریرة رضی الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال:مامن عبدیمرعلی قبررجل یعرفه فی الدنیا،فیسلم علیه الا عرفه ورد علیه السلام (شرح الصدور ص:۲۰۲ ،باب زیارة القبوروعلم الموتی بزوارهم ،طبع دارالکتب العلمیة)_

۲ ] واخرج ابن عبدالبرفی الاستذکاروالتمهیدعن ابن عباس رضی الله عنهما قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم مامن احد یمربقبراخیه المومن کان یعرفه فی الدنیا فیسلم علیه الا عرفه ورد علیه السلام ،صحه عبدالحق (شرح الصدورص:۲۰۲،طبع دارالکتب العلمیة بیروت)_

۳ ] فاذا بلغ المقبرة یخلع نعلیه ثم یقف مستدبرالقبلة مستقبلاً لوجه المیت ویقول:السلام علیکم یااهل القبور!......واذا اراد الدعاء یقوم مستقبل القبلة کذافی خزانة الفتاوی (عالمګیری ج:۵ص:۳۵۰)_

کې داراغلي دي,,السلام علیکم یااهل الدیارمن المومنین والمسلمین واناان شاء الله بکم للاحقون، نسال الله لناولکم العافیة،،[1] اوبیاچې څومره ممکنه وي دهغوی له پاره دې دعا او استغفار وکړي او د قرآن مجید لوستلو نه پس دې ثواب هغوی ته وبښي،په څینې روایاتو کې دسوره یاسین، سوره تبارک الذی، سوره فاتحه،سوره زلزال،سوره التکاثر،اوسوره اخلاص اودایت کرسي فضیلت هم راغلی دی[2]په فتاوی عالمګیري کې دي چې دقبرطرف ته مخ او د قبلې طرف ته دې شا کړي

اوکله چې ددعااراده وکړي؛ نودقبرطرف ته دې شااوقبلې طرف ته دې مخ کړي.[3]

## په قبرستان کې مسنونې دُعاګانې

**سوال:** کومې مسنونې اوبهترې دعاګانې دي چې په قبرستان کې لوستل پکاردي؟

**جواب:** دټولونه مخکې په قبرستان کې اهل قبوروته سلام کول پکاردي،ددې مختلف الفاظ په احادیثوکې راغلي دي،دهغو نه دې یوقسم الفاظ ووایي،اوکه هغه ورته یادنه وي؛ نو ,السلام علیکم دې ووایي،ددې نه وروسته دې دهغوی له پاره دعااواستغفاروکړي اوچې څومره ممکنه وي دقرآن کریم دتلاوت ثواب دې هغوی ته ورسوي، په احادیثوکې په خصوصیت سره دڅه سورتونو ذکر راغلی دی مثلاً سوره فاتحه،ایت کرسی،سوره یاسین، سوره تکاثر،سوره کافرون، سوره اخلاص، سوره فلق،سوره ناساو داسې نور....[4]

## په قبرستان کې دقرآن کریم تلاوت په کم آوازسره جائزدی په لوړاوازسره مکروه دی

**سوال:** یومولوي صاحب فرمایل چې قرآن مجیدپه قبرستان کې لوستل پکارنه دي،څکه چې دعذاب والاآیتونوسره په مړي باندې عذاب نازلیږي، بلکې مخصوصې دعاګانو سره دهغو آیتونوچې دِسنت نبوي ﷺنه ثابت دي، لوستل پکاردي.

**جواب:** په قبرباندې په اوچت آوازسره قرآن کریم ویل مکروه دي،کم آوازسره یې لوستلی شئ![5]

---

[1] مشکوة المصابیح ،باب زیارة القبورص:۱۵٤)۔

[2] ثم یدعوا قائمًاطویلا وان جلس یجلس بعیدًا اوقریبًابحسب مرتبته فی حال حیاته.... وفی شرح اللباب ویقرأ من القرآن ماتیسر له من الفاتحة واول البقرة الی المفلحون وآیة الکرسی وآمن الرسول وسورة یس وتبارک (الملک) وسورة التکاثروالاخلاص اثنی عشرمرة......الخ (شامی ج:۲ص:۲٤۲،۲٤۳مطلب فی زیارة القبور)

[3] ثم یقف مستدبر القبلة مستقبلاً لوجه المیت ...... واذا اراد الدعاء یقوم مستقبل القبلة کذافی خزانة الفتاوی (هندیة ج:۵ص:۳۵۰،کتاب الکراهیة ،الباب السادس عشرفی زیارة القبور)۔

[4] ایضاً تیره شوی حاشیه (ثم یدعوا قائمًا طویلا وان جلس یجلس بعیدًا اوقریبًا بحسب...الخ)۔

[5] انما یکره قراءة القرآن فی المقبرة جهرًاامالمخافتة فلاباس بها (هندیة ج:۵ص:۳۵۰کتاب الکراهة)۔

## قبرستان ته د ښځو تګ صحیح نه دی

**سوال:** ۱.....آیا قبرستان ته د ښځو تګ منع دی؟

۲...او که تلی شي نو آیا د خاص وخت تعین پکار دی؟

۳...قبرستان ته تلونه پس د ښځو یا سړیو له پاره قرآن کریم ویل یا نوافل کول منع دي او که دلمونځ وخت شي او وخت لږ وي څنګه چې د ماښام وخت وي؛ نو آیا لمونځ قضا کول پکار دي یا هم هلته کول پکار دي؟

**جواب:** د ښځو قبرستان ته تګ کې اختلاف دی،صحیح داده چې پیغلو ښځو ته هیڅ کله هم قبرستان ته تلل پکار نه دي،او که بوډۍ ګانې لاړې شي او هلته څه خلاف شرع کارونکړي؛ نو ګنجائش شته.[۱]

۲...د خاص وخت هیڅ تعین نشته،د پردې اهتمام کول او د نامحرمو سره د اختلاط نه ساتل ضروري دي.[۲]

۳...د صحیح قول مطابق په قبرستان کې تلاوت کول جائز دي؛ مګر په اوچت آواز سره دې نه لولي[۳] په قبرستان کې د لمونځ کولو نه په حدیث کې ممانعت راغلی دی[۴] له دې وجې نه په قبرستان کې نفل کول جائز نه دي او که چېرته د فرض لمونځ کولو ضرورت راپیښ شي؛ نو د قبرستان نه دې یو طرف ته چې قبر د لمونځ کونکی مخې ته نه وي،لمونځ وکړي.[۵]

## د ښځو قبرستان ته تلل

**سوال:** اکثر خلک دا خبره په یقین سره بیانوي چې ښځې قبر ته نه شي تللی، ګناه ده، تاسو وایئ چې دا خبره تر کومې پورې صحیح ده؟آیا د ښځو قبر ته تلل ګناه ده؟

---

۱ ] واما النساء اذا اردن زيارة القبور ان كان ذلک لتجديدالحزن والبكاء والندب كما جرت به عادتهن فلاتجوزلهن الزيارة وعليه يحمل الحديث الصحيح لعن الله زائرت القبور وان كانت للاعتبار والترحم والتبرک بزيارة قبور الصالحين من غير مايخالف الشرع فلا باس به اذا كن عجائز وكره ذلک للشابات كحضورهن فى المساجد للجماعات ...الخ (مراقى الفلاح شرح نورالايضاح ص:۳٤۰فصل فى زيارة القبور ،وايضًا فى الشامى ج:۲ص:۲٤۲طبع سعيد)

۲ ] ايضًا)_

۳ ]قراءة القرآن فى المقابراذا اخفى ولم يجهر لاتكره ولاباس بها.......الخ (هندية ج:۵ص:۳۵۰كتاب الكراهية)

٤ ]عن ابى سعيدقال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :الارض كلها مسجد الاالمقبرة والحمام ۰رواه ابوداود،والترمذى والدارمى (مشكوة ص:۷۱)۰وعن جندب قال سمعت النبى صلى الله عليه وسلم يقول:الا وان من كان قبلكم كانوا يتخذون قبور انبياء هم وصالحيهم مساجد،الا فلا تتخذوا القبور مساجد انى انهاكم عن ذلک۰رواه مسلم (مشكوة ص: ٦۸)_

۵ ] لاتكره الصلاة فى جهة قبر الا اذا كان بين يديه...الخ (شامى ج:۱ص:٦۵٤،مطلب فى بيان السنة والمستحب)

**جواب:** په حدیث کې دي چې د الله تعالی لعنت دې وي په هغو ښځو باندې کومې چې د قبر د زیارت له پاره ځي[1] ځینې حضرات د دې حدیث په بنا باندې د ښځو قبرستان ته تلل حرام ګڼي، د ځینو په نزد مکروه دي، د ځینو په نزد د ښځو تلل هم جائز دي،په دې شرط چې د شریعت خلاف کار نه کوي، صحیح دا ده چې د ځوانو جینکو تلل مطلقاً ممنوع دي، او بوډۍ ښځې که چیرې په پرده کې لاړې شي او هلته د شریعت خلاف کار ونه کړي؛ نو د دوی د پاره جائز دي، دا ټول تفصیل علامه شامي رحمه الله ذکر کړی دی.[2]

## ایا د ښځو مزارونو ته ورتګ جائزدی؟

**سوال:** ایادښځوقبرستان ته،مزارونوته تلل یامحفل سماع(قوالي) منعقد کولومذهب چېرته اجازت ورکړی دی؟که داجائزوي نوتاسویې دقرآن اوحدیث په رڼاکې ثابت کړئ،ماسره ویره ده چې تاسودا داختلافي مسئله ګڼلوسره ځان ترې خلاص نه کړئ.

**جواب:** مسئله اتفاقي وي که اختلافي،خو دجناب په موږ دومره اعتماد هم نشته،چې موږ به درته صحیح مسئله اوښایو یابه یې ګول کړو،نوبیاتاسودسوال رالیږلو زحمت ولې وکړ؟

تاسوته پکاروو چې دد ې مسئلې پوښتنه مودیوداسې عالم نه کړې وی چې په هغه باندې موکم ازکم دومره اعتمادخووی چې هغه به مسئله نه ګول کوي،بلکې دالله تعالی اودهغه درسول ﷺ د طرف نه چې پرې دشریعت دترجماني کومه ذمه واري راځي هغه به دخپلې پوهې مطابق پوره کوي.

زماروره!شرعي مسائل نه خودعیاشي له پاره دي اونه یوازې دچیرچاړله پاره،داخودعمل کولوله پاره او دخپل عمل داصلاح له پاره دي،لهذامسئله کم ازکم دداسې کس نه معلومه کړئ چې ستاسوپه نظر کې صحیح عالم دین وي اودهغه په زړه کې دخدای دومره ویره هم وي چې دخپل ځان یا د خلکو د خواهشاتودرعایت کولوسره دشریعت په مسائلوکې هیڅ قسمه دځان نه کمی زیاتی نه کوي.

اوس ستاسومسئله هم عرض کوم ګڼي تاسوبه وایئ چې ګوره حان یې رانه خلاص کړ.

دښځوقبرستان ته تګ واقعي اختلافي مسئله ده اکثراهل علم یې خویاحرام یامکروه

---

[1] عن ابی هریرة ان رسول الله صلی الله علیه وسلم لعن زوارت القبور،رواه احمد والترمذی وابن ماجة ،وقال الترمذی ،هذا حدیث حسن صحیح ،وقال :قد رای بعض اهل العلم ان هذا کان قبل ان یرخص النبی صلی الله علیه وسلم فی زیارة القبور فلما رخص دخل رخصته الرجال والنساء وقال بعضهم انما کره زیارة القبور للنساء لقلة صبرهن وکثرة جزعهن تم کلامه (مشکوة ص:۱۵٤،باب زیارة القبور)

[2] ان کان ذلک لتجدیدالحزن والبکاء والندب علی ماجرت به عادتهن فلا تجوز وعلیه حمل حدیث (لعن الله زائرات القبور) وان کان للاعتبار والترحم من غیر بکاء والتبرک بزیارة قبورالصالحین فلاباس اذاکن عجائزویکره ،اذاکن شواب (حاشیه ردالمحتار،مطلب فی زیارة القبور ج:۲ص:۲٤۲)

تحریمي ورته وايي اوځه حضرات ددې اجازت ورکوي،دا اختلاف داسې راپيداشوچې په يوه زمانه کې قبرونوته تګ دهرچاله پاره منع و.سړيوته هم اوښځوته هم،بيا وروسته حضور ﷺ ددې اجازت ورکړاووېې فرمايل:دقبرونوزيارت کوئ ،هغوی آخرت وريادوي.[1]

کوم حضرات چې دښځوقبرونوته ورتګ جائزګڼي دهغوی وېناده چې داکوم اجازت حضور ﷺ ورکړېده دې کې ښځې اوسړي دواړه شامل دي.

اوکوم حضرات چې يې ناجائزه ګڼي دهغوی استدلال دادی چې حضور ﷺ په داسې ښځوباندې لعنت فرمايلی دی چې دقبرونو زيارت له پاره لاړې شي،لهذاقبرونوته تګ به دهغوی له پاره ممنوع او موجب لعنت وي.

داحضرات داهم فرمايي چې ښځې يوخودشرعي مسائلونه کمې خبرې وي،دويمه په هغوی صبر،حوصله اوضبط کم وی،ددې وجی نه دهغوی په حق کې غالبه انديښنه هم داده چې دوی به هلته ژړاانګولا کوي ياځه بدعت به راپيداکړي،کيدای شي چې ددې ويرې نه حضور ﷺ ددوی قبرونوته ورتګ موجب لعنت ګرځولی وي،اودا اختلاف هم په هغه صورت کې دی چې ښځې قبرونو ته ورشي اوځه دبدعت کارونکړي،ګنی دچاپه نزدهم اجازت نشته،نن سباچې ښځې دبزرګانو مزارونوته ورشي اوځه کوي دهغو په ليدوسره مويقين راځي چې حضور ﷺ مزارونوته ورتلونکو ښځوباندې لعنت ولې فرمايل دی.[2]

## دښځواوماشومانوقبرستان ته تګ، اودبزرګ په نامه نذرکول

**سوال:** دښځواوماشومانوقبرونوته تګ جائزدی او که نه؟بل داچې دقبروالا په نوم باندې نذر منل لکه چيلی ورکول اوپرې ځه ځادرخورول او داسې نور...؟

**جواب:** داهل قبورله پاره نذرمنل بالاجماع باطل اوحرام دي، په درمختارکې دي:

،،پوهيدل پکاردي چې اکثردعواموددطرف نه دمړوپه نامه چې کوم نذر منل کيږي اوداولياءالله کرامو په مزارونوباندې روپۍ، پيسې، شيريني،تيل وغيره اچول کيږي دهغوی دقرب له پاره منل کيږي دابالاجماع حرام اوباطل دي، يادا چې نذردالله تعالی له پاره وي اودهغه په فقيرانو باندې خرچ کولواراده اوکړل شي،خلک خاصکر په دې زمانه کې په کثرت سره په دې کې

---

۱ ] عن ابن مسعود رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله عليه وسلم قال:نهيتکم عن زيارة القبورفزوروها فانها تزهد فی الدنياوتذکر الآخرة۰رواه ابن ماجة (مشکوة ص:۱۵۴،باب زيارة القبور،طبع قديمی)۔

۲ ] ان کان ذلک لتجديدالحزن والبکاء والندب علی ماجرت به عادتهن فلا تجوز وعليه حمل حديث (لعن الله زائرات القبور) وان کان للاعتباروالترحم من غير بکاء والتبرک بزيارة قبورالصالحين فلاباس اذاکن عجائزويکره اذاکن شواب (حاشيه ردالمحتار،مطلب فی زيارة القبور ج:۲ص:۲۴۲) عن ابن مسعود رضی الله عنهما ان رسول الله صلی الله عليه وسلم قال:نهيتکم عن زيارة القبورفزوروها فانها تزهد فی الدنياوتذکر الآخرة۰رواه ابن ماجة (مشکوة ص:۱۵۴،باب زيارة القبور،طبع قديمی)۔

مبتلادي. دامسئله علامه قاسم په ,,دررالبحار،، کې په ډیرتفصیل سره لیکلې ده،،[1]

علامه شامي رحمه الله ددې په شرح کې لیکي: ,,دداسې نذر دناجائزه اوحرام کیدو څو وجوهات دي:

اول داچې دانذردمخلوق له پاره کیږي اودمخلوق په نامه باندې نذرمنل جائزنه دي:ځکه چې نذرعبادت دی اودغیرالله عبادت نه کیږي.

دویم داچې دچاپه نامه نذر منل شوی ده، هغه مړی دی اومړی دهیڅ شي مالک نه وي

دریم داچې که دنذر کونکي داخیال وي چې دالله تعالی نه سوادامړه شوي بزرگان هم په تکویني امورو کې تصرف لرې نوداعقیده غلطه ده.،(ردالمحتارقبیل باب الاعتکاف ج:۲ص:۴۳۹؛ اوداهم اوګوري البحررائق ج:۲ ص:۳۲۰)[2]

دوړوماشومانوقبرستان ته بوتلل خوبې هوده خبره ده، پاتې شوه دښځوقبرستان ته دتلو مسئله،په دې کې دعلماوو اختلاف دی د ځینو په نزد باندې د ښځو قبرستان ته تلل حرام دي ځکه چې د حضور ﷺ ارشاددی:

,, دالله تعالی لعنت دې وي، په هغو ښځوباندې چې په کثرت سره دقبرونوزیارت ته ځي،،(رواه احمدوالترمذی وابن ماجه ،مشکوة،ص:۱۵۴)[3]

دځینوحضراتوپه نزدباندې مکروه دي،اودځینوپه نزد باندې جائزدی، په دې شرط چې هلته جزع اوفزع نه کوي،اودڅه غیرشرعي امر ارتکاب ونه کړي، ګنی حرام دي،په دې زمانه کې د ښځوهلته ته تګ دفسادنه خالي نه دی،اکثربې پردې ورځي،اوبیا هلته غیرشرعي حرکتونه کوي. نذرونه کوي،چړهاوي ورکوي،ددې وجې نه صحیح دادی چې ځنګه نن سبادښځوهلته دورتګ رواج دی، ددې دهیچاپه نزدباندې اجازت نشته،بلکه بالاجماع حرام دی.

## قبرستان وقف وي ذاتي تصرفات پکې جائزنه دي

**سوال:** که یوکس ته مسلمان ویل کیږي اودمسلمانانوپه قبرستان کې قبرونه مسماروي اوپه هغه باندې کورونونه اوکارخانې جوړې کړي،اوپه هغوکې اوسیدل اختیارکړي چې دقبرستان

---

۱ ] واعلم ان النذر الذی یقع للاموات من اکثر العوام وما یوخذ من الدارهم والشمع والزیت ونحوهما الی ضرائح الاولیاء الکرام تقربًا الیهم فهو بالاجماع باطل وحرام مالم یقصد وا صرفها لفقراء الانام وقد ابتلی الناس بذلک ولا سیما فی هذه الاعصار وقدبسطه العلامة قاسم فی شرح دررالبحار (الدرالمختار ج:۲ص:۴۳۹،قبیل باب الاعتکاف)

۲ ] قوله باطل وحرام لوجوه :منها انه نذر لمخلوق والنذر للمخلوق لایجوز لانه عبادة والعبادة لا تکون لمخلوق، ومنها ان المنذورله میت والمیت لایملک،ومنهاانه ظن ان المیت بتصرف فی الامور دون الله تعالی واعتقاد ه ذلک کفر)

۳] عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:ان رسول الله صلی الله علیه وسلم لعن زوارات القبور(مشکوة ص:۱۵۴)

داحترام د پامالي سبب جوړشي، دهغه په دې عمل باندې دشريعت قانون څه حدقائموي؟ اودهغه د دې عمل تذکره به په کوم انداز کې کيږي؟

**جواب:** دمسلمانانو قبرستان وقف وي.اوپه وقف کې داقسمه تصرفات چې په سوال کې ذکر شوي دي جائزنه دي[1] البته که دچا په ذاتي ځمکه کې قبرونه وي؛ نوهغه هواريداى شي.[2]

## قبرستان تر کومه پورې قبرستان پاتې کيږي؟

**سوال:** قبرستان تر کومه پورې قبرستان پاتې کيږي؟ په ځينې ملکونو کې د يو څو کلونو نه وروسته بلډوزر چلوي او په دې باندې آبادي کوي، په شريعت کې ددې کار ترکومه پورې گنجائش شته؟

**جواب:** قبرونه چې زاړه شي نو د دې د ورانولو اجازه شته [3] خو د شخصي او ذاتي اغراضو له پاره ددې ځاى استعمالول جائز نه دي؛ ځکه چې هغه صرف د مړو د تدفين د پاره وقف شوې ده [4] هو! که د چا ذاتي ځاى وي نو زاړه قبرونه ورانول او کرونده پرې کول هم صحيح کيږي [5] ليکن قبرستان چې وقف وي دي لره اخستل (او استعمالول) په هيڅ حالت کې هم صحيح نه دي.

## د چا په مملوکه ځمکه کې قبر جوړول

**سوال:** زما ورور وفات شوى دى يوه مياشت وشوه مونږه په کلي کې دده قبر د يو رشتدار په ځمکه چې د قبرستان سره ده جوړ کړ،اول د والدې قبر هم دلته کې دى،هغه سړى موجود نه و، دده د زوى نه مو اجازه واخيسته، بيا په زړه کې مې خيال و چې د ماما زوى دى څه به وائيي قبر تيار شو نو هغه سړې چې راغې نو ده شور وکړ چې زما په ځاى کې مو قبر ولې وکنست؟!ځکه چې دغه وخت د جنازې وخت شوى و، دومره وخت نه و چې بل قبر وکنستل

---

[1] مقبرة قديمة لمحلة لم يبق فيها آثار المقبرة هل يباح لاهل المحلة الانتفاع بها؟قال ابونصر رحمه الله تعالى :لايباح ......الخ (قاضى خان برهامش هندية ج:۳ص:۳۱۴)،وايضًا اذا صح الوقف لم يجز بيعه ولا تمليكه ......الخ، هداية ج:۲ص:٦٤٠،كتاب الوقف طبع مكتبة شركت علميه)_

[2] ولوبلى الميت وصارترابا جاز......زرعه والبناء عليه كذافى التبيين ......اذا دفن الميت فى ارض غيره بغير اذن مالكها فالمالک بالخيار......الخ (هندية ،باب الجنائز ج:۱ص:۱٦٧،طبع رشيدية)_

[3] كماجاز زرعه والبناء عليه اذا بلى وصارترابًا (الدرالمختار ،مطلب فى دفن الميت ج:۲ص:۲۳۸)

[4] الوقف ......ولايباع ولا يوهب ولايورث (عالمگيرى ج:۲ص:۳۵۰)

[5] اذا دفن الميت فى ارض غيره بغير اذن مالكها بالخياران شاء امر باخراج الميت وان شاء سوى الارض وزرع فيها (عالمگيرى ج:۱ص:۱٦٧،كتاب الصلاة ،الباب الحادى والعشرون ،الفصل السادس)

شي، د يو څو خلکو په وينا باندې هغه چپ شو مونږه جنازه اوکړه او مړی مو قبر ته حواله کړ اوس ما ته بيا بيا خيال راځي چې که چيرې دا سړی د زړه نه راضي نه شو؛ نو شايد چې زما ورور ته به عذاب وي، جناب! تاسو ته درخواست دادی چې ما ته ددې حل بيان کړئ چې زه څه وکړم؟ هغه څنګه راضي کړم؟ يا د ځای پيسې ورکړم. دا به ستاسو مهرباني وي.

**جواب:** که د چا په مملوکه ځمکه کې قبرستان جوړ کړل شي نو دده حق جوړيږي چې ځمکه همواره کړي او دا ځمکه استعمال کړي د مړي د ويستلو ضرورت نشته او نه د مړي وارثانو ته د مړي د ويستلو اجازت شته اونه په دې ځمکه کې د تصرف کولو د منع کولو اجازت شته.[1]

## د خوب په وجه د چا په ځمکه کې د جوړکړي مزار څه سره وکړل شي؟

**سوال:** .مولاناصاحب!زمونږ دکلي نه تقريبايوميل لرې په يوېټي کې يوپيرصاحب رابنکاره شوی دی، هغه داسې چې يوې ښځې خوب وليده چې پيرصاحب وايي چې په فلاني ځای کې زما مزار جوړ کړئ. خلکومزارجوړکړ،نن مونږ په خپلوسترګوسره وينوچې په دې مزارباندې روزانه (۲۰۰ )نه زيات کسان دعاغوښتلوته راځي،دکوم مالک چې داځمکه ده هغه ډيرزيات تنګ دی اووايي چې زمادځمکې نه داجعلي مزارلرې کړئ،ليکن هغوی نه مني،تاسووواييئ چې ددې څه حل دی؟

**جواب:** ديوې ښځې په ويناباندې مزارجوړول بې عقلي ده،دځمکې مالک ته پکاردي چې هغه دا هواره کړي اوخلق هلته دراتلونه منع کړي.[2]

---

[1] اذا دفن الميت فی ارض غيره بغيراذن مالكها ،فالمالک بالخيار ان شاء امرباخراج الميت وان شاء سوى الارض وزرع فيها......ولاينبغی اخراج الميت من القبربعد ما دفن الا اذا كانت الارض مغصوبة او اخذت بشفعة. (عالمگيری ج۱ ص۱۶۷) ولا يخرج منه بعد اهالة التراب الا لحق آدمی ان تكون الارض مغصوبة او اخذت بشفعة ويخيرالمالک بين اخراجه ومساواته بالارض....الخ (الدرالمختارج:۲ص:۲۳۸باب صلاة الجنازة)

[2] لايجوز لاحد ان يتصرف فی ملک غيره بلااذنه (شرح المجلة ،المادة :۹۶،ص:۶۱) (ايضًااذا دفن الميت فی ارض غيره بغير اذن مالكها فالمالک بالخيار ان شاء امرباخراج الميت وان شاء سوى الارض وزرع فيها كذاف التجنيس (عالمگيری ،الفصل السادس فی ا لقبروالدفن والنقل من مكان الی آخر ج:۱ص:۱۶۷)_

# ❖ ایصال ثواب ❖

## ایصال ثواب له پاره د حضور (ﷺ) نه شروع کول پکار دي

**سوال:** زه د ذکر کولو نه مخکې يو ځل سوره فاتحه، درې ځله قل هوالله شريف، اول او اخر کې درود شريف لولم او داسې دعا کوم: یاالله! ددې ثواب زما مخدوم او مکرم حضرت.... دامت برکاتهم نه واخله تر حضرت محمد ﷺ پورې زما د سلسلې د ټولو مشائخو کرامو پورې ورسوې، او د هغوی د فيوضاو برکاتو نه مونږ ته هم حصه را نصيب کړې.

**جواب:** د حضرت شيخ نورالله مرقده د سلسلې مطابق يو لس ځله درود شريف او د يارلس ځله قل هوالله شريف ويل (او ددې سره که سوره فاتحه هم وويل شي؛ نو ډيره ښه ده) ايصال ثواب دې وکړل شي او شروع دې د حضور ﷺ د نوم مبارک څخه وکړل شي باقي سهي ده.[۱]

## د حضور اکرم ﷺ له پاره د نوافلو ايصال ثواب

**سوال:** ما د حضور ﷺ د ايصال ثواب له پاره روزانه د سوره ياسين شريف تلاوت کولو، اوس د څه مودې راهيسې د اعمل د دور کعتونفلو په ذريعه اداکوم، آيا داسې کولو سره د ذات پاک ﷺ په احترام کې څه کوتاهي خو نه کوم؟

**جواب:** هيڅ نقصان پکې نشته، د حضور ﷺ له پاره د بدني او مالي عباداتو په ذريعه د ايصال ثواب اهتمام کول د محبت خبره ده.[۲]

## حضور ﷺ له پاره ايصال ثواب او د يو اشکال جواب

**سوال:** تاسو مفتيان صاحبان ددې لاندې مسئلې په باره کې څه فرمايئ چې مسلمانان د حضور ﷺ په خدمت کې ايصال ثواب کوي، زمونږ د ايصال ثواب نه حضور ﷺ ته څه فايده رسيږي؟ هرکله چې حضور ﷺ د دواړو جهانونو سردار دی او د جنت اعلی ترين مقام د حضور ﷺ له پاره يقيني دی.

درود او سلام دالله تعالی په حکم سره ليږو، کمافي النص، د يو خپل عزيز د ايصال ثواب کولو وجه معقوله ده، د هغه د ښښنې له پاره او رفع درجات له پاره؛ نو د نبي کريم ﷺ په سلسله کې د ايصال ثواب کولو په حقيقت باندې رڼا واچوئ او د قرآن او سنت په رڼا صحيح جواب راکړئ

---

۱ ] قلت :وقول علمائنا له ان يجعل ثواب عمله لغيره يدخل فيه النبى صلى الله عليه وسلم فانه احق بذالك حيث انقذنا من الضلالة...الخ (شامى ج:۲ص:۲۴۴،مطلب فى اهداء ثواب القرأة للنبى صلى الله عليه وسلم)

۲ ] وفى البحر من صام اوصلى اوتصدق وجعل ثوابه لغيره من الاموات والاحياء جازويصل ثوابها اليهم عند اهل السنة والجماعة كذافى البدائع (شامى ج:۲ص:۲۴۳،مطلب فى القراءة للميت واهداء ثوابها له)۔

ستاسو احسان مند به یو.

**جواب:** دامت له طرف نه د حضور ﷺ له پاره ایصال ثواب نصوص سره ثابت دی، د ایصال ثواب یو صورت د حضور ﷺ د درجاتو د ترقي دعا او د مقام وسیلې درخواست دی.

د صحیح مسلم په حدیث کې دي:

**,,اذا سمعتم المؤذن فقولوا مثل مایقول، ثم صلوا علیّ فانه من یصلی علی صلوة صلی الله علیه وسلم بها عشرا ثم سلوا الله لی الوسیلة فانها منزلة فی الجنة لاینبغي الا لعبد من عباد الله وارجوان اکون انا هو، فمن سال لی الوسیلة حلت علیه الشفاعة..**،(مشکوة ص: ۶٤)

**ترجمه:** کله چې تاسو د موذن اواز واورئ؛ نو د هغه دا ذان په شان جواب ورکوئ، بیا په ما باندې درود ووایئ، ځکه چې څوک په ما باندې یو ځل درود ووایي الله تعالی د دې په بدله کې په هغه باندې لس رحمتونه نازلوي، بیا زما له پاره د الله تعالی نه د ,,وسیلې،، درخواست کوئ، دا په جنت کې یوه مرتبه ده، چې د الله تعالی په بندګانو کې یوازې دیوبنده شایان شان ده اوزه امید ساتم چې هغه بنده به زه یم؛ نو کوم کس چې زما له پاره دوسیلې درخواست وکړ، هغه ته به زما شفاعت نصیب کیږي.

او په صحیح بخاری کې دي: **,,من قال حین سمع النداء، اللهم رب هذه الدعوة التامة والصلوٰة القائمة ات محمدن الوسیلة والفضیلة وابعثه مقاما محمودن الذی وعدته، حلت له شفاعتي یوم القیامة..**،(مشکوٰة ص:۶۵)

**ترجمه:** کوم کس چې اذان واوري او دا دعا وکړي: اې الله! کوم چې د دې کامل دعوت مالک دی او د قایمېدونکي لمونځ، ورکړه محمد ﷺ ته وسیله او فضیلت او ودروې هغه په مقام محمود ندې، د کوم چې تاسو وعده کړې ده، د قیامت په ورځ به هغه ته زما شفاعت نصیب شي.

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د عمرې له پاره تلو، د اجازې د اخیستو له پاره د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو؛ نو حضور ﷺ ورته په رخصتي کې وفرمایل: **,,لاتنسنا یا اخی من دعائک. وفی روایة: اشرکنا یا اخی فی دعائک..**،(ابوداود ج:۱ ص:۲۱۰ ترمذی ج:۲ ص:۱۹۵)

**ترجمه:** وروره جانه! موږ په خپلو دعاګانو کې مه هېروه او په یوه روایت کې دي چې وروره جانه! په دعا کې موږ هم شریکوه.،،

د دې احادیثونه معلومه شوه چې څنګه په ژوند مبارک کې حضور ﷺ ته دعا مطلوب وه، همدغه شان د وفات نه وروسته هم حضور ﷺ ته دعا مطلوب ده.

د ایصال ثواب یو صورت دا هم دی چې د حضور ﷺ له طرف نه دې قرباني وکړل شي په حدیث کې دي چې حضور ﷺ حضرت علي رضی الله عنه ته د دې حکم فرمایلی و:

,,عن حنش قال رایت علیاً رضی الله عنه یضحی بکبشین، قلت له: ماهذا؟ فقال: ان رسول الله صلی الله علیه وسلم اوصانی ان اضحی عنه. فانا اضحی عنه،، (ابوداود، باب الاضحیة عن المیت ج:۲ ص:۲۹)

**ترجمه**: حنش وايي چې ماحضرت علي رضی الله عنه ولیده، چې د دوو ګډانو قرباني يې کوله، ماورته عرض وکړ: داڅه دي؟ ويې فرمايل چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته وصيت کړی و چې زه د هغه صلی الله علیه وسلم له طرف نه قرباني کوم؛ نو زه د هغه صلی الله علیه وسلم له طرف نه قرباني کوم،،

,,وفی روایة: امرنی رسول الله صلی الله عیله وسلم ان اضحی عنه فانا اضحی عنه ابداً،، (مسنداحمد ج:۱ ص:۱۰۷)

وفی روایة: فلاادعه ابداً. (ایضاً ج:۱ ص:۱٤۹)

**ترجمه**: په يو روايت کې دي چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته حکم کړی و چې زه د هغه صلی الله علیه وسلم له طرف نه قرباني کوم؛ نو اوس زه د هغه صلی الله علیه وسلم له طرف نه هميشه قرباني کوم،،

**ترجمه**: په يو روايت کې دي چې زه دا کله هم نه پرېږدم،،

ددې نه پرته د ژوندیو له طرف نه مړيو ته هديه وړاندې کولو يو صورت ايصال ثواب دی او د چا محبوب او معظم شخصيت په خدمت کې د هديې وړاندې کولو غرض دا نه وي چې د دې هديې سره به د هغه غريبي ختمه شي، يو ډېر لوی امير او کبير کس ته د هغه د خپلوانو له طرف نه هديه وړاندې کول يو عام معمول دی او هيڅ يو بې وقوف په ذهن کې به هم دا خبره نه راځي چې زموږ د حقيرې هديې سره به د هغه په مال او دولت کې اضافه وشي، بلکې يوازې د محبت د زياتوالي له پاره هديه وړاندې کيږي، همدغه شان د نبی کريم صلی الله علیه وسلم په بارګاه عاليه کې د ګناهګارو امتيانو له طرف نه د ايصال ثواب په ذريعه هديه وړاندې کول دوړاندې کونکوله طرف نه د تعلق او محبت د اظهار يوه ذريعه ده، چې د هغې سره د جانبينو په محبت کې اضافه کيږي او د دې ګټه په خپله ثواب لېږونکي ته رسيږي او د حضور صلی الله علیه وسلم درجات قرب کې هم د دې سره اضافه کيږي.

علامه ابن عابدين شامي رحمه الله په ,,ردالمحتار،، کې باب الشهيد نه مخکې په دې مسئله باندې مختصرې خبرې کړې دي، د فايدې د حاصلولو له پاره هغه دلته نقل کوم:

,,ذکر ابن حجر رحمه الله فی الفتاوی الفقهیة ان الحافظ ابن تیمیة زعم منع اهداء ثواب القراءة للنبی صلی الله علیه وسلم لان جنابه الرفیع لایجرا علیه الابما اذن فیه وهو الصلوة علیه وسوال الوسیلة له.

قال: وبالغ السبکی رحمه الله وغیره فی الرد علیه بان مثل ذلک لایحتاج لاذن خاص الاتری ان ابن عمر رضی الله عنهما کان یعتمر عنه صلی الله علیه وسلم عمراً بعد موته من غیر وصیة وحج ابن

الموفق وهوفی طبقة الجنید رحمه الله سبعین حجة وختم ابن السراج عنه صلی الله علیه وسلم اکثر من عشرة الاف ختمة وضحی عنه مثل ذلک.اه.

قلت:رایت نحوذلک بخط مفتی الحنفیة الشهاب احمدبن الشلبی شیخ صاحب البحر نقلا عن شرح الطیبة للنویری ومن جملة مانقله ان ابن عقیل من الحنابلة قال:یستحب اهداء له صلی الله علیه وسلم.

قلت:وقول علمائنا له ان یجعل ثواب عمله لغیره،یدخل فیه النبی صلی الله عیله وسلم فانه احق بذلک حیث انقذنا من الضلالة ففی ذلک نوع شکرواسدا جمیل له والکامل قابل لزیادة الکمال وما استدل به بعض المانعین من انه تحصیل الحاصل لان جمیع اعمال امته فی میزانه یجاب عنه بانه لامانع من ذلک فان الله تعالی اخبرنا بانه صلی علیه ثم امرنا بالصلوة علیه بان نقول اللهم صل علی محمد،والله اعلم.(شامی ج:۲ ص:۲٤٤ طبع مصر)[1]

**ترجمه**: ابن حجر(مکي شافعي رحمه الله) په فتاوی فقهیه کې ذکرکړي دي چې دحافظ ابن تیمیه رحمه الله خیال دی چې حضور ﷺ ته دتلاوت ثواب هدیه کول منع دي، ځکه چې دحضور ﷺ په بارګاه عالیه یوازې ددې جرات کیدای شي دکوم چې حکم شوی دی اوهغه په حضور ﷺ باندې صلوة اوسلام لیږل او هغه ((صلی الله علیه وسلم)) له پاره دوسیلې دعاکول دي.

ابن حجر رحمه الله وایي چې: امام سبکي رحمه الله په امام ابن تیمیه رحمه الله باندې ښه ډیر ردکړی دی، چې داسې شی دخاص اجازې محتاج نه وي چې ابن عمر رضي الله عنهما، دحضور ﷺ له وفات نه وروسته د حضور ﷺ له طرف نه عمرې کولې، هرکله چې حضور ﷺ ددې وصیت هم نه و کړی، ابن الموفق چې دجنیدهم طبقه دی، دحضور ﷺ له طرف نه اویاحجونه وکړل، ابن السراج د حضور ﷺ له طرف نه لس زره ختمه وکړل اوحضور ﷺ له طرف نه یې هم دومره قرباني کړې وې.

زه وایم چې ماهم دا قسمه خبره داحنافو دمفتي شیخ شهاب الدین احمدبن الشلبي، چې دصاحب بحرالرائق استاد دی په تحریر کې لیدلې ده، کومه چې موصوف دعلامه نویري رحمه الله د ,,شرح الطیبه،،نه نقل کړې ده، په هغه کې موصوف دانقل کړې ده چې په حنابله کې دابن عقیل رحمه الله قول دی چې دحضور ﷺ په خدمت کې هدیه ثواب مستحب دی.

زه وایم چې زموږ دعلماوو قول دی چې: بنده ته پکاردي چې هغه دخپل عمل ثواب نوروته وبښي،، په دې کې حضور ﷺ هم داخل دی اوحضور ﷺ ددې دټولونه زیات حق دار دی؛ ځکه چې حضور ﷺ موږ ته دګمراهي نه نجات راکړی دی، دحضور ﷺ په خدمت کې ثواب هدیه کول دیوقسم شکریه اودحضور ﷺ داحساناتواعتراف دی اوحضور ﷺ اګرڅې په هر اعتبار

[1] وایضًا طبع ایج ایم سعیدکراچی ،مطلب فی اهداء ثواب القراءة للنبی صلی الله علیه وسلم)۔

سره کامل دی مګرزیادت دکمال قابل وي اوکومونه منونکوچې استدلال کړی دی چې دا تحصیل حاصل دی ځکه چې دامت تمام اعمال په خپله دحضور ﷺ په نامه اعمال کې درج کیږي. ددې جواب داکیدای شي چې د شی په ایصال ثواب کې مانع نه دی، الله تعالی په خپله موږ ته خبرراکړی دی چې الله تعالی په خپل محبوب باندې رحمتونه نازلوي، ددې باوجود موږ ته حکم دی چې موږ دحضور ﷺ له پاره درحمت طلب کولوله پاره ,,**اللهم صلی علی محمد**،، وایو.

**سوال:** زه دقرآن کریم تلاوت اوصدقه خیرات کوم اودحضور ﷺ نه وروسته اکابروعلماء کراموته ثواب وربښم، خو د څوورځو راهیسې یوخیال مې زړه ته راځي چې دهغه له وجې ډیرزیات پریشانه یم، خیال دادی چې موږ هغو هستیانوته ثواب وربښوپه چاچې الله تعالی په خپله درود او سلام وړاندې کوي، یعنې په حضور ﷺ باندې .توبه توبه، معاذالله، موږ دومره لوی یوچې یوڅو ایتونه ولولو اودهغه ثواب حضور ﷺ اوصحابه ﷺ پورې رسوو، داخوپه پوهه کې دنه راتلوواله خبره ده؟

**جواب:** دایصال ثواب یوصورت خودادی چې بل محتاج وګڼل شي اوهغه ته ثواب وروښل شي داصورت خو دحضور ﷺ اونوروداللہ تعالی دمقبولو بندګانوپه حق کې نه پیدا کیږي او په دې کې ستاسودشک همدغه منشاده، دویم صورت دادی چې ددې بزرګانوپه موږ باندې بې شمیره احسانات دي اوداحسان شناسي تقاضا هم داده چې موږ دهغوی په خدمت کې هدیه وړاندې کړو، ظاهره ده چې ددې بزرګانوپه خدمت کې دایصال ثواب اود درجاتو دترقي نه پرته څه هدیه وړاندې کیدای شي؟ نوزموږ ایصال ثواب ددې له وجې نه دی چې: معاذالله!... دا حضرات زموږ دایصال ثواب محتاج دي، بلکې داالله تعالی په موږ باندې احسان دی چې دایصال ثواب په ذریعه زموږ له پاره ددې بزرګانو په خدمت کې هدیه وړاندې کولودروازه یې راته خلاصه کړه، چې دهغه له وجې زموږ داحسان شناسي حق هم اداکیږي اوددې بزرګانوسره زموږ په محبت اومینه کې اضافه هم کیږي اودې سره ددې بزرګانوپه درجاتوکې نوره ترقي هم کیږي اوددې په برکت سره زموږ دګناهونوکفاره هم کیږي اوموږ ته دالله تعالی دعنایت نه بې شمیره برخه هم ملاویږي، ددې مثال داسې وګڼئ چې په یوغریب مزدورباندې دبادشاه بې شمیره احسانات وي اوهغه دخپل محبت دغوښتنې له وجې څه هدیه بادشاه ته وړاندې کول وغواړي اوبادشاه ازراه مراحم خسروانه دهغه هدیه قبوله کړي اودهغه له وجې نورانعامات هم ورکړي، دلته به هیچاته داشک نه وي چې ددې فقیردرویش هدیه وړاندې کول دبادشاه دضرورت له وجې نه دي، نه!بلکې داپه خپله دهغه مسکین ضرورت دی.

## د ایصال ثواب شرعي حیثیت

**سوال:** ایا د اسلام مطابق ایصال ثواب صحیح دی؟

**جواب:** په اسلام کې د ایصال ثواب کولو حکم دی او مړي ته دا د تحفې (ډالۍ) په شکل کې ملاویږي، د یوې خاصې ورځې د تعیین نه پرته څه نیک عمل یا د صدقې او د خیرات په نیت کولی شي.[1]

## په نبي کریم (ﷺ) باندې د درود او سلام طریقه او بل دا چې د ایصال ثواب له پاره فاتحه لوستل

**سوال:** د جمعې په ورځ (۲۶) جولائي (۱۹۹۱ء) د اقرأ په مضمون کې د درود شریف ثمرات او برکاتو باندې دقمر سلطان عابد علي مضمون مې وکوت، مضمون ډېر مدلل دی او ډېر په محنت سره لیکل شوی دی، هغه د قرآن کریم آیت نمبر (۵۵) سورة احزاب نمبر (۳۳) ذکر کړی و، چې د هغه معنا داده: ((الله تعالی او ټولې فرښتې په نبي کریم (ﷺ) باندې صلوة او سلام لیږي او اې مسلمانانو! تاسو هم په هغه باندې صلوة او سلام ولیږئ!))خوپوره مضمون کې د درود شریف ذکر چیرته نه دی کړی چې کوم په موږ باندې فرض شوی دی؛ نو موږ درود شریف وایو؛ نو څنګه به وایو او په کومو الفاظو سره به وایو؟ که چیرې درود شریف دې ته وایي: ((اللهم صلی علی محمد وعلی آل محمد وبارک وسلم علیه ))؛ نو د دې معنا به دا وي چې: اې الله! ته په محمد (ﷺ) او په آل محمد باندې صلوة و سلام ولیږه، ګویا چې موږ د الله تعالی حکم په الله تعالی باندې لګوو، که یو عالم دین جواب وکړي چې دا کوم یو آیت دی؟او ایا نبي کریم (ﷺ) موږ ته څنګه ښودلې دي؟ حالانکې الله تعالی په سورة احزاب په آیت نمبر (۴۲) کې ارشاد فرمایلی چې: ،، هغه ذات دی چې په ټولو مؤمنانو باندې صلوة او سلام لیږي او ټولې فرښتې هم ددې له پاره چې تاسو د تیارو نه رڼا (نور) طرف ته بوځي او هغه په مسلمانانو باندې مهربان دی، دلته زه عرض کوم چې په کومو مسجدونو کې د جمعې د لمانځه نه وروسته سلام ویل کیږي، هلته یو لوی تعداد په سلام کې د شریک کیدو په ځای فورا ودریږي او تښتي او سلام ویونکي پاتې شي او عام ډول په مسجدونو کې سلام، خو بلکل ذکرکیږي نه او عالمان دې ته بدعت وایي او د یوې ډلې وینا ده چې هغوی د درود او د فاتحې قایله هم نه

---

[1] عن عبدالله بن عباس رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :ماالمیت فی القبرالا کالغریق المتغوث ینتظر دعوة تلحقه من اب او ام او اخ اوصدیق ،فاذا لحقته کان احب الیه من الدنیا وما فیها وان الله تعالی لیدخل علی اهل القبورمن دعاء اهل الارض امثال وان هدیة الاحیاء الی الاموات الاستغفارلهم ،رواه البیهقی فی شعب الایمان (مشکوة ص:۲۰۶) (صرح علماؤنا فی باب الحج عن الغیر بان للانسان ان یجعل ثواب عمله لغیره صلاة اوصومًااوصدقة اوغیرها کذافی ا لهدایة (ردالمحتار:۲ص:۲۴۳،مطلب فی القراءة للمیت واهداء ثوابهاله)

دي او که چیرې د دوی نه پوښتنه وشي؛ نو چې قرآن خو پرته د سورة نه شروع کیږي هم نه او هیڅ یو لمونځ داسې نه شته چې په هغه کې سورة فاتحه نه ویل کیږي.اوس که چیرې موږ د مرحومو والدینو او د خپلو خپلوانو د روحونو د ایصال ثواب له پاره درود او فاتحه وایو؛ نو دا د دوی په نزد بدعت دی او که چیرې موږ په فاتحه کې شریکیدونکو باندې په دې باني څه وخورو؛نوهغه هم ددوی په نزدبدعت دي؛ نو ایا موږ دوی وړي رخصت کړو؟ چې وروړ به خپل کورته ځي او روټې به خوري دا مو ومنله چې بدعت دي، یعنې د رسول الله(ﷺ)نه وروسته پیداواردی، خومیلمستیا خو د اسلام د اخلاقو یو اهم جز دی، ددې نه پرته موږ ټول مسلمانان په دې فاتحه کې شریک شو؛ نو دا فاتحه به کیږي او په نبی کریم ﷺ باندې درود او سلام به هم د الله تعالی د حکم مطابق وي، دا بدعت ضروري دی، خوګناه نه ده بلکې نیکي ده.

**جواب:** الله تعالی چې کوم حکم فرمایلی دی چې په نبي کریم ﷺباندې درود ولیږئ ددې تفسیر په خپله نبي کریم صلی الله علیه وسم فرمایلی دی چې داسې وایئ : اللهم صل علی محمد وعلی آل محمد ... الخ له دې وجې دا درود د الله تعالی د حکم تعمیل دی.[1]

په مسجدونو کې چې کوم په لوړ سپیکرو باندې په زوره زوره صلوة او سلام لوستل کیږي ددې حکم نه نبي کریم ﷺ کړی دی او نه صحابه کرامو (رضي الله عنهم) داسې کړي دي او نه امام ابوحنیفه (رحمه الله) ددې تعلیم ورکړی دی، دې ته دین ګڼل غلط کاردی، فاتحه خو هر مسلمان په لمونځ کې وایي او د دې هره ورځ تلاوت هم کوي له دې وجې هیڅ یو مسلمان نه د فاتحې منکر دی او نه د درود شریف، خوکه د یو ځان نه جوړشوی شي نوم چا فاتحه کیښوده او درود یې ورته کیښود؛ نو ددې هیڅ یو مسلمان هم نه شي قائل کیدای.

کوم خلک چې د قرآن خواني له پاره جمع شي د دوی دعوت کولوته داحنافو فقهاوو مکروه او بدعت ویلي دي[2] که چیرې ستا مسلک د مسلک حنفي نه پرته څه بل مسلک دی؛ نو بیا بحث کول بې فائدې دي، خوکه چیرې ته هم په فقه حنفي باندې عمل کوې؛ نو د فقه حنفي حواله ورکول پکار دي دخپل ځان نه یوه خبره جوړول او دې ته په دین کې داخلول نه ستا له پاره جائز دي او نه زما له پاره.

**یادونه**:په دې مسئلوباندې زما د کتاب ''**اختلاف امت اوصراط مستقیم**، مطالعه وکړئ، والسلام

---

[1] عن کعب بن عجرة قال :قال رجل یارسول الله ! اماالسلام علیک فقد علمناه فکیف الصلاة علیک؟قال:قل :اللهم صل علی محمد وعلی آل محمد کما صلیت علی ابراهیم وعلی آل ابراهیم انک حمید مجید......الخ (روح المعانی ج:۲۲ص:۷۷،مشکوة ص:۸۶باب الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم وفضلها ،الفصل الاول)

[2] وفی البزازیة :ویکره اتخاذ الطعام فی الیوم الاول والثالث وبعد الاسبوع ونقل الطعام الی القبر فی المواسم، واتخاذ الدعوة لقراءة القرآن وجمع الصلحاء والقراء للختم او لقراءة سورة الانعام او الاخلاص. والحاصل ان اتخاذ الطعام عندقراءة القرآن لاجل الاکل یکره(شامی ج:۲ص:۲۴۰ مطلب فی کراهة الضیافة من اهل المیت)

## د ايصال ثواب مرحوم ته پته لګيږي او هغه ته د تحفې په ډول ملاويږي

**سوال:** دايصال ثواب له پاره فاتحه ولوستل شي ياقرآن خواني وکړل شي ياپه صدقه جاريه کې پيسې ورکړل شي؛ نوآيا دمرحوم روح ته ددې پته لګيږي؟

**جواب:** هو! پته لګيږي،دايصال ثواب له پاره چې تاسوکومه صدقه خيرات کوئ يالمونځ روژه، دعا، تسبيح،دتلاوت ثواب وربښئ؛ نوددې ثواب مړي ته ستادتحفې په حيثيت سره پيش کيږي، په دې باندې داحاديثوليکل به دطوالت سبب جوړشي.[1]

## مسلمان که هرڅومره ګناهګاروي، هغه ته د خيرات نفع رسيږي

**سوال:** دځينې عالمانونه مې اوريدلي دي چې ديوکس دوفات نه پس که هغه انسان په خپله نيک تيرشوی نه وي اونيک عمله نه وي،دقرآن شريف ختم،يادهغه داولاد دعا،څه فائده نه شي ورسولی؟ داترکومې پورې صحيح ده؟

**جواب:** مسلمان که هرڅومره ګناهګاروي هغه ته نفع رسيږي[2] کافرته نه رسيږي[3] تاسوچې څه اوريدلي دي (په دې شرط چې تاسوته صحيح يادوي)ددې مطلب به داوی چې بنده ته دنيکي اهتمام په خپله کول پکاردي،کوم کس چې ټول عمرنه لمونځ اونه روژه ونيوله،نه دحج

---

۱ ] وفى البحر من صام اوصلى اوتصدق وجعل ثوابه لغيره مِن الاموات والاحياء جازويصل ثوابها اليهم عند اهل السنة والجماعة كذافى البدائع(شامى ،مطلب فى القراء ة للميت ج:۲ص:۲۴۳)۰ايضًا:عن ابن عباس رضى الله عنهما قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :ماالميت فى قبره الا شبه الغريق المتغوث ينتظر دعوة تلحقه من اب او ام او ولد اوصديق ثقة، فاذا لحقته كانت احب اليه من الدنيا ومافيها ،وان الله ليدخل على اهل القبور من دعاء اهل الارض امثال الجبال وان هدية الاحياء الى الاموات الاستغفارلهم ......واخرج عن عمروبن جريرقال:اذا دعاء العبد لاخيه الميت اتاه بها الى قبره ملک فقال :ياصاحب القبر الغريب ! هذه هدية من اخ عليک شفيق (شرح الصدورص:۳۰۵،باب ماينفع الميت فى قبره)۰ايضا:وعن انس رضى الله عنه ان سعدًا اتى النبى صلى الله عليه وسلم فقال:يارسول الله صلى الله عليه وسلم! ان امى توفيت ،ولم توص فهل ينفعها ان اتصدق عنها؟ قال: نعم، وعليك بالماء واخرج الطبرانى فى البزار بسندحسن عن انس رضى الله عنه قال: جاء رجل الى نبى (ص) فقال: ان ابى قدمات ولم يحج حجة الاسلام فقال:ارايت لوكان على ابيک دين اكنت تقضيه عنه ؟ قال:نعم ! قال:فانه دين الله فاقضه عنه (شرح الصدور ص:۳۰۸،۳۰۷)۰دتفصيل له پاره وګورئ شرح الصدور ص:۳۰۱نه تر۳۱۵پورې ،طبع دارالكتب العلمية بيروت)_

۲ ]ايضًا)_

۳ ]الثالث المراد بالانسان الكافر فله ماسعى ۰فقط ......فلا يبقى له فى الآخرة شىء ......الخ (طحطاوى على مراقى الفلاح ص:۳۴۱)۰ايضًا:وان ليس للانسان الاماسعى ......الثالث :ان المراد بالانسان هنا الكافر، فاما المومن فله ماسعى ،وماسعى له،قاله الربيع بن انس (شرح الصدور ص:۳۱۰طبع دارالكتب العلمية)

زکات یې څه پرواه کوه، نه ورته د قرآن پاک د تلاوت توفیق ملاو شو، بلکې د کلمې د صحیح زده کولو ضرورت نه ګڼي، د داسې کس په وفات باندې د خلکو قرآن خواني، دریمې، څلوېښتې چې کوم رسم دی، د دې نه به هغه ته څه فایده ورسیږي؟ خلک د فرائضو او واجباتو داسې اهتمام نه کوي څنګه چې د دې رسمونو اهتمام کول ضروري ګڼي.

## د ورک شوي کس له پاره ایصال ثواب جائز دی

**سوال:** زما خاوند د دولسو کالو راهیسې ورک دی، دورکیدو په وخت کې د هغه عمر کم وبیش دوه څلوېښت کاله و، مونږ ته هیڅ پته نشته، چې هغه ژوندی دی یا هغه وفات شوی دی؟ مونږ خلکو د فالنامو او نورو ډیرو طریقو سره معلومات حاصل کړل؛ نو هم دغه پته لګیږي چې هغه ژوندی دی، ستاسو نه پوښتنه دا کوم چې که هغهٔ وفات شوی وي؛ نو د هغه د روح ایصال ثواب له پاره قرآن خواني وغیره کیدای شي او که نه؟ څکه چې مونږ ټول ډیر زیات پریشانه یو، چې که د هغه انتقال شوی وي نو د هغه له پاره مونږ خلکو تر اوسه پورې بالکل څه کړي نه دي، تاسو راته ووایئ چې د دې مسئلې په شریعت کې څه حل دی. ستاسو به ډیره مهرباني وي.

**جواب:** ترڅو پورې چې د خاصو شرائطو سره عدالت فیصله ونکړي، تر هغه وخت پورې د هغه د وفات حکم خوجاري کیدای نه شي[1] البته په ایصال ثواب کې څه نقصان نه شته. ایصال ثواب خو د ژوندي له پاره هم کیدای شي[2] او دا د فالنامو په ذریعه پته لګول غلط دي او په دې باندې یقین کول هم جائز نه دي.[3]

## د مرحومینو له پاره د ایصال ثواب طریقه

**سوال:** زمونږ کوم مشران چې وفات شوي دي، د هغوی روح ته د ثواب بښلو له پاره خوراک وغیره ویشل څنګه دي؟ او د ثواب بښلو طریقه څه ده؟ مهرباني وکړئ او په دې مسئله باندې پوره رڼا واچوئ!

**جواب:** مرحومینو ته د ایصال ثواب په مسئله کې څه امور ستاسو په خدمت کې پیش کوم، تاسو به دې باندې ځان ښه پوه کړئ:

۱: د مرحومینو له پاره، څوک چې د دې دنیا نه رخصت شوي دي د ژوندیو بس هم دغه یوه تحفه ده چې هغوی ته دې ثواب وروبښي، په حدیث کې دي چې یو کس د حضور ﷺ په خدمت کې

---

۱ ] تفصیل د پاره او ګورئ: حیله ناجزه ص:۵۹، د مفقود احکام۔

۲ ] ایضاً تیره شوی حاشیه (وفی البحر من صام اوصلی اوتصدق وجعل ثوابه لغیره من الاموات والاحیاء جاز...الخ) او ګورئ!۔

۳ ] عن حفصة رضی الله عنها قالت: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: من اتی عرافاً فساله عن شیء لم یقبل له صلوة اربعین لیلة. رواه مسلم (مشکوة ص:۳۹۳ باب الکهانة، الفصل الاول)۔

حاضرشواو عرض یې وکړ چې یارسول الله ﷺ ازما د مورپلار د وفات نه وروسته هم د هغوی سره دحسن سلوک څه صورت شته؟ کوم چې زه اختیار کړم، حضور ﷺ ورته وفرمایل:هو اد هغوی له پاره دعا او استغفار کول، د هغوی نه وروسته د هغوی وصیت نافذول، او د هغوی متعلقینو سره صله رحمي کول، او د هغوی دوستانو سره په عزت ملاویدل.(ابوداود،ابن ماجه،مشکوٰة ص:۴۲۰)[۱]

په یو بل حدیث کې دي دیوکس دوالدین مړه شول اودی په ژوندباندې د هغوی نافرمانه و، مګر د هغوی د مرګ نه وروسته د هغوی له پاره دعا، استغفار کوي، تردې پورې چې الله تعالی دی دخپل مورپلار فرمانبرداره ولیکي.(بیهقی شعب الایمان،مشکوٰة ص:۴۲۱)[۲]

په یو بل حدیث کې دی چې:یوکس عرض وکړ یارسول الله ﷺ ازما مور وفات شوې ده، که زه د هغې د طرف نه صدقه وکړم؛ نو د هغې له پاره به مفیده وي؟حضور ﷺ ورته وفرمایل ضرور! هغه عرض وکړچې:زما سره باغ دی زه تاسوګواه جوړوم چې ماخپل هغه باغ د مور د طرف نه صدقه کړ.(ترمذی ص:۱۴۵)[۳]

۲: دایصال ثواب حقیقت دادی چې کوم نیک عمل تاسو وکړئ د هغه دکولو نه مخکې نیت وکړئ چې د دې کوم ثواب حاصل شي هغه دې الله تعالی مړي ته ورکړي، همدغه شان دیو نیک عمل د کیدو نه وروسته هم دا نیت کیدای شي او که په ژبې سره دعا وکړل شي؛ نو بنه ده.

غرض داچې د نیک عمل کوم ثواب تاسو ته ملاویدونکی و، تاسو هغه ثواب مړي ته هبه کړئ، دا د ایصال ثواب حقیقت دی.

۳: د امام شافعي رحمه الله په نزد باندې مړي ته یوازې دعا او د صدقاتو ثواب رسیږي، د قرآن پاک د تلاوت او نورو بدني عبادتونو ثواب نه وررسیږي، خو د جمهورو مذهب دادی چې د هر نفلي عبادت ثواب مړي ته ببښل کیدای شي، مثلاً نفلي لمونځ، روژه، صدقه، حج، قرباني، دعا او استغفار، ذکر، تسبیح، درود شریف تلاوت د قرآن پاک وغیره. حافظ سیوطي رحمه الله لیکلي دي چې د شافعي مذهب تحقیق کونکوهم دا مسلک اختیار کړی دی،[۴] د دې وجې نه کوشش کول

---

۱] عن ابی اسید الساعدی رضی الله عنه قال:بینانحن عندرسول الله صلی الله علیه وسلم اذ جاءه رجل من بنی سلمة فقال:یارسول الله (ص)! هل بقی من بر ابوی شیء ابرهما به بعدموتهما ؟قال نعم! الصلاة علیهما ،والاستغفار لهما ،وانفاذ عهدهما من بعدهما وصلة الرحم التی لاتوصل الابهما ،واکرام صدیقهما (مشکوة ص:۴۲۰باب البروالصلة)_

۲] عن انس قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :ان العبدلیموت والداه اواحدهما وانه لهما لعاق فلایزال یدعو لهما ویستغفرلهما حتی یکتبه الله بارًا (مشکوة ص: ۴۲۱باب البروالصلة ،طبع قدیمی)_

۳] ان سعد بن عبادة توفیت امه وهو عنها غائب فقال:یارسول الله ! ان امی توفیت واناغائب عنها ،اینفعها شیء ان تصدق به عنها؟ قال:نعم !قال:فانی اشهدک ان حائطی المخراف صدقة علیها (صحیح البخاری ج:۱ص:۳۸۶،باب اذا قال ارضی اوبستانی صدقة عن امی فهوجائز،ایضًا :شرح الصدور ص:۳۰۷)_

۴ ]صرح علمائنا فی باب الحج عن الغیر بان للانسان ان یجعل ثواب عمله لغیره صلاة اوصومًا اوصدقة اوغیرهاکذافی الهدایة...... هومذهب اهل السنة والجماعة لکن استثنی ....[بقیه جاشیه په راروانه صفحه....

پکاردي چې د هرقسمه عبادت ثواب دې مړوته وبښل شي، مثلاً: دقرباني په ورځو کې که تاسوسره ګنجائش وي؛ نو دوفات شويو مورپلار يانورو مشرانو له طرف نه قرباني کوئ. د ډيرو بزرګانو دامعمول دی چې هغوی دحضور ﷺ دطرف نه قرباني کوي، همدغه شان دنفلي لمونځ، اوروژې ثواب وربښل پکاردي، که ګنجائش وي: نو دمورپلار اونورو بزرګانو له طرف نه دې نفلي حج اوعمره وکړل شي، مور خلک څوورځې په مړي وژاړو او ډير زريې هيرکړو، دا ډير د بې مروتې خبره ده، په يوحديث کې دي چې په قبرکې دمړي مثال داسې دی، لکه چې يو کس په درياب کې ډوبيږي، هغه څلورو واړو طرفونوته ګوري، چې اياڅوک دهغه مددته راروان دی؟همدا په قبرکې مړی هم د ژونديو لهطرف نه ايصال ثواب ته په انتظارکې وي اوکله چې هغه ته دصدقې، خيرات وغيره ثواب وررسيږ نوهغه داسې خوشحاليږي، ګوياهغه ته دټولې دنيادولت ورکړل شو.[1]

۴: په صدقاتوکې دټولونه افضله صدقه چې دهغې ثواب مړي ته وبښل شي صدقه جاريه ده، مثلاً: دمړي دايصال ثواب له پاره دخه ضرورت په ځای کې يې کوهی وکنستلو، چېرته يې جومات جوړکړ، چېرته يې په ديني مدرسه کې دحديثو، فقې کتابونه وقف کړل، دقرآن کريم نسخې يې واخيستلې اووقف يې کړې، ترڅو پورې چېددې شيانو څخه استفاده کيږي، مړي ته به يې پوره ثواب رسيږي، حديث کې دي چې: حضرت سعد رضی الله عنه دحضور ﷺ په خدمت کې

---

...بقيه د تير مخ].. مالک والشافعي العبادات البدنية المحضة كالصلاة والتلاوة فلايصل ثوابها الى الميت عندهما......الخ (شامي ج:٢ص:٢٤٣،وايضًا فى فتح القديرج:٢ ص:٣٠٨) اختلف فى وصول ثواب القراءة للميت ،فجمهور السلف والائمة الثلاثة على الوصول ،وخالف فى ذلک امامنا الشافعي مستدلاً بقوله تعالى :وان ليس للانسان الاماسعى ،واجاب الاولون عن الاية باوجه ،احدها:انها منسوخة بقوله تعالى والذين امنوا واتبعتهم ذريتهم الآية ادخل الابناء الجنة بصلاح الآباء...... الثالث ان المراد بالانسان هنا الكافر ،فاما المومن فله ماسعى وما سعى له قاله الربيع بن انس ...... واستدلواعلى الوصول بالقياس على تقدم من الدعاء والصدقة والصوم والحج والعتق فانه لافرق فى نقل الثواب بين ان يكون عن حج اوصدقة او وقف، او دعاء اوقراءة وبالاحاديث الاتى ذكرها وهى وان كانت ضعيفة فمجموعها يدل على ان لذالک اصلاً وبان المسلمين مازالوا فى كل عصر يجتمعون ويقرءون لموتاهم من غير نكير فكان ذلك اجماعاً قال القرطبى رحمه الله ...... واما القراءة على القبر، فجزم بمشروعيتها اصحابنا وغيرهم ......وقال النووى رحمه الله فى شرح المهذب : يستحب لزائر القبور ان يقرأ ماتيسر من ا لقرآن ويدعوا لهم عقبها نص عليه الشافعي واتفق عليه الاصحاب وزاد فى موضع آخر:وان ختمواالقرآن على القبركان افضل (شرح الصدور ص: ٣١٠،٣١١ باب فى قراءة القرآن للميت اوعلى القبر)۔

[1] واخرج البيهقى فى شعب الايمان والديلمى ،عن ابن عباس رضى الله عنهما قال :قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :ماالميت فى قبره الاشبه الغريق المتغوث ينتظر دعوة تلحقه من اب اوام او ولد اوصديق ثقة ،فاذا لحقته كانت احب اليه من الدنيا وما فيها وان الله ليدخل على اهل القبور من دعاء اهل الارض امثال الجبال (شرح الصدور للسيوطى رحمه الله ص:٣٠٥ باب: ماينفع الميت فى قبره ،طبع دارالكتب العلمية بيروت).

حاضرشو او عرض يې وکړ: يارسول الله ﷺ! زما مور وفات شوې ده، هغې د وفات نه مخکې وصيت ونکړې شو، زما خيال دی که هغې ته موقعه ملاوشوې وی: نو هغې به ضرور وصيت کړی و، اياکه زه د هغې له طرف نه صدقه وکړم نو هغې ته به ورسيږي؟[۱] حضور ﷺ ورته وفرمايل: ضرور، عرض يې وکړ: څه صدقه کړم؟ ويې فرمايل: اوبه بهترې دي، حضرت سعد رضي الله عنه يو کوهی وو ايست او ويې ويل چې: دا د سعد د مور له پاره دی. (صحيح بخاری)[۲]

۵: د ايصال ثواب په سلسله کې دا خبره هم يادساتل پکار دي چې مړي ته به هم د هغه شي ثواب رسيږي چې خالص د الله تعالى له پاره ورکړل شوي وي، په هغو کې مقصد نمود او نمائش نه وي. نه د هغو اجرت او معاوضه اخيستل شوې وي، د دلته زموږ په ځايونو کې ډير خلک ايصال ثواب کوي مګر په هغو کې د نمود او نمائش ملاوټ وکړي.

مثلاً: د مرحومينو د ايصال ثواب له پاره ديګونه پاخه کړي، که هغوی ته وويل شي چې: دا څو مره خرچه چې ته په دې باندې کوې، همدومره غله يا پيسې يتيم مسکين ته ورکړه! نو په دې باندې د هغوی زړه نه راضي کيږي، ځکه چې په پټه يو مسکين يتيم ته په ورکولو کې هغه نمائش نه کيږي کوم چې په ديګونو پخولو کې وي، د دې عرض کولو مقصد دانه دی چې د خوراک ايصال ثواب نه رسيږي، بلکې مقصد دا دی چې کوم حضرت د ايصال ثوآب له پاره خوراک وېشي، هغوی دې د نمود او نمائش نه احتياط وکړي. ګنې هغوی ته به د ايصال ثواب مقصد حاصل نه شي.

په دې سلسله کې يوه دا خبره هم يادساتل پکار دي چې ثواب به هم د هغه خوراک ملاويږي کوم چې چا غريب مسکين خوړلی وي، د دلته زموږ په ځايونو کې داوي چې د مړي د ايصال ثوب له پاره کوم خوراک پوخ کړل شي، هغه د برآدرۍ خلک وخوري او روان شي، فقيرانو او مسکينانو حصه په هغه کې ډيره کمه وي، مالدارانو خلکو ته د ايصال ثواب والا خوراک خوړل پکار نه دي، ځينې عالمانو ليکلي دي چې: کوم کس د داسې خوراک په انتظار کې وي، د هغهٔ زړه تورشي، الغرض چې کوم خوراک يې په خپله په کورکې وخوړ يا دوستانو رشته دارانو وخوړ، د هغې سره ايصال ثوآب نه کيږي، مړو ته به د هغه خوراک ثواب رسيږي کوم چې فقيرانو او مسکينانو

---

[۱] عن عائشة رضی الله عنها ان رجلاً (وفی رواية سعدبن عبادة) قال للنبی صلی الله علسه وسلم: ان امی افتلتت نفسها واراها لوتکلمت تصدقت افا تصدق عنها؟ قال: نعم تصدق عنها (صحيح البخاری ج:۱ ص:۱۶۹، ۳۸۶، باب مايستحب لمن توفی فجاءة ان يتصدقوا عنه) (وفی رواية ابن عباس رضی الله عنهما) ان سعد بن عبادة رضی الله عنه اخابنی ساعدة توفيت امه وهوعنها غائب فاتی النبی صلی الله عليه وسلم فقال: يارسول الله! ان امی توفيت وانا غائب عنها فهل ينفعها شیء ان تصدقت به عنها؟ قال: نعم! (صحيح البخاری ج:۱ ص۳۸۷، مشکوٰة ص:۱۶۹)۔

[۲] واخرج احمد والاربعة، عن سعدبن عبادة قال: يارسول الله! ان امی ماتت فای الصدقة افضل؟ قال: الماء: فحفر بئرًا وقال هذه لام سعد_ (شرح الصدور للسيوطی رحمه الله ص:۳۰۷، باب ماينفع الميت فی قبره)

خورلئ وي او په څه باندې چې خيرات کونکي څه قسمه معاوضه نه وي اخيستې او نه ورڅخه مطلوب نمود او نمائش وي.

## آيا د ثواب بښلو نه وروسته هغه سره څه پاتې کيږي؟

**سوال:** زه د قرآن کريم ختم کوم او ثواب يې حضور ﷺ او د خپل خاندان مړو او مسلمان امت ته وربښم، نو آيا په دې ثواب کې زما برخه نشته؟ يو صاحب فرمايي چې کوم څه تا ولوستل او نورو ته دې ورکړل او س ستاله پاره په کې څه دي؟

**جواب:** د ضابطې معامله هما غسې کيدل پکار دي څنګه چې دا صاحب فرمايي، خو د الله تعالی سره يوازې د ضابطې معامله نه کيږي، بلکې د فضل او کرم او انعام او احسان معامله کيږي، له دې وجې ثواب بښونکي ته هم پوره پوره اجراو ثواب ملاويږي، بلکې د هغه نه هم زيات.[1]

## ايصال ثواب ثابت دی او بښونکي ته هم ثواب ملاويږي

**سوال:** د تلاوت کلام پاک نه وروسته ثواب د حضور ﷺ نه واخله تر ټولو مسلمانانو سړيو او ښځوته بښم، هره ورځ او د هر تلاوت نه وروسته هم د غه شان ثواب بښل د خپل ذخيره آخرت او سبب رحمت خداوندي د حاصلولو له پاره مناسب دي او که نه؟ ځکه چې ما اوريدلي دي چې د غه شان خپله لمن خالي پاتې کيږي او چاته چې يې ثواب وروبانښه هغه ته هم ورسيږي.

**جواب:** اول زه هم د دې قائل وم، چې د ايصال ثواب کولو نه وروسته بښونکي ته هيڅ نه ملاويږي، خو د وه حديثونه او يو فقهي عبارت چادوست راوليږه چې د هغه نه معلومه شوه چې د ايصال ثواب سره اجر ملاويږي او هغه دا دی: ,,**من مر على المقابر فقرا فيها احدى عشرة مرة قل هوالله احد ثم وهب اجره للاموات اعطى من اجر بعدد الاموت**،، (الرافعي، عن علی، کنز العمال ج:۱۵ ص:۶۵۵ حديث:٤٢۵۹۵، اتحاف ج:۱۰ ص:۳۷۱)

**ترجمه:** کوم کس چې په قبرستان تيرشو او په قبرستان کې يې يولس ځله قل هو الله شريف ولوسته او د هغې ثواب يې مړوته وبانښه؛ نو هغه ته به د مړو د تعداد برابر ثواب ورکړل شي.،،

,,**من حج عن ابيه او امه فقد قضى عنه حجته وكان له فضل عشر حجج**.،،

(دارقطنی، عن جابر، فيض القدير ج:۶ ص:۱۱۶)

---

[1] الافضل لمن يتصدق نفلا ان ينوى لجميع المومنين والمومنات لانها تصل اليهم ولاينقص من اجره شيء .....الخ (شامی ج:۲ ص:۲٤۳) ، ايضًا :واخرج ايضا عن ابن عمر رضی الله عنهما قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: اذا تصدق احدكم بصدقة تطوعًا فليجعلها عن ابويه ، فيكون لها اجرها ولاينتقص من اجره شيئًا ، ايضًا :واخر فى الاوسط عن ابی هريرة رضی الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :من حج عن ميت فللذی حج عنه مثل اجره (شرح الصدور ض:۳۰۸،۳۰۹)_

**ترجمه:** کوم کس چې د خپل پلار یا مور له طرف نه حج وکړ، هغه د مرحوم حج اداکړ، هغه ته به د لسو حجو ثواب ورکول کیږي.

(دا دواړه حدیثونه ضعیف دي او په دویم حدیث کې یو راوی ډیر زیات ضعیف دی)

**,,وقدمنا فی الزکوة عن التاترخانیة عن المحیط الافضل لمن یتصدق نفلا ان ینوی لجمیع المومنین والمومنات لانها تصل الیهم ولاینقص من اجره شیئا..,,** (شامي ج:۲ ص:۵۹۵)

**ترجمه:** اومونږ په کتاب الزکوة کې د (تاتارخانیه) په حوالې سره د محیط نه نقل کړي دي چې کوم کس نفلي صدقه وکړي د هغه له پاره افضل دادي چې د ټولو مومنانو سړو او ښځو د طرف نه د صدقې نیت وکړي، دا صدقه به ټولو ته ورسیږي او د هغه په اجر کې به هیڅ کمی نه کیږي.,,

## د فرض لمونځ ثواب چاته ورکول

**سوال:** زما والد وفات شو د ډیر مخکې نه زه تقریباً دوه دونیم کالو نه څلور وخته لمونځگذار یم خو د سحر لمونځ زه کله کله کوم اوس یوې نیمې میاشتې نه د سحر لمونځ د جماعت سره کوم، د الله کرم دی، مسئله دا ده چې کله زه مور د لمونځ د پاره پاڅوم نو هغه پاڅي لیکن بیا خوب ورځي چې د هغې په وجه کله د هغې لمونځ قضاء کیږي او زه د جماعت سره لمونځ کوم، کله چې کور ته راشم نو معلومه شي چې مور مې ویده ده، داسې کله کله کیږي، آیا زه خپل ثواب مور ته او باقي نور کور والو ته ورکولی شم؟ او ددې لمونځونو د نه کولو گناه د خپل ځان د پاسه اخیستلی شم؟ که چیرې داسې ممکن وي نو آیا کیدای شی؟ باقي زمونږه په کور کې ټول څلور وخته لمونځ گذار دي.

**جواب:** د فرض لمونځ ثواب چاته نه شئ ورکولی[1] او نه د چا گناه په خپله ذمه اخستلی شئ[2]

## د نفلي اعمالو ثوابونه

**سوال:** دا معلومه ده چې د الله تعالي خزانې ډکې دي، په هغو کې هیڅ کمی نه راځي او جنت د ټولو جنتیانو د داخلیدو نه وروسته بیا هم خالي پاتې کیږي، او بل دا چې یو بنده په یو غم او مصیبت باندې (انا لله وانا الیه راجعون) وایي کوم ثواب چې هغه ته په اول ځل ویلو ورکول کیږي، که چیرې هغه زر ځله دا غم یاد کړي او داکلمات ووایي؛ نو دغه اجر به ده ته په هر ځل ملاویږي.

حضرت جي (رحمه الله علیه) به فرمایل چې د انسان په عملونو باندې بیا بیا انعامونه او مزید انعامونه په جنت کې ملاویږي که چیرې یو عمل یې د الله په نزد مقبول شو نو په دې به همیشه

---

[1] (وعلی القول الاول) لایصح اهداء الواجبات لان العامل ینوی القربة بها عن نفسه (ردالمحتار ج:۲ ص:۲۴۳)

[2] ولاتزر وازرة وزر اخری (الانعام ۱۶۴)

د پاره جنتونه او نعمتونه ملاویږي او بل دا چې زمونږه په مشائخو کې غالباً د حضرت تهانوي (رحمه الله) ارشاد و چې. که چیرې یو سړی د یو قرآن پاک ثواب د پوره امت افرادو ته وبښي؛ نو هر هر کس ته به د پوره پوره قرآن ثواب ملاویږي. لهذا یو سړی که چیرې په الله تعالي باندې نیک ګمان وکړي، د بالغ کیدو نه وروسته مستحب عملونه تلاوت صدقې چې ده کړې وي ددې ټولو مجموعه ثواب ټولو پیغمبرانو، ټولو صدیقینو، اولیاوو او ټولو مسلمانانو سړیو او ښځو ته او مؤمنانو سړیو او ښځو ته رسوي؛ نو روزانه دې ددې ټولو مجموعي اجر او ثواب بیا بیا ددوی روحونو ته رسوي؛ نو آیا دا ممکن دي او څه بعیده خبره خو نه ده؟

**جواب:** د نفلي عملونو ثواب ښنلی شي، په دې کې هیڅ اشکال نشته.[1]

## ټول امت ته دایصال ثواب طریقه

**سوال:** د حضور ﷺ له پاره دایصال ثواب الفاظ تاسولیکلي دي، نوروحضراتوته دایصال ثواب کولومناسب الفاظ ولیکئ!

**جواب:** یاالله! ددې ثواب زماحضرت محمد ﷺ ته، اودهغوی په طفیل سره زماموراوپلارته، استاذانو او بزرګانوته ،خپلو خپلوانوته، عزیزانو او اقرباوو ته، یارانو دوستانو ته، زما ټولو محسنینو او متعلقینو ته اودحضور ﷺ تمام امت ته عطاکړه.[2]

## دایصال ثواب طریقه ، او داچې درود شریف په ملاسته ویل هم جائزدي

**سوال:** زما روزانه معمول کې دقرآن پاک په تلاوت کې سورت یاسین هم شامل دی .که زه روزانه سورت یاسین ولولم او حضور ﷺ ته یې وروبښم نوداکار ځنګه دی؟ ځکه چې ماته دا خبره معلومه نه ده چې څه څه عملونه ایصال ثواب کیدای شي؟ نورداچې که درودشریف ولوستل شي ؛نوهماغه شان پریښودل شي اوکه حضور ﷺ ته یې ښنل ضروري دي؟اوپه ملاسته درودشریف لوستلی شواوکه نه؟ دایصال ثواب په باره کې یوسوال دادی چې نفلي لمونځ، روژه،حج وغیره ځنګه ښنل کیږي؟ ما دچانه اوریدلي دي چې نیت یې وکړاونفلي لمونځ یې اداکړ اوروسته یې وویل چې ددې نفلوثواب دې فلانې ته ورسیږي،خو که طریقه راته تاسووښایئ نوزۀ به ستاسو ډیر زیات شکرګزاریم.

---

[1] وفي البحر :من صام اوصلى اوتصدق وجعل ثوابه لغيره من الاموات والاحياء جاز ويصل ثوابها اليهم عند اهل السنة والجماعة كذافي البدائع (ردالمحتار ج:۲ص:۲۴۳،مطلب فى القراءة للميت واهداء ثوابها له)

[2] ولهذا اختاروا فى الدعاء اللهم اوصل مثل ثواب ماقرأته الى فلان ......الخ (شامي ج:۲ص:۲۴۳) ايضا وقوله علمائنا له ان يجعل ثواب عمله لغيره يدخل فيه النبي صلى الله عليه وسلم فانه احق بذلك ......الخ (شامي ج:۲ص:۲۴۴)۔

**جواب:** دلمونځ اونفلي عباداتونو ایصال ثواب جائزدی[۱] اوحضورﷺ ته هم ثواب بښل کیدای شي. دایصال ثواب طریقه تاسوصحیح لیکلې ده، یعنې دنیک عمل نه وروسته دې دعاوکړل شي چې یاالله! زماداعمل قبول کړه اوددې ثواب فلاني ته ورکړه[۲]درودشریف په ادب اواحترام سره لوستل پکاردي که څوک ملاست وي اودهغه وخت نه فائده اخلي اوپه ملاسته درودشریف لولي نوداهم جائزدي.[۳]

## ژوندیو ته هم ایصال ثواب کول جائزدي

**سوال:** ایاڅنګه چې مړي ته قرآن مجیدلوستلوسره ثواب بښل کیږي، همدغه شان که یوکس خپلو ژوندیوموریلارته دقرآن پاک دختم ثواب وبښي؛ نوهغوی ته به ددې ثواب ورکول کیږي؟اوآیاهغه داسې کولی شي؟

**جواب:** ژوندیوخلکوته ایصال ثواب کیدای شي،مړوته دایصال ثواب اهتمام ددې وجې نه کیږي چې هغوی په خپله دعمل کولونه قاصردي،ددې مثال داسې دی چې ته برسرروزګارته څه هدیه ورولیږې، هغه ته هم رسیږي،مګرزیاتر هغوخلکوته دورکولواهتمام کیږی چې په خپله دګټې کولو نه معذوره وي.[۴]

## د ښځولو نه مخکې ایصال ثواب صحیح دی

**سوال:** یوکس چې زمونږ رشته دار و،په مدینه شریفه کې وفات شو،دهغه لاش حکومت په هسپتال کې ستهورکړ،چې کله ددې کس وارث راشي نووربه یې کړو،ددې کس وارث دلته په سعودي عرب کې هیڅوک نشته،دکفیل په ذریعه که لاش پاکستان ته اولیږي نوهم پکې تقریبایوه میاشت به ولګیږي،دهغه دمرګ نه تقریبا پنځه ورځې پس مونږ خلکودهغه فاتحه ولوستله، مګر زمونږ دجومات یوامام چې حافظ قرآن هم دی هغه وویل چې فاتحه لوستل پکارنه دي،څکه چې ترڅوپورې جنازه شوې نه وي فاتحه لوستل پکارنه دي، په دې باره کې موږه کړئ چې ایا داصحیح دي؟

**جواب:** ایصال ثواب چې له مرګ نه وورسته کله هم وکړل شي صحیح دی، ددې مړیوپاکستان

---

۱ [صرح علمائنا فی باب الحج عن الغیر بان للانسان ان یجعل ثواب عمله لغیره صلاة اوصومًا اوصدقة اوغیرها کذافی الهدایة (شامی ج:۲ص:۲۴۳)۔

۲ [ایضًا)۔

۳ [ ولاباس بالتسبیح والتهلیل مضطجعًا وکذا بالصلاة علی النبی علیه الصلاة والسلام (قاضی خان علی هامش الهندیة ج:۱ص:۱۶۲،مسائل کیفیة القراءة ومایکره فیها ویستحب ،طبع رشیدیه)۔

٤ [ تیره شوی حاشیه (ولی البحر من صام اوصلی اوتصدق وجعل ثوابه لغیره من الاموات والاحیاء جاز ویصل ثوابها الیهم عند اهل السنة والجماعة....الخ) اوګوری)۔

ته راليږلو تکليف ولې کيږي؟ دغسل، کفن او جنازې دلمونځ نه وروسته يې همله ته څنبول پکار دي[1]. ستاسو حافظ صاحب چې څه ويلي دي چې ترڅو پورې مړی دفن شوی نه وي، د هغه له پاره دې ايصال ثواب نه کيږي، غلطه ده.[2]

## د ايصال ثواب له پاره د څه خاص شي صدقه کول ضروري نه دي

**سوال:** ستاسو نه مې ديوې مسئلې پوښتنه کوله چې زما خاوند وفات شوی دی، نن سبا عام طورسره دخوراک نه علاوه دمرحوم له پاره جامې، بستره، جای نماز، لوټه او داسې نور ټول دضرورت شيان چا ضرورت مندته ورکول کيږي، تاسو راته ووايئ چې آيا دا صحيح دي؟ او ايا واقعي ددې ټولو شيانو ثواب هغوی ته رسيږي؟ددې نه علاوه څه بله طريقه هم راته وښايئ چې زما خاوند ته زيات نه زيات ثواب ورسيږي، که ددې شيانو په ځای هم دومره قيمت پيسې ورکړل شي؛ نو آيا اجربه ورته ملاويږي؟ او ايا دسړي په ځای ښځې ته ورکول کيدای شي؟جواب راته زرترزره راکړئ!

**جواب:** دايصال ثواب له پاره دڅه خاص شي(جامې، بسترې، جانماز، لوټه وغيره) صدقه کولو هيڅ ضرورت نشته، بلکې که ددې شيانو ماليت صدقه کړل شي؛ نو هم به ورته هغومره ثواب رسيږي، هم دغه شان په ښځه سړي کې تخصيص نشته، بلکه کوم محتاج ته چې هم ورکړل شي په ثواب کې به يې څه کمی زياتی نه کيږي[3] هو! نيک او ديندار ته ورکولو کې زيات ثواب دی.[4]

## دنيا ته د ښودنې له پاره دخوراک ورکولو مړي ته هيڅ ثواب نه رسيږي

**سوال:** په ضلع مانسهره اود صوبه سرحد په کلي واله علاقه کې کله چې څوک بنده وفات شي؛ نو دهغه دوفات په ورځ لس دولس زره روپۍ داسې خيرات کيږي چې وريژې، خالص (کورني) غوړي، چيني (بوره) اوغوښه واخيستل شي او په عامو خلکو باندې وخوړل شي، ځينې کسان خپل جائدادونه ګانه کړي اوددې خيرات اهتمام کوي او دهغه ځای عالمان يې هم په باقاعدګي سره خوري، منع کونکي ته ډيرد نفرت په نظرسره کتل کيږي.

---

۱ ]قوله ولاباس بنقله قبل دفنه قيل مطلقًا وقيل الى مادون مدة السفر وقيده محمد بقدر ميل اوميلين ............فيكره فيما زاد ......الخ (شامى ج:۲ ص:۲۳۹ ،مطلب فى دفن الميت ،طبع ايچ ايم سعيد)۔

۲ ] وفى البحر :من صام اوصلى اوتصدق وجعل ثوابه لغيره من الاموات والاحياء جاز ويصل ثوابها اليهم عنداهل السنة والجماعة كذافى البدائع ثم قال وبهذا علم انه لافرق بين ان يكون المجعول له ميتا اوحيا......الخ (شامى ج:۲ص:۲۴۳)۔

۳ ]ايضًا)۔

٤ ] التصدق على الفقير العالم افضل من التصدق على الجاهل ......الخ (هندية ،باب المصارف ص:۱۸۷)۔

**جواب:** د مرحوم له پاره ایصال ثواب خو ډیره ښه خبره ده، خو د دې طریقه داده چې څومره روپۍ په ایصال ثواب باندې خرچ کیږي، هغه دې په پټه چامحتاج ته ورکړل شي یا په یوه دیني مدرسه کې دې ورکړل شي[1]، په برادري باندې خوراک خوړل بطوررسم د نیا ته د ښودنې له پاره وي، له دې وجې د دې ثواب مړي ته نه رسیږي.[2]

## د قرباني په ذریعه ایصال ثواب

**سوال:** د خپل طرف نه نفلي قرباني کول او ایصال ثواب کیږي یا د مړي د طرف نه قرباني کول او ایصال ثواب وکړل شي؟

**جواب:** که چیرې په خپله پرې قرباني واجب وي؛ نو په هر حال کې دې وکړي، که نور ګنجائش ورسره وي؛ نو د مړي د طرف نه دې هم وکړي. والله اعلم![3]

## دایصال ثواب له پاره کېناستل او خوراک ورکول

**سوال:** څلور زیارته جدا جدا، د ښځو او سړیو ناسته د ایصال ثواب له پاره کیږي، بیا خوراک هم خوړل

کیږي، بیا په څلویښتي کې صاحب مال شرکت کوي.

**جواب:** دایصال ثواب له پاره ناسته فقهاو مکروه لیکلې ده، د دې وجې نه دې هر کس د خپل خپل طرف نه ایصال ثواب وکړي، د دې مقصد له پاره راغونډیل پکار نه دي[4] دایصال ثواب له پاره په فقیرانو او مسکینانو باندې خوراک خوړلو کې هیڅ نقصان نشته، مګر د دې له پاره شرط دادی چې د مړي بالغ وارثان خپل مال پرې وخوري.[5]

## آیا چې تر څو پورې خوراک و نه خوړل شي د مړي خوله خلاصه پاتې وي؟

**سوال:** اوریدلې اولوستلې مې دي چې د انسان د مرګ نه وروسته د دنیا سره تعلق ختم شي، نو

---

[1] وفی التطوعات الافضل هوالاخفاء والاسرار ......الخ (عالمگیریة ج:۱ص:۱۷۱)۔

[2] ویکره اتخاذ الضیافة من الطعام من اهل المیت لانه شرع فی السرور لاف الشرور وهی بدعة مستقبحة ......وبعد اسطر ......وهذه الافعال کلهاللسمعة والریاء فیحترز عنها ،لانهم لایریدون بها وجه الله تعالی ......الخ (شامی ج:۲ص:۲۴۰،۲۴۱،مطلب فی کراهة الضیافة من اهل المیت ،طبع ایچ ایم سعید)۔

[3] وفی البحر :من صام اوصلی اوتصدق وجعل ثوابه لغیره من الاموات والاحیاء جاز (ردالمحتار ج:۲ص:۲۴۳، مطلب فی القراءة للمیت واهداء ثوابها له)

[4] ویکره اتخاذ الطعام فی الیوم الاول والثالث وبعد الاسبوع ......واتخاذ الدعوة لقراءة القرآن وجمع الصلحاء ......الخ (شامی ج:۲ ص:۲۴۰ مطلب فی کراهة الضیافة من اهل المیت)۔

[5] وان اتخذ طعاما للفقراء کان حسنا اذا کانت الورثة بالغین فان کان فی الورثة صغیر لم یتخذوا ذلک من الترکة کذا فی التتارخانیة (هندیة ج:۵ص:۳۴۴)۔

دهغه له پاره ددعا ضرورت دی،مګرځینې خلک وايي چې په حدیث کې راغلي دي چې ترڅوپورې په خلکو خوراک ونه خوړل شي د مړي خوله په قبر کې خلاصه وي.

**جواب:** دمړودایصال ثواب له پاره صدقه اوخیرات کول ډیره ښه خبره ده،یوازې خوراک خوړل څه ضروري نه دي[1]اودمړي خوله خلاصه پاتې کیدوخبره مې په لومړي ځل ستاپه خط کې اولوستله، ددې مخکې مې نه په څه کتاب کې لیدلې ده اونه مې اوریدلې ده.

## ختم کول بدعت دي خو فقیرانو باندې خوراک خوړل د ثواب کار دی

**سوال:** دختم شریف شرعي حیثیت څه دی؟ځینې حضرات ختم خیرات کوي،خو په خوراک کې اکثر مالداران وي چرته چې په زیات تعداد کې امیران وي، هلته دخیرات طریقه کارڅه پکار دی؟ چونکې ځینې حضرات یې له دې وجې نه جائزنه ګڼي چې خیرات خوړل د مسکینانو حق دی، خو اکثرخلک ددې سره اتفاق نه کوي.

**جواب:** دختم رواج بدعت دی،کوم خوراک چې په فقیرانو وخوړل شي دهغه به ورته ثواب ملاوېږي اوکومه یې چې په خپله باندې وخوړله هغه یې وخوړله،کومه یې چې په یارانو دوستانو باندې وخوړله هغه دعوت شو.[2]

## تلاوت قرآن پاک سره ایصال ثواب کول

**سوال:** دایصال ثواب په سلسله کې چې کومې عامې طریقې رائج دي مثلاً قرآن کریم لوستل او ایصال ثواب کول، وغیره په کتاب الله کې چرته هم ددې حکم نه دی ورکړل شوی، داعقلي خبره نه ده بلکې نقلی ده.

**جواب:** دجناب داخبره بالکل رښتیاده،چې دایصال ثواب خبره عقلي نه ، بلکې نقلي ده، په قرآن کریم کې دمومنانوسړیو اومومنانو ښځو له پاره ددعااواستغفارذکرېه ډیرځایونوکې راغلی دی،چې دهغې نه داواضح کیږي چې دیومومن دبل مومن له پاره دعااواستغفارکول مفیددي،ګني په قرآن کریم کې به ددې درغبت ذکرنه کیده [3]اوپه صحیح احادیثوکې

---

١ ]الافضل لمن يتصدق نفلا ان ينوى لجميع المومنين والمومنات لانها تصل اليهم ولاينقص من اجره شيء .......الخ (شامي ج:٢ص:٢٤٣،مطلب فى القراءة للميت واهداء ثوابها له)_

٢]ويكره......واتخاذ الدعوة لقراءة القرآن وجمع الصلحاء والقراء للختم .....الخ (شامي ج:٢ص:٢٤٠)

٣ ]اختلف فى وصول ثواب القراءة للميت، فجمهور السلف والائمة _والثلاثة _على الوصول ،وخالف فى ذلك امامنا الشافعى مستدلاً بقوله تعالى :وان ليس للانسان الاماسعى ،واجاب الاولون عن الاية باوجه، احدها: انها منسوخة بقوله تعالى :والذين امنوا واتبعتهم ذريتهم الاية ادخل الابناء الجنة بصلاح الاباء ...... الثالث ان المراد بالانسان هنا الكافر ،فاماالمومن فله ماسعى وماسعى له قاله الربيع بن انس (شرح الصدورص:٣١٠) قال تعالى:رب اغفرلى ولوالدىّ ولمن دخل بيتى مؤمنا....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

دحضور ﷺ نه د نورو اعمالوسره ایصال ثواب هم نقل دی[1] اودقرآن کریم دایصال ثواب بطورخاص ذکر شوی دی. موږ هم ددې ایصال ثواب قایل یو، کوم چې دقرآن حدیث اودامت دبزرګانونه ثابت دی[2] اوکومې نوې طریقې چې خلکوایجادکړې دي، دهغو ماپه خپله هم تردید کړی دی.

## مړي ته د قرآن خواني د ثواب رسولوصحیح طریقه

**سوال:** دچادمرګ نه وروسته مرحوم ته دثواب رسولوله پاره قرآن خواني کول درست دي؟

**جواب:** حافظ سیوطي رحمه الله په ,,شرح الصدور،، کې لیکلي دي چې: دجمهوروسلف اوائمه ثلاثه وو (امام ابوحنیفه رحمه الله، امام مالک رحمه الله، اوامام احمد) په نزدمړي ته دتلات قرآن پاک ثواب رسیږي، خو په دې مسئله کې زموږ دامام شافعي رحمه الله سره اختلاف دی.[3]

هغه دامام قرطبي رحمه الله په حوالې سره لیکلي دي چې: شیخ عزالدین بن عبدالسلام به فتوی ورکوله چې مړي ته دقرآن پاک دتلاوت ثواب نه رسیږي، کله چې هغه وفات شو؛ نو یو شاګرد هغه په خوب کې ولیده، اودهغه نه یې پوښتنه وکړه چې تاسو به ژوندکې دافتوی ورکوله. اوس خوبه دې مشاهده شوې وي اوس دې څه رایه ده؟ویې فرمایل چې: مابه په دنیاکې فتوی ورکوله ؛خو دلته چې راغلم اودالله تعالی دکرم مشاهده مې وکړه، نوددې فتوی نه مې رجوع وکړه، مړي ته دقرآن پاک دتلاوت ثواب رسیږي[4]،،امام محي الدين نووي شافعي رحمه الله په (شرح المهذب ،،(ج:۵ ص:۳۱۱) کې لیکلي دي چې: دقبر زیارت کونکوله پاره مستحب ده چې څومره کیدای شي دقرآن کریم تلاوت دې وکړي، ددې نه وروسته دې داهل قبوروله پاره دعا

---

...بقیه د تیر مخ]..وللمؤمنین والمؤمنٰت، ولا تزد الظّلمین الا تباراً.(نوح:۲۸) وقال تعالی: ربنا اغفرلنا ولاخواننا الذین سبقونا بالایمان (الحشر ۱۰)۔

۱ ]عن عطاء وزیدبن اسلم قالا:جاء رجل الی النبی صلیٰ الله علیه وسلم فقال :یارسول الله !اعتق عن ابی وقد مات؟قال نعم !(شرح الصدور ص:۳۰۹) (واخرج احمدوالاربعة عن سعدبن عبادة انه قال :یارسول الله !ان امی ماتت ،فای الصدقة افضل ؟قال :الماء ! فحفر بئراً وقال :هذه لام سعد (شرح الصدور ص:۳۰۷)۔

۲ ] عن معقل بن یسار رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :اقروا سورة یس علی موتاکم ،رواه احمد وابوداود وابن ماجة (مشکوة ج:۱ص:۱۴۱)،وایضًا قوله ویقرأ یس لماورد من دخل المقابرفقراء یس خفف الله عنهم یومئذ فکان له بعددمن فیها حسنات بحز ......الخ (شامی :۲ص:۲۴۳)۔

۳ ] فجمهور السلف والائمة الثلاثة علی الوصول وخالف فی ذلک امامنا الشافعی (شرح الصدور ص:۳۱۰، طبع دارالکتب العلمیة بیروت ،باب فی قراءة القرآن للمیت اوعلی القبر)۔

٤] قال القرطبی :وقد کان الشیخ عزالدین بن عبدالسلام یفتی بانه لایصل الی المیت ثواب مایقرأ له فلما توفی رآه بعض اصحابه فقال له :انک کنت تقول انه لایصل الی المیت ثواب مایقرأ ویهدی الیه فکیف الامر ؟قال :لاکنت اقول ذلک فی دار الدنیا والان فقد رجعت عنه لما رایت من کرم الله فی ذلک (شرح الصدور ص:۳۱۱طبع دارالکتب العلمیة بیروت ،باب فی قراءة القرآن للمیت اوعلی القبر)۔

وکړي، امام شافعي رحمه الله ددې تصریح کړې ده اوزمونږ اصحاب متفق دي[۱]، دحنفیه، مالکیه او حنابله وو په کتابونوکې دایصال ثواب تصریحات موجود دي، ددې وجې نه دمړي دایصال ثواب له پاره قرآن خواني کول خوبیشکه درست دي، خو په دې کې دڅوکارونوخیال ساتل ضروري دي:

**اول**.....داچې کوم خلک هم په قرآن خواني کې شریک وي، دهغوی مقصدیوازې دالله تعالی رضا وي، هغوی دمړي والودشرم نه یا د بنودنې نه مجبوره نه وي اوپه نه شریکیدونکودې ملامتیا نه کوي، بلکې انفرادي تلاوت تهدې په اجتماعي قرآن خواني باندې ترجیح ورکړي ،ځکه چې په دې کې اخلاص زیات وي.

**دوم**.....داچې دقرآن کریم تلاوت دې صحیح وکړل شي، غلط دې نه لوستل کیږي، ګني ددې حدیث په شان به وي چې ډیرد قرآن لوستونکي داسې دي چې قرآن په هغوی باندې لعنت کوي..

**دریم**.....داچې قرآن خواني دې په څه معاوضه باندې نه وي، ګني دقرآن لوستونکوته به هم څه ملاونه شي؛ نومړي ته به څه ثواب ورسیږي، زمونږ فقهاوو وضاحت کړی دی چې دقرآن خواني له پاره دعوت کول اودصالحانواوقاریانوته دختم له پاره یادسورت انعام اوسوره اخلاص دتلاوت له پاره راجمع کول مکروه دي.[۲]

## دقرآن خواني په دوران کې غلط کارونه او وبال یې

**سوال:** په قرآن خواني کې څه کسان داسې وي چې هغوی لوستل نه شي کولی، هغوی دشرم له وجې سیپاره واخلي اوکېني اوکله چې خلک پارې کیږدي؛ نوهغه خلک هم خپلې سیپارې په هغه لوستلو شویوسیپاروکې کیږدي یاڅه کسان صحیح لوستلی نه شي اوپه بیړه کې صحیح تلفظ نه شي کولی یا څه لولي اوڅه پریږدي، نوددې ګناه به په قرآن خواني کونکو وي یاپه لوستونکي یاپه دواړو؟

---

۱ ]ویستحب للزائر ان یسلم علی المقابر......ویستحب ان یقرأ القرآن ماتیسر ویدعوا لهم عقبهانص علیه الشافعی واتفق علیه الاصحاب (شرح المهذب ج:۵ص:۳۱۱طبع بیروت)_

۲ ] ویکره اتخاذ الطعام فی الیوم الاول ......و اتخاذ الدعوة بقراءة القرآن و جمع الصلحاء و القراء للختم او لقراءة سورة الانعام او الاخلاص (فتاوی بزازیة علی هامش الهندیة ج:٤ ص:۸۱، ایضًا شامی ج:۲ص:۲٤۰)_

**جواب:** څوک چې دنه لوستلو باوجود دا ظاهروي چې هغوی ولوست هغه ګناهګاردی، همدغه شان څوک چې غلط لولي هغوی هم ګناه ګاردي اوقرآن خواني کونکی، ددې ګناه سبب جوړشوی دی ددې وجی نه هغه هم په دې ګناه کې شریک دی.

## د چا په مرګ باندې د رشتدارا نو قرآن خواني کول

**سوال:** د هفتې په ورځ په اخبار جهان کې یو سوال شائع شوی و؛ س: د یو سړي د وفات نه وروسته مختلف خلق رابلل کیږي چې هغوي قرآن خواني کوي آیا ددې اجر او ثواب وفات شوي سړي ته رسیږي؟ او آیا داسې رسم او رواج د اسلام مطابق دی؟ د هغه جواب ورکړل شوی و ، ، ج: د قرآن شریف د تلاوت ثواب هغه سړي ته ملاویږي چا چې تلاوت کړی دی، هغه که چیرې په خپله خوشحالي سره بل چاته ثواب رسول غواړي نو رسولې یې شي.

مختلف خلک رابلل او د قرآن خواني کولو په ځای بهتره طریقه دا ده چې څومره قرآن په خپله لوستلی شي؛ نو ددې ثواب دې مرحوم عزیز ته ورسوي او د رسم او د رواج په چکر کې دې نه پریوځي، په دې سلسله کې عرض دادی چې د وفات شوي عزیز ډیر نژدې رشته دار مثلاً تره، ماما،د ترور،دترور خاوند او دوست وغیره چې کوم په مختلفو ځایونو کې وي اوپه دې ځای باندې یوځای کیږي او د جنازې نه وروسته خپل کور ته واپس ځي،دا ټول سړي د وفات شوي سړي ته قرآن خواني کول غواړي، که چیرې دا ټول سړي د وفات شوي سړي کور ته راځي او قرآن خواني کوي او څه قسمه خوږ شی تقسیم نه کړي او د عاء نه وروسته رخصت شي نو آیا دا طریقه اختیارول صحیح ده؟

**جواب:** دلته دوه مسئلې دي: اول دا چې قرآن کریم ولوستل شي او ددې ثواب چاته وبښل شي نو دا جائز دي اوکه نه؟ او دا رسیږي او که نه؟ په دې کې د امامانو اختلاف دی، زمونږ د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد د ټولو عبادتونو ثواب رسیږي په دې شرط چې په اخلاص باندې وشي اوداما م شافعي رحمه الله په نزدعبادات قولیه ثواب مثلاً تلاوت وغیره ددې ثواب نه رسیږي.[1]

دویمه مسئله دا ده چې د خپل طرف نه سړی خپلو مشرانو ، متعلقینو او دوستانو ته د ثواب رسولو اهتمام کوي، او نور حضرات که دغه وخت جمع شي نو بغیر د اهتمام نه هغوي هم لولي خود قرآن خواني له پاره هیڅ وخت مقرر نه دی او په دې باندې خلک رابلل، شریعت

---

[1] صرح علماؤنا فی باب الحج عن الغیر بان للانسان ان یجعل ثواب عمله لغیره صلاة او صوما اوصدقة او غیرها کذا فی الهدایة ...لکن استثنی مالک والشافعی العبادات البدنیة المحضة کالصلاة والتلاوة فلایصل ثوابها الی المیت عندهما بخلاف غیرها کالصدقة والحج (شامی ج:۲ص:۲۴۳ مطلب فی القراءة للمیت واهداء ثوابها له)

د دې اجازت نه دی ورکړی او کوم شی چې د شریعت نه ثابت نه وي، هغه د خپل طرف نه شروع کول صحیح نه دي، والله اعلم بالصواب[1].

## د عباداتو ایصال ثواب

**سوال:** قرآن پاک یا نعتونه وغیره ویل د دې ایصال ثواب د مړي له پاره د حدیثونو نه ثابت دي؟

**جواب:** عبادات مالیه او دعا او استغفار سره ایصال ثواب متفق علیه دی، د قرآن د تلاوت په باره کې د امام شافعي رحمه الله اختلاف منقول دی، د حافظ سیوطي رحمه الله د ،،شرح صدور ،، نه نقل کړي دي چې د شوافعو په نزد هم راجح دا دی چې د تلاوت ثواب رسیږي او بل دا چې په دې باندې د امام نووي رحمه الله شرح مهذب (جلد ۵ صفحه : ۳۱۱) نه نقل کړي دي چې : د قبر د زیارت کونکو ته مستحب دادي چې څومره هم کیدلی شي: نو د قرآن تلاوت دې وکړي، د دې نه وروسته دې د قبرونو والو له پاره دعا وکړي، امام شافعي رحمه الله د دې تصریح کړې ده او په دې باندې زموږ اصحاب متفق دي[2].

د څلورو مذهبونو د اتفاق کولو نه وروسته نورو دلیلونو ضرورت نه پاتې کیږي، ابوداود صفحه:۵۹۲ کې د (باب في ذکر البصرة) لاندې د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه ارشاد نقل کړی دی چې په تاسو کې څوک دې ماته د دې ضمانت راکړي چې هغه زما له پاره په مسجد عشاء کې دوه یا څلور رکعته لمونځ وکړي چې دا د ابوهریره له پاره دي[3] په دې سره د نفلونو په ایصال ثواب باندې استدلال کیدلی شي، هسې خو جمهور امامان د دې په صحیح کیدو باندې قایل دي.

## په قرآن خوانۍ کې نالوسته سپارې لوستل شو یو سپارو سره د کیښودو کفاره

**سوال:** یوه ښځه اکثر په محله کې د سورت یسین وغیره د ختم له پاره په قرآن خوانۍ کې ځي، د دې د قرآن د لوستلو رفتار ډیر زیات سست دی، یعنې په ډیر ساعت کې هغه سپارې ختموي

---

[1] وفي البزازية :ويكره ...... اتخاذ الدعوة لقراءة القرآن وجمع الصلحاء والقراء للختم اولقراءة سورة الانعام او الاخلاص (شامي ج:۲ص: ۲٤۰،مطلب فی کراهة الضيافة من اهل الميت)

[2] اختلف فی وصول ثواب القراءة للميت فجمهور السلف والائمة _الثلاثة _علی الوصول ،وخالف فی ذالک امامنا الشافعی ...... واما القراءة علی القبر، فجزم بمشروعيتها اصحابنا وغيرهم ،قال الزعفرانی سالت الشافعی رحمه الله تعالی عن القراءة عندالقبرفقال :لاباس به وقال النووی رحمه الله فی شرح المهذب (ج:۵ص:۳۱۱) يستحب لزائر القبور ان يقرأ ماتيسر من القرآن ويدعولهم عقبها نص عليه الشافعی ،واتفق عليه الاصحاب (شرح الصدور ص:۳۱۰،۳۱۱)

[3] محمد بن المثنی ......قال سمعت ابي يقول: انطلقت حاجين......قال :من يضمن لی منکم ان يصلی لی فی مسجد العشاء رکعتين او اربعًا ويقول :هذا لابی هريرة (ابوداود،کتاب الملاحم ،باب فی ذکر البصرة ج:۲ص:۲۳۶)

او نورې ښځې دوه درې سپارې ختموي؛ نو د دې یوه سپاره ختمه شي له دې وجې دا په محفل کې خپل د دې عیب د پټولو له پاره نه لوستلونکي سپارې په لوستونکو سپارو کې ږدي، د غه شان یو خل سورت یسین لولي او دوه درې لوستونکو سورتونو کې یې ږدي، اوس دې ښځې ته د خپلې دې غلطې او د ګناه احساس شوی دی، هغه شرمنده ده او د خپلې غلطي او د ګناه کفاره اداء کول غواړي، د قرآن او د سنت په رڼا کې د دې ګناه کفاره او تلافي څنګه ممکنه ده؟

**جواب:** بس د الله تعالي نه دې معافي وغواړي او څومره قرآن مجید چې لوستل وي په خپل کور کې دې لولي د خلکو کورنو ته تلل او قرآن مجید لوستل دې نه کوي، دا په ښځو کې د قرآن خواني رواج دی، اکثر داسې کیږي چې دوی غلط قرآن وایي، بهتره به دا وي چې په خپلو خپلو کورو کې دې قرآن کریم لولي او د دې ثواب دې مرحومینو ته وبښي.

## په دریمه، لسمه، او قرآن خواني کې شرکت کول

**سوال:** زموږ د مسلمانانو په معاشره (جامعه) کې د خپل ځان نه په جوړو شویو رسمونو باندې عمل کیږي، هیڅ بنیاد او حقیقت یې نه شته، مثلاً: دریمه، لسمه او داسې نور....خو بیا هم احناف (رحمهم الله) څه فرمايي؟ قرآن خواني څنګه ده؟ یعنې په چیني (بوره) وغیره باندې (قل هو) شریف وغیره لوستل، حنفي مسلک د دې په باره کې څه وايي؟

**جواب:** د مرګ په وخت کې چې کوم رسمونه دلته رائج دي هغه زیاتره بدعت دي او دا غلط ګڼل پکار دي او د خپل وس تر حده پورې په دې کې شریکیدل هم پکار نه دي، قرآن خواني خو یو رسم جوړ شوی دی او اکثر خلک یوازې د ځان ښودو له پاره په دې کې شرکت کوي، ډیر کم کسان به وي چې د هغوی مقصد به واقعي ثواب رسول وي، په داسې موقعو باندې زه وایم چې دومره سیپارې ووایم او د خپل طرف نه به ثواب وروبښم.

خو که یو مجلس کې شرکت وشو: نو د اخلاص سره یوازې د ایصال ثواب نیت کول پکار دي، په باقي رسمونو کې دې حتی الوسع شرکت ونه کړل شي او که کله وشي: نو د الله تعالی نه دې معافي وغوښتل شي.[1]

## د مړي قبر ته وړلو او ایصال ثواب صحیح طریقه

**سوال:** فرض کړئ چې زه مړشوم، د مرګ نه تر قبر پورې څه حکم دی؟ د دې نه وروسته د قبر واله موده کې د هغه له پاره د ایصال ثواب رسولو صحیح طریقه څه ده؟ یعنې له مرګ نه وروسته په اوچت اواز سره کلمه طیبه لوستل، د جنازې نه وروسته دعا کول، میوه او نور شیان له ځان سره وړل، (توښه) د جمعې شپه کول، څلویښتي کول، د جومات له پاره پیسې ورکول کوم ته چې

---

[1] وهذه الافعال كلها للسمعة والرياء فيحترز عنها ،لانهم لايريدها وجه الله تعالى ......الخ (شامى ج:۲ص:۲٤۱)_

دزكات نوم وركول كيږي، اياهغه روپۍ چې د جومات په نامه وركول كيږي، هغه دجومات وي يادامام دمسجد؟ او هغه دمړشوي دبښني له پاره كارامددي اوكه نه؟

**جواب:** دحضرت ډاكټرعبدالحي عارفي صاحب كتاب ,,احكام ميت،، په دې مسايلوكې ډير مفيد اوجامع كتاب دی،ددې مطالعه كول هرمسلمان ته پكاردی. ستادسوال مختصرنكات په لاندې ډول دي:

۱:....له مرګ نه وروسته دسنت مطابق تدفين پكاردی اوپه دې كې چې تركوم حدپورې ممكن وي بيړه (تندي) كول پكاردي.[۱]

۲:....دجنازې سره دې په كم اوازسره ذكروكړل شي، په اوچت اوازسره ذكركول مكروه دي.[۲]

۳:....دايصال ثواب له پاره شريعت هيڅ وخت او ورځ نه ده مقرركړې. بلكې دمالي اوبدني عبادتونو ايصال ثواب چې كله وغواړئ كولی يې شئ.[۳]

۴:....له مرګ نه وروسته دمرحوم مال دهغه وارثانوته فورامنتقل شي،كه ټول وارثان بالغ او موجود وي اوپه هغوی كې څوک نابالغه اوغيرحاضر نه وي؛ نو وراثان په خوشالي سره دمړي له پاره صدقه اوخيرات كولی شي، خو كه څه وارثان نابالغه وي؛ نودهغوی دبرخې نه صدقه اوخيرات كول جائزنه دي اودهغې خوړل هم جائزنه دي، بلكې ديتيمانومال خوړلو،باندې چې كوم وعيدراغلی دی دهغه وبال به پرې لازميږي، هو! كه بالغ وارث دخپلې برخې نه دايصال ثواب له پاره صدقه خيرات وكړي؛ نوډيره ښه ده،[۴]ياكه مړي وصيت كړی وي؛ نودمال ددريمې برخې څخه دهغه دوصيت مطابق دخيرپه كارونوكې خرچ كيدای شي.[۵]

## د نويو او مخكې ټولو ثواب ښښل كيږي

**سوال:** اكثر په محفل قرآن كې څينې سړي ياښځې وايي چې هغوی تراوسه پورې په كور كې مثلاً: ۱۰ يا ۵ سيپارې مخكې چې ويلي دي، هغه په دې كې شامل كړئ ،يا اكثر د قارئنو د كمي له وجې نه سيپارې كورونوته وليږل شي داتركوم حدپورې صحيح دي.؟

۱ ] ويبادر الى تجهيزه ولايوخر ......الخ (هندية ج:۱ص:۱۵۷،كتاب الصلاة ،طبع رشيديه)۔

۲ ] وعلى متبعى الجنازة الصمت ويكره لهم رفع الصوت بالذكر وقراءة القرآن ...... فان اراد ان يذكر الله يذكره فى نفسه ......الخ (هندية ج:۱ص:۱۶۲، وايضًا فى الشامى ج:۲ص:۲۳۳،باب صلاة الجنازة)۔

۳ ] صرح علماؤنا فى باب الحج عن الغيربان للانسان ان يجعل ثواب عمله لغيره صلاة اوصومًا اوصدقة اوغيرها كذا فى الهداية ......الخ (شامى ج:۲ص:۲۴۳،مطلب فى القراءة للميت واهداء ثوابها له)۔

۴ ]وان اتخذ طعامًا للفقراء كان حسنا اذاكانت الورثة بالغين فان كان فى الورثة صغير لم يتخذو ذلک من التركة كذافى التتارخانية (هندية ج:۵ص:۳۴۴،كتاب الكراهية)۔

۵ ] والوصية تصرف فى ثلث المال فى آخر العمر زيادة فى العمل فكانت مشروعة ......الخ (البدائع الصنائع ج:۷ص:۳۳۰)۔

**جواب:** دلته يو څو مسئلې دی:

۱:...په شريکه قرآن خواني ته فقهاوو مکروه ويلي دي اوکه وکړل شي: نوتړول دې په کم آوازسره وايي چې آوازونه يې په خپلو کې ونه جنګيږي.[۱]

۲:...بنده چې څه ويلي وي دهغو ثواب ببنبلی شي، که نوي يې لوستلي وي اوکه زاړه.[۲]

۳:.....دايصال ثواب له پاره ټول قرآن شريف ختمول ضروري نه دي چې څومره مو وويلودهغه ثواب وربښل صحيح دي.[۳]

۴:...بل ته دلوستلوله پاره ويل صحيح دي،په شرط ددې چې څه بوج پرې نه وي،کنې صحيح نه دي.[۴]

## دپخواني تلاوت ايصال ثواب

**سوال:** ځينې وخت خلک وايي چې زمونږه فلانکی عزيز وفات شوی دی تاسو چې کوم قرآن پاک ختم کړی دی په دې کې يو څو سپارې مونږ ته راکړې،دغه شان د مختلفو خلکو نه مختلفې سيپارې اخلي د قرآن پاک سپارې يوځای کوي او د خپل رشته دار روح ته يې ببنبي،آيا داسې کول صحيح دي؟

**جواب:** هر سړي چې کوم څه لوستلي وي، هغه ايصال ثواب کولی شي.[۵]

## په خپله ثواب حاصلولوله پاره دصدقه جاريه مثالونه

**سوال:** که څوک دخپلووارثانونه نااميده شي اوداخرت دثواب سامان په خپله وکړي، مثلاً: دقرآن شريف سيپارې جومات ته وليږي يا کوهی وکنی،ياپه جومات کې پنکې وغيره ولګوي؛ نو آيا داجائزده؟

**جواب:** دانه يوازې جائزده، بلکې بهتراوافضل هم ده،چې بنده په خپل ژوند کې دخپل آخرت له پاره دذخيرې جوړولواهتمام وکړي.[۶]

---

۱ ] يکره للقوم ان يقرؤا القرآن جملة لتضمنها ترک الاستماع والانصات المامور بها کذافی القنية (هندية ج:۵ص:۳۱۷کتاب الکرهية)_

۲ ] والظاهر ان لافرق بين ان ينوی به عند الفعل للغير اويفعله لنفسه ثم بعد ذلک يجعل ثوابه لغيره ......الخ (شامی ج:۲ص:۲٤۳ ،مطلب فی القراءة للميت واهداء ثوابها له)_

۳ ] ويصح اهداء نصف الثواب او ربعه کما نص عليه احمد ولامانع منه ......الخ (شامی ج:۲ص:۲٤۳)_

٤ ] تفصيل دپاره اوګورئ: شامی ج:۲ص:۲٤۳، مطلب فی القراءة للميت)_

۵ ] ايضاً_

٦ ] عن ابی هريرة رضی الله قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :اذا مات الانسان انقطع عنه عمله الا من ثلاثة الامن صدقة جارية اوعلم ينتفع به او ولد صالح يدعوا له، رواه مسلم (مشکوة ج:۱ص:۳۲)_

## دوفات شوي د تعزيت له پاره جلسې د صحيحو مقاصدو لا ندې جائز دي

**سوال:** متوفی باندې تعزتي جلسې کول، او دځينو خو مستقلا سالانه جلسې کول، دا عرس خونه دی؟ جائز دي او که بدعت ؟ په قرآن، حديث او خيرالقرون کې د دې څه مثال شته؟

**جواب:** دتعزيت مفهوم دمړي وارثانو ته تسلي ورکول دي اودهغوی په غم کې دشرکت اظهار کولو سره دهغوی غم کمول دي، چې مامور به دی[1] نور دا چې ,,اذکروا موتاکم بخير... کې دمرحومينو له باره کې دښې يادونې حکم هم دی، که تعزيتی جلسه دهمدې دوو مقصدونو له پاره وي او د مرحوم په تعريف کې غيرواقعي مبالغه ونکړل شي: نو جائز ده[2] سالانه جلسې خو ظاهره ده فضول حرکت دی او د چا مرحوم غيرواقعي تعريف هم غلط دی، په هرحال که تعزيتي جلسه دپورته ذکر شويو مقاصدو له پاره و نو هغې ته به بدعت نه ويل کيږي؛ ځکه چې دا جلسې په خپله مقصد نه تصور کيږې او نه عبادت ګڼل کيږې.

## د عذاب قبر د کموالي او د ځنکدن داسا ني وظيفه

**سوال:** هغه وظيفه وښايئ چې په کولو سره يې عذاب کميږي او دځنکدن په وخت تکليف کميږي؟

**جواب:** د عذاب قبر له پاره د ويده کيدو نه مخکې سورة (تبارک الذي) لوستل پکار دي او د ځنکدن داساني له پاره دا دعا لوستل پکار دي:

(اللهم اعنى على سکرات الموت وغمرات الموت). [۳]

## په قبرستان کې د ايصال ثواب له پاره د کومو خبرو خيال ساتل پکار دي؟

**سوال:** قبرستان ته تلل د مړي له پاره د ايصال ثواب د پاره د کومو کومو خبرو خيال ساتل پکار دي؟ او د مرحوم د ايصال ثواب د پاره کوم آياتونه او کوم سورتونه تلاوت کړل شي؟

**جواب:** څومره سورتونه چې ياد وي ودې لوستل شي او دعا دې وکړل شي چې الله جل شانه دې مړي ته د دې ثواب ورکړي او قبر ته د رسيدو نه وروسته مړي ته سلام کول هم پکار دي کم از کم دا الفاظ ويل پکار دي: **السلام عليکم يا اهل القبور.** [۴]

---

۱ ]وتستحب التعزية للرجال والنساء اللاتى لا يفتن لقوله عليه السلام من عزى اخاه بمصيبة كساه الله من حلل الكرامة يوم القيامة ،رواه ابن ماجة (شامي ج:۲ص:۲٤۰)_

۲ ]لكن يكره الافراط فى مدحه لاسيماعندجنازته...الخ (درمختار مع الشامى ج:۲ص:۲۳۹،باب صلاة الجنازة)

۳ ] عن عائشة انهاقالت:رايت رسول الله صلى الله عليه وسلم وعنده قدح فيه ماء وهو يدخل يده فى القدح ثم يمسح وجهه بالماء ثم يقول اللهم اعنى على غمرات الموت وسكرات الموت (سنن الترمذى ج:۱ص:۱۱۷)

۴ ] ومن آدابها ان يسلم بلفظ السلام عليكم على الصحيح....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

## که د مور قبر معلوم نه وي نو د مغفرت دعا څنګه وکړم؟

**سوال:** زما مور مرحومه په کراچۍ کې دفن ده، زه اکثره ددې د مغفرت له پاره دعا کوم، اوس دا زما بدنصیبي ده، زه کله ددې قبر خواته نه یم تللی،پوښتنه داده چې قبر ته تلل ضروري دي اوکه نه؟ اوقبر ته د نه تللو په وجه په کور کې دعا ګانې کول بې کاره خو نه دي؟ دویم دا چې قبرستان ته که لاړم نو هم د والدې قبر راته نه دی معلوم نو قبرستان ته تلل او د والدې له پاره کوم ځای ودریږم چې دعا وکړم او څه دعا وکړم؟ آیا هلته به څه لوستل وي یا هسې د مغفرت له پاره دعا ګانې وکړم؟

**جواب:** که چیرې تاته د والدې د قبر پته نه وي؛ نو تا ته د تللو مشوره څنګه درکړم؟خو تاته نشانه کینښودل پکار دي یا که یو کس ته معلوم وي نو تاته د هغه نه پته لګول پکار دي، قبر ته په تللو سره مړي دومره خوشحالیږي څومره چې مور د خپل زوی په ملاقات خوشحالیږي[1] په هرحال دې ته دلوستل شوي سبق بښل هم بې کاره نه دي[2]

## د کوهي یا سړک ایصال ثواب

**سوال:** تاسو فرمایلي و ، ،بس دا بحث ختم، ، په دې وجه بنده خو حکم عدولي نه کوي، بیا هم ددې جواب ستاسو په ذمه به وي،چې صرف په غریبانانو باندې خوړل ایصال ثواب وي ګني نو نه به وی،نو خلق چې دایصال ثواب د پاره کوم سړک جوړوي، کوهې کني،ونه یا د سورې ځیز لګوي نو آیا دادې د غریبانانوپه نوم کړي نو هله به ایصال ثواب وي یاڅومره چې فقیر د مالدار نه فائده اخلي نو ایصال ثواب به وي؟

**جواب:** دا د رفاه عام کاردې اوصدقه جاریه ده، اودصدقې جاریې ثواب په نص سره ثابت دې[3]

---

...بقیه د تیر مخ].. ثم یدعو قائما طویلا وان جلس یجلس ......ویقرأ یس ......الخ (وفی شرح اللباب ویقرأ من القرآن ماتیسر له من الفاتحة واول البقرة الی المفلحون وآیة الکرسی ...... ثم یقول اللهم اوصل ثواب ماقراناه الی فلان او الیهم (شامی ج:۲ص:۲۴۳)

[1] الاحادیث والآثار تدل علی الزائر متی جاء علم به المیت وسمع سلامه وانس به وردعلیه وهذا عام فی حق الشهداء وغیر هم فانه لا یوقت (شرح الصدور ص:۳۵۸ طبع دارالکتب العلمیة بیروت)

[2] من دخل المقابر فقرأ سورة یس خفف الله عنهم یومئذ وکان له بعدد من فیها حسنات ،بحر :من صام اوصلی اوتصدق وجعل ثوابه لغیره من الاموات والاحیاء جاز ویصل ثوابها الیهم عند اهل السنة والجماعة (ردالمحتار ج:۲ص:۲۴۳)

[3] عن سعد بن عبادة قال :قال رسول الله ! ان ام سعد ماتت فای الصدقة افضل ؟ قال :الماء ! فحفر بئرا وقال :هذه لام سعد ،رواه ابوداود والنسائی (مشکوة ص:۱۶۹ ،فضل الصدقة ،طبع قدیمی)

## ښځه هم ایصال ثواب کولې شي

**سوال:** آیا ښځه هم صدقه ورکولې شي یانه؟

**جواب:** ښځه هم ایصال ثواب ورکولې شي لیکن د خپل مال نه دې اوکړي د مړي د میراث نه دې نه ورکوي[۱]

## د مرحومینو په قبر باندې د ایصال ثواب د پاره قرآن خواني

**سوال:** که چیرې د چاپه وفات باندې دده په قبر دایصال ثواب د پاره قرآن خواني اوکړې شي نو آیا دې مرحوم ته به اجر او ثواب ملاو شي؟

**جواب:** قبر ته تلل او د قرآن مجید ختم کولو په ځائې باندې په کور کې د قرآن تلاوت اوکړې شي لیکن زمونږه په علاقه کې دا وي چې یوه دوه ورځې قرآن خواني کولې شي ددینه پس مړې هیر کړي او دا د نافرمان او د ګناهګار سره په یو لحاظ سره صحیح هم کوي، ځکه چې مړي هم ټول عمر نه د الله تعالي عبادت کړي وي، نه یې د قرآن مجید تلاوت کړې وي، نه ئې لمونځ کړې وي،نه ئې روژه نیولې وي، د داسې سړي انجام داسې کول پکار وي ګني نو د الله تعالي مقبول بندګان د هر لمونځ نه پس ایصال ثواب کوي.

## د ایصال ثواب په مجلس کې د قادیانې شریکت او ددوی ایصال ثواب صحیح دی؟

**سوال:** دخپل وطن په سرکاري او نیمه سرکاري دفترونو کې ټول اسلامي او غیر اسلامي (قادیاني ،عیسائې وغیره) افراد منصبي فرائض اداء کوي،ځینې وخت لیدل کیږي چې یو مسلمان ملازم / آفیسر نژدې رشتدار وفات شي، څه وخت وروسته دده د ایصال ثواب له پاره دقرآن خواني او طعام بدوبست وشي،د ډیرو کسانو د شرکت په غرض یوه ټائپ شوې دعوت نامه د ایصال ثواب د پاره د قرآن خواني په شکل په ملازمینو او آفسرانو باندې تقسیم کړل شوه،په دعوت نامه کې یې فرداً فرداً دعوت نه وو ورکړی ،ددې عمومي دعوت نه د فائدې د اخستلو او د مصلحت په وجه که چیرته قادیاني یانور غیر مسلمه په دې ایصال ثواب کې شرکت وکړي؛ نو د داسې قسمه شرکت متعلق د لاندې سوالونو جوابونه مطلوب دي.

(۱) آیا د قادیاني شرکت د ایصال ثواب د قرآن خواني یا د نورو خالصو مذهبي اجتماعاتو کې شرعاً جائز دی؟

---

[۱] وفی البحر :من صام اوصلی اوتصدق وجعل ثوابه لغیره من الاموات والاحیاء جاز ویصل ثوابها الیهم عند اهل السنة والجماعة کذا فی البدائع (شامی ج:۲ص:۲۴۳،مطلب فی القراءة للمیت واهداء ثوابها له)

**جواب:** د ایصال ثواب په مجلس کې غیر مسلم قادیانې شریکول جائز نه دي[1] په دې وجه دې قادیانی بالکل راونه غوښتل شي،که په خپله راشي نو دده د شرکت نه دې معذرت وغوښتل شي.

(۲)آیا د قادیاني د قرآن مجید په تلاوت سره مړي ته ثواب ملاویږي؟

**جواب:** مړي ته ثواب ملاویدل په خپله دویونکي دثواب فرع ده او دغیر مسلم قادیاني عملونه باطل دي[2] نو کله چې ده ته په خپله ثواب نه ملاویږي؛ نو مړي ته به څه ثواب ملاو شي؟!

(۳)د قادیاني په شرکت سره آیا په ایصال ثواب باندې څه قسمه غیر اسلامي اثر مرتب کیږي اوکه نه؟ او په څه صورت کې کوم یو صورت کې؟

**جواب:** د قادیانانو او د غیر مسلمو په شرکت سره د اسلام او د کفر په مینځ کې او د مسلمان او د کافر په مینځ کې فرق به ختم شي دا لوی نقصان دی، څه عجیبه نه ده چې د دې مجلس ټول شریکان په عذاب کې مبتلاء شي.

(۴)په دنیاوي مصلحتونو کې او داسې قسمه سلوکو کې شرعاً څه طریقه خپله کړل شي؟

**جواب:** دنیاوي مصلحتونه د دین تابع دي، که چیرې څه دنیاوي مصلحت او سلوک سره د دین اصول ماتیږي؛نو داسې مصلحت اوسلوک دې بره په تاخ کې کینبودل شي او لعنت دې پرې ولیږل شي.[3]

# ❖د قرآن کریم عظمت او تلاوت❖

## د وړو ماشومانو له پاره د عمّ پارې ترتیب بدلول جائزدي

**سوال:** په لمونځ کې قرآن بې ترتیبه لوستل (لومړی سورت په پای کې اودویم په اول کې ویل) صحیح نه دي،مګرپه قرآن شریف کې په دیرشمه سیپاره کې دسورت (الناس) نه شروع وشي اوعم باندې خلاص شي،یعنې بې ترتیبه قرآن شریف لیکل شوی دی،چې په اکثرمدرسوکې طالب علمانوته ښودل کیږي،آیا داسې لوستل جائزدي؟

**جواب:** دوړوماشومانودتعلیم له پاره دې چې هغوی دوړوسورتونونه شروع اوکړي.[4]

---

[1] لاَ تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُوْ نَ باللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ يُوَادُّوْنَ مَنْ حَآدَ اللهَ وَرَسُوْلَهُ(المجادلة :۲۲)وقال تعالى :يايها الذين امنوا لاتتخذوا عدوى وعدوكم اولياء تلقون اليهم بالمودة وقد كفروا بما جاءكم من الحق ،،(الممتحنة:۱)

[2] مقتضى كون حبط العمل فى الدنيا والاخرة جزاء الردة وان لم يمت عليها عندنا (شامي ج:۲ص:۷۶)

[3] عن نواس بن سمعان رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :لاطاعة لمخلوق فى معصية الخالق (مشكوة ص:۳۲۱كتاب الامارة والقضاء)

[4] وفى الدرالمختار :الفصل بسورة قصيرة وان يقرأ منكوسا ،وفى الشرح....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

## په قرآن مجید کې د نسخ علی الاطلاق انکار کول ګمراهي ده

**سوال:** جنګ روز نامه راولپنډۍ کې مولانا صاحب د خپلو تاثراتو او مشاهداتو په کالم کې لیکلي دي چې: زه د قرآن حکیم هیڅ یو ایت منسوخ نه منم، زما په خیال کې دا عقیده صحیح نه ده، په دې باره کې ستاسو څه رایه ده؟

**جواب:** زما رایه ستا په شان ده، په قرآن مجید کې د نسخ علی الطلاق انکار کول ګمراهي ده.[۱]

## د قرآن کریم تر ټولو اوږد آیت د سورت بقرې (۲۸۲) ایت دی

**سوال:** په (معلومات قرآن) کې چې عثمان غني ظاهر لیکلی دی، ما لوستي دي چې د قرآن کریم د ټولو نه اوږد آیت، آیت کرسي ده، ایت کرسي کم وبیش په پنځولسنو کې ده، هرکله چې ما قرآن کریم کې یو بل آیت ددی نه هم اوږد لیدلی دی، چې په اوولاینونو کې دی، او دا ایت د سورت الحج پنځم آیت دی، تاسو راته ضرور ووایئ چې د قرآن کریم د ټولو نه اوږ دایت کوم یو دی؟ آیا هغه آیت کوم چې ما په کتاب کې لوستی دی یا هغه کوم چې ما په قرآن کریم کې لیدلی دی؟

**جواب:** د قرآن کریم د ټولو نه اوږد ایت د سوره بقرې (۲۸۲) ایت دی، چې آیت مداینه ورته ویل کیږي آیت کرسی ډیر اوږد نه دی، مګر په شرف او مرتبه کې د ټولو نه اوچت دی، او سید الایات ورته ویل کیږي.[۲]

## په دعا کې قرآني الفاظ بدلول

**سوال:** په قرآن او حدیث کې چې کومې دعاګانې مقرر شوې دي آیا د موقعې په مناسبت سره په دې دعاګانو کې د واحد متکلم په ځای د جمعې متکلم او د جمع متکلم په ځای د واحد متکلم صیغې لوستل صحیح دي؟ آیا قرآني دعاګانو کې له دې ډول بدلون څخه خو تحریف قرآن نه لازمیږي؟

---

...بقیه د تیر مخ].. بان یقرأ فی الثانیة سورة اعلی مماقرأ فی الاولی،لان ترتیب السور فی القراءة واجبات التلاوة وانما جوز للصغار تسهیلا لضرورة التعلیم (الدرالمختارمع الردالمحتار،قبیل باب الامامة ج:۱ص:۵٤۷طبع ایج ایم سعید)۔

۱ ] واتفقت اهل الشرائع علی جوازالنسخ ووقوعه وخالفت الیهود......الخ (روح المعانی ج:۱ص:۳۵۲، طبع بیروت) (النسخ مماخص الله به هذه الامامة لحکم منها التیسیر وقد اجمع المسلمون علی جوازه وانکره الیهود ظنامنهم انه بداء کالذی یری الرای ثم یبدوله وهو باطل (الاتقان فی علوم القرآن ج:۲ص:۲۱طبع مصر ،الفوز الکبیر ص:٤۰طبع قدیمی)۔

۲ ] عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم لکل شیء سنام وان سنام القرآن سورة البقرة وفیها آیة هی سیدة آی القرآن هی آیة الکرسی (ترمذی شریف ،ابواب فضل القرآن، ج:۲ ص:۱۱۱،طبع قدیمی کتب خانه)۔

**جواب:** مناسبه خو داده چې کومې دعا ګانې په کومو الفاظو سره منقولې دي، هغه دې دغه شان پرېښودل شي، بیاهم که چیرې د واحد او د جمعې صیغې بدلې کړي نو هیڅ ګناه نشته، که قرآن کریم د دعا په نیت باندې ولوستل شي؛ نو د دینه مقصود د قرآن کریم د الفاظو حکایت نه دی.[۱]

همدغه وجه ده چې جنب او حائضې ته د قرآني دعاګانو د لوستلو اجازت شته،[۲] په دې وجه په دعا کې قرآني الفاظو کې په تبدیلي کولو سره تحریف نه لازمیږي،خو د قرآن کریم مبارک الفاظ زیات بهتر دي په دې کې د تبدیلي کولو هیڅ وجه نشته.

## د لوح محفوظ نه څه مراد دي؟

**سوال:** ام الکتاب او لوح محفوظ دواړه جدا جدا کتابونه دي یا د یو کتاب دوه نومونه دي؟

**جواب:** په ظاهره دواړه له یو شي نه عبارت دي، ددې علم الله تعالی ته دی ،کاتب هم د قدرت قلم دی.[۳]

## قرآن کریم مجهول لوستل صحیح نه دي

**سوال:** په موجوده وخت کې اکثر خلک یاخو قرآن مجهول لولي یایې دتجوید نه پرته یې لولي ددوی د لمونځونو او د قرآن د تلاوت معامله به څه وي؟

**جواب:** قرآن کریم د امکان تر حده پورې صحیح لوستل واجب دي او غلط لوستل ناجائز دي[۴] او که چیرې د کوشش باوجوددچا تلفظ صحیح نه وي؛ نو هغه معذور دی او که چیرې د صحیح لوستلو کوشش هم نه کوي نو ګناهګار به وي،باقي لمونځ او تلاوت د فقهي حکم مطابق نه قبلیږي، نور که الله تعالي رحمت وکړي نو دهغه مغفرت وسیع دی.[۵]

---

[۱] حتی لوقصد بالفاتحة الثناء فی الجنازة لم یکره الا اذا قرأ المصلی قاصدًا الثناء فانها تجزیة لانها فی محلّها ،فلا یتغیر حکمها بقصده....الخ،وفی الشامیة:ان القرآن یخرج عن القرانیة بقصدغیره(ردالمحتار علی الدر المختار ج:۱ص:۱۷۳)

[۲] ویحرم به تلاوة القرآن ولو دون آیة علی المختار ،وفی الشامیة :قراء الفاتحة علی وجه الدعاء اوشیئًا من الآیات التی فیها معنی الدعاء ولم یرد لقراءة لاباس به (شامی ج:۱ص:۱۷۲،ارکان الوضوء مطلب یوم عرفة افضل من یوم الجمعة)

[۳] وتفسیر ام الکتاب بعلم الله تعالی مما رواه عبدالرزاق وابن جریر عن کعب رضی الله عنه ،والمشهورانها اللوح المحفوظ قالوا:وهو اصل الکتاب اذا مامن شیء من الذاهب والثابت الا وهو مکتوب فیه کماهو (روح المعانی ج:۱٤ص:۱۷۰،سورة الرعد الآیة :۳۹)

[۴] ورتل القران ترتیلاً (المزمل:٤)

[۵] وکذا من لایقدر علی التلفظ بحرف من الحروف ......وذلک کالرحمن الرهیم والشیتان الرجیم ......فکل ذلک حکمه مامرمن بذل الجهد دائما والا فلا تصح الصلاة....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه..

## جامع القرآن څوک دی؟

**سوال:** جامع القرآن څوک دی،حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) یا حضرت عثمان (رضي الله عنه)؟

**جواب:** قرآن کریم دحضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په زمانه کې پوره لیکل شوی او حضرت ابو بکر رضي الله عنه په یو ځای باندې جمع کړی دی او حضرت عثمان (رضي الله عنه) خلکو ته په یو قرات باندې جمع کړی دی.[۱]

## د قرآن د تلاوت په دوران کې خبرې کول

**سوال:** د یوڅو دوستانو په محفل کې په مختلفو موضوګانو باندې بحث کیږي او په دې وخت کې څوک د قرآن کریم تلاوت په اوچت آواز سره کوي او بیا خبرې شروع کړي او په محفل کې شور شروع جاري وي اوبیا یو سړی یو آیت تلاوت کړي، دغه شان دا سلسله جاري وي: نو په داسې صورت کې تلاوت جائز دی؟

**جواب:** د داسې ملګرو په مجلس کې شرکت نه دی پکار، دسړي سره لږ وخت وي، فضول ضائع کول یې نه دي پکار.[۲]

## د قرآن پاک د لوستلو طریقه

**سوال:** زه د اتم ټولګي (کلاس) طالب العلم یم، ما د قرآن پاک د لوستلو بار بار کوشش وکړ، خو د ننه پورې د (یسرنا القرآن) نه مخکې نه شم لوستلی، زما بدنصیبي دا ده چې ما قرآن پاک نه دی ویلی څو ځله مې شروع کړ،خو یو څو ورځې پس یې پریږدم په دې وجه مې قرآن نه دی ویلې، تاسو ته درخواست دادې چې ما ته د قرآن پاک د لوستلو طریقه وښایئ!

**جواب:** قرآن پاک په مسجد کې د قاري صاحب نه شروع کړه تر څو پورې چې پوره شوی نه وي تر هغه وخته پورې یې وایه!

...بقیه د تیر مخ]... به (شامی ج:۱ص:۵۸۲،باب الامامة مطلب فی الالثغ ،شامی ج:۱ص:۶۳۰،باب الامامة ،مطلب فی زلة القاری)

[۱] وقدکان القرآن کتب کله فی عهدرسول الله صلی الله علیه وسلم لکن غیر مجموع فی موضع واحد ولا مرتب السور_قال الحاکم فی المستدرک جمع القرآن ثلاث مرات احداها بحضرة النبی صلی الله علیه وسلم ......الثانية بحضرة ابی بکر...... قال الحاکم والجمع الثالث هو ترتیب السورفی زمن عثمان ......الخ (الاتقان فی علوم القرآن ص:۵۷،۵۹)

[۲] عن عمرو بن میمون الاودی قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لرجل وهویعظه: اغتنم خمسا قبل خمس شبابک قبل هرمک ،وصحتک قبل سقمک ،وغناک قبل فقرک ، وفراغک قبل شغلک ،وحیاتک قبل موتک ،رواه الترمذی مرسلاً (مشکوة ص:۴۴۱،کتاب الرقاق الفصل الثانی)

## دقرآن مجيد لوستل فرض دي او که سنت

**سوال:** مولانا صاحب! پوښتنه دا ده چې د قرآن لوستل فرض دي او که سنت؟

**جواب:** په لمانځه کې يې لوستل فرض دي او دلمانځه نه بهر تلاوت کول فضيلت، برکت او نور دی.[1]

## آيا په قرآن مجيد کې په اعراب لګولو سره تحريف وشو؟

**سوال:** دحجاج بن يوسف په زمانه کې په قرآن باندې اعراب لګول شوی دی؛ نو آيا دا په قرآن کې تحريف نه دی؟

**جواب:** اعراب خو د مخکې نه هم ويل کېده. خو د عوامو د صحيح لوستلو د پاره اعراب لګول مثلاً: الحمد خو اول هم صحيح ويل کيده، مګرد عوامو د سهولت د پاره په دې باندې زبر زير ولګول شو.[2]

## د قرآن مجيد اووه منزله څنګه لوستل پکار دي؟

**سوال:** د قرآن مجيد اووه منزله دي، ددې څنګه لوستل پکار دي؟

(۱) يو منزل د سحر نه تر ماښام څلورو بجو پورې ختمول پکار دي. (۲) کله چې منزل شروع کړي، نو په يو ځای په ناسته باندې ولوستل شي، د پاڅيدو اجازت نشته؟

**جواب:** قرآن مجيد چې څومره په سهولت سره وي لوستلی شی، په يو ځای باندې د لوستلو هيڅ پابندي نشته.[3]

## قرآن مجيد ښکلول

**سوال:** د قرآن مجيد ښکلول څنګه دي؟ ځينې خلک دېته بدعت وايي.

**جواب:** هيڅ ګناه نشته.[4]

---

[1] فاعلم ان حفظ ماتجوزبه الصلاة فرض عين على كل مكلف وحفظ فاتحة الكتاب وسورة واجب وحفظ سائرالقرآن فرض كفاية (حلبي كبيرص:٤٩٥،تتمات فيمايكره من القرآن في الصلاة ومالايكره في القراءة ..الخ)

[2] وجاز تحلية المصحف ......وتعشيره ونقطه اى اظهار اعرابه وبه يحصل الرفق جدًا خصوصًا للعجم فيستحسن وعلى هذا لاباس بكتابة اسامى السور وعد الآى وعلامات الوقف ونحوها فهى بدعة حسنة (الدرالمختار مع الرد ج:٦ص:٣٨٦،باب الاستبراء وغيره فصل فى البيع)

[3] افضل القراءة ان يتدبرفى معناه حتى قيل يكره ان يختم القرآن فى يوم واحد ولايختم فى اقل من ثلاثة ايام تعظيمًا له ......وندب لحافظ القرآن ان يختم فى كل اربعين يومًا ......من ختم القرآن فى السنة مرة لايكون هاجرًا كذافى القنية . (عالمگيرى ج:٥ص:٣١٧،الباب الرابع فى الصلاة والتسبيح وقراءة القرآن والذكر والدعاء......الخ)

[4] وفى القنية فى باب مايتعلق بالمقابر تقبيل المصحف قيل بدعة لكن....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

## د قرآن مجید ښکلول جائزدي

**سوال:** زموږ د کورمخکې جومات کې یوه ورځ زموږ یوګاونډي دقرآن شریف تلاوت کولو، کله یې چې تلاوت وکړ، نوقرآن شریف یې ښکل کړ، دجومات خزانچي دداسې کولو نه منع کړاوویې ویل چې: قرآن شریف ښکلول پکارنه دي، وضاحت وکړئ چې آیا داسړی صحیح وایي که غلط؟ زه هم چې قرآن شریف ولولم نوښکلوم یې اوزموږ د کورواله هم

**جواب:** دقرآن مجید ښکلول جائزدي.[۱]

## د قرآني حروفو ګوتمه موچې په ګوته وي بیت الخلاء ته مه ځئ

**سوال:** ګزارش دادی چې اکثرخلک قرآني ایات وغیره په ګوتموباندې کنده کوي، مهرباني وکړئ اوموږ ته دا ووایئ چې داګوتمې څنګه په لاس کړل شي چې بیت الخلاء ته تګ وکړل شي؟ یاهغه وویستل شي اوبیت الخلاء ته لاړشي، موږ په ګوتموباندې حروف مقطعات (ص، ن، وغیره) کنده کړي، ددې به باره کې راته ووایئ چې څه مسئله ده؟

**جواب:** په ګوتمه باندې که آیت یاقرآني کلمات کنده وي، نوبیت الخلاء ته یې اوړل مکروه دي ویستل یې پکاردي.[۲]

## په تخته چاک سره لیکل شوي قرآني ایاتونه څنګه وران کړو؟

**سوال:** کله چې په ټولګي (کلاس) کې په توره تخته (بلک بورډ) باندې قرآني ایات ولیکل شي، وروسته هغه وران کړل شي اودهغوالفاظو چاک په ځمکه باندې خپورشي اوهغه زموږ دپښولاندې کیږي ددې وجې نه څه کول پکاردي؟ددې جواب موږ داورکړ چې کله وران شي؛ نوچاک دقرآني آیتونوالفاظ نه وي، هغه خویوازې چاک وي. خو یوکس موږ ته یومثال راکړ اوموږ یې بې جوابه کړوچې ځینی کسان تعویذپه اوبه کې ویلې کړي اوویې څښي، په کاغذباندې خوڅه لیکل شوي وي، خو کله چې هغه اوبه شي؛ نوهغه الفاظ پاتې نه شي بیاخلک هغه ولې څښي؟

---

...بقیه د تیر مخ]..روی عن عمر رضی الله عنه ان کان یاخذ المصحف کل غداة ویقبله ویقول:عهد ربی ومنشور ربی عزوجل ـوکان عثمان رضی الله عنه یقبل المصحف ویمسحه علی وجهه (الدرالمختارمع الرد ج:٦ص:٣٨٤،باب الاستبراء وغیره،فصل فی البیع)

۱ ] روی عن عمررضی الله عنه انه کان یاخذ المصحف کل غداة ویقبله.....وکان عثمان رضی الله عنه یقبل المصحف ویمسحه علی وجهه..الخ (الدرالمختارمع الردالمحتارج:٦ص:٣٨٤،باب الاستبراء وغیره،فصل فی البیع)

۲ ] ویکره ان یدخل فی الخلاء ومعه خاتم علیه اسم الله تعالی اوشیء من القرآن کذافی السراج الوهاج(هندیة ج:١ص:٥٠،الباب السابع فی النجاسة واحکامها)ـ

**جواب:** دا خو ظاهره ده چې دورانولونه وروسته هغه دقرآن کریم الفاظ نه پاتې کیږي،خو بهتر د داده چې هغه چاک دې په لمده کپړه باندې صفا کړل شي.[1]

## زړو مقدسو پاڼو سره څه وکړل شي؟

**سوال:** دقرآن پاک زړو پاڼو باندې څه وکړل شي؟زموږ په لطیف اباد کې یوه داسې واقعه وشوه چې دیوجومات موذن دقرآن شریف زړې پاڼې په یوکنسترکې راغونډې کړې اوویې سیزلې،موذن په خپل فالتووخت کې چولې خرڅوي.او په خپل محنت سره مزدوري کوي.حج یې هم کړی دی او عمره یې هم اداکړې ده اودجومات کارهم په ښه طریقې سره کوي.مګردقرآن پاک پاڼو سیزولوسره دهغه خلاف خطرناکه هنګامه راپورته شوه اوهغه فوري طورسره د جومات نه وویستل شو،روسته بیا پولیسو هم ګرفتار کړ، تاسو راته دشریعت له مخې ووایئ چې واقعي دموذن نه ګناه شوې ده؟دقرآن پاک زړې پاڼې دشریعت له مخې په کوموکومو طریقوسره ضائع کولی شو؟په دې باندې په تفصیل سره رڼاواچوئ!

**جواب:** دمقدسو پاڼو له پاره بهتره داده چې په دریاب یاغیراباد کوهي کې واچول شي.یاپه ځمکه کې خښې کړل شي[2] اودمجبوري په حالت کې دې هغه وسوځول شي اوایره دې په اوبوکې ملاوکړل شي اوهلته دې واچول شي چې څوک پرې پښې کښنږدي، ستا موذن ښه نه دي کړي، خودهغهٔ نه دومره ګناه هم نه ده شوې،چې دومره لویه سزاورکړل شوه.خلک په جذباتوکې دحدودوخیال نه ساتي.

## په اخبارونو او رسالو کې شائع شویو مقدسو پاڼو سره څه وکړل شي؟

**سوال:** عرض اودرخواست مې دادې چې مادجناب صدرپاکستان په خدمت کې هم ددې مفهوم یوه عریضه لیږلې وه چې نن سباپه نشرواشاعت کې ددین کومه ذخیره چې په اخبارونو او رسالو کې راروانه ده، هغه په هرحال ښه اودوخت دضرورت مطابق ده،خو په دې سلسله کې دا اړخ هم دغور وړ دی چې داسې ټول اخبارات چې کله ردي شي اوبازارونوته راشي: نوبیاددې منرکو مضامینو ډیره زیاته بې حرمتي کیږي اول به په جوماتونوکې دڅه اهل

---

۱ ] لومحا لوحًا کتب فیه القرآن واستعمله فی امر الدنیایجوز......الخ (عالمگیریة ج:۵ص:۳۲۲،الباب الخامس) وایضاولوکتب القرآن علی الحیطان والجدران بعضهم قالوا یرجی ان یجوز وبعضهم کرهوا ذلک مخافة السقوط تحت اقدام الناس ......الخ (هندیة ج:۵ص:۳۲۳،الباب الخامس فی آداب المسجد والقبلة والمصحف......الخ)۔

۲ ] المصحف اذا صار خلقًا لایقرأ منه ویخاف ان یضیع یجعل فی خرقة طاهرة ویدفن ودفنه اولی...... المصحف اذاصار خلقًا وتعذرت القراءة منه لایحرق بالناراشارالشیبانی الی هذا فی السیر الکبیر وبه ناخذ کذافی الذخیرة (هندیة ج:۵ ص:۳۲۳، الباب الخامس فی آداب المسجد والقبلة ......الخ ، وایضًا فی الشامیة ج:٦ص:۴۲۲ ،باب الاستبراء)۔

خیر د طرف نه داهدایات اویزان ووچې داسې ردي کاغذونه دې په جومات کې محفوظ کړل شي او دابه په احترام سره ضائع کړل شي، بیاسابقه وزارت مذهبي امورو هم ددې له پاره ځای په ځای کنسترونه ایښي وو، مګراوس داانتظامات په نظرنه راځي، زماپه ناقصه کې اخباراتووغیره ته داهدایات ورکول پکاردي چې هغوی دقرآني آیتونواوحدیثونوسره داهدایات هم لیکي چې دابرخه په ردي کې ورکول ګناه ده. دادې ترې کټ کړل شي اوپه احترام سره دې ختم کړل شي

زما د درخواست په جواب کې ماته دااطلاع راکړل شوه چې خط دضروري کاروایي له پاره دنشر واشاعت وزارت اسلام اباد ته ورلیږل شوی دی، په همدې وخت کې دالفاظودبې حرمتي په باره کې ستاسونه هم سوال وکړل شو اوتاسوجواب ورکړوچې دابې ادبي یومستقل وبال دی. او ددې حل موږ په پوهه کې نه راځي. د حکومت اودټولوخلکودتعاون نه پرته ددې سیلاب نه بچ کیدل ممکن نه دي، ماداخبارنه هغه برخه وشلوله اودغورکولوله پاره مې په خپل خط کې شامله کړه اووزارت نشرواشاعت ته مې ولیږله، جنګ اخبارکراچۍ کې دهدایاتواوکومه فیصله چې شامل شوې ده دهغې تراشي ددې درخواست سره ستاسوپه خدمت کې درلیږم، زماپه خیال په دې مرحله کې چې دعوامونه څه وغوښتل شوچې هغوی دې داسې عبارتونه داسلامي اوشرعی احکامومطابق تلف کوي، په دې کې دعواموله پاره داسلامي اوشرعی احکامووضاحت هم وشي؛ نودعواموکاربه آسان شي اودداسې وضاحت انتظام ستاسوپه شان محترم په مناسب اوصحیح طریقې سره کولی شي چې دثواب دارین نه به خالي نه وي.

**جواب:** په دې سلسله کې څو امورقابل ذکردي:

**اول**.....د اخبارونو او رسالوپه ذریعه دمبارکو نومونو بې حرمتي یو وبایي شکل اختیارکړی دی. له دې وجې حکومت ته هم، اخبار والاووته هم اوعامو مسلمانانو ته هم ددې سنګیني پوره پوره احساس کول پکاردي، عواموته داحساس ورکولوله پاره ضروري دي چې کوم عبارت په سرکاري مراسلوکې ورکړل شوی دی، اخبارونه هغه په مسلسل طورسره شائع کړي.

**دویم**..... په سرکاري طورسره ددې اهتمام کول پکاردي چې داسې منتشرپاڼې چې په کې قابل احترام شیان لیکل شوي وي دهغو دحفاظت له پاره په جوماتونو، رفاهي ادارو او عامو لارو باندې دې کنسترې کیښودل شي اوعواموته دې هدایت وکړل شي چې چاته هم دغه شان قابل احترام کاغذ په لاس ورشي؛ نوهغه دې په دې ډبوکې محفوظ کړي.

**دریم**..... دداسې کاغذونودتلف کولوبهترصورت دادی چې دادې په سمندریادریاب یاپه څه غیر ابادځای کې واچول شي یادې په داسې ځای کې خښ کړل شي، چې دپښولاندې کیږي نه. اوپه آخري درجه کې دې دا وسوزول شي اوایره دې اوبوسره ملاوکړل شي اوپه داسې ځای

کې دې واچول شي چې د بېښولاندې نه شي.[1]

## په اخبارونو کې د قرآني اياتونو اشاعت بې حرمتي ده

**سوال:** په روزنامه جنګ کوئټه کې د يوزوړنادرقلمي قرآن مجيدعکس شائع شوی و،په ليدو بې ډېر زيات خفه شوم چې په کې په سوره قريش کې يولفظ پرېښودل شوی دی «داخبار ټکړه درليږم» لهذا تاسوته درخواست دی چې راته ووايئ چې موږ په غلطي باندې يو؟ داقرآني نسخه څوځو ځله چاپ شوې ده او ډېره پخواني هم ده:نو آيا ترننه پورې دادچادنظرنه هم تيره شوې نه ده چې دايې صحيح کړې واى.لهذاتاسوته درخواست دې چې ددې په باره کې په تفصيل سره جواب راکړئ اوداراته وښايئ چې په اخبارکې قرآني اياتونه چاپ کول دومره ضروري دي چې دهغو ادب اواحترام دې په نظرکې ونه ساتل شي اوچاپ دې کړل شي؟په قلات کې اکثريت د هندوانو کورونه دي،له دې وجې دهرهندوپه لاس کې اخباروي اودهغوی له پاره عامې خبرې اوقرآني آيتونه يوبرابردي.اوموږ مسلمانان ورونه اخبارونه ترکوم حدپورې سنبالولی شو؟

**جواب:** تاسوچې کومه اخباري تراشه(ټکړه) رالېږلې ده، په دې کې آيت واقعي غلط چاپ شوی دی چې دافسوس خبره ده،زه دقرآن مجيددايتونه اوسورتونه په اخبارکې چاپ کول بې ادبي ګڼم.[2]

## په اخبارونوکې دقران ترجمه چاپ کول

**سوال:** په اکثر اخبارونو او رسالو کې مثلاً ،،جنګ،، اخبار کې روزانه په يو دوو صفحو باندې د قرآني آياتونو ترجمې شائع کېږي،د تاسو په علم کې دي چې د قرآن پاک آياتونه يا ترجمې بغيرد اودس نه مسحه کول جائزنه دي، حالانکې ددې اخبارونو د چاپ کيدو نه تر تقسيمولو پورې او د لوستلو نه تراستعمالولو پورې په ټولو مرحلو کې شايد چې د يو بې اودسه لاس ته نه وي لګېدلی،حدخو دادی چې دا واخلي اوپه سړکونو باندې يې خواره کړي او بې اودسه يې ونغاړي، او کور والايې بې اودسه لولي،او څنګه چې يې خوښه وي نو ايږدي يې، په کباړي باندې يې خرڅوي او بيا پکې د خوراک څښاک وغيره شيان تړل کيږي او استعمالوي يې،او په آخر کې په سړکونو باندې په قدمونو کې. بلکې تر دې پورې چې د

[1] قال العلامة الحصكفي رحمه الله الكتب التى لاينتفع بها يمحى عنها اسم الله وملائكته ورسله ويحرق الباقي ولاباس بان تلقى فى ماء جار كما هى اوتدفن وهو احسن كما ف الانبياء (درمختارمع الشامي ج:٦ص:٤٢٣ فصل فى البيع)

[2] لوكتب القرآن على الحيطان والجدران بعضهم قالوا يرجى ان يجوز وبعضهم كرهوا ذلك مخافة السقوط تحت اقدام الناس (هندية ج:٥ص:٣٢٣،كتاب الكراهية ،الباب الخامس فى آداب المسجدو القبلة)_

ګنډګي په ځايونو کې په نظر راځي، عرض دا چې دومره قباحتونه دي چې په دومره لويه پيمانې باندې احتياط کول ډير مشکل دي، آيا په داسې صورت کې ددې قرآني آياتونو يا ددې ترجمې شائع کول به څنګه ګټور او جائز وي ؟ آيا په دې طريقې سره د تبليغ دثواب نه زياته د بې حرمتي ګناه نه لازميږي؟

**جواب:** په اخبارونو کې د قرآني کريم د آياتونو متن چاپ کول واقعي چې بې حرمتي ده [1] که چيرې د دې د حوالې ضرورت وي نو ترجمه دې ورکړل شي،اګر چې ترجمه هم د ادب لائق ده،خو ددې حکمونه د قرآن کريم د متن په شان نه دي او څومره چې ممکنه وي د دې پاڼو د ادب لحاظ ضروري دی. [2]

## قرآن مجيد د الماری په پورتني برخه کې ږدئ

**سوال:** عرض دادی چې ماته يوه کشاله راپيښه شوې ده، زه قرآن مجيد دخپلو کتابونوپه الماری کې په لانديني درازکې ږدموناګهانه زما په ذهن کې خيال راغی چې دصوفې سطح ددراز نه اوچته ده،او نعوذبالله چرته دقرآن مجيدبې حرمتي شوې نه وي؟ دراز بندد ی، مهربانی وکړئ اوماته صحيح ووايئ! زۀ به ستاسوډير منندوی يم.

**جواب:** قرآن مجيدچونکې په الماری کې بندد ی، ددې وجې نه بې حرمتي خونه ده،مګربهتره داده چې دادې اوچت کيښودل شي. [3]

## قرآن مجيد په لانديني منزل کې کيښودل جائزدي

**سوال:** قرآن مجيدپه اوچت ځای باندې کيښودل کيږي،خو که کوردیومنزل نه په زياتو منزلونوباندې مشتمل وي؛ نو ايا په لانديني منزل کې دقرآن مجيد کيښودوسره ددې بې ادبي نه کيږي؟هرکله چې په پورتنومنزلونوکې خلک ګرځي راګرځي، څملی غرض داچې هرکارکوي.

**جواب:** په لانديني منزل کې قرآن مجيد کيښودو کې هيڅ حرج نشته. [4]

---

[1] فتح القدير :وتكره كتابة القرآن واسماء الله تعالى على الدراهم والمحاريب والجدران ومايفرش (شامي ج:١ص:١٧٩،قبيل باب ا لمياه)۰ايضًا ولو كتب القرآن على الحيطان والجدران بعضهم قالوا يرجى ان يجوز وبعضهم كرهوا ذلک مخافة السقوط تحت اقدام الناس كذافی فتاوی قاضی خان (عالمگيری ج:٥ص:٣٢٣)

[2] وكذا ورق الكتابة لصقالته وتقومه ،وله احترام ايضا لكونه آلة لكتابة العلم ولذا علله فی التاتارخانية بان تعظيمه من ادب الدين (شامي ج:١ص:٣٤٠،فصل الاستنجاء ،مطلب اذا دخل المستنجی فی ماءقليل)

[3] حانوت اوتابوت فيه كتب فلاادب ان لايضع الثياب فوقه ......الخ (هندية ج:٥ص:٣٢٤)۔

[4] وقال الاترى انه لووضع فی البيت (القرآن) لاباس بالنوم على سطحه كذا ههنا (الهندية ج:٥ص:٣٢٢)۔

## قرآن مجید باندې کتابچه کېښودل او لیکل کول سخته بې ادبي ده

**سوال:** آیا په قرآن مجید باندې څه کتابچه وغیره کېښودل او په هغې کې لیکل پکار دي؟

**جواب:** ایا یو مسلمان چې په زړه کې یې دقرآن مجیدادب وي په قرآن مجیدباندې کتابچه کېښودی شي او په هغې کې لیکل کولی شي؟![1]

## د قرآن پاک په باره کې د ګستاخانه خیال راتلو شرعي حکم

**سوال:** یوه ورځ ناڅاپه زما په زړه کې د قرآن پاک په باره کې ګستاخانه خیال پیدا شو. ما دا خیال رد کړ، بیا د اسلامي عقیدو او د اسلام د شعائرو خلاف عجیبه قسمه د خیالونو او د ګمراهې والا سلسله شروع شوه،دا شیطاني خیالونه ولې راځي ؟او ددې علاج څه دی؟ خدای دې نه کړي په دې سره زه کافر یا مرتد شوې خو نه یم؟ د توبې به څه طریقه وي ؟

**جواب:** ددې خیالونو راتلل،ستا له لوري بد ګڼل او رد کول د ایمان د کاملوالي نښنه ده. شیطان ډاکو دی او ډاکو په دولتمن کور باندې ډاکه غورځوي. ددې خیالونو هیڅ کله هم پرواه مه کوه! داسې ګڼه لکه سپی چې غپېږي او د،، لاحول ،، په ډنډې سره یې دفع کوه، ان شاء الله هیڅ هم نه شي خرابولی.[2]

## ټي وي کې د قرآن مجید دتلاوت په وخت هغه طرف ته پښې غځول

**سوال:** اکثرموږ په ملاسته باندې په ټي وي څه پروګرامونه ګورو او په دې دوران کې موپښې هم دټي وي طرف ته وي اوتخت دټي وي نه اوچت وي اودقرآن مجیدایاتونه په ټي وي باندې ښودل کیږي نوڅه ګناه یې شته اوکهنه؟اوګناهګاربه څوک وي کتونکي،که دټي وي پروګرام ښودونکي؟

**جواب:** دادیوې نه، بلکې دریو ګناهونو مجموعه ده:۱....ټي وي کتل بذات خودحرام دي.[3]
۲....ددې حرام شي دقرآن کریم له پاره استعمال حرام دی.[4]

---

[1] ويوضع ......المواعظ ثم التفسير(درمختار) قوله ثم التفسير......والمصحف فوق الجميع (درمختارمع الشامی ج:۱ص:۱۷۷، ۱۷۸ ،مطلب يطلق الدعاء على مايشمل الثناء)_

[2] عن ابی هريرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم:ان الله تجاوز عن امتی ماوسوست به صدرها مالم تعمل به اوتتكلم _متفق عليه _وعنه قال :جاء ناس من اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم الى النبی صلى الله عليه و سلم فسالوه :انا نجد فی انفسنا مايتعاظم احدنا ان يتكلم به قال :اوقد وجدتموه؟قالوا :نعم !قال :ذلک صريح الايمان رواه مسلم (مشكوة ص:۱۸،كتاب الايمان، باب الوسوسة ،طبع قديمی)

[3] وكره كل لهو لقوله عليه السلام كل لهو المسلم حرام الاثلاثة ملاعبته اهله وتاديبه لفرسه ومناضلته بقوسه (درمختارمع الشامی ج:٦ص:۳۹۵وايضًا عالمگيرية ج:٥ص:۳۵۲)_

[4] ومن حرمة القرآن ان لايقرأ فی الاسواق وفی موضع اللغو....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

۳..... د قرآن کریم د نقوشو طرف ته پښې غځول بې ادبي ده.[۱]

پروګرام کتونکي او ښودونکي ټول په دې عذاب کې شریک دي.[۲]

## په ژبې سره د قرآن پاک الفاظ اداکول ضروري دي

**سوال:** اکثر په قرآن خواني کې خلک او خاصکر ښځې تلاوت داسې کوي لکه څنګه چې مطالعه کیږي آواز خو پریږده شونډې یې هم نه خوځیږي، په زړه کې یې وایي، که هغوی ته وویل شي؛ نو جواب ملا وشي چې موږ په زړه کې وویلو، که سړیو مو د تلاوت آواز واوریده نو ګناه به وي.

**جواب:** د قرآن مجید د تلاوت له پاره په ژبې سره الفاظ اداکول شرط دي، په زړه کې ویلو سره تلاوت نه کیږي.[۳]

## په ژبه د ویلو نه پرته د تلاوت ثواب نه وي، خو د کتو او تصور ثواب به ورکول کیږي

**سوال:** ځینې خلک د قرآن مجید تلاوت کوي خو شونډې نه خوځوي، په زړه کې خیال کوي او لولي.

**جواب:** تلاوت په ژبې سره د قرآن مجید د الفاظو د اداکولو نوم دی؛ نو څوک چې په ژبې سره و نه وايي او صرف په زړه کې خیال وکړي؛ نو د تلاوت ثواب به ورته نه ملاویږي، یوازې په سترګو سره د کتو او په زړه کې د تصور کولو ثواب به ورته ملاویږي.[۴]

## آیا د ماسختن په لمانځه کې لوستلو سره به د شپې د سورتونو فضیلت حاصل شي؟

**سوال:** د ماسختن د لمونځ نه وروسته لوستلو والا سورتونه، تبارک الذي، الم سجده که

---

...بقیه د تیر مخ]... كذافى القنية (هندية ج:٥ ص:٣١٦،الباب الرابع فى الصلاة والتسبيح..الخ، وايضًا فى كفاية المفتى، شپاړسم باب. ریډیو او لاوډ سپیکر، ج:٩ ص:٢١٨ طبع درالاشاعت)

١ ] ويكره ....مد رجليه ......الى مصحف ......الخ (درمختارمع الشامى ج:١ص: ٦٥٥طبع ايچ ايم سعيد)

٢ ] عن جرير قال:كنافى صدر النهارعند رسول الله صلى الله عليه وسلم ......فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم ......ومن سن فى الاسلام سنة سيئة كان عليه وزرها و وزرمن عمل بها من بعد من غير ان ينقص من اوزارهم شيء، رواه مسلم (مشكوة ص:٣٣،كتاب العلم ،الفصل الاول طبع قديمى)۔

٣ ] وكذا لاتجب بالكتابة او النظر من غير تلفظ لانه لم يقرأ ......الخ (كبيرى ص: ٥٠٠طبع سهيل اكيدمى لاهور ،وايضًا فى الهندية ج:١ص:٦٩)۔

٤ ] لان القراءة فعل اللسان (مراقى الفلاح شرح نورالايضاح ص:١٢٢)،وقراءة القرآن فى المصحف اولى من قراءة عن ظهر القلب لما روى عبادة بن صامت رضى الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم انه قال:افضل عبادة امتى قراءة القرآن نظرًا ولان فيه جمعًا بين العبادتين وهوالنظر فى المصحف وقراءة القرآن (فتاوى خانية على هامش الهندية ج:١ص:١٦٢،الباب الحادى والعشرون فى الجنائز)۔

چيرې د لمونځ په دوران کې ولوستل شي نو آيا هغه فضيلت چې کوم د لمونځ نه علاوه په ويلو سره ملاويږي حاصل به شي؟
**جواب:** حاصل به شي.

## تبارك الذي او سورت يس په آواز سره لوستل

**سوال:** زما د لور عمر (۲۴) کاله دی. د (۱۱) کالو د عمر نه پنځه وخته لمونځ، سورت يس، سورت تبارک الذي روزانه وايي، د (۱۷) کالو په عمر کې د دې په غوږونو کې آواز راځي چې د هغې په وجه ورته ډير تکليف وي، ځينې خلک وايي چې دا د داسې لوستلو اثرات دي. مهرباني وکړئ او ووايئ چې ماشومه دا دوه سورتونه وايي او که نه؟
**جواب:** ماشومه دې دا دوه سورتونه په آواز سره نه وايي، بلکې داسې دې وايي چې په لوستلو کې آواز نه راځي.

## د تلاوت له پاره هر وخت صحيح دی

**سوال:** دلته په سعودي عرب کې د اذان نه وروسته او دهرې جمعې لمانځه نه مخکې اکثر خلک دقرآن پاک تلاوت کوي، دجمعې په ورځ همدغه شان وي، ايا دورځې دځه خاص وخت خيال ساتلونه بغير داسې عمل کول صحيح دي؟
**جواب:** دقرآن کريم تلاوت دورځې شپې په هيڅ وخت کې منع نه دی، هر وخت تلاوت کيدای شي.

## د لمر راختلو په وخت کې تلاوت جائز دی

**سوال:** کله چې دلمر د راختلو وخت وي، نو هغه وخت کې لمونځ کولو نه منع شوې ده، آيا په دې وخت کې دقرآن مجيد تلاوت کولی شو او که نه؟
**جواب:** دغه وخت کې دقرآن مجيد تلاوت جائز دی.[۱]

## د زوال په وخت کې دقرآن پاک تلاوت او ذکر کول جائز دي

**سوال:** دقرآن خواني په باره سوال دا و چې ديو کس دمرګ نه وروسته په دويمه ورځ يا په بله څه ورځ قرآن خواني کيږي، يو صاحب وويل چې اوس دقرآن خواني وخت نه دی، دزوال وخت کيدونکی دی. آيا په دې وخت کې قرآن خواني کيدای شي؟
**جواب:** دزوال په وخت کې دقرآن کريم دتلاوت او نورذکر اذکار جائز دي، له دې وجې داويل غلط دي چې اوس دقرآن خواني وخت نه دی[۲]، بلکې داجدا بحث دی چې نن سبا دقرآن خواني

---

۱ ] وتستحب القراءة عندالطلوع اوالغروب...... الخ_(درمختارمع الشامی ج:٦ص:٤٢٣)_
۲ ]وتستحب القراءة عندالطلوع اوالغروب ......الخ (درمختارمع الشامی ج:٦ص:٤٢٣)_

رواج دی په هغه کې خلکو ډیر غلط شیان شامل کړي دي.

## له مازدیګره ترماښامه د تلاوت او تسبیح له پاره بهترین وخت دی

**سوال:** د مازدیګر نه واخله ترماښام پورې قرآن پاک لوستل پکار دي او که نه؟ ویل کیږي چې دا د زوال وخت وي.؟

**جواب:** د مازدیګر نه واخله ترماښام پورې وخت خوډیر مبارک دی، په دې وخت کې ذکر او تسبیح او تلاوت قرآن پاک کې مشغولیدل ډیر خوښ عمل دی.[1]

## د قرآن پاک د تلاوت غوره وخت

**سوال:** د قرآن پاک د تلاوت غوره وخت کوم یو دی؟ تقریبا دیوکال مخکینی خبره ده، زما په زړه کې د قرآن د تلاوت او لمونځ کولو ډیر زیات شوق راپورته شو، د ژمي ورځې وې، ورې، ټول وخت به په کارکې مشغول وم، د لمونځ وخت خو به راته ملاویده خو قرآن به مې عموماً د شپې یولسو دولسو بجو په وخت کې تلاوت کولو، د ترجمې سره به یې ماته ډیر خوند راکولو، ځکه چې د شپې وخت ډیر پرسکون وي، په پوهې سره لوستل ډیره مزه کوي، خو چې په دې پوه شوم نو ډیر زیاته خفه شوم چې یوه ورځ زما خاوند وویل بلکې ډیرزیات ناراضه شو چې دا کوم وخت دی؟ خدامې کړه دې وخت کې کونډې ښځې تلاوت کوي؟ ته ماسپښین یا سحر وختی تلاوت کوه. زما خاوند په خپله د قرآن حافظ او د دیني علومونه خبردی، د هغه د خولې نه چې مې دا واوریدل نو ډیره زیاته خفه شوم چې زما خاوند زما د قرآن پاک د لوستلو غلط مقصد باسي. هر کله چې زما په زړه کې هیڅ داسې خیال نه و، نه ماته پته وه چې زه په دې وخت کې تلاوت وکړم؛ نو خلک به په مونږ ښځه خاوند کې بې اتفاقي وګڼي نه مې دامقصدو چې زما آواز دې ګاونډیان واوري او ما دې ډیره نیکه وګڼي، زه خو ځان په خپله ډیرزیات ګناه ګاره ګڼم، په هرحال د هغې ورځې نه داسې وشوچې د لمونځ، روژې طرف ته مې زړه نه راغب کیږي، د دنیا په کارونو کې لګیایم، خو خپل ضمیرمې ډیره ملامته کوي، د مرګ تصور مې هیڅ وخت کې نه کمیږي.

**جواب:** ستا د خاوند دا وینا خو یوه لطیفه ده چې په دې وخت کې کونډې ښځې تلاوت کوي، هسې دا خیال ساتل ضروري دي چې زمونږ د طرز عمل نه بل ته تکلیف ونه رسیږي، دیولسو بجو وخت عموماً د ارام وخت وي او په دغه وخت کې ستا تلاوت کولو سره د نورو په ارام کې خلل راتلی شي. ستاسو له پاره مناسب دادي چې د کار ختمولو او ماسخوتن لمونځ کولو نه وروسته زر ویده کیږه، په آخری شپه کې راپاځه او تهجد کولو نه وروسته د قرآن کریم تلاوت کوه

---

[1] تستحب القراءة عندالطلوع او الغروب (درمختار)واقتصرعليه فى ا لقنية حيث قال الصلوة على النبى صلى الله عليه وسلم والدعاء والتسبيح.افضل من قراءة القرآن فى الاوقات التى نهى عن الصلاة فيها (شامى ج:٦ص:٤٢٣)_

(اوښځو ته پکاردي چې آواز کم ساتي په دومره لوړ آواز سره نه چې د نامحرمو تر غوږو پورې ورسيږي) په ژمي کې به درته ان شاء الله ډيروخت ملاويږي او په ګرمي (دوبي) کې که درته په دغه وخت کې د تلاوت وخت ملاونه شي؛ نود سحر د لمونځ نه وروسته يې کوه. داموزون ترين وخت دی او تاچې کوم څه ليکلي دي چې يوه ورځ ستاخاوند ستا د بې وخته تلاوت په وجه تاته خبرې کړې وې د هغې ورځې نه پس دې لمونځ او تلاوت طرف ته زړه نه راغب کيږي. د دې نه ستا د نفس غلامعلوميږي. څکه که تالمونځ او تلاوت د الله تعالى د رضا له پاره کولو: نواوس ته دومره بې رغبته ولې شوې؟معلوميږي چې په دغه وخت کې تلاوت کولو کې ستا د نفس څه مکريټ و، د دې نه توبه وکړه ، که څه هم رغبت دې وي او که نه وي د لمونځ او تلاوت اهتمام کوه، مګر بې وخته نه.[1]

## قرآني آيتونو والا کتاب ته بې اودسه لاس وروړل

**سوال:** په اقراء ډائجسټ کې قرآني آيتونه او د هغو ترجمه ليکل شوې وي، مهرباني وکړئ او دا وضاحت وکړئ چې د دې مطالعه له اوداسه پرته کيدای شي؟ همدغه شان څه نور کتابونه او يا اخبار په کوم کې چې د قرآني آيتونو ترجمه يا احاديث نبوي ﷺ او د هغو ترجمه ليکل شوې وي، بې اودسه لوستل کيدای شي او که نه؟

**جواب:** ديني کتابونه چې په هغو کې آيتونه درج وي، بې اودسه ورسره لګولی شئ ،مګر د آيتونو په ځای لاس مه لګوئ![2]

## بې اودسه قرآن شريف لوستل جائز دي خو لاس ورسره لګول جائز نه دي

**سوال:** د قرآن شريف د نيولو له پاره يا په لاس کې د اخيستلو له پاره يا د ځه دايت کتلو له پاره اودس کول ضروري دي او که نه؟ ځکه چې انسان بغير د اودس نه هم پاک وي، شايد چې د قرآن شريف د پاسه کوم آيت درج وي، دغه مفهوم همدغه شان دی چې پاک خلق دې کتاب سره لاس لګوي ، اميد لروچې زمونږ رهنمايي به وکړئ!

**جواب:** بې اودسه قرآن شريف لوستل جائز دي[3]، خو لاس لګول ورسره جائز نه دي.[4]

---

[1] وفى الفتح عن الخلاصة:رجل يكتب الفقه وبجنبه رجل يقرأ القرآن فلايمكنه استماع القرآن فالاثم على القارى وعلى هذا لوقرأ على السطح والناس قيام يأثم اه_اى لانه يكون سببًا لاعراضهم عن استماعه او لا نه يوذيهم بايقاظهم تامل (ردالمحتار ج:١ص:٥٤٦ باب صفة الصلاة فروع فى القراءة خارج الصلاة ،طبع ايچ ايم سعيد)

[2] وفى السراج عن الايضاح ان كتب التفسيرلايجوز مس موضع القرآن منها وله ان يمس غيره وكذا كتب الفقه اذاكان فيها شيء من القرآن..الخ (شامى ج:١ص:١٧٦،وايضًا حاشية طحطاوى على مراقى الفلاح ص:٧٧)

[3] اوبياح له قراءة القرآن لما روى ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان لايحجزه عن قراءة القرآن شيء الا الجنابة (البدائع الصنائع ج:١ ص:٣٤كتاب الطهارة ،مطلب مس المصحف)_

[4] لايجوز للمحدث....مس المصحف من غير غلاف.....الخ ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

## د استاذ له ويرې د ناپاکي باوجود د قرآن د لوستلو كفاره

**سوال:** زه به يوې مدرسې ته د حفظ له پاره تلم، يوه ورځ چې زه ناپاکه وم د استاذ د ويرې نه مې د ناپاکي په حالت کې قرآن مجيد هم لوستلو، ددې ورځې نه وروسته په بيماري کې مبتلا شوم، يو کال وشو، علاج جاري دی، خو هيڅ فرق نه کيږي، ددې کفاره څه ده؟

**جواب:** د الله تعالی ته په رينښتوني زړه توبه اوباسه، د الله تعالي نه د صحت دعا وغواړه، درې څله سورة فاتحه ووايه او خپل ځان پرې دم کړه، الله تعالي به صحت در کړي، د ناپاکي په حالت کې په ژبې سره تلاوت مه کوه بلکه په زړه کې يې وايه، يعنې د ژبې د خوځولو نه پرته او قرآن مجيد په کپړې سره نيسه او په څه شي سره پاڼه اړوه![1]

## قرآن مجيد بې اودسه مسحه كول

**سوال:** په کراچۍ کې يو صاحب د قرآن پاک درس کوي دقرآن متعلق دده معلومات هم ډير دي، دده وينا ده چې د قرآن پاک د ويلو د پاره اودس ضروري نه دی، کله چې ستا زړه غواړي، کله چې تاته وخت ملاو شي، لوستلی يې شي اصل احترام خو په زړه کې وي، دده وينا ده چې قرآن پاک په کاغذ باندې ليکل شوی دی، اخبار هم په کاغذ باندې ليکل کيږي، دايوازې دملايانو خلکو ته د قرآن نه د لرې کولو خبرې دي، د قرآن او دحديث په رڼا کې جواب راکړئ"

**جواب:** په قرآن کې دي: «لَايَمَسُّه اِلَّا الْمُطَهَّرُون» په دې وجه دا سړی غلط وايي.[2]

## د ناپاکۍ په حالت کې دقرآن په لاس کې اخيستلو كفاره

**سوال:** قرآن مجيد په داسې حالت کې په لاس کې اخيستل يا پورته کول چې کله غسل فرض وي دا گناه به د توبې سره معاف شي که کفاره به هم اداء کول وي؟

**جواب:** د ناپاکي په حالت کې قرآن مجيد ته له جامې پرته نه لاس لگول کبيره گناه ده، که چيرې داسې ضرورت راپيښ شي؛ نو په يوې پاکې کپړې سره قرآن پاک اوچتول پکار دي[3] ددې کفاره توبه او استغفار دی، د الله تعالي نه معافي غواړه او آئنده دا ناجائز کار مه کوه.

---

...بقيه د تير مخ]. (بدائع الصنائع ج:۱ص:۳۳، كتاب الطهارة، مطلب مس المصحف .وايضًا فى الشامية ج:۱ص:۷۳، وفى الهندية ج:۱ص:۳۸،الباب السادس فى الدماء المختصة بالنساء)

[1] ولايجوز للحائض ولا جنب قراءة القرآن ......ولايجوز لمحدث مس المصحف ......الا ان ياخذه بغلافه او بعلاقته ......الخ ( الجوهرة النيرة ج:۱ص:۳۰،باب المسح على الخفين)

[2] الواقعة :۷۹_

[3] ومنها حرمة مس المصحف لايجوز لهما وللجنب والمحدث مس المصحف الا بغلاف متجاف عنه كالخريطة (عالمگيري ج:۱ص:۳۹ ،الباب السادس فى الدماء المختصة بالنساء)

## نابالغه ماشومان بې اودسه قرآن شریف سره لاس لګولی شي

**سوال:** واړه ماشومان هلکان جینکۍ په جومات کې سبق وایي،د متیازو کولونه وروسته اودس نه کوي،بې اودسه قرآن سره لاس لګوي،دمعلم ویناده چې ترڅوپورې په ماشوم باندې لمونځ فرض شوی نه وي، هغه بې اودسه قرآن شریف سره لاس لګولی شي،د څلورو پنځو کالو ماشومان بار بار متیازوته ځي اوهوایې خارجیږي، دهغوی له پاره هرپنځه شپږ مینټه پس اودس کول ګران کار دی،پوښتنه داده چې ترکوم عمرپورې ماشومان بې اوسه قرآن سره لاس لګولی شي؟

**جواب:** په وړوماشومانوباندې اودس فرض نه دی،دهغوی اودسه قرآن مجیدسره لاس لګول صحیح دي.[1]

## قرآن مجید دې که مخکې نه وی ویلی اوس یې ویلې شي

**سوال:** قرآن مجید یوازې په عربۍ ژبه کې ویلوسره ثواب حاصلیدای شي اوکه په اردو ژبه کې ترجمه وویل شي، بیاهم ثواب حاصلیږي ؟ ځکه چې ماته عربي نه راځي.

**جواب:** قرآن په عربي کې دی،[2] اردوکې به خوددې ترجمه وي او دهغې ثواب دقرآن پاک دتلاوت ثواب نه دی،تاکه قرآن مجیدویلی نه وي؛ نواوس یې هم ویلی شې.

## که زړه لګیږي یا نه قرآن شریف ویل پکاردي

**سوال:** زه دقرآن شریف تعلیم حاصلوم دالله تعالی شکردی چې ما تر اوسه پورې ۱۹سیپارې ویلي دیي اواوس مې په ویلوکې زړه نه لګیږي تاسوراته یوه وظیفه وښایئ ستاسوبه ډیره مهرباني وي چې په هغې زه عمل وکړم اوتعلیم حاصلولوکې مې زړه ولګیږ.دلمونځ نه وروسته دعاکوم چې اې زماربه!زماپه علم کې اضافه وکړه!

**جواب:** ځینې کارونه داسې وي چې که زړه دې غواړي یانه غواړي هغه به ضرورکوې، مثلا: دواء (درمل) خوړل زړه نه غواړي، مګردصحت دخیال له وجې خوړل کیږي،همدغه شان قرآن مجیدهم دباطني صحت له پاره دی، که زړه دې ورسره لګیږي یانه، لګیااوسه وایه ان شاءالله زړه به دې هم ورسره ولګیږي.[3]

---

۱] قوله ولایکره مس صبي .....الخ. فيه ان الصبي غیرمکلف....الخ (شامي ج:۱ص:۱۷٦طبع ایچ ایم سعید)

۲ ] د زیات تفصیل اوحوالو دپاره اوګورئ: په راتلونکو صفحو کی عنوان ``د امریکایانو د قرآن مجید په تلاوت باندی اشکالات او جوابات،، سره د حاشیې)۔

۳ ] وقوله ان الذی لیس فی جوفه شیء من القرآن کالبیت الخرب یعنی عمارة القلوب بالایمان والقرآن وذکرالله فمن خلا قلبه من هذه الاشیاء فقلبه خرب لاخیر فیه ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

## قرآن مجيد په غلاف کې کېښودل او ډېر وخت نه ويل موجب وبال دی

**سوال:** نن سبا داعامه خبره ده چې دقرآن مجيدتلاوت نه کيږي. قرآن مجيدپه کورونو . هوټلونو اودکانونوکې په اوچت ځای په نظرراځي،په غلاف يې ښې ډيرې خاورې دوړې پرتې وي، ايا قرآن مجيدپه داسې ځايونوکې کېښودل جائزدي ؟

**جواب:** قرآن مجيدپه اوچت ځای کې کېښودل پکاردي باقي ترمودو مودو پورې دتلاوت نه کول دشرم وړ اوموجب وبال ده.[۱]

## د قرآن مجيد تلاوت نه کولووالا د دلوی نعمت نه محروم دی

**سوال:** که کوم کس دقرآن مجيدتلاوت نه کوي؛ نوهغه دګناه مرتکب کيږي خونه؟

**جواب:** دقرآن مجيدتلاوت نه کولوواله ګناه ګارخونه دی، مګردیوعظيم الشان نعمت نه محروم دی.

## د سګريټ څکلو سره د قرآن مجيد مطالعه کول يا ترجمه لوستل خلاف ادب دي

**سوال:** يوکس دقرآن حکيم مطالعه په معنا دپوهيدوله پاره کوي،داردو په مددسره هغه الفاظ او عبارت باندې دپوهيدوکوشش کوي او په دې دوران کې سګريټ څکي،دهغه دافعل ترکومې پورې صحيح دی؟ آيا هغه دسګريټ څکلودګناه مرتکب کيږي هرکله چې چليم څکلو سره اودس نه ماتيږي؟

**جواب:** سګريټ ياچيلم څکلوسره اودس نه ماتيږي،خو کوم کس چې دقرآن حکيم ددومره احترام کولونه هم خالي دی هغه ته به قرآن فهمي خاورې نصيب شي؟بيابه هغه بې چاره په ترجمه څه پوهه شي؟ ,,اناللہ وانااليه راجعون،،

## د ويده کيدو په وخت کې آيت اکرسی ويلو کې بی ادبي نشته

**سوال:** ايت کرسی زه دشپې وايم اويده کيږم،خو په ځينې وختونوکې داسې وشي چې کله څملم نوراته رايادہ شي،په ملاسته ويلوکې بې ادبي خونشته؟ضرور راته ووايئ!

**جواب:** په ملاسته ويل جائزدي، بې ادبي نه ده.[۲]

---

...بقيه د تېر مخ]... (التعليق الصبيح على المشكوة المصابيح ،باب فضل القرآن الفصل الثانی ج:۳ص:۱۵)۔

۱ ] ايضاً پورتنی حاشيه اوګوری)۔

۲ ] ولوقرأ مضطجعًا فلاباس ......الخ (فتح القدير ج:۱ص:۲۴۲)۔

## تلاوت کونکي ته دې نه څوک سلام کوي او نه دې هغه جواب ورکوي

**سوال:** کله چې يو کس د قرآن پاک تلاوت کوي په داسې حالت کې په هغه سلام اچول کيدای شي يا نه؟ او که سلام وکړل شي؛ نو آيا په هغه باندې د سلام جواب ورکول واجبيږي؟

**جواب:** په هغه دې سلام نه اچول کيږي[۱] او د هغه په ذمه د سلام جواب ورکول هم ضروري نه دي.[۲]

## د هر تلاوت کونکي له پاره پوهيدل ضروري دي چې چېرته ودريږي؟ او چېرته نه؟

**سوال:** د قرآن پاک رموز اوقاف اداکول آيا په هر مسلمان باندې فرض دي او يوازې د قاريانو له پاره ضروري دي.

**جواب:** په کوم لفظ باندې، څنګه وقف وکړل شي؟ اوچېرته وقف ضروري دی اوچېرته نه؟ په دې خبره باندې پوهيدل د هر تلاوت کونکي له پاره ضروري دي اوداډير ګران نه دي؛ځکه چې په قرآن پاک کې د دې علامات لګيدلي وي، باقي د فن په باريکيو پوهيدل د ماهرينو کار دی.[۳]

## په جوماتکې د قران پاک د تلاوت اداب

**سوال:** په جوماتکې چې خلک په لمونځ اوذکر کې مشغول وي؛ نو آيا تلاوت په لوړ آوازسره کول جائز دي؟

**جواب:** په دومره لوړ آواز سره تلاوت کول جائز نه دي چې د چا په لمونځ کې خلل پريوځي.[۴]

## که يو کس قرآن پاک لولي نو آيا اوريدل يې ضروري دي؟

**سوال:** مولانا صاحب! زه په خپله په دې مياشت کې لمونځ او تلاوت کوم، د کور ټول کسان مو په دې باندې عمل کوي، سوال دا دی چې په کور کې هر کله چې تقريبا ټول کسان په لوړ آواز سره

---

۱ ] يكره السلام على العاجزعن الجواب حقيقة كالمشغول بالاكل او الاستفراغ ،اوشرعًا كالمشغول بالصلاة وقراءة القرآن،ولوسلم لايستحق الجواب ....الخ (شامى ج:١ص:٦١٧،مطلب المواضع التى يكره فيها السلام)

۲ ] وفى شرح الشرعة :صرح الفقهاء بعدم وجوب الرد فى بعض المواضع ......وسلام السائل ،والمشتغل بقراءة القرآن ،والدعاء حال شغله......الخ (باب مايفسد الصلاة ومايكره فيها ،مطلب المواضع التى لايجب فيها ردالسلام)

۳ ] ورتل القرآن ترتيلاً (المزمل :٤) _اى اقراه على تمهل فانه يكره عونا على فهم القرآن وتدبره (تفسيرابن كثيرج:٦ص:٣٢٩،ايضًا احسن الفتاوى ج:١ص:٨٦)_

٤ ] لايقرأ جهراً عندالمشتغلين بالاعمال ......الخ (هندية ج:٥ص:٣١٦،كتاب الكراهية ،الباب الرابع فى الصلاة والتسبيح وقراءة القرآن والذكر والدعاء ورفع الصوت عندقراءة القرآن)_

قرآن پاک لولي؛ نو آیا مونږ هغه واورو یا څه ذاتي او دنیاوي کارونه هم هغه وخت کولی شو؟ زه په ډیرشش وپنځ کې مبتلا کیږم چې آخر د قرآن حکیم د تلاوت په دوران کې ترکومې پورې کارونه ونه کړم..؟ امیدلرم چې تاسو به مې مدد وکړئ او ماته به جواب راکړئ، زما د قرآن پاک سره ډیر زیات محبت دی ،زه په خپله هم وایم ،مګر ما یو حدیث لوستلی دی چې دا تر هغې پورې لولئ پر کومې پورې چې زړهٔ غواړي.

**جواب:** کوم کس چې ځانته قرآن پاک وایي دهغې اوریدل واجب نه دي او کورو الوله پاره دابهتره ده چې په کم آواز سره وایي.[1]

## په سورت توبه کې بسم الله الرحمن الرحیم لوستل

**سوال:** .د قرآن مجید په سورتونو کې یوازې دیوه سورت توبه په شروع کې بسم الله الرحمن الرحیم نشته، که یو کس بغیر د بسم الله نه د سورت توبه تلاوت وکړي او په مینځ کې ودریږي او په دویمه ورځ هم د هغه ځای نه تلاوت شروع کړي؛ نو بسم الله ویلی شي او که نه؟

**جواب:** سوره برات(توبه)په شروع کې د بسم الله نه لیکلو وجه د حضرت عثمان رضي الله عنه نه منقوله ده چې: ددې سورت مضامین چونکې ددې نه مخکې سوره انفال په شان دي ددې وجې نه زمونږ خیال راغی چې دا د سورت انفال برخه نه وي، احتمال جزئیت په وجه سره بسم الله ونه لیکل شوه اود مستقل سورت کیدو داحتمال په وجه دې د مخکینی سورت نه ممتاز کړل شو، ګویا د جز کیدو یانه کیدو دواړو طرفونو رعایت وساتل شو[2] ددې سورت په شروع کې د بسم الله ویلو حکم دادی چې که د پورتنه تلاوت راروان وي؛ نو بیا بغیر د بسم الله ویلو نه سوره توبه شروع کړئ. او که ددې سورت نه موشروع وکړه نو د عام معمول مطابق اعوذبالله، او بسم الله ویلو نه شروع وکړئ. همدغه شان که سورت مو په مینځ کې درولی و ،نو مخکې چې کله تلاوت شروع کړئ نو بیا هم د اعوذبالله نه وروسته بسم الله ویلو نه شروع کوئ.[3]

---

[1] ] ایضاً پورتنئ حاشیه)۔

[2] ]وفی وجه ترک البسملة عنها روی البغوی بسنده واحمده وابوداود والنسائی وابن حبان والحاکم وصححه والترمذی وحسنه عن ابن عباس رضی الله عنهما:قال :قلت لعثمان رضی الله عنه :ماحملکم علی ان عمدتم الی الانفال وهی من المثانی والی براءة وهی من المــئین فقرنتم بینهما ولم تکتبوا سطر بسم الله الرحمن الرحیم ووضعتموها فی السبع الطوال ،فقال عثمان رضی الله عنه :ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان ممایاتی علیه الزمان وهوینزل علیه السورذوات العدد فاذا نزل علیه الشیء یدعوا بعض من کان یکتب عنده فیقول ضعوا هذه الآیة فی السورة التی یذکرفیها کذاوکانت الانفال ممانزلت بالمدینة وکانت براءة من آخرمانزلت وفی لفظ وکانت البراءة من آخرالقرآن نزولاً وکانت قصتها شبیهة بقصتها وقبض رسول الله صلی الله علیه وسلم ولم یبین لها انها منها فمن ثم قرنت بینهما ولم أکتب سطر بسم الله الرحمن الرحیم ووضعتها فی السبع الطوال (التفسیر المظهری ج:٤ص:١٣٢، ایضًا معارف القرآن ج:٤ص:٣٠٦)۔

[3] ] فان استعاذ بسورة الانفال وسمی ومرفی قراءته الی سورة التوبة ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

## دقرآن شریف په هره کرښه ګوته کیښودل او ، بسم الله الرحمن الرحیم ، لوستل

**سوال:** .....ما اوریدلي اولیدلې مې هم دي چې اکثرخلک دقرآن پاک په هره کرښه ګوته کیږدي او ،، بسم الله الرحمن الرحیم ،، لولي، وايي چې داسې دوه ځله قرآن پاک ختمولوثواب دیوختم برابر ملاویږي، ددې خلکودافعل ترکوم حدپورې صحیح دی؟

**جواب:** دې سره دقرآن پاک دتلاوت ثواب نه ملاویږي اوپه قرآن پاک باندې ګوته ګرځول فضول حرکت دی ،یوازې دبسم الله ویلوثواب به ورته ملاوشي.[۱]

## قرآن کریم ګوته کیښودو سره یا بغیر د ګوتې کیښودو نه ویل

**سوال:** دا ووایئ چې دقرآن کریم په لوستلو کې ګوته کیښودل پکار دي یا بغیر د ګوتې د کیښودو نه ویل کیږي؟ څه فرق خو نه پرېوځي؟

**جواب:** دواړه صحیح دي هیڅ فرق نشته.

## له پوهې پرته دقرآن پاک اوریدل بهتردي اوکه اردو ترجمه لوستل؟

**سوال:** په رمضان المبارک کې تراویح لوستل کیږي،زه تراویح کولو له پاره ډیرکم ځم،زه ویریږم چې چېرته ګناه خونه کوم؟ موږ ته عربي نه راځي،ددې وجې نه قرآن پاک خولوستلی شو، خو پوهیدای پرې نه شو اوپه تراویح کې دپوره قرآن پاک ختم کیږي.مګرکوم ځیزچې موپه پوهه کې رانشي هغې ته عبادت څنګه ویل کېدای شي؟ که زه په مبارکه میاشت کې د ماسخوتن دمونځ نه پس دقرآن شریف داردوترجمه لولم نوماته به څه سبق حاصلیږي او خپلو یارانو دوستانوته به په خپله ژبه کې څه قرآني واقعات واورولی شم،نو آیا دتراویحو نه کولو سره به زه ګناهګار یم؟ هرکله چې په تراویحو کې راتلونکي قسماقسم خیالات دحافظ صاحب تیزي،اودقرآن پاک باندې ناپوهي په وجه زماپه ذهن کې ننوځی اوسوادګناه نه نورهیڅ نه دي.

**جواب:** ستاسوتحریرپه څومسایلوباندې مشتمل دی،کوم چې ډیرپه اختصارسره ذکرکوم:

۱:.....په تراویح کې پوره قرآن پاک اوریدل سنت موکده دي اوددې نه محروم پاتې کیدل ډیره لویه محرومي ده،بل هیڅ یوعبادت ددې په شان کیدای نه شي.[۲]

---

..بقیه دتیرمخ]..وقرأها کفاه ماتقدم(الی ان قال)وکذلک سائرالسور_کذافی المحیط ( هندیة ج:۵ص:۳۱۶)_

۱ ] لان التسمیة آیة من القرآن انزلت للفصل وللتبرک فی الابتداء بها بین السورعندنا (تفسیرنسفی ج:۱ص:۲۶طبع دارابن کثیربیروت)_

۲] قوله والختم سنة ای قراءة الختم فی صلاة التراویح سنة ......الخ (شامی ج:۲ص:۴۶،باب الوتروالنوافل)

۲......قرآن مجيدلوستل مستقل عبادت دی، که په معنا پوه شي ياپوه نه شي،اوپه قرآن مجيدباندې پوهيدل جداعبادت دی،که ستاپه قرآن مجيدباندې دپوهيدوشوق وي: نوداډيرلوی سعادت دی، ستا دالفاظ قرآن تلاوت ...نعوذبالله...بې کاره ګڼل غلط دی.دآيتونوتلاوت الله تعالى په مستقل طورسره دنبوت په مقاصدو کې شمارکړی دی اود تلاوت تعريف يې کړی دی، حضور ﷺ دتلاوت قرآن ډيرزيات فضائل بيان کړي دي ددې وجې نه تلاوت فضول ګڼل دخدای اورسول تکذيب اودقرآن مجيد دتوهين په معنا دی،زموږ شيخ حضرت اقدس مولانا محمد زکريا رحمة الله عليه رساله,,فضائل قرآن ،،دې وکتل شي [1]

۳......دقرآن مجيددزده کولوطريقه دانه ده چې تاسوترجمه په خپله دځان نه ولوستله،ځکه چې اول خودامعلومه نه ده چې کومه ترجمه ستازيرمطالعه ده، هغه دچاديندارکس ده يادبې دينه،دمومن ده يا دکافر؟ او دا چې هغه دالله تعالى په منشاباندې په سمه طريقه پوه شوی هم دی اوکه نه؟ اوکه پرې پوه شوی دی؛ نوچې په سمې طريقې سره تعبير شوی دی اوکه نه؟ او بيا دا چې ترجمه کتلونه وروسته ته په صحيح خبره پوه شوې اوکه نه؟چېرته په فهم کې درنه لغزش خونه دی شوی؟ ددې داطمينان کولوستاسره هيڅ ذريعه به نه وي اوخدای مکړه که غلط مفهوم دې نوروته بيان کړ؛ نود افتراء على الله ويره ده،دشاهی فرامينودترجماني له پاره څنګه څنګه ماهران ساتل کيږي، لوی ظلم به وي چې موږ دقرآن فهمي له پاره دڅه استعداد اومهارت ضرورت هيڅ ونه ګڼو،او يوازې دترجمه خوانی نوم قرآن فهمي کيږدو،غرض مې دادی چې دقرآن فهمي دا طريقه نه ده ،چې يوازې اردوترجمه لوستل کافي وګڼل شي، بلکې که داشوق وي نودچاعالم په صحبت کې دې قرآن مجيد ولوستل شي اوددې له پاره دې ضروري استعدادپيداکړل شي.

۴......بياتاسودتراويحو وخت ولې دترجمه خوانی له پاره تجويز کړ؟ کوم عبادتونه چې شريعت مقررکړي دي هغه حذف کول اوپه خپل خيال په قرآن فهمي کې مشغوليدل ګويا صاحب شريعت ته مشوره ورکول دي،چې هغه ته دفلاني عبادت په ځای دا مقررول پکارو، اوداخبره دبندګۍ د آدابونه خلاف ده، دبنده فرض خوداپکاردي چې کوم وخت کې دهغه کومه وظيفه (دنده) ولګول شي هغه دې پوره کړي که دترجمه خواني شوق وي: نودهغې له پاره تاسو د سير وسياحت اوارام وطعام مشاغل حذف کړئ نو بياهم وخت ويستلی شئ!

۵......ستاسودارشادهم زماپه نزدداصلاح محتاج دی چې ,,خپلو يارانو دوستانوته دهغوی په ژبه کې قرآني واقعات بيان کړم،، بنده چې دهدايت الهي مطالعه کوي نودانيت ورته کول پکاردي چې کوم هدايت ماته ملاوشي په هغې به په خپله عمل کوم اوهم ددې عمل يوه شعبه داهم ده چې کومه صحيح مسئله راته معلومه شي هغه دې نورومسلمانانو وروښو ته اوښودل

---

[1] فضائل القرآن ص۸ تا ۷۲)۔

شي، خو موږ ته دځېل ځان داصلاح فکراول کول پکاردي اودقرآن کريم اوحديث نبوی مطالعه يوازې په دې نيت سره كول پكاردي.

۶.....په تراويحو کې دې حافظ صاحب داسې مقررکړل شي چې دقرآن پاک الفاظ په صحيح طريقې سره اداكوي اوپه تيزي كې الفاظ خراب نه كړي.

۷.....په لمونځ کې چې کوم خيالات بغيرد قصد او ارادې نه راشي هغه ګناه نه ده، نه په دې باندې مواخذه شته، په دې خيالات باندې پريشانه کيدل غلط دي، خو داضروري ده چې بنده دې دلمونځ طرف ته دمتوجه کيدو کوشش باربارکوي، که خيالات يې ګډوډيږي نوهيڅ خبره نه ده، ددې طرف ته خيال مه کوئ بلکې باربارلمونځ طرف ته خيال ساتئ ،ان شاءالله دکامل لمونځ ثواب به درته ملاويږي.[1]

## په اردو تلاوت كول

**سوال:** جناب مسئله داده چې که قرآن کريم په اردوکې وويل شي نوهم هغومره ثواب به ملاويږي څومره چې په عربي کې دلوستلو وي اوکه په عربي کې لوستل بهتردي؟ځکه چې په عربي كې قرآن خو ولولو، خو ظاهره خبره ده چې پوهيږو پرې نه، هرکله چې ترڅوپورې په قرآن پاک باندې پوه نه شې او عمل پرې ونه شي، ددې لوستل بيكاره دي.

**جواب:** داردوترجمه لوستلوسره به درته دتلاوت ثواب نه ملاويږي، د تلاوت ثواب يوازې دقرآن پاک دالفاظوسره خاص دی، دپوهيدوله پاره دتلاوت کولونه وروسته ددې ترجمه اوتفسير ولوله.!

اودقرآن پاک تلاوت چې ناپوهي سره وکړل شي دې ته بيكاره ويل دحضور ﷺ تكذيب دی، ځکه چې حضور ﷺ دقرآن پاک دتلاوت بې شميره فضايل بيان کړي دي، دافضائل دقرآن پاک دالفاظودتلاوت دي، که په معنا اومفهوم يې پوه شې يانه.[2]

---

[1] عن ابی هريرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :ان الله تجاوز عن امتی ماوسوست به صدرها مالم تعمل به او تتكلم. متفق عليه (مشکوة ص:۱۸، باب فی الوسوسة ،الفصل الاول)، وعن القاسم بن محمد ان رجلاً ساله فقال : انی اهم فی صلوتی فيكثرذلک علی فقال له :امضی فی صلوتک فانه لن يذهب ذلک عنک حتی تنصرف وانت تقول ماالتممت صلوتی ،رواه مالک (مشکوة ص:۱۹،باب فی الوسوسة ،الفصل الثالث)_

[2] قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :من قرأ حرفًا من كتاب الله فله به حسنة والحسنة بعشرامثالها، لا اقول آلم حرف بل الف حرف ولام حرف وميم حرف رواه الترمذی (مشکوة المصابيح ج:۱ص:۱۸۶) (عن ابی سعيدقال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :يقول الرب تبارک وتعالی :من شغله القرآن عن ذكری ومسئلتی اعطيته افضل ما اعطی السائلين، وفضل كلام الله علی سائرالكلام كفضل الله علی خلقه (مشکوة ج:۱ص:۱۸۶ ،باب فضائل القرآن)

## د اردو په ترجمې د قرآن مجید ثواب

**سوال:** د قرآن مجید دتلاوت په ځای باندې که چیرې د قرآن کریم د اردو ترجمه په ترتیب سره ولوستل شي؛ نو ثواب به ملاو شي؟ځکه چې که چیرې د اردو ترجمه په عربۍ کې وکړل شي نو قرآن کریم ترې جوړیږي؟

**جواب:** قرآن مجید په عربي کې نازل شوې دی[1] او ددې د هر لفظ په تلاوت باندې د لسو نیکو وعده ده[2] ظاهره ده چې ددې په ترجمې باندې اجر اوثواب نشته دی، په دې وجه د قرآن مجید د تلاوت ثواب به صرف د عربۍ الفاظو په تلاوت باندې ملاویږي،د ترجمې په ذریعه باندې د مفهوم د پوهیدو ثواب ملاویږي، د قرآن کریم د تلاوت ثواب نه ملاویږي.

## یوازې په ترجمه لوستلو دتلاوت ثواب نه ملاویږي

**سوال:** دترجمې واله قرآن پاک ترجمه لولم،آیا داسې قرآن پاک لوستلو به راته هم هغومره ثواب ملاویږي څومره چې په عربي (کوم چې ددې اصلي شکل دی)لوستلوسره ملاویږي ؟

**جواب:** دقرآن پاک دالفاظودتلاوت کولونه پرته یوازې ترجمه لوستلو سره دقرآن پاک دلوستلو ثواب به درته نه ملاویږي.

## د قرآن پاک الفاظ په معنی له پوهې پرته لوستل هم عظیم مقصد دی

**سوال:** یوکس په عربي کې دقرآن پاک تلاوت کوي اولکه دطوطي په شان لګیا دی،مګرهغه ته پته نشته چې هغهٔ څه ولوستل ددې مطلب څه دی؟ یوازې هغه ته پته ده چې دالله تبارک وتعالی کتاب لولم اوس ددې څه مقصدشو؟ددې کس دې طریقې سره قرآن پاک دده له پاره داسې شولکه محض انګریزي یایوناني لوستل،که ده ته ددې معنې نه ورځي؛ نو آیادې کس ته به بغیر دمعنی په قرآن پاک لوستلو باندې ثواب ملاوشي؟ حالانکې دقرآن پاک دلوستلو مقصد اومطلب دادی چې دامقدس کتاب دی په خوبصورتي سره وویل شي اوپه دې دې عمل وکړل شي،که مقصدصرف لوستلو پورې محدودوي نوڅه فائده؟

**جواب:** دقرآن پاک د الفاظو تلاوت یومستقله وظیفه ده،دکوم چې په قرآن پاک اواحادیث نبوی ﷺ کې ترغیب ورکړل شوی دی،اودایې د مقاصد نبوت محمدیه ﷺ نه یومستقل

---

[1] انا انزلنه قرانًا عربيًا لعلكم تعقلون (يوسف :٢)

[2] عن ا بن مسعود قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :من قرا حرفًا من كتاب الله فله به حسنة ،والحسنة بعشر امثالها، لا اقول الم حرف ، بل الف حرف ،ولام حرف ،وميم حرف (مشكوة ص:١٨٦،رواه الترمذى، كتاب فضائل القرآن الفصل الثانى ،طبع قديمى كتب خانه كراچى)

مقصد ګرځولی دی[1].اودقرآن پاک الفاظ لکه دطوطي په شان زده کول،حفظ کول،اوددې دتلاوت کولواجراوثواب بیان شوی دی اوددې په معنا اومفهوم پوهه یومستقله وظیفه ده اودهغې جدااجراوثواب دی اوپه پوهه سره په احکاموباندې عمل کول دټولونه اهم ترین مقصددی اوهرمسلمان ته دخپل وس مطابق دالله تعالی دکلام تلاوت کول پکاردي اوددې الفاظ هم یادول پکاردي اوددې په معنا اومفهوم باندې هم ضرور پوهیدل پکاردي اودالله تعالی په ارشاداتوباندې عمل کول پکاردي مګربې پوهې لوستلوته بې فائدې و یل صحیح نه دي،بلکې ګستاخي اوبې ادبي ده، او توبه کول ترې واجب دي.[2]

## په معنا باندې د پوهیدو نه پرته هم د قرآن پاک تلاوت مستقل عبادت دی

**سوال:** زماسوال دادی چې قرآن پاک دپوهې نه پرته دلوستلوهیڅ فائده نشته،ترڅوپورې چې ددې معنا ونه لوستل شي،خو آیا داجائزده چې مونږ رکوع لوستل غواړواویوازې ددې معنا ولولو(دتلاوت نه پرته)؟

**جواب:** دقرآن پاک تلاوت یومستقل اواعلی ترین عبادت دی او ددې مفهوم اومعنا باندې پوهیدل یومستقل عبادت دی،او بیاپه دې باندې عمل کول یوجداعبادت دی،په قرآن کې دحضور ﷺ ددریو وظائفو ذکرفرمایل شوی دی:

۱: دایاتونوتلاوت. ۲: دکتاب وحکمت تعلیم. ۳: تزکیه.[3]

دا دهمدې دریوعبادتونوطرف ته اشاره ده،کوم چې پورته ذکر شوي دي،له دې وجې په معنا باندې دپوهیدونه پرته دقرآن کریم تلاوت بېکاره ګڼل غلط دي،آیا داګڼه څه کمه ده چې دقرآن پاک په یوحرف باندې لس نیکۍ ورکول کیږي[4].

---

۱ ]ربنا وابعث فیهم رسولاً منهم یتلوا علیهم ایتک ویعلمهم الکتب والحکمة ویزکیهم ......الآیة (البقرة :۱۲۹) قال الامام الرازی فی تفسیره : (قوله ویعلمهم الکتب) والمراد انه یامرهم بتلاوة الکتاب ،ویعلمهم معانی الکتاب وحقائقه وذالک لان التلاوة مطلوبة لوجوده منها بقاء لفظها علی السنة اهل التواتر فیبقی مصونًا عن التحریف والتصحیف ،ومنها ان یکون لفظه ونظمه معجزًا لمحمد صلی الله علیه وسلم ومنها ان یکون فی تلاوته نوع تلاوة وطاعة ومنها ان تکون قراءته فی صلوات وسائرالعبادات نوع عبادة فهذا حکم التلاوة الا ان الحکمة العظمی والمقصودالاشراف تعلیم مافیه من الدلائل والاحکام ،فان الله تعالی وصف القرآن بکونه هدی ونوراً لمافیه من المعانی والحکم والاسرار فلما ذکرالله تعالی اولا امر التلاوة ،وذکر بعده تعلیم حقائقه واسراره ،فقال ویعلمهم الکتب (تفسیر کبیر ج:٤ص:٦٦طبع بیروت)۔

۲ ] تیره شوی صفحی حاشیه (ربنا وابعث فیهم رسولاً منهم...الخ)اوګورئ: ایضًا :وعن معاذ الجهنی قال :قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :من قرأ القرآن وعمل بما فیه البس والداه تاجًا یوم القیامة ضوءه احسن من ضوء الشمس فی بیوت الدنیالوکانت فیکم فما ظنکم بالذی عمل بهذا (مشکوة ج:۱ص:۱۸٦)۔

۳ ] ایضاً تیره شوی حاشیه (ربنا وابعث فیهم رسولاً منهم...الخ)اوګورئ:

٤ ]عن ا بن مسعود قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

په هرحال دقرآن پاک تلاوت خودهرمسلمان وظیفه کیدل پکاردي، که معنا باندې پوهیږي اوکه نه پوهیږي،ددې نه وروسته که الله تعالی توفیق اوهمت ورکړي؛ نومعنا باندې دپوهیدوکوشش دې هم وکړي،مګریوازې دقرآن پاک ترجمه لوستلوسره دې دقرآن پاک دایت مفهوم په ذهن کې پیدانه کړل شي، بلکې چرته چې شک وي هلته دې څان داهل علم نه پوه کړل شي.[۱]

## قرآن پاک که موږه پوهه ولوست یا بې پوهې صحیح دی خوله څانه مطلب جوړول غلط دي

**سوال:** جنګ ورځ پاڼه تاریخ ۱۵ دسمبر ۱۹۸۲کې صفحه نمبر:۳ باندې یوحدیث دمسلم په حوالې سره نقل شوی دی،عنوان یې ,,دطلب علم بدله،،په دې حدیث کې دحضور ﷺ فرمان ذکر شوی چې:کوم کسان چې دالله تعالی له کورونوکې په کوم کور(جومات) کې راجمع شي اودالله تعالی کتاب لولي، بحث اوخبرې اترې پرې کوي،په هغوی باندې دالله تعالی دطرف نه ایماني سکون نازلیږي، رحمت دهغوی نه ګیرچاپیره شي،فرښتې ددوی راچاپیره شي،الله تعالی ددې خلکو ذکر دفرشتوپه مجلسوکې کوي، په دې حدیث شریف کې دقرآن مجید دلوستلو او ددې په معناوو اوحکمت باندې دخبرواتروکولودبرکاتوذکردی.اواشاره پکې ده چې خلک دې دقرآن پاک معنا، مطالب اوحکمت فلسفه دخبرو موضوع جوړه کړي او دغه شان دې په دې باندې دپوهیدو او پوهولو کوشش وکړي، خو په موجوده زمانه کې لیدل شوي دي چې دقرآن کریم یوازې په تلاوت باندې اکتفاکیږي اودالله تعالی نه داجر اوثواب له پاره کافي ګڼل کیږي،دارویه نه یوازې دکم علمه عواموده، بلکې ډیرپوهه اوتعلیم یافته خلک هم دقرآن کریم دمطالبو او حکمت باندې دخبرواترونه مسلمانان منع کوي او صرف تلاوت دثواب ذریعه ګڼي او په همدې باندې زور ورکوي، تاسوته درخواست دادی چې تاسوپه دې خبره باندې رڼاواچوئ چې ددې حدیث په رڼاکې مسلمانانوته کومه عملي لاره اختیارول پکاردي؟

نورداچې داخبره ترکومه حده پورې صحیح ده چې که دقرآن کریم بغیردپوهې نه تلاوت وکړل شي؛نوهم پرې اجراوثواب ملاویږي؟ عموماًموږ که یوکتاب لولو؛نوپه هغه پوهیږوهم،ګني نه یې لولو،له پوهیدوپرته دیوکتاب لوستل یوه عجیبه شان خبره ده،بیا قرآن پاک چې دانسانانوله پاره یومستقله اوحقیقي دهدایت سرچشمه ده، په دې باندې دپوهیدونه

...بقیه د تیر مخ]..من قرا حرفا من کتاب الله فله به حسنة، والحسنة بعشرامثالها، لا اقول آلم حرف ،الف حرف ،ولام حرف ،ومیم حرف (مشکوة ص:۱۸۶،رواه الترمذی ،کتاب فضائل القرآن الفصل الثانی ،طبع قدیمی کتب خانه کراچی)۔

۱ ] ایضا)۔

پرته، يعني دې معلوميدونه بغيرچې په دې کې زموږ له پاره کوم يوهدايت اورهنمايي ده نود لوستلو دثواب څه معنا ده؟اوثواب خوپه هغه هدايت دپوهيدواوپرې دعمل کولونه حاصليدای شي، ديومسلمان له پاره دايمان اوعمل شرطونه هم په دې صورت کې پوره کيدای شي چې قرآن کريم باندې پوه شي اوويې لولي،په دې سوال هم رڼاواچوئ چې مسلمانانوله پاره دفلاح لاره پرانستل شي.

**جواب:** دقرآن پاک دتلاوت ثواب جدادی، چې په صحيحو احاديثو کې راغلی دی اودقرآن پاک دمعنا اومطالبودزده کولوثواب جدا دی،ترڅوپورې چې ماته معلوم دي چې هيڅ يوعالم دين څوک دقرآن کريم دمعنا اومفهوم باندې دپوهيدونه منع کړی نه دی،مګرهغوی دخپل طرف نه يوايت مطلب راوباسي اوبحث شروع کړي دداسې بحث نه عالمان منع کول کوي؛ځکه چې يوخوددې بحث منشاء جهل مرکب ده،بياد داسې بحث په حديث شريف کې مذمت هم راغلی دی،چنانچې په جامع صغير(ج:۱ ص:۱۴۴)کې دمستدرک حاکم په حوالې سره چې کوم حديث نقل شوی دی ،،الجدال في القرآن کفر،، يعني په قرآن پاک کې کج بحثي کول کفردی،غرض داچې دقرآن پاک تلاوت بيکاره ګڼل هم صحيح نه دي دقرآن کريم دمطالبو زده کولواولوستلوکوشش نه کول هم غلط دي اودقرآن کريم صحيح علم حاصلولونه بغيربحث شروع کول هم غلط دي.[1]

## دقرآن پاک ترجمه لوستلونه پس دعالم نه تصديق کول ضروري دي

**سوال:** هغه خلک چاته چې دڅه وجې نه دقرآن پاک دلوستلوموقعه ملاونه شوه، خواوس دهغوی تجسس ددې مقدس پاک په باره سوا کيږي اواوس هغوی داسې عمرته رسيدلي دي چې عربۍ ژبه ورته ويل مشکل شوي دي،هغوی ترجمه لوستلوسره خپل علم ته وسعت ورکول غواړي. اوپه دې باندې عمل کول هم غواړي که يوصاحب ستاخبره په غورسره لوستې وي؛ نوهغه به دداسې کولونه ځان ساتي:ځکه چې هغه ته به پته لګيدلې وي چې يوازې دترجمې لوستلوڅه فائده؟ اوس چې هغه ته دڅه لږشان ثواب ملاويدوامکان و،دهغه نه به هم محروم شي، ددې ګناه موجب به څوک وي؟

---

[1] قوله ويعلمهم الكتب والمرادانه يامرهم بتلاوة الكتاب ،ويعلمهم معانى الكتاب وحقائقه وذالک لان التلاوة مطلوبة لوجوده منهما بقاء لفظهاعلى السنة اهل التواتر فيبقى مصونًا عن التحريف والتصحيف ،ومنها ان يكون لفظه ونظمه معجزًا لمحمدصلى الله عليه وسلم ،ومنهاان يكون فى تلاوته نوع تلاوة وطاعة ،ومنها ان تكون قراءته فى صلوات وسائر العبادات نوع عبادة فهذا حكم التلاوة الا ان الحكمة العظمى والمقصود الاشراف تعليم مافيه من الدلائل والاحكام فان الله تعالى وصف القرآن بكونه هدًى ونورًا لمافيه من المعانى والحكام والاسرار فلماذكرالله تعالى اولا امر التلاوة ،وذكر بعده تعليم حقائقه واسراره ،فقال ويعلمهم الكتب (تفسير كبير ج: ٤ص:٦٦)۔

**جواب:** داسې کس چې د عربي ژبې د الفاظو لوستلو نه قاصر دی که هغه ,,اردو قرآن ،، ولولي نو هغه ته به د قرآن پاک د تلاوت ثواب نه ملاویږي، پاتې شوه د ,,اردو قرآن،، لوستل او احکام خداوندي باندې ځان پوهول او پرې عمل کول، دا جذبه ډیره قابل قدر ده، مګر تجربه داده چې بغیر د استاد نه خوبه د قرآن پاک په مفهوم باندې صحیح پوه شي او نه به د الله تعالی د منشا مطابق پرې عمل وکړای شي، داسې حضراتو ته که واقعي په قرآن پاک باندې د پوهیدو شوق وي؛ نو د هغوی له پاره مناسب تدبیر دادی چې هغوی دې د یو حقاني عالم نه لږ لږ وواېي او که دومره فرصت هم ورسره نه وي؛ نو کم از کم دومره دې وکړي چې اردو ترجمه کتو سره کوم مفهوم چې د ده په ذهن کې راشي په هغه دې باور نه کوي، بلکې د چا عالم دین نه دې د دې تصدیق کوي، چې مونږ د فلاني آیت کوم مفهوم ګڼلی دی آیا هغه صحیح دی؟ او د دې نه ښه صورت دادی چې د چا حقاني عالم په مشوره سره دې د تفسیر مطالعه کوي او په دې کې چې په کومه خبره پوه نه شي، د هغې دې پوښتنه کوي.

## د ترجمې لوستلو نه ولې منع کیږي حالانکې په قرآن باندې د چا اجاره داري نشته؟

**سوال:** په تاریخ (۱۲) د جولایي په ایډیشن کې ستاسو نه سوال شوی و، چې په هغه کې د قرآن مجید د پوهې له پاره د (۱۴) ژبو علم کیدل، او د دینه پرته د قرآن او حدیث او د دیني علومو مطالعه ګمراهي ده، د دې جواب تاسو مدلل نه دی ورکړی او حالانکې الله تعالی د سورة القمر په څو ځایونو کې په تکرار سره بني آدم ته د چیلنج دعوت ورکوي چې مونږ قرآن د نصیحت له پاره آسانه ذریعه جوړه کړې ده، بیا فرمایي آیا څوک نصیحت قبلونکی شته؟ د قرآن د مذکوره آیت په رڼا کې جواب راکړی چې:

الف: د قرآن مالک خو دا د نصیحت له پاره آسانه ذریعه جوړه کړې، نصیحت قبلونکي ته عام نصیحت ورکوي، خو دیو څو انساني ذهنونو نه دا ګمراهي ګرځوي، آیا دا په خپله بهتان او ګمراهي نه ده؟

ب: د عربي ناخبره کسان که چیرې ترجمه لوستل غواړي؛ نو په دوی باندې دومره بندش ولې دی؟ آخر د عربي خط په ترجمې کونکي باندې خو یوازې د لیږونکي د تحریر د مفهوم پته لګیږي.

ج: د قرآني مفهوم له پاره د ترجمې لوستلو نه منع کونکي خو به له دې خبرې نه ویریږي، چې خلک د قرآن په پوهیدو باندې چرته د عمل کولو نه د دوی په اجاره باندې د وهلو باعث ثابت نه شي؟

د:... یهودیان، نصرانیان او هندوان آله کار و، د ترجمې بې نقابه کولو باعث به ثابت شي آیا دا

آله کار مسلمانان امداد کونکي دي یا دشمنان دي؟

**جواب:** ۱: قرآن کریم په عربي ژبه کې دی، دصحابه کرامو (رضي الله عنهم) خوعربي ژبه مورنۍ ژبه وه، هغوی خو به د قرآن کریم په آوریدو سره نصیحت حاصلولو او کولو به یې، خو دکوم سړي چې په عربي ژبه باندې عبور نه وي که چیرې هغه دپوهې نه پرته د قرآن کریم معنا جوړه کړي؛ نو په خپله به هم ګمراه شي او نوربه هم ګمراه کړي، قرآن کریم له شک پرته آسان دی، خودهغه چا له پاره چې هغه د علومو نه واقف وي.

۲: بندش خو نه دی یوازې دومره ده چې فکر یې هم صحیح وي او د ده پوهه هم صحیح وي، ددې د یو ماهر نه تصحیح کول لازم دي.

۳: هو! د قرآن کریم په پوهه باندې الحمد لله د چا اجاره نشته ده، دهر ملک، هر قوم اوهر خاندان د شخص ته د قرآن کریم په علومو باندې مهارت حاصلول پکار دي، دده د پاره څلور واړه دروازې خلاصې دي، لکه څنګه چې هر چاته ددې علم شته، بیااجاره داري څنګه شوه؟ یوازې دومره درخواست دی چې کوم سړی د قرآن د علومو ماهر نه وي، هغه دې د خپل ذهن په ځای ماهرینو باندې اعتماد وکړي، مثلاً زه د موجوده قانون ماهر نه یم، بلکې په کومه ژبه کې چې قانون لیکل کیږي، په هغې هم نه پوهیږم، ما د قانون د کتاب ترجمه ولوستله، ددې نوم او مفهوم مې په خپل ذهن کې جوړ کړ، نو ضروري نه ده چې پرې صحیح پوه شوی یم، اوس که چیرې زه اصرار وکړم چې چونکې په قانون باندې د چا اجاره نشته، په دې وجه زه کوم مفهوم ددې قانون بیانوم نو هغه صحیح دی، او، بارایټ لا،، قسمه خلک چې کوم مفهوم بیانوي، یا په عدالتونو چې کومه ددې قانون تشریح شوې ده، هغه غلطه ده، زه دانه منم، ځکه چې په قانون باندې د چا اجاره نشته، ظاهره ده چې تاسو ماته وفرمایئ مولانا صاحب! تا د اجارې مطلب نه دی پیژندلی.

یا فرض کړه! ما د شیخ ابن سینا د کتاب د،، قانون،، دترجمې مطالعه وکړه او دچانه مې دمعلومولو تکلیف ونه کړ، زه د کتاب په مفهوم باندې صحیح پوه شوی یم اوکه نه؟ نه مې دیو استاذ نه دا وواېه، نه مې په یو طبي کالج کې ددې امتحان ورکړی دی، بس د خپلې ترجمې په کتاب باندې مې اعتماد وکړ او درملتون (دواخانه) مې خلاص کړ او د خلکو علاج او معالجه مې شروع کړه، نو آیا د خلکو د جانونو سره لوبې کول به جائز وي؟

که چیرې ما ته څوک زورنه راکوي د استاذ نه د ویلو او باقاعده د امتحان د ورکولو مشوره راکوي او زه دده په جواب کې دا وایم چې په طب باندې د چا اجاره نشته، ماته د چا نه د ویلو ضرورت نشته، نه د امتحان د ورکولو حاجت شته؛ ظاهر ده چې ته به زما دا منطق قبول نه کړې، دغه خبره زه د قرآن کریم په باره کې کوم، چې په قرآن کریم باندې الحمدلله د چا اجاره نشته، د هر مسلمان په کور کې دا مقدس کتاب موجود دی، یوازې مسلمان نه، بلکې غیر مسلم هم ددې مطالعه کوي، کله هم چا د دې ویلو نه منع نه ده کړې او نه یې چا ته د خپلې

اجازې پروانه نښودلې ده، بس دومره درخواست دی چې د قرآن کريم د يو ماهر نه مشوره واخله چې دا ترجمه صحيح اومستنده هم ده يا نه ده؟ او بيا د يو آيت په مفهوم چې ته په ترجمه کې پوه شوې يې داحرف آخر شمير نه کړل شي، بلکې د قرآن کريم د علومو ماهرين که چيرې ددې آيت مفهوم څه نور څه بيانوي؛ نو هغه دې په خپل فهم باندې اعتمادسره د خلکو ايمان سره لوبې نه کوي، د خپلې ناپوهې اعتراف دې وکړي د فهم د ماهرينو تابعداري دې وکړي.

که چيرې ته ددې نوم اجاره داري ايږدې؛ نو بيا ستا خوښه ده..! خو څنګه چې مې پورته ذکر کړي دي، عقل مند ديته اجاره داري نه وايي،بلکې په هريو فن کې ددې ماهرينو ته رجوع کول ضروري وګڼه!

۴: ددې فقرې په مطلب پوه نه شوم، د خپل فهم د کم والي اقرار کوم ...!

## په امريکه کې د مسلمانانو له پاره د قرآن پاک په تلاوت د شکونو جواب

**سوال:** ددين عالمان اومفتيان ددې لاندينو مسايلوپه باره کې څه فرمايي:

موږ قرآن پاک په عربي کې ولې لولو،هرکله چې موږ په عربي باندې نه پوهيږو،ددې به ضرورڅه نا څه وجه وي،داسلام په معروفو اومشهورکتابونوکې که ددې وجه نه وي؛ نوبياپه عقلي و جې سره داسې کول په پوهه کې نه راځي،دادې وښودل شي چې کومه يوه طريقه بهتره ده؟په عربي کې دقرآن پاک دتلاوت کول، ياانګريزي کې ترجمه لوستل،دلته په امريکه کې ژوند ډير زيات مصروف دی اوخلکوسره دډيرکارونوکولووخت هم نه وي،لهذاددې ځای مسلمانانو سړي اوښځې وايي چې موږ قرآن پاک نه شول وستلی،ځکه چې هغوی اودس نه شي کولی چې چېرته کونج کې کيني اودا ولولي، چې دهغوی په پوهه کې نه راځي.کافر راپورې توکې کوي چې صرف د يو قرآن لوستلوله پاره څومره کارونه کول وي،دامنوچې دايومقدس کتاب دی،خو بايبل هم يو مقدس کتاب دی،اوموږ هغه کتاب هر وخت لوسلی شو،موږ زياتردشپې دويده کيدوپه وخت کې په بستره کې لولو، اياقرآن پاک په دې طريقې سره لوستلی شو؟ اوکه نه شو؛نو څه وجه ده؟

**جواب:** ستادسوال که تجزيه وکړل شي نوداپه څو برخوباندې مشتمل دی،ددې وجې نه مناسب داده چې په دې دې جداجداخبره وکړل شي اوچونکې ستاذاتي مسئله نه ده، بلکې تادامريکې دمسلمانانو نمائندګي کړې ده، ددې وجې نه مناسب به وي چې په دې باندې څه قدرې په تفصيل سره ليکل وشي.

۱:......تامعلومول غوښتي دي چې موږ قرآن پاک په عربي کې ولې لولو؟ددې څه وجه ده؟

په شروع کې په دوومسئلوځان پوه کړه،يوداچې دقرآن پاک تلاوت په لمونځ کې فرض دی او ددې نه پرته لمونځ نه کيږي[1]،په دې کې داتفصيل دلته نه ذکرکوم چې دقرات څومره مقدار

---

۱] فرائض الصلوة ......القراءة لقوله تعالی فاقروءا ماتيسر من القرآن....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

فرض دی؟ څومره مسنون دی؟ او دا په څومره رکعتونوکې فرض دی؟ او دچا په ذمه فرض دی؟خو دلمونځ نه بهردقرآن پاک تلاوت فرض او واجب نه دی،خو یوعمده ترین عبادت دی،ددې وجې نه که یوکس په ټول عمرکې دلمونځ نه بهرتلاوت ونه کړ او دهیڅ فریضې پریښودونکې اوګناهګاربه نه وي،خو دیوعمده ترین عبادت نه به محرومه وي،داسې عبادت چې دده روح اوزړه دنورنه ډکولی شي او لمر ترې جوړولی شي،داسې عبادت چې دده له پاره په قبرکې رڼا ده،او داسې عبادت چې دالله تعالی سره دتعلق اومحبت طاقتورترینه ذریعه ده.

دویمه مسئله داده چې کوم کس دقرآن پاک تلاوت کول غواړي، که هغه دلمونځ دننه تلاوت وکړي یادلمونځ نه بهر،دهغه له پاره دقرآن پاک داصل عربی متن تلاوت کول لازم دي،[1] دقرآن پاک دتلاوت فضیلت به صرف عربي متن باندې ورته حاصلیږي اودد<ِ اردو یاانګریزي یاپه څه بله ژبه کې تلاوت کولوسره به ورته نه حاصلیږي،له دې وجې نه مسلمانان یوازې دعربي متن تلاوت لازم ګڼي اوترجمه دتلاوت بدل نه ګڼي اوددې څو وجې دي:

**لومړۍ وجه**......قرآن پاک دهغه مقدس الفاظونوم دی چې دکلام الهي په حیثیت سره په حضور ﷺ باندې نازل شوی دی،ګویاقرآن پاک په حقیقت کې هغه خاص عربي الفاظ دي کوم ته چې قرآن ویل کیږي[2] چنانچې په ګڼو آیتونوکې دقرآن پاک تعارف قرآن عربي یالسان عربی په حیثیت سره کړی دی چنانچې ارشاد دی:

"وکذلک انزلنه قرآنا عربیا.."(۱۱۳:۲۰)

"قرآنا عربیا غیر ذی عوج لعلهم یتقون..."(۲۸:۳۹)

"انا انزلنه قرآنا عربیا لعلکم تعقلون..."(۱۲:۲:۳)

---

...بقیه د تیر مخ].. (هدایة ج:۱ص:۹۸،طبع مکتبة شرکت علمیه ملتان) (وفی الجوهرة النیرة (ج:۱ص:۵۸) باب صفة الصلوة :قال رحمه الله فرائض الصلاة ستة ای فرائض نفس الصلاة ......قوله :والقراءة لقوله تعالی: فاقرؤا ماتیسرمن القرآن ،والامر للوجوب ،والقرآن لاتجب فی غیرالصلاة بالاجماع فثبت انها فی الصلاة)_

[1] القرآن الذی تجوز به الصلاة بالاتفاق هو المضبوط فی مصاحف الائمة التي بعث بها عثمان رضی الله عنه الی الامصار ،وهوالذی اجمع علیه الائمة العشرة وهذا هو المتواتر جملة وتفصیلاً (ردالمحتار ج:۱ص:۴۸۶، طبع ایچ ایم سعید) ،ان الفارسی لیس قرآنا اصلاً لانصرافه فی عرف الشرع الی العربی (ردالمحتار ج:۱ص:۴۸۵)_

[2] فالقرآن المنزل علی الرسول علیه السلام ......المکتوب فی المصاحف ......المنقول عنه نقلاً متواتراً بلاشبهة......وهو اسم للنظم والمعنی جمیعًا ......یعنی ان القرآن اسم للنظم والمعنی جمیعًا لا انه اسم للنظم فقط ......ولا انه اسم للمعنی فقط (نورالانوار ص:۷تا۹،طبع مکتبه حقانیه پشاور)،فان تغییر سورة او آیة بالفاظ عربیة مرادفة لالفاظ القرآن لا یعد قرآناً مهما کان مطابقًا للمفسر فی دلالته لان القرآن عربی خاص نزل من عندالله سبحانه وترجمة القرآن لاتعد قرآنا مهما کانت الترجمة دقیقة فلایصح الاعتماد علیها فی استنباط الاحکام الشرعیة (اصول الفقه الاسلامی ،لدکتور وهبة الزحیلی ج:۱ص:۴۲۳طبع رشیدیه کوئته)

,,كتب فصلت ايته قرآنا عربيا,,(۴۱:۳)

,,وكذلك اوحينا اليك قرآنا عربيا,,(۴۲:۷)

,,انا جعلنه قرآنا عربيا لعلكم تعقلون,,(۴۳:۳)

,,وكذلك انزلنه حكما عربيا,,(۱۳:۳۷)

,,وهذا كتب مصدق لسانا عربيا,,(۴۶:۱۲)

,,وهذا لسان عربي مبين,,(۱۶:۱۰۳)

,,بلسان عربي مبين,,(۲۶:۱۹۵)

اوكله چې دا معلوم شو چې قرآن پاک دعربي دهغو خاصو الفاظونوم دی چې په حضور ﷺ باندې نازل شو،نوددې نه داخبره په خپله واضحه شوه چې که دقرآن پاک دیولفظ تشریح متبادل عربي لفظ سره هم وکړل شي؛ نوهغه متبادل لفظ ته به قرآن نه ویل کیږي؛ ځکه چې هغه متبادل لفظ منزل من الله نه دی،هرکله چې قرآن پاک هغه کلام الهي دی چې دحضرت جبرئیل امین علیه السلام په ذریعه په حضور ﷺ باندې نازل شو، مثلاً د سورت بقرې په لومړي آیت کې ,,لاریب فیه,,په ځای که ,,لاشک فیه,,الفاظ کیښودل شي؛ نودابه دقرآن پاک آیت پاتې نه شي. الغرض چې کوم متبادل الفاظ دقرآن کریم دتشریح یا ترجماني له پاره شوي دي هغه چونکې دوحي الهي الفاظ نه دي، ددې وجې نه هغو ته به قرآن نه ویل کیږي،خو دقرآن کریم ترجمه یاتشریح یاتفسیردې ته ویلی شئ؛ اوداهم ظاهره ده چې هرکس دخپل فهم مطابق ترجمه اوتشریح کوي پس څنګه چې دغالب دشعرونومفهوم یوکس په خپلوالفاظوکې بیان کړي؛ نوهغه دغالب کلام نه دی،بلکې دغالب دکلام ترجماني ده،همدغه شان دقرآن کریم ترجمه که په هره ژبه کې وي هغه کلام الهي نه دی،بلکې دکلام الهي تشریح اوترجماني ده اوس که یو کس ددې ترجمې اوتشریح مطالعه کوي؛ نودابه نه ویل کیږي چې هغه کلام الهي وویلو، بلکې دابه ویل کیږي چې هغهٔ دقرآن پاک ترجمه ولوسته،اوداهم ظاهره ده چې دالله تعالی اود مخلوق ترمینځه چې کوم فرق دی ،هغه فرق دهغه په کلام کې اودمخلوق دطرف نه شوې ترجماني په مینځ کې دی اوکوم کس چې دالله تعالی سره براه راست هم کلامي کول غواړي دهغه له پاره به براه راست دکلام الهي تلاوت لازم وي. هرمسلمان ته داکوشش کول پکاردي چې هغه دقرآن کریم دمفهوم په خپله دهغه په الفاظوباندې دپوهیدوصلاحیت اوداستعداد پیدا کړي،خو که په هغه کې داصلاحیت پیدانه شي؛ نوهم به دقرآن کریم دتلاوت د انوار او تجلیات هغه ته حاصلیږي اودتلاوت دثواب اوبرکاتونه به محروم نه وي، که په معنا اومفهوم باندې پوهیږي اوکه نه پوهیږي،ددې مثال بالکل داسې دی چې تاسویوه میوه یامتبایي راوړئ، ماته نه دهغې نوم معلوم دی اونه دهغې دخواص اوتاثیراتونه واقف یم،ددې لاعلمي

باوجود که زه هغه میوه یا شیریني خورم نو د هغې د خوړوالی او شیریني او د هغې د ظاهري او باطني فوائدو نه به محروم پاتې نه شم.

**دویمه وجه:**......ځینې خلک چې د کلام الهي د خوندنه ناخبره دي او په چاکې چې د کلام الهي او د مخلوق د کلام په مینځ کې د فرق حس موجودنه دی،د هغوی وینا ده چې دقرآن کریم نه مقصود د دې معنا او مفهوم باندې پوهیدل او د دې احکامو او فرامینو معلومول دي او دا مقصود چونکې د ترجمې یا تفسیرنه حاصلیدای شي،لهذا ولې نه یوازې په ترجمه یا تفسیر باندې اکتفا وکړل شي؟ دقرآن پاک الفاظ زده کولو،ښودلو،اولوستلو او بل ته ښودلو باندې ولې وخت ضائع کړل شي؟مګردا یوه ډیره سنګینه غلطي ده،ځکه چې څنګه دقرآن کریم معاني او مطالب مقصود دي ټیک همدغه شان د دې دالفاظو تعلیم او تلاوت هم یو اهم مقصد دی او دا یو داسې عظیم الشان مقصد دی چې قرآن کریم دا دحضورﷺ فرائض نبوت نه اولین مقصد ګرځول دي، چنانچې ارشاددی:

**"ربنا وابعث فیهم رسولا منهم یتلوا علیهم ایاتک ویعلمهم الکتب والحکمة ویزکیهم انك انت العزیز الحکیم.(۲:۱۲۹)**

**ترجمه:** اې زموږ پروردګاره!ددې ډلې ددننه نه هم په دوی کې یو پیغمبر مقرر کړه،چې دې خلکوته ستا ایتونه اوروي،او دوی ته د آسماني کتاب او دخوش فهمي تعلیم ورکړي او دوی پاک کړي ، بیشکه هم ته یې دغالب قدرت او کامل انتظام والا.(ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

**"کما ارسلنا فیکم رسولا منکم یتلوا علیکم آیاتنا ویزکیکم ویعلمکم الکتب والحکمة ویعلمکم مالم تکونوا تعلمون..."(۲:۱۵۱)۱۵۱)**

**ترجمه:** څنګه چې په تاسو خلکوته موږ یو عظیم الشان رسول له تاسو درولیږه ،زموږ ایتونه (احکام) اوروي.او دجهالت نه تاسو پاکوي او تاسوته دکتاب(الهي) دفهم خبرې ښیي او تاسوته داسې دګټې خبرې ښیي دکوموچې تاسو خبرنه وی. (ترجمه:حضرت تهاوی)

**"لقدمن الله علی المومنین اذ بعث فیهم رسولامن انفسهم یتلوا علیهم ایاته ویزکیهم ویعلمهم الکتب والحکمة وان کانوا من قبل لفی ضلال مبین.(۳:۱۶٤)۱٦٤)**

**ترجمه:** په حقیقت کې الله تعالی په مسلمانانو باندې احسان وکړ،کله چې په هغوی کې یې هم دهغوی دجنس نه یو پیغمبر راولیږه.چې هغه دوی دالله تعالی آیتونه اوروي،او ددې خلکو صفا یې کوي او دوی دکتاب او فهم خبرې ښیي.او په یقین سره داخلک په صریحه غلطي باندې وو. (ترجمه حضرت تهانوی)

**"والذی بعث فی الامیین رسولامنهم یتلوا علیهم ایاته ویزکیهم ویعلمهم الکتب والحکمة وان کانوا من قبل لفی ضلال مبین.(۲:۶۲)۲۶۲)**

**ترجمه:** الله هغه ذات دی چې (دعربو)ناخوانده خلکوهم دهغوی (دقوم)نه ( عربونه) يو پيغمبر راوليږه،چې دوی ته دالله تعالی آيتونه اوروي اودوی (دعقائدوباطله اواخلاق ذميمه وو نه) نه پاکوي اودوی ته دکتاب اوحکمت (خبرې) ښيي اوداخلک (دهغوی دبعثت نه) مخکې په ښکاره ګمراهي کې وو . . (ترجمه حضرت تهانوي)

کوم شی چې دحضور ﷺ دفرائض نبوت نه لومړی فريضه ګرځول شوې ده، دامت په دې باره کې داخيال کول چې داغيرضروري ده،څومره لوی جسارت اوڅومره لويه بې ادبي ده....

**دريمه وجه**.....په قرآن کريم کې ارشاد دی:,,**انا نحن نزلنا الذکروانا له لحفظون**.،(الحجر:۹) موږ قرآن نازل کړی دی اوموږ ددې حفاظت کونکې يو . . دقرآن کريم دحفاظت په وعده کې دالفاظوحفاظتدمعنی حفاظت،اودزبان اولغت حفاظت ټول شامل دي. اوپه عالم اسباب کې ددې دحفاظت وعده داسې پوره شوه چې دحضور ﷺ ددورنه واخله تراوسه پورې ډلې ډلې دقرآن کريم په حفاظت کې مشغول دي اوان شاء الله دقيامت پورې به داسلسله جاري وي، ګويا دحفاظت قرآن په ضمن کې دهغو ټولو خلکودحفاظت وعده هم ده چې دقرآن کريم دخدمت په څه نا څه شعبې سره منسلک دي په دې خادمانوکې سرفهرست دهغه حضراتو نومونه دي چې دقرآن کريم دالفاظوپه حفاظت کې مشغول دي اود قرآن کريم دالفاظوپه تعليم اوتعلم لګيادي، که حفظ کوي ياپه ناظره باندې ښيي اودهمدې وعده حفاظت کارفرمايي ده چې نن سباپه دګډ وډ دوروکې ( ستاسوپه وينا چې دقرآن دلوستلووخت چا سره شته؟) په لکونوحافظان موجود دي چې په هغوی کې دشپږو اووکالوماشومان هم شامل دي،اوس اګرکه دقرآن پاک تلاوت غير ضروري وګرځول شي اوامت دلوستلوښودلوشغل پرېږدي؛ نوګويادقرآنکريم د حفاظت وعده (نعوذبالله)غلطه شوه،مګرددې محکمې وعدې غلطې ګرځيدل خوممکن نه دي اوداکيدای شي چې بالفرض امت دقرآن کريم دالفاظودتلاوت اوددې ښودنه اولوستنه پرېږدي؛ نوالله تعالی به ددوی په ځای داسې کسانونه کارواخلي چې ددې وعده الهي په تکميل کې خپل ځانونه خاورې کړي، ګويا امت دامت په حيثيت سره پاتې کيدل، دقرآن کريم په تلاوت اوتعليم اوتعلم باندې موقوف دی،که امت ددې فريضې نه مخ وګرځوي؛ نوسرونه به ترې ووهل شي اوددې دنيانه به ختم کړل شي،څنګه چې په قرآن کريم کې ارشاددی: ,,**وان تتولوا يستبدل قوما غيرکم ثم لايکونوا امثالکم**.(محمد:۳۸)

**ترجمه:** که تاسومخ وګرځوی؛ نوالله تعالی به ستاسوپه ځای دويم قوم پيداکړي، بيابه هغوی ستاسوپه شان نه وي. .(ترجمه حضرت تهانوي)

دلته دانکته هم په ذهن کې ساتل پکاردي چې الله تعالی چېرته دقرآن کريم دحفاظت وعده فرمايلې ده هلته دحفاظت قرآن په ضمن کې دهغه ټولوعلمونودحفاظت وعده هم ده، چې دقرآن کريم خادم دي،ددې علوم قرآن په فهرست باندې که يونظرواچوئ نوپه دې کې به

درته ډير داسې علمونه په نظرراشي دکومو تعلق چې دالفاظ قرآن سره دی،ددې علمونو اجمالي تعارف حافظ سيوطي رحمه الله په،،الاتقان فی علوم القرآن،،کې پيش کړی دی،موصوف علوم قرآن په (۸۰) انواعو تقسيم کړی دی اودهرې نوع لاندې ئې شميرانواع درج دي مثلاً: ديوې نوع عنوان دی: ،،بدائع القرآن،،ددې لاندې حافظ سيوطي رحمه الله ليکي:

په اته پنځوسمه نوع(۵۸)،،بدائع القرآن،،کې په دې موضوع باندې دابن ابی الاصبغ (عبدالعظيم بن عبدالواحدبن ظافرالمعروف بابن ابی الاصبغ المصري (المتوفی ۶۵۴) هجري) يومستقل کتاب ليکلی دی اوپه هغه کې تقريباًدسلوانواعو ذکردی.،، (الاتقان:ج:۲ ص:۸۳)[۱]

الغرض دقرآن کريم مقدس الفاظ هم ددې ټولوعلمونو سرچشمه ده،دقرآن کريم معنا اومفهوم سمندرهم په دې الفاظو کې موجونه وهي،که خدای مه کړه دامت دلاسه دالفاظ قرآن دا رشته پريوځي؛ نوددې ټولوعلمونوچشمې به وچې شي اوامت به نه يوازې دکلام الهي يدلذت او حلاوت نه محرومه شي، بلکې دقرآن کريم دعلومو اومعارفو نه به هم تش لاس پاتې شي.

**څلورمه وجه:**....دکلام الهي دتلاوت سره چې کوم انواراوتجليات اهل ايمان ته نصيب کيږي دهغو بيان په تحريرکې راوستل ناممکن دي، داحديث به تاسواوريدلی وي چې دقرآن کريم دهرحرف په تلاوت باندې لس نيکۍ ملاويږي،دحضور صلی الله عليه وسلم ارشادمبارک دی:

،،چاچې دکتاب الله يوحرف ولوست دهغه له پاره ددې په بدله کې لس نيکۍ دي اوهره نيکۍ لس چنده ملاويږي.(په هرحرف باندې لس نيکۍ شوې)اوزه دانه وايم چې الم يوحرف دی. نه!بلکې الف يوحرف دی،لام يوحرف دی،اوميم يوحرف دی،( په الم لوستلوباندې ديرش نيکۍ ملاويږي.)،،(مشکوة ص:۱۸۶)[۲]

دقرآن کريم دتلاوت بې شميره فضائل دي اوکوم کس چې دتلاوت قرآن د فضائلو او برکاتو اندزه لګول غواړي، هغوی دې دحضرت شيخ الحديث مولانامحمدزکرياامهاجرمکي مدني (نورالله مرقده)،،رساله ،،فضائل قرآن،،مطالعه وکړي اوس ظاهره ده چې قرآن کريم په يو حرف باندې دلسو نيکو وعده ده داټول اجراوثواب اوفضيلت او برکت دقرآن کريم د الفاظوپه تلاوت باندې دی،يوازې انګريزي، اردوترجمه لوستلوسره دا اجراوثواب نه حاصليږي، کوم کس چې دا اجر او ثواب او برکت وفضيلت اوددې نورحاصلول غواړي دهغه له پاره ددې نه پرته هيڅ بله لارنشته چې هغه دې د قرآن کريم دالفاظوتلاوت وکړي.دځه سره چې داټولې وعدې ترلاسه شوې دي.(**والله الموفق لکل خيروسعادة**)

---

[۱] النوع الثامن والخمسون فی بدائع القرآن افرده بالتصنيف ابن ابی الاصبغ فاورد فيه نحومائة نوع۔(الاتقان فی علوم القرآن ج:۲ص:۸۳ طبع مصر)۔

[۲] وعن ابن مسعودرضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :من قرأ حرفًا من کتاب الله فله حسنة والحسنة بعشر امثالها ،لا اقول آلم حرف، الف حرف ولام حرف وميم حرف ، رواه الترمذی ،والدارمی ۔ (مشکوة ص:۱۸۶،کتاب فضائل القرآن ،طبع قديمی کتب خانه)۔

ترکومې پورې چې دقرآن کریم دترجمې اوتفسیردمطالعې تعلق دی، دقرآن کریم په مفهوم باندې دپوهیدوله پاره دترجمې اوتفسیرمطالعه ډیره ښه خبره ده، که ترجمه په اردوکې وی یا په انګریزي کې یاپه بله ژبه کې،خو په دې سلسله کې دڅو کارونوخیال ساتل ضروري دي:

**اول:**......هغه ترجمه اوتفسیربه مستند وي،اودچامحقق عالم رباني دقلم څخه به وي،څنګه چې دشاهي فرامینودترجماني له پاره دلائق اوبااعتماد ترجمان کیدل ضروري شرط دی،که نه، هغه دترجماني اهل نه ګڼل کیږي، همدغه شان داحکم الحاکمین دترجماني له پاره هم شرط دی چې ترجمه کونکی ددیني علمونوماهر،مستنداولائق اعتماد وي،نن سبا دډیرغیرمسلمو،بې دینو، او اخوا دیخوا خلکو ترجمې په بازار کې پرتې دي،خصوصاپه انګریزی ژبه کې دداسې ترجموڅخه بازار ډک دی چې په هغو کې دالله تعالی دکلام دترجماني په ځای دقرآن کریم په نوم سره دخپلو خیالاتو او افکارو ترجماني شوې ده، ظاهره ده چې دکوم کس په دین اودیانت باندې موږ ته اعتمادنه وي، دهغه په ترجمه باندې اعتمادڅنګه کیدای شي؟ددې وجې نه کوم حضرات چې دترجمې اوتفسیر شوقین وي دهغوی فرض دي چې هغوی دې دچالائق عالم په مشورې سره دترجمې اوتفسیرانتخاب وکړي اوهره غلطه ترجمه دې لوستل نه شروع کوي.

**دویم:**....دترجمې اوتفسیربه مددسره چې بنده څه زده کړي وي، هغه دې په قطعیت سره دقرآن کریم طرف ته نه منسوبوي،بلکې دادې وویل شي چې مادفلانی ترجمې اوتفسیرنه دامفهوم زده کړی دی، داسې نه وي چې دغلطي له وجې نه یوه غلطه خبره دقرآن کریم طرف ته منسوبولو وبال دده په سر راشي، ځکه چې د منشاء الهي نه خلاف څه خبره دقرآن کریم طرف ته منسوبول په الله تعالی باندې بهتان تړل دي، چې سخته ګناه ده.[1]

**دریم:**.....تاسومعلومول غوښتي دي چې:کومه طریقه بهتره ده، په عربي کې دقرآن شریف دتلاوت کولویاپه انګریزي کې دترجمې لوستلو؟

د ترجمې لوستلوشرائط خوما اوس ذکرکړي دي اوداهم ښکاره ده چې دترجمې لوستل، دقرآن کریم دتلاوت بدل کیدای نه شي، که دوه شیان متبادل وي، یعنې یو شی دبل بدل جوړیدای شي؛ نو هلته خوداسوال کیدای شي چې په دې کې کوم شی بهتردی؟ هرکله چې دترجمې لوستل دتلاوت بدل نه دي اونه ددې ځای نیولی شي؛ نوهم داعرض کیدای شي چې

---

[1] عن ابن عباس رضی الله عنهما قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :من قال فی القرآن برایه فلیتبوا مقعده من النار_ وفی روایة :من قال فی القرآن بغیر علم فلیتبوا مقعده من النار_ رواه الترمذی _ وعن جندب رضی الله عنه قال :قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :من قال فی القرآن برایه فاصاب فقداخطأ _رواه الترمذی ،وابوداود _وعن ابی هریرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :المراء فی القرآن کفر_رواه احمد وابوداود ( مشکوة ص:۳۵ طبع قدیمی)_

دقرآن کریم اجر اوثواب اوانوار او تجلیات له پاره مسلمانانوته دقرآن پاک تلاوت کول پکار دي،که په معنا او مفهوم باندې پوهیدوشوق مو وي؛ نوددې له پاره دترجمې اوتفسیرنه هم مدد اخیستل کیدای شي اوکه ددوارو جمع کولوفرصت نه وي؛ نوبهترصورت دادی چې ته د ترجمې په ځای دقرآن کریم تلاوت کوه اوددین مسایل داهل علم نه معلوم اوعمل پرې کوه، په دې صورت کې به درته د قرآن کریم دتلاوت ثواب هم ملاویږي، خوکه تلاوت دې پریښودو او ترجمه خواني دې شروع کړه؛ نودتلاوت قرآن نه خوپه لومړۍ ورځ داکس محروم شو اوظاهره ده چې ترجمه لوستلو سره داکس دقرآن کریم ماهر نه شي جوړیدای اونه ترې ددیني مسایلو اخذکولی شي اوهمدغه شان داکس په دین دعمل کولو دتوفیق نه هم محروم شو اوداتاواني سودا ده!

تاسوداعذر لیکلی دی چې: ,,دلته په امریکه کې ژوند ډیرزیات مصروف دی اوخلکو سره ډیرکارونوکولوهم وخت نه شته، لهذا دلته مسلمانان سړي او ښځې وایي چې موږ قرآن نه شو لوستلی ، ځکه چې هغوی اودس نه شي کولی اونه په یوکونج(ګوټ) کې کېناستی شي چې قرآن ولولي، کوم چې دهغوی په پوهه کې نه راځي،،،

تاسوچې ددې جدید دور د ښځو سړیو دبې پناه مصروفیاتوکوم ذکرکړی دی، هغه بالکل صحیح دی اودا یوازې دامریکې مسئله نه ده، بلکې تقریبادټولې دنیامسئله ده، دنن انسان دمصروفیت په زنځیرونوکې داسې تړل شوی دی چې ددې نه مخکې کله هم داسې پابند سلاسل شوی نه و.

تاسوچې غور وکړئ! نودې نتیجې ته به ورسیږئ چې زموږ ددې بې پناه مصروفیاتو دوه اسباب دي، یوداچې دنن په مشیني دورکې په خپله انسان نه یوخودکاره مشین جوړشوی دی، د مشینانوایجادخوددې له پاره شوی و چې ددې له وجې به انسان ته دفرصت څوګړۍ ملاو شي،خو دمشین برق رفتاري سره مقابله کولوله پاره انسان په خپله هم دمشین کردار ادا کوي.

دویم داچې موږ په خپل ځان باندې ډیرو غیرضروري شیانو بوج اچولی دی، دانسان بنیادي ضرورت یوازې دومره و چې دلوږې ختمولوله پاره دې هغه ته په مړه خیټه ډوډۍ ملاوشي، دتن دپټولوله پاره دې هغه ته جامه ملاوشي، دګرمي یخني نه دبچ کیدو له پاره دې دهغه له پاره جونګړه وي، خو زموږ هریوکس دقیصراوکسری په شان دبدبه کې داوسیدو خواهش مند دی اوهغه په هرشي کې دنورونه مخکې کیدل غواړي.

هغه بې دینه اوبې خدایه قومونه دچاپه وړاندې چې داخرت تصورنه شته،دچاپه نزد چې بس همداد دنیاژوندی اوچاپه باره کې چې په قرآن کریم فرمایل شوي دي:

,,,ان الذین لایرجون لقائنا ورضوا بالحیوة الدنیا واطمأنوابها والذین هم عن ایاتنا غافلون،اولئک ماواهم النار بما کانوا یکسبون.،،(۸،۷:۱۰)

**ترجمه**: بې شکه هغه خلک چې زموږ سره دملاویدو امیدنه لري او ددنیا په ژوند باندې

خوشاله او مطمئن شول او کوم خلک چې زمونږ د نښونه بې خبره دي د داسې کسانو استوګنځای (تیکانه) اووردی، د هغه څه په بدله کې چې هغوی کسب کول..، (ترجمه حضرت شیخ الهند)

هغوی که د دنیاوي مقابلې او مسابقې په مرض کې اخته شوي دي او د دنیاوي زیب و زینت او شان وشوکت معراج یې کمال ګڼلی دی؛ نو هیڅ حیرانتیا نه وه، خو امت محمدیه ﷺ دچا په زړه کې چې دعقیده اخرت او د محاسبې یقین دی، د هغه ځای دجزا اوسزا او هلته د کامیابي او ناکامي توره یې هروخت په سر له پاسه اویزان وي، دهغوی دا د اخرت هیرول ډیرزیات افسوسناک دي او د حیرانتیا خبره هم ده.

مونږ دغیرو په تقلیداونقالي کې دخپل ژوند معیار اوچتول شروع کړل، زمونږ په وړاندې زمونږ دمحبوب ﷺ دژوند نقش موجود و، دصحابه کرامو (رضوان الله علیهم اجمعین) نمونې موجودې وې او د بزرګانو او اولیاءالله مثالونه موجود وو، مګرمونږ دهغوطرف کتل هم خوښ نه کړل، بلکې دادعوت ورکونکي مو نادان اواحمق وګڼل اودژوند معیار اوچتولو په شوق کې مودژوند په موټر باندې دومره نمایشي سامان بارکړ، چې اوس دهغه راښکته کول ګران شوي دي، دکورټول خلک، نراو ښځې، لوی او واړه، ددې بوج په راښکلو کې شپه ورځ لګیادي، دشپې خوب اودورځې سکون یې بربادشو، زمونږ اعصاب نوردکارقابل نه دي، په نفسیاتي ناروغیوکې اضافه وشوه، په دارو درملو کې کې (۷۵٪) دمسکن دوایانو استعمال کیږي، دخوب ګولی لکه دخوراک په شان خوړل کیږي، دناځاپه مرګونوشرح دحیرانتیاترحده پورې زیاته شوې ده، خودالله تعالی په هیڅ یو بنده کې داعقل نه راځي چې مونږ دادنمود اونمائش بوج په خپل ځان دځه له پاره بارکړی دی؟نه داخیال راځي چې که مرګ اودمرګ نه وروسته ژوندون حق دی اودقبرسوال اوجواب اوثواب اوعذاب برحق دی، مونږ خودنمود اونمایش بوج په سرکړی دی اوګرځو او ددې له وجې نن سباله خیره مونږ ته دتلاوت کولوموقعه هم نه ملاویږي، دابه په قبراوحشرکې زمونږ په څه کار راشي؟

((هرڅه به درنه پاتې شي چې روان بلې دنیاته شې!))

داتماشه شپه ورځ زمونږ دسترګوپه وړاندې ده، دنمود او نمایش اواوچت معیارزندګي په مرض کې اخته مریضان خالي لاس بلې دنیاته په تلومونږ شپه ورځ وینو، خوزمونږ دعبرت سترګې ونه غړیدې.

دیوحدیث شریف مضمون دی چې بنده کله مري؛ نوفرښتې پوښتنه کوي چې ده مخکې څه ولیږل اوخلک وایي چې ده وروسته څه پریښودل؟(مشکوة ص:۴۴۵)[1]

اوس هرکله چې مونږ مړه شو، کله چې مونږ دقبرپه تیاره خلوت خانه کې کینبودل شو او فرښتې رانه پوښتنه وکړي چې ددې ځای دتیارې رڼا دقرآن مجید تلاوت دی، ددې ځای تیاره

---

[1] عن ابی هریرة رضی الله عنه یبلغ به قال:اذا مات المیت قالت الملائکة :ماتقدم ؟ وقال بنوا آدم :ماخلف _رواه البیهقی فی شعب الایمان _ (مشکوة ص:۴۴۵،کتاب الرقاق ،طبع قدیمی)_

لږ کولوله پاره تادځان سره څه راوړي دي؟؛ نوهلته به وواېي چې زموږ ژوند ډېرزيات مصروفه و دومره وخت راسره چيرته و چې اودس موکړی وای اوچيرته په يوکونج کې ناست وای قرآن مولوستلی وای.

اوکله چې په ميدان حشرکې دالله تعالی په دربارکې درنه پوښتنه وشي چې دجنت قيمت اداکولوله پاره دې له ځان سره څه راوړي دي؟؛ نوهلته وواېي چې مالويې لويې ډگرې حاصلې کړې وې، دامريکې په شان ترقي يافته ملک کې په دومره لويه عهده باندې فائز وم، ماپه فلاني فلاني شي کې نوم پيداکړی و، بهترينې جامې مې اغوستې وې، په شانداره بنگله کې اوسيدوم ،موټرې راسره وې، بينک بيلنس راسره و، زماسره دومره وخت چيرته و چې دومره تياری وکړم، پنځه وخته جوماتت ته لاړشم، همېشه کم نه کم د يوې سپارې تلاوت وکړم، تسبيحات ولولم، درودشريف ولولم، په خپله ددين په محنت کې لگياشم اوپه خپل اولادباندې دقرآن مجيدحفظ وکړم.....؟ماته وواېئ چې له مرگ نه وروسته هلته په حشرکې به هم موږ اوتاسوداجواب ورکوو چې: جناب! په امريکه کې دښځو اوسړيوسره دومره وخت چيرته و، چې اودس يې کړی وای اوچيرته په يوکونج کې ناست وای دقرآن پاک تلاوت يې کړی وای؟ نه!.... هلته به دا جواب نه وي، هلته به هغه جواب وي کوم چې قرآن کريم نقل کړی دی:

،، اَنْ تَقُوْلَ نَفْسٌ يّٰحَسْرَتٰى عَلٰى مَا فَرَّطْتُّ فِيْ جَنْۢبِ اللّٰهِ وَاِنْ كُنْتُ لَمِنَ السّٰخِرِيْنَ،،(الزمر:۵۶۵۶)

**ترجمه**: کله چې (دقيامت په ورځ) څوک وواېي چې: افسوس زماپه دې کوتاهي باندې چې مادخدای په جناب کې کړې ده اوماخوبه دخدای احکامو پورې خندل،،(ترجمه حضرت تهانوي)

اوکله چې له مرگ نه وروسته زموږ جواب هغه وي کوم چې قرآن کريم نقل کړی دی چې دلته داعذرکول چې فرصت نه شته ، دنفس فريب نه دی؛ نو نورڅه دي...؟

په حديث شريف کې دي: **،،الكيس من دان نفسه وعمل لما بعد الموت، والعاجز من اتبع نفسه هواها وتمنى على الله،،**(مشكوة ص:۴۵۱)

**ترجمه**: دانشمن هغه دی چاچې خپل نفس کابوکړ اوله مرگ نه وروسته ژوندله پاره يې محنت وکړ اوهغه کس احمق دی چې خپلو نفسي خواهشاتوپسې لگيا و اوپه الله تعالی پورې يې اميدونوتړل،،

دې ټولوخبرو ته يوازې نظر وکړئ! زموږ په مصروف ژوند کې زموږ سره د ډيرو کارونو له پاره وخت شته، موږ اخبارگورو، ريډيو اوټلويزون گورو، دیارانودوستانوسره دگپ شپ اوسيل له پاره بهرته ځو، په تقريباتوکې شرکت کوو،ددې ټولو شيانو له پاره زموږ سره فالتو وخت شته او په داسې موقعوباندې موږ کله هم دوخت نه ملاويدوعذر نه وړاندې کوو، خوکله چې د لمونځ، روژې، ذکر، اذکار اوتلاوت قرآن سوال مخې ته راشي؛ نوفورا دوخت نه

ملاويدو د ګيلو دفتر راخلاص کړو.

امريکه او نورو ډيرو ملکونوکې په هفته کې دوه ورځې چوټي (رخصتي) وي، دهغتې ددې دوو ورځو دمشاغلو نظام موږ له مخکې نه جوړکړی وي اوکه څه کارنه وي: نوبياهم دوخت پاس کولوله پاره څه نا څه مشغله ضرورتجويزکيږي، خودتلاوت قرآن له پاره وزګار وخت، موږ سره دچوټي په دې دوو ورځوکې هم نه وي.

ددې نه معلومه شوه چې دفرصت نه ملاويدوعذردنفس يوه دوکه ده، ددې اصلي سبب دادی چې دنيا زموږ دسترګوپه وړاندې ده، ددې له وجې موږ ددې په مشغلوکې اخته يو، مرګ اواخرت ته مو خيال نه دی، ددې له وجې دمرګ نه وروسته اوږد ژوندنه غفلت دی، نه دهغه له پاره تياری شته اونه دتياري فکر او اهتمام، ددې له وجې ددې خبرې ضرورت دی چې دعذر وړاندې کولوپه ځای ددې غفلت دمرض علاج وشي، دقيامت په ورځ به دا عذرنه چليږي چې په پاکستان ياامريکه کې ښځې سړي ډيرزيات مصروفه وي، هغوی سره دذکر او تلاوت وخت چيرته و.

۳.....تاسوليکلي دي چې:

کافر راپورې ټوکې کوي، يوازې ديوقرآن ويلوله پاره څومره کارونه کول دي، دا مني چې هغه يومقدس کتاب دی، خوبائبل هم يومقدس کتاب دی اوموږ هغه کتاب هر وخت کله لوستی شو، موږ زياتردويده کيدوپه وخت کې په بستره کې لوستلی شو، ايا قرآن کريم په دې طريقې سره لوستل کيدای شي؟ که نه شي؛ نوڅه وجه ده؟

تاچې دکافرانو دټوکو کولوکوم ذکرکړی دی، په دې اړه درته يولطيفه کوم..... وايي چې يو د پوزه لرونکی کس دپوزپريکړوملک ته لاړ، هغوی،، پوزې والاراغی، پوزې والاراغی، ويل او ټوکې يې ورپورې کولې، داټول ملک دپوزپريکړو و، ددې وجې نه دهغه غريب ژوند ډير ګران شو اودخپلې پوزې نه ورته شرم راته، همدې ځای نه دپوزپريکړودمحاورې شروع وشوه، ستامشکل دادی چې ته دپوزپريکړو په ملک کې اوسيږې، ددې له وجې تاته دخپلې پوزې نه شرم درځي، که په تاکې دا احساس وي چې عيب ستاپه پوزه کې نه دی، بلکې دهغه پوزه پريکړو په پوزې په غابيدوکې دی؛ نودهغوی په ټوکوکولوبه ته نه خفه کيدې.

کوم بائبل ته چې هغوی مقدس کلام وايي هغه دالله تعالی کلام نه دی، بلکې دانساني لاسونو ليکل شوی دی، مثلا: عهدنامه جديد، کې ,,دمتی انجيل ,دمرقس انجيل، دلوقا انجيل. ديوحنا انجيل، ,په نامو سره چې کوم کتابونه شامل دي دادالله تعالی کلام نه دی، چې په حضرت عيسی عليه السلام باندې د حضرت جبرائيل عليه السلام په ذريعې سره نازل شوی و، بلکې د حضرت عيسی عليه السلام څلورسوانح عمري دي چې په مختلفوختونوکې څلوروحضراتوليکلي دي، دمزې خبره داده چې په دې څلوروارو کتابونواصلي نسخه اوس په دنيا کې نه شته، ددې بې چاره ګانوپه لاسوکې چې څه دي هغه يوازې ترجمه ده، اصل متن غائب دی، همدغه وجه ده چې

روزانه په دې ترجموکې تبديلي راځي، په (۱۸۸۰) کې چې کومه نسخه شائع شوې وه دهغې مقايسه د (۱۹۸۰) نسخې سره وکړئ! نوفرق به موېه په خپله مخې ته راشي.

ددې څلورو واړو انجيلونوپه مجموعه کې ,,درسولانو اعمال،، کتاب هم شامل دی دا دحضرت عيسی عليه السلام د حوارينوپه حالت باندې مشتمل کتاب دی اوددې وروسته چې کوم څوارلس خطونه دپولوس دي چې هغه دمختلفو ښارونوخلکوته ليکلي وي، له دې نه وروسته يعقوب، پطرس، يوحنا اود يهودا خطونه دي اوپه اخرکې ديوحناعارف مکاشفه ده. اوس غوروکړئ، چې په دې مجموعه کې هغه کوم يوشی دی چې دهغه يويوحرف ته کلام الهي وويل شي؟ اوهغه تيک په هغه ژبه کې محفوظ وي، په کومه ژبه کې چې نازل شوی و. دې خلکودانسانانوليکل شويو کتابونوته دمقدس کلام نوم ورکړی دی. مګردا الهي کلام نه دی ددې له وجې واقعي ددې لائق دی چې پرته دطهارت نه دې په ملاسته ولوستل شي. خوستاپه لاس کې هغه الهي کلام دی چې دهغه په هيڅ يوحرف کې څه تبديلي نه ده راغلې اونن هم هغه شان په تروتازه حالت کې موجوددی څنګه چې په حضرت خاتم النبين محمد صلی الله عليه وسلم باندې نازل شوی و، په دې نکته باندې ددنياتمام اهل عقل متفق دي چې داهغه کلام دی کوم چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ددنياپه وړاندې دکلام په حيثيت سره وړاندې کړی و اوپه دې کې ديوحرف هم تغيرياتبدل نه دی شوی، دانګريزي دوردصوبې متحده لفټننټ ګورنرسرويليم ميور،په خپل کتاب ,,لائف اف محمد (صلی الله عليه وسلم) کې ليکلي:

,,دابالکل صحيح اوکامل قرآن دی اوپه دې کې ديوحرف هم تحريف نه دی شوی، موږ په يوه مضبوطه وجه باندې دعوه کولی شو، چې دقرآن هر ايت خالص اوغيرمتغيرصورت کې دی او آخرکار موږ خپل بحث ,,ون هيم،، صاحب په فيصلې باندې ختموو، دهغه فيصله داده چې زموږ سره کوم قرآن دی موږ په کامل ډول ددې هرلفظ دمحمد (صلی الله عليه وسلم) ګڼو، څنګه چې د مسلمانانو دهرلفظ د خدای له طرف نه خيال کوي،،

**(ماخوذازتنبيه الحائرين ص:٤١ ازمولاناعبدالشکورلکهنوی)**

غرض داچې دمسلمانانوسره الحمدلله کلام الهي عين په اصلي حالت کې اوهم په هغو الفاظوکې موجود دی چې په حضور صلی الله عليه وسلم باندې نازل شوی و. ددې له وجې مسلمانانوچې په کوم ادب اوتعظيم سره دکلام الله تلاوت کوي، بالکل برحق دی، يوبزرګ د مسلمانانو د جذباتو ترجماني کوي اوليکي:

**هزارباربشويم دهن به مشک وګلاب :: هنوز نام تو ګفتن کمال بې ادبی ست**

**ترجمه**: که زه زرځله خوله په مشک اوګلاب سره ووينځم؛ نوبياهم ستا نوم اخيستل بې ادبي ده.

ددې له وجې که کافرتاته پيغوردرکوي؛ نودهغوی دپيغورهيڅ پرواه مه کوه، په هغوی کې خودطهارت تصورهم نه شته، هغوي د ظاهري ټيپ ټاپ اوصفايي ډيراهتمام کوي، مګرنه هغوی په اوبو سره استنجاکوي اونه دګندګي دځای دپاکولوورته توفيق کيږي اونه کله هغوی

چیرته غسل جنابت کړی دی، کله چې طهارت، اودس اوغسل دهغوی په مذهب کې شته نه؛ نوبیاهغوی په اودس کې خپل کتاب څنګه ولولي؟دا دامت محمدیه (علی صاحبها الصلوٰة والسلام) خصوصیت دی چې هغوی ته قدم په قدم باندې دپاکي اواودس تعلیم ورکړل شوی دی اودا ددې امت امتیازي وصف دی چې دهغه سره به دقیامت په ورځ ددې امت شناخت کیږي اوکوم اندامونه چې په اودس کې وینځل کیږي هغه به دقیامت په ورځ پړکیږي[1] دالله کتاب نوردی اواودس هم نوردی اود الله تعالی دکتاب همدغه ادب دی چې دادې په اودس اوپه ادب سره ولوستل شي، که چاته دقرآن پاک څه سورتونه زباني یادوي؛ نودهغو بې اودسه لوستل هم جائزدي[2] اوپه بستر کې یې هم لوستلی شيْ[3]،خوکه غسل فرض وي: نوبیرته دغسل کولونه دقرآن پاک زباني ویل جائزنه دي، همدغه شان دحیض اونفاس په حالت کې ښځې تلاوت نه شي کولی [4]اوکه بنده ته دغسل حاجت نه وي خوداودس موقعه نه وي؛ نوداهم جایزدي چې دقرآن پاک پاڼې دې په څه جامه باندې اړوي اوکتوسره دې تلاوت کوي[5]غرض داچې دلویې ناپاکي په حالت کې دقرآن پاک تلاوت کول جائزنه دي، خو دبې اودسي په حالت کې تلاوت جائزدی،البته قرآن پاک ته بې پردې لاس لګول بې اودسه ته جائزنه دي.[6]

---

١ ]عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :ان امتی یدعون یوم القیامة غرا محجلین من آثارالوضوء فمن استطاع منکم ان یطیل غرته فلیفعل _متفق علیه _ (مشکوة ص:۳۹طبع قدیمی)
(وعن ابی الدرداء رضی الله عنه قال:قال رسو الله صلی الله علیه وسلم :انا اول من یوذن له بالسجود یوم القیامة ،وانا اوّل من یوذن له ان یرفع راسه فانظر الی مابین یدی فاعرف امتی من بین الامم ومن خلفی مثل ذلک وعن یمینی مثل ذلک وعن شمالی مثل ذلک ،فقال رجل :یارسول الله !کیف تعرف امتک من بین الامم فیما بین نوح الی امتک؟ قال:هم غرمحجلون من اثر الوضوء لیس احد ‌کذلک غیرهم ......الخ (مشکوة ص:٤٠ کتاب الطهارة ،طبع قدیمی)_

٢ ]ویباح له قراءة القرآن لماروی ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان لا یحجزه عن قراءة القرآن شیء الا الجنابة (البدائع الصنائع ج:١ص:۳۳کتاب الطهارة ،آداب الوضوء طبع ایچ ایم سعید)_

٣ ]ولو قرأ مضطجعًا فلاباس ......الخ (فتح القدیر ج:١ص:٢٤٢)_

٤ ]ومنها حرمة قراءة القرآن لا تقرأ الحائض والنفساء والجنب شیئًا من القرآن والآیة و... سواء فی التحریم علی الاصح (فتاوی هندیة ج:١ص:۳۸،کتاب الطهارة ،الباب السادس ،الفصل الرابع ،طبع کوئته)

٥ ]قوله وحلِ قلبه بعود ای تقلیب اوراق المصحف بعود ونحوه لعدم صدق المس علیه (ردالمحتار علی الدرالمختار ج:١ص:١٧٤،کتاب الطهارة ،مطلب یطلق الدعاء علی مایشمل الثناء ،طبع ایچ ایم سعید)۔ ایضًا یجوز للمحدث الذی یقرأ القرآن من المصحف تقلیب الاوراق بقلم او عود اوسکین (البحر الرائق ج:١ص:٢١٢،طبع بیروت)_

٦ ] ومنها حرمة مس المصحف لایجوز لهما وللجنب والمحدث مس المصحف الا بغلاف متجاف عنه کالخریطة والجلدالغیر المشرز لابما هو متصل به هو الصحیح هکذا فی الهدایة وعلیه الفتوی کذا فی الجوهرة النیرة (فتاوی هندیة ج:١ص:۳۹،۳۷، کتاب الطهارة ،الباب السادس ،طبع رشیدیه کوئته)_

## د تفهيم القرآن تفسير مطالعه كول

**سوال:** آيا د مولانا مودودي ،،تفهيم القرآن،، غلط دی او ددې لوستل جائز نه دي؟ ايا هغه ګستاخ رسول او ګستاخ صحابه دی؟ لکه څنګه چې مولانا اشرف علي تهانوي (رحمه الله) د ډپټي نذيراحمد د ترجمه قرآن غلطي واضحه کړې ده او يوه رساله يې ليکلې ده، ايا تاسو حضراتو هم د مولانا مودودي د تصانيفو د ټولو غلطو نه د امت د خبرولو له پاره يوه رساله ليکلې ده؟

**جواب:** د مولانا مودودي په (تفهيم القرآن) کې د غلطيو نشاندهي دوخت عالمانو وخت په وخت کوي ددې مطالعه دعامو مسلمانانو له پاه ډيره ضرري ده.

## د ډپټي نذير احمد د ترجمې لوستل څنګه دي؟

**سوال:** ايا د ډپټي نذير احمد ترجمې او تفسير کې اختلاف شته ؟

**جواب:** دده ترجمه دې نه لوستل کيږي، په دې کې غلطيانې دي، هغه ډپټي و، مفسر نه و.

## دتدبر القرآن مطالعه څنګه ده؟

**سوال:** زه د حيواناتو ډاکټر يم، زموږ استاذ (چا چې ابتدايي تعليم د مولانا منظور احمد چنيوټي صاحب د مدرسې نه حاصل کړی دی) د وينا مطابق د مولانا امين احسن اصلاحي ،،تدبر القرآن ، مطالعه شروع کړې ده، تدبر القرآن د رجم د رويت د مسئلې پرته صحيح دی؟ ايا ددې نه ويل بهتره دي؟

**جواب:** د تدبر القرآن مطالعه کول نه دي پکار.

## د ګرځيدوپه حالت کې د قرآن پاک تلاوت او درود شريف لوستل څنګه دي؟

**سوال:** زه روزانه په بازارکې دتګ په حال دقرآن پاک کوم سورتونه چې ماته ياددي دهغو تلاوت کوم اويوېوسورت دوه دوه درې درې ځله وايم اوله دې نه وروسته درودشريف هم په بازار کې دتلوپه حال وايم.په دې سلسله کې راته دوه خبرې ووايئ چې يواچې زماداعمل سهي دی؟ اوپه دې کې دبې ادبي څه احتمال خونه شته؟ دويم داچې زماداسې ويل په وظيفو کې خونه شماريږي، ځکه چې ماوريدلي دي چې اکثروظيفې لوستلوسره وظيفې راواپس کيږي هم، چې دهغه له وجې انسان ته نقصان هم رسيدای شي ؟

**جواب:** بازارکې دتلوراتلوپه وخت کې دقرآن پاک سورتونه، درود شريف، يا نور ذکر اذکار

لوستلو څه نقصان نه شته[۱]، بلکې په حدیث کې په بازارکې دګرځېدو په وخت کې دڅلورمې کلمې لوستلوفضیلت راغلی دی[۲] اوتاسوته چاغلط ویلي دي چې دې سره نقصان هم کېدای شي دالله تعالی په نوم کې نقصان له کومې؟ هو! خو دڅه خاص مقصدله پاره وظیفې کول دپوښتنې نه پرته کول پکارنه دي.

## د تلاوت په وخت کې د(رسول الله )لفظ په راتلو څه ویل کېږي؟

**سوال:** د الله تعالي په فضل او کرم سره زه هره ورځ دقرآن کریم تلاوت کوم، د تلاوت د کولو په وخت کوم ځای چې لفظ رسول یا رسول الله راځي هلته (صلی الله علیه وسلم) ویل جائز دي او که نه؟

**جواب:** ایت چې ختم شي؛ نو ودې ویل شي.[۳]

## ختم قرآن کې دعوت بدعت نه دی

**سوال:** ایادختم قرآن په خوشالي کې دعوت بدعت دی؟

**جواب:** بدعت نه دی، بلکه جائزدی.[۴]

## په ختم قرآن کې شیریني تقسیمول

**سوال:** درمضان المبارک د(۲۳) په شپه په جومات کې دتراویحو وروسته دامام مسجد سورت عنکبوت اوسورة روم لوستل، مقتدیانو اوریدل اودمقتدیانوراوړې شوې شیریني په ماشومانو باندې اوپه لویانو دتقسیمولو څه ثبوت شته؟

**جواب:** دختم قرآن په خوشالي کې دعوت، ضیافت اوشیریني اوداسې نور... تقسیمول جائز

---

۱] ولا باس بالقراءة راكبًا وماشيًا اذا لم يكن ذلك المواضع معد للنجاسة فان كان يكره كذافى القنية (عالمگيرى ج:۵ص:۳۱٦،كتاب الكراهية ،الباب الثالث فى الرجل راى رجلاً يقتل اباه ومايتصل به)۔

۲ ]وعن عمر رضى الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال:من دخل السوق فقال:لا اله الا الله وحده لاشريک له ......كتب الله له الف الف حسنة ،ومحاعنه الف الف سيئة ، ورفع له الف الف درجة ،وبنى له بيتًا فى الجنة (مشكوة المصابيح ج:۱ص:۲۱٤)۔

۳ ] ولوقرأ القرآن فمر على اسم النبى صلى الله عليه وسلم وآله واصحابه فقراءة القرآن على تاليفه ونظمه افضل من الصلاة على النبى صلى الله عليه وسلم وآله واصحابه فى ذلک الوقت ،فان فرغ ففعل فهو افضل وان لم يفعل فلاشىء عليه كذا فى الملتقط (عالمگيرى ج:۵ص:۳۱٦،كتاب الكراهية ،الباب الثالث فى الرجل راى رجلاً يقتل اباه ومايتصل به)

٤ ] ويستحب له ان يجمع اهله وولده عندالختم ويدعو لهم كذافى الينابيع (عالمگيرى ج:۵ص:۳۱۷،كتاب الكراهية ،الباب الثالث)، ايضًا مالک عن نافع عن ابن عمر رضى الله عنهماقال:تعلم عمر رضى الله عنه البقرة فى اثنى عشرة سنة فلما ختمها نحر جزورًا ـ(الجامع لاحكام القرآن للقرطبى ج:۱ص:۳۰طبع بيروت)۔

دي، په دې شرط چې څه خرابي په کې نه وي[۱] خونن سبا چې ختم قرآن باندې د څنګه شیریني تقسیمولو رواج دی داجائزنه دی، باقي سورة عنکبوت اوسورة روم لوستل نقل نه دي.

## ختم قرآن باندې دعوت ورکول جائزدي او په تحفه کې څه ورکول هم جائزدي

**سوال:** زموږ په معاشره (جامعه) کې چې کله ماشوم قرآن پاک ختم کړي؛ نوامین کول کیږي، چې په هغه کې خپلوانو باندې خوراک خوړل کیږي اوختم کونکي ته تحفې ورکول کیږي، ایا داپه اسلام کې جائزدي؟ځکه چې په دې کې ریا هم راځي.

**جواب:** دختم قرآن په خوشالي کې په خوراک ورکولوکې هیڅ نقصان نه شته،حضرت عمر رضي الله عنه چې کله سوره بقره ختمه کړې وه؛ نواوښ یې ذبح کړی و[۲]، همدغه شان که دمحبت له وجې څوک ماشوم ته هدیه یاتحفه ورکړي؛ نوپه هغه کې هم څه نقصان نه شته، خوزموږ طرفونوته اکثرخلاف شرع تکلفات کیږي اوپه دې کې داخلاص اومحبت په ځای ریاکاري اورسم پرستي هم ښکاره کیږي.

## په یوه ورځ کې قرآن ختمول

**سوال:** یوه ښځه دلته تبلیغ کوي او وایي چې تاسوخلک چې ښځې رایوځای شئ اوپه شریکه ختم کوئ هغه ناجائزه دی، ځکه چې په یوه ورځ کې پوره قرآن پاک ختمول منع دي، یوقرآن کم نه کم په دریو ورځوکې ختمول پکاردي، په دې باندې ماترې پوښتنه وکړه چې په خالق دیناهال اونورو د تراویح په ځایونوکې چې په یوه شپه کې پوره ختم کیږي ددې په باره کې ستاڅه خیال دی؟؛ نوهغې وویل چې: داخلک سخت ګناهګاردي، مهرباني وکړئ اوصحیح صورت حال نه موخبر کړئ!

**جواب:** په حدیث شریف کې ددریو ورځونه په کم وخت کې دقرآن ختمولونه ممانعت راغلی دی، ځکه چې په دې صورت کې تدبر اوتفکرنه شي کیدای، مطلقاممنوع نه دی،ځکه چې د ډیر بزرګانو په یوه شپه کې ختم کول هم منقول دي، ښځې چې چیرته په شریکه د قرآن کریم ختم کوي په دې کې نورې خرابیانې کیدای شي، مثلاً: د ښځوسازسنګارسره راتلل، صحیح تلاوت نه کول،د تلاوت په دوران کې دنیاوي خبرې کول او داسې نور... ، بیاهم که څوکسان په شریکه ختم وکړئ؛ نودحدیث په ممانعت نه راځي، ځکه چې په حدیث کې دیوکس د دریو

---

۱ ] ایضًا۔

۲ ]مالک عن نافع عن ابن عمر رضی الله عنهماقال:تعلم عمر رضی الله عنه البقرة فی اثنی عشرة سنة فلما ختمهانحر جزورًا (الجامع الاحکام القرآن للقرطبی ج: ۱ص: ۳۰ بیروت)۔

ورځونه مخکې ختم کولو باندې ممانعت راغلی دی، نه چې د کمو کسانو په ختم کولو باندې[1] او تاسو چې د کوم خالق د یناهال د تراویحو حواله ورکړې ده دا هم صحیح نه دی، په تراویحو کې چې په یوه شپه کې کوم قرآن پاک ختمول کیږي هغه دومره په تیزي سره ویل کیږي چې الفاظ په صحیح طریقې سره په پوهه کې نه راځي، داسې ویل ممنوع او مکروه دي.[2]

## په رمضان کې قرآن تیز ویل څنګه دي؟

**سوال:** په رمضان المبارک کې عموماً حافظ صاحب چې کوم قرآن اوروي ددې د ویلو رفتار دومره تیز وي چې د یعلمون او د تعلمون نه پرته نور په هیڅ نه پوهیږو، که چیرې ده ته وویل شي چې لږ رفتار کم کړه؛ نو په جواب کې وایې چې ددوی مجبوري ده، په کم رفتار سره نه یې شي ویلی، په دې صورت کې ویونکي او اوریدونکي د ثواب مستحق به وي؟

**جواب:** د قرآن کریم ادب دادی چې دا په ډیر ارام او وقار سره په صحیح الفاظو سره وویل شي[3] دومره تیز ویل لکه څنګه تاسو ذکر کړي دي، جائز نه دي او د لوستلو او د اوریدلو والو ته ثواب نه ملاویږي، بلکې دا ویره ده چې ګناه نه وي.[4]

## شبینه قرآن جائز ده که ناجائز؟

**سوال:** زموږ په شا وخوا کې څوقاریان صاحبان راجمع شوي دي او دا پروګرام یې جوړ کړی دی چې په هره میاشت کې به یوه شبینه کوي او ددې وجه دا ښایي چې ټول کال د قرآن سره د تعلق ساتلو له پاره هغوی داسې کوي، چې د قرآن سره یې ضبط او محبت باقي پاتې شي، په دې کې څه غیرحافظان کسان هم په ډیرذوق او شوق سره شرکت کوي، واضحه دې وي چې ددې له پاره هیڅ چنده وغیره نه کیږي. او نه څوک زبردستي سره په قرآن اوریدلو باندې مجبور وي، همدغه اعلان کیږي چې کوم صاحب غواړي او څومره غواړي په شبینه کې شرکت کولی شي، په داسې محفل کې د قرآن پاک د اورولو یا اوریدلو له پاره شرکت کول د قرآن او سنت په رڼاکې څه حکم لري؟

---

۱ ]افضل القراءة ان یتدبرفی معناه حتی-قیل یکره ان یختم القرآن فی یوم واحدولایختم فی اقل من ثلاثة ایام تعظیمًا له ویقرأ بقراءة مجمع علیها کذافی القنیة (عالمگیری ج:۵ص:۳۱۷،کتاب الکراهیة ،الباب الثالث......الخ) وایضًا ویکره ان یقراه فی اقل من ثلاث لماروی عبدالله بن عمرقال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :لایفقه من قراءه فی اقل من ثلاث ......الخ (الفقه الاسلامی وادلته ج:۲ص:۸۲ تتمة الصلاة ختم القرآن)۔

۲ ] ویکره الاسراع فی القراءة وفی اداء الارکان کذا فی السراجیة (فتاوی هندیة ج:۱ص:۱۱۸)۔

۳ ](ورتل القرآن ترتیلاً (المزمل : ٤)

٤ ] وفی الحجة : یقرأ فی الفرض بالترسل حرفًا حرفًا،وفی التراویح بین بین ،وفی النفل لیلا له ان یسرع بعد ان یقرأ کما یفهم وفی الشامیة:ای بعد ان یمد اقل مدقال به القراء والا حرم لترک الترتیل الماموربه شرعًا (شامی ج:۱ص:٥٤١)

**جواب:** حضراتو فقهاو کرامو د درېو کسانو د زیاتو په جماعت سره نفل لوستل مکروه ګرځولي دي، که امام تراویح ورکوي؛ نو داشبینه صحیح ده او که امام د نفلو جماعت کوي؛ نو شبینه جائز نه ده.[۱]

## په (۲۷) رمضان باندې شبینه کول څنګه دي؟

**سوال:** په ۲۷ رمضان باندې شبینه کول او رڼا کول څنګه دي؟

**جواب:** شبینه جائز ده، په دې شرط سره چې مفاسدو نه خالي وي،ګني صحیح نه ده، بې ضرورته رڼا کول څه مستحسنه خبره نه ده.[۲]

## د ریډیو دیني پروګرام پرېښودل او ګانې اورېدل

**سوال:** زما په کورکې ریډیو ده، زما د ګانو اورېدو سره ډېر شوق دی، ځینې وختونوکې داسې کېږي چې د یو سټېشن نه تلاوت کلام پاک یا څه مذهبي پروګرام نشرکېږي؛ نو په دویم سټېشن باندې زما د خوښې ګانې نشرکېږي، زه په اخزه کې ټول مذهبي پروګرامونه پرېږدم او ګانې اورېدل شروع کړم، ایا دا جائز دي؟

**جواب:** ایا په خپله ستاضمیر دې ته جائز وایي؟ ګانې اورېدل په خپله حرام دي، تلاوت بندول او ګانې اورېدل څنګه جائز کیدای شي؟[۳]

## د ټیپ ریکارډ نه د ګانې اورېدو ګناه ملاوېږي د تلاوت د اورېدو ثواب ولې نه ملاوېږي؟

**سوال:** زه د قرآن حافظ یم، خوعالم نه یم، خلک زما نه دا سوال کوي چې ایا ګانه اورېدل ګناه ده؟ نو زه ورته وایم چې هو! ګناه ده؛ نو هغوی دا سوال کوي چې د ټیپ ریکارډ نه د تلاوت په اورېدو باندې ثواب ملاوېږي؟؛ نو زه وایم چې نه، هغوی وایې چې نه تلاوت والا موجود دی او ګانه ویونکی موجود دي، دا څه وجه ده چې په ټیپ ریکارډ باندې ګانه اورېدو باندې ګناه ولې ملاوېږي؟ او په تلاوت باندې ثواب ولې نه ملاوېږي؟؛ نو مهرباني وکړئ د دې سوال حل تلاش کړئ او ویې وایئ!

---

۱ ] ولایصلی الوتر والتطوع بجماعة خارج رمضان) ای.یکره ذلک علی سبیل التداعی بان یقتدی اربعة بواحد، درمختار،وفی الشامیة :قوله اربعة بواحد او اثنین بواحدفلایکره وثلاثة بواحد فیه خلاف......الخ (شامی ج:۲ص:۴۸ کتاب الصلاة ،مبحث صلاة التراویح)۔

۲ ] امدادالفتاوی ج:۱ص:۲۳۷،فصل فی التراویح ،طبع کتب خانه امدادیه ،اندیا)۔

۳] وفی البزازیة استماع صوت الملاهی کضرب قصب ونحوه حرام لقوله علیه الصلاة والسلام استماع الملاهی معصیة والجلوس علیها فسق والتلذذبها کفر(درمختارمع الشامی ج:۶ص:۳۴۹،وایضًا فی الهندیة ج:۵ص:۳۵۱)

**جواب:** د ټیپ ریکارډ نه د قرآن کریم د تلاوت د اواز د اوریدلو ثواب ملاویږي، خود تلاوت ثواب نه ملاویږي[۱] او د ګانې د کیسټ په اوریدو باندې ګناه ملاویږي او ګانې اواز آوریدل هم حرام دي[۲]

## د ټیپ ریکارډ د تلاوت ثواب وي

**سوال:** که د ټیپ ریکارډ نه د قرآن د تلاوت آواز واوریدلې شي نو د دې ثواب به وي، که ګناه به وي او که ثواب او ګناه هیڅ هم نه؟

**جواب:** د ټیپ ریکارډ اواز د تلاوت آواز خو په هر حال نه وي[۳] په دې وجه په دې باندې نه د تلاوت احکام مرتب کیږي او نه د تلاوت دآوریدو، البته د تلاوت آواز ضرور دی، په دې باندې الله تعالي ثواب ورکوي دا به څه بعیده نه وي.

## په کیسټ باندې د تلاوت ثواب نه ملاویږي نو بیا د ګانې د آوریدو ګناه ولې ملاویږي؟

**سوال:** ما په کیسټ باندې د تلاوت او د سجدې د عنوان لاندې فتوی ولوستله چې په هغې کې تاسو د کیسټ په تلاوت باندې د سجده تلاوت د عدم وجوب فتوا ورکړې وه او د کیسټ آواز مو د تلاوت آواز نه و شمېر کړی، نو په دې باندې اشکال دا واردیږي چې آیا په کیسټ باندې د تلاوت کلام پاک ثواب د اصلي تلاوت برابر دی او که نه؟ بل اشکال دادی چې که چیرې څوک په کیسټ کې بنده موسیقي آوري؛ نو ددې ګناه به ملاویږي او که نه؟ یا د موسیقۍ آواز آواز نه ګڼلو؛ نو دګناه کار به نه شي ګڼلی؟

**جواب:** تلاوت خو هغه وي چې قاري صاحب کړی وي په دې باندې ثواب په شرط د اخلاص ضرور وي، په کیسټ کې دده د تلاوت آواز محفوظ شوی دی، ددې آواز حکم د تلاوت نه دی[۴] مثلاً: که چیرې د آذان کیسټ د آذان په وخت ولګول شي؛ نو ددې حکم به د آذان نه

---

[۱] لان القراءة فعل اللسان (حلبی کبیر ص:۲۷۵ سهیل اکیدمی لاهور)

[۲] وفی البزازیة استماع صوت الملاهی کضرب قصب ونحوه حرام لقوله علیه الصلاة والسلام :استماع الملاهی معصیة والجلوس علیها فسق والتلذذ بها کفر (الدرالمختارج:٦ص:۳٤۹)_ وکره کل لهو ای کل لعب وعبث ......واستماعه کالرقص والسخریة والتصفیق وضرب الاوتار......واستماع ضرب الدف والمزمار وغیر ذلک حرام وان سمع بغتة یکون معذورًا ویجب عن یجتهد ان لایسمع (شامی ج:٦ص:۳۹٥،باب مایفسدالصوم ومالایفسده)

[۳] لان القراءة فعل اللسان (حلبی کبیر ص:۲۷٥ سهیل.اکیدمی لاهور)

[٤] والسماع شرط عمل التلاوة(حاشیه طحطاوی علی مراقی الفلاح ص:۲٦۰) ایضا :بخلاف السماع من البغاء والصدی فان ذلک لیس بتلاوة وکذا اذا سمع من المجنون لان ذلک لیس ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

وي، تاسو چې د سندرو د کیسټ کوم اشکال کړی دی هغه صحیح نه دی، ګانه، دا هم شرعاً حرامه ده او یو دې د ګانې د آواز آوریدل دا هم شرعاً حرام دی، دګانې په کیسټ د ګانې آواز آوریدل کیږي، ددې په حرام کیدو کې څه شبه ده؟[1]

## د کیسټ د آواز نه سجده

**سوال:** مسئله دا ده چې یوه ورځ ما د منی په بازار کې سفر کولو. د مني په بس کې کیسټ لګېدلې وه چې په هغې کې د قرآن پاک تلاوت کیده، ماهم تلاوت آوریدو چې په دې دوران کې قاري صاحب کوم چې تلاوت کولو یو ځای کې ده وویلو چې د سجده تلاوت،، نو کله چې ما دا واوریده؛ نو زما سره برابر په سیټ باندې سړي وویل چې اوس په مونږه باندې سجده واجبه شوه،آیا ددې سړي دا خبره صحیح ده؟ ځکه چې د منی بس خو ډک شوی و.

**جواب:** د کیسټ د تلاوت نه سجده تلاوت نه واجبیږي د سړي د خولې د تلاوت نه واجبیږي[2]

## د ټیپ ریکارډ نه د تلاوت آوریدل خلاف ادب دي؟

**سوال:** زماپه ذهن کې دا مسئله راځي چې د بسونو ډرایوران او اکثر د مني ډرایور د سفر په دوران کې د ګانو(سندرو) کیستې لګوي چې په هغې کې فحش او عریانه ګاني وي د سحر په وخت کې ډرایوران د قرآن پاک کیسټ هم لګوي او ددینه لږ ساعت پس عریان او فحش ګانې شروع کیږي، زما د منع کولو باوجود چې په دې کې فحش ګانې لګیدلې وي، د قرآن پاک کیسټ مه لګوئ هغه خلق وایي چې آواز خو دی، لکه څنګه چې سړې دروغ او رښتیا وایي، آیا ددوی وینا صحیح ده؟

**جواب:** ټیپ ریکارډ د آواز محفوظ کولو آله ده، ددې صحیح استعمال صحیح دی او غلط استعمال یې غلط دی،[3] دا د ډرایورانو (موټروانانو) بد مذاقي ده چې دا دسندرو له پاره

---

...بقیه د تیر مخ]..بتلاوة صحیحة لعدم اهلیته لانعدام التمیز (البدائع الصنائع ج:۱ص:۱۸۶کتاب الصلاة فصل واما بیان تجب علیه السجدة ،طبع ایچ ایم سعید)

[1] اختلفوا فی التغنی المجرد قال بعضهم انه حرام مطلقاوالاستماع الیه معصیة وهو اختیارشیخ الاسلام ولو سمع بغتة فلااثم علیه(عالمگیری ج:۵ص: ۳۵۱،کتاب الکراهیة،الباب ،السابع عشرفی الغناء واللهو وسائرالمعاصی...الخ

[2] ولاتجب بکتابة ولانظرمن غیرتلفظ لانه لم یقرأ ولم یسمع وکذا التهجی فلاتجب علیه ولا علی من سمعه لانه تعداد الحروف ولیس بقراءة (حاشیة طحطاوی ص: ۲۶۱،باب سجودالتلاوة) (التلاوة هی مصدر تلا بمعنی قرأ...... وانما لم یذکر السماع لان المختاران سبب التلاوة فقط ولان التلاوة سبب للسماع ایضًا فکان ذکر مشتملاً علی السماع من وجه فاکتفی به کذا فی العنایة وفی ذکر التلاوة ایماء الی انه لو کتبها او هجاها لم یجب قاله السید(حاشیة طحطاوی ص: ۲۶۰،باب سجود التلاوة ،ایضًا بدائع ج:۱ص:۱۸۶، کتاب الصلاة)

[3] الامور بمقاصدها کما علمته فی التروک وذکر قاضیخان فی فتاواه ان بیع العصیرممن یتخذه خمرًا ان قصد به التجارة فلایحرم وان قصدبه لاجل التخمیرحرم (الاشباه والنظائر ج:۱ص:۴۳،الفن الاول ،القاعدة الثانیة)

استعمالوي... د دینه باوجود په بسونو او د منۍ په بسونو کې ګانې لګول هم ممنوع دي،خودا خلاف قانون حرکت دی، قانون د محافظانو د پوزې د لاندې کیږي، په هر حال کومه آله چې د ګانې د پاره استعمالیږي د دینه تلاوت آوریدل خلاف ادب دي.[1]

## تلاوت کلام پاک اوګانې په ریډیو یاد کیسټ نه اوریدل

**سوال:** که تلاوت کلام پاک کیسټ یاریډیو نه اوریدل کیږي؛ نوپه دې ثواب نه ملاویږي، نو ددې اصولو مطابق که موسیقي په ریډیو یاکیسټ نه واوریدل شي؛ نوپه هغو هم ګناهګاریدل پکارنه دي؟

**جواب:** دګانې آوازاوریدل حرام دي،ددې ګناه شته،دتلاوت آوازتلاوت نه دی،ددې وجې نه دتلاوت اوریدلوباندې به ثواب نه ملاویږي،خو که تاسوقرآن کریم دصحیح تلفظ زده کولوله پاره اوري نوبه دې به درته ضرورا جر ملاویږي.[2]

## ایا په ټیپ ریکارډ باندې تلاوت ناجائزدی؟

**سوال:** تاسولیکلي وچې په ټیپ ریکارډ باندې تلاوت کولوسره دتلاوت ثواب نه ملاویږي اونه ددې اوریدوسره سجده تلاوت واجبیږي،نوګزارش دادی چې په هغه زمانه کې خوټیپ ریکارډ نه و،ددې وجې نه په قرآن اوسنت کې ددې څه دلیل نه ملاویږي،خو دنن سبا په دورکې خو دا یوه اله ده،کومه چې استعمالیږي څنګه چې په جهادکې هوایي جهاز او ټینک وغیره، دقرآن اوسنت په رڼاکې ددې وجوهات درج کړئ!

**جواب:** په ټیپ ریکارډباندې تلاوت ته خوماکله هم ناجائزنه دي ویلي،مګردسجده تلاوت د واجب کیدوله پاره تلاوت صحیحه شرط دی،اودټیپ نه چې کوم آوازراوځي هغه عقلا او شرعا صحیح نه دی،ددې وجې نه په دې باندې به دتلاوت احکام هم نه جاری کیږي.[3]

---

[1] تفصیل دپاره اوګورئ: آلات جدیده، ص: ۱۶۱)_

۲ ] لان القراءة فعل اللسان (حلبی کبیر ص:۲۷۵ سهیل اکیدمی لاهور) وفی البزازیة استماع صوت الملاهی کضرب قصب ونحوه حرام لقوله علیه الصلاة والسلام :استماع الملاهی معصیة والجلوس علیها فسق والتلذذ بها کفر (الدرالمختار:ج٦ص:۳٤۹) وکره کل لهو ای کل لعب وعبث ......واستماعه کالرقص والسخریة والتصفیق وضرب الاوتار.....واستماع ضرب الدف والمزمار وغیر ذلک حرام وان سمع بغتة یکون معذورا ویجب عن یجتهد ان لایسمع (شامی ج:٦ص:۳۹۵،باب مایفسدالصوم ومالایفسده)_

۳ ] فینظر الی اهلیة التالی واهلیته بالتمیز...... بخلاف السماع من البغاء والصدی فان ذلک لیس بتلاوة وکذا اذا سمع من المجنون لان ذلک لیس بتلاوة صحیحة لعدم اهلیته لانعدام التمیز (بدائع الصنائع ج:۱ص:۱۸٦،کتاب الصلاة فصل بیان من تجب علیه السجدة ،وایضا جدیدفقهی مسائل ج:۱ص:٦٥، آلات جدیده ،ص:۲۰۷)_

## په ټیپ ریکارډ باندې صحیح تلاوت او ترجمه اورېدل موجب برکت دي

**سوال:** زه د قرآن کریم مکمل کیسټ اخیستل غواړم، چې د ترجمې سره وي، پوښتنه داده چې په ټیپ ریکارډ باندې تلاوت او ترجمه اورېدل څنګه دي؟ ثواب ملاوېږي او که نه؟ ستاسو نه مشوره اخیستل دي؟ چې د قرآن د کیسټو سیټ واخلم او که نه؟

**جواب:** اوس تاسو خود الیکلي نه دي چې په کیسټ کې د چا تلاوت او ترجمه ده؟ تلاوت او ترجمه که صحیح وي، نو د دې په اخیستلو کې هیڅ نقصان نشته، د تلاوت اورېدلو ثواب به نه وي، په هرحال د قرآن کریم آواز اورېدل موجب برکت دي.[1]

## د تلاوت کیسټ اورېدل کافي دي که په خپله هم تلاوت کول پکار دي؟

**سوال:** زما یو دوست دی، چې په خپله قرآن پاک نه لولي، بلکې د ټیپ ریکارډ د کیسټ په ذریعه روزانه قرآن پاک اوري، حالانکې زما د هغه سره بحث وشو، نو وېي ویل چې قرآن پاک لوستل څه ضروري نه دي، مسلمان یوازې اورېدو سره پرې هم عمل کولی شي، دا خبره زما په ذهن کې تاوېږي ددې دلرې کولو له پاره دیومولوي صاحب سره ملاوشوم، هغوی هم د هغه جواب راکړ چې په خپله دویلو یا اورېدلو ثواب یوشان دی، اوس زما په ذهن کې دا خبره نه راځي، هرکله چې یو مسلمان په خپله قرآن شریف لوستی وي؛ نو هغه په خپله ولې تلاوت نه کوي؟ تاسو راته ووایئ او زما دا شک لرې کړئ چې قرآن پاک یوازې د نورو د ژبې نه اورېدل پکار دي او په خپله دې تلاوت نه کېږي؟ هرکله چې هغه په خپله تعلیم یافته وي آخر ولې؟

**جواب:** د قرآن پاک ډېر زیات حقونه دي، یو حق یې تلاوت هم دی، او د هغه احکام اورېدل او عمل پرې کول یې هم حق دی، او هم د غه شان د خپل وس مطابق یې حفظ کول هم حق دی او دا ټول حقونه اداکول پکار دي، خو قرآن مجید لوستل، د قرآن مجید د اورېدلو نه زیات افضل دي[2] او د ټیپ ریکارډ تلاوت اورېدل خو اکثر عالمان په تلاوت کې بیخي شمار کوي هم نه.[3]

---

۱ ] تفصیل د پاره او ګورئ :جدید فقهی مسائل ص:۶۵ د غه شان آلات جدیده ص:۱۶۰)۔

۲ ]عن عبیدة الملیکی وکانت له صحبة قال :قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :یا اهل القرآن لا تتوسدوا القرآن واتلوه حق تلاوته من آناء اللیل وآنا النهار وافشوه وتغنوه وتدبروا مافیه لعلکم تفلحون ولاتعجلوا ثوابه فان له ثوابًا، رواه البیهقی فی شعب الایمان (مشکوة ص:۱۹۲،ایضًا :الفقه الاسلامی وادلته ج:۲ص:۸۱ و۸۲، هندیة ج:۵ص:۳۱۷)۔

۳ ] فینظر الی اهلیة التالی واهلیته بالتمییز وقد وجد فوجد سماع تلاوة صحیحة فتجب السجدة بخلاف السماع من البغاء والصدی فان ذلک لیس بتلاوة وکذا اذا سمع من المجنون لان ذالک لیس بتلاوة صحیحة لعدم اهلیته لانعدام التمییز (البدائع الصنائع ج:۱ص:۱۸۶،کتاب الصلاة) ، ایضاً :آلات جدیده ص:۲۰۷)۔

# د ټيپ ريکارډ د تلاوت ثواب چې نشته نوبيا يې په ګانو باندې ګناه ولې ده؟

**سوال:** جنګ ورځپانه کې هره هفته ستاسو کالم په باقاعدګي سره لولم،په دې کې کله ستاسو ځينې متعقله جوابونه دنور الجهاوباعث جوړشي اوکله کله جواب وضاحت طلب پاتې شي چې په وجه يې يوازې زما نه، بلکې دنورو لوستونکو الجهن هم نه لرې کيږي.دمثال په طور سره تاسوفرمايلې دي چې دټيپ ريکارډ تلاوت واقعتاً تلاوت نه دی،نوبيابه په ريډيو او ټليويژن باندې د تلاوت جوازختم شي،يوازې دا نه، بلکې هرکله چې ددې ثواب نه شته نو بيابه په ټيپ ريکارډباندې دفحش ګانواوريدل باعث عذاب هم نه وي اوبيايه فلمونوکتوکې څه بدی پيدا کيدای شي؟دويمه خبره دسجده تلاوت ده،نودا ناچيز داګڼي چې دقرآن کريم متعلقه آيت که هرې حوالې دمسلمان ترغوږوپورې ورسيږي ياپه خپله تلاوت کړي په هغهٔ باندې به سجده تلاوت واجبيږي،که ستاسوداخبره ومنئ؛نوبيايه اخترونوکې اودجمعې په لمونځونوکې دلرې لرې پورې چې کومو صفونوکې لمونځ ګزارلمونځ اداکوي ياپه رکوع اوسجده کې دپيش امام سره شامليږي هغه به هم بې معنا پاتې شي،ځکه چې په دې لمونځونو کې په عام طورسره دلاوډ سپيکر استعمال کيږي،اوالبته په ټيپ ريکارډباندې تلاوت سره دلمونځ نه اداکيدو جواز خو شته،ځکه چې دباجماعت لمونځ له پاره پيش امام موجودګي ضروري ده،خو دتلاوت سجده نه واجبيدل اوددې اوريدل دڅه ثواب وجه نه جوړيدل دعقل اوفهم نه لرې خبرې دي.

**جواب:** دجناب نصيحتونه خوډيرقيمتی دي، زه دزړه له کومې ددې قدرکوم،اوپه دې باندې دجناب شکرګزارهم يم ،زه دخپل محدود علم مطابق مسائل په حزم اواحتياط سره دليکلو کوشش کوم،مګر دکم علمي ياکم فهمي په وجه په يوجواب کې غلطي ياالغزش راتلل غير متوقع نه دي،ددې وجې نه اهل علم ته باربارسوال کوم چې که زمانه په څه مسئله کې لغزش راشي نوضرور مې آګاه کوئ چې دهغې اصلاح وکړل شي.

۱:.....ددې تمهيدنه وروسته ګزارش دی چې ددې چې جناب دنصيحت مطابق مې نورواهل علموته رجوع وکړه، او دهغوی هم دغه رايه ده چې په ټيپ ريکارډ باندې تلاوت اوريدوسره سجده نه لازميږي، دپاکستان مفتي اعظم مولانامفتي محمدشفيع صاحب رحمه الله ،،آلات جديده،، باندې په تحريرکې فرمايي: ،،دټيپ رکارډ په ذريعه چې کوم آيت سجده واوريدل شي، دهغه هم هغه حکم دی چې دګراموفون ريکارډ دی،چې ددې په اوريدوسره سجده تلاوت نه واجبيږي،ځکه چې دسجده تلاوت د واجبيدو له پاره تلاوت صحيحه شرط دی،او آله بې زبانه اوبې شعوره تلاوت متصورنه دی.،،(ص:۲۰۷)

۲:.....د جناب دا شک صحيح نه دی چې،،که داتلاوت نه وي نود ريډيواوټليويژن نه به د تلاوت جوازختم شي،،په ريډيوباندې چې کوم تلاوت نشرکيږي. هغه عموماًمخکې ريکارډ کيږي بياً وروسته نشرکيږي،ددې وجې نه ددې هم هغه حکم دی چې دټيپ ريکارډ د آواز دی، يعنې هغه تلاوت صحيح نه دی مګرريکارډکول جائزدي،حضرت مفتي صاحب,,آلات جديده،، کې ليکي :،،په دې مشين باندې تلاوت قرآن پاک اونورمضامين لوستل اوپه دې کې محفوظ کول صحيح دي.،،(پورتنۍحواله ) ددې تلاوت صحيحه نه کيدو څخه دانه لازميږی چې په دې ريډيواوتلويزون باندې تلاوت کول به ناجائزشي.خو که بل سبب سره ممانعت وي نودويمه خبره ده،مثلاً په تلويزون باندې تصويرراځي،اوداشرعاًحرام دی اوکوم شی چې حرام اوملعون وي، هغه دقرآن کريم له پاره استعمالول هم حرام دي،دريډيواستعمال اکثر دګانې بجانې له پاره کيږي،له دې وجې ځينې عالمانو په دې باندې تلاوت بې ادبي ګرځولې ده اوددې مثال داسې دی چې کوم لوښی دنجاست له پاره استعماليږي په هغه خوراک خوړلوسره به يوسليم الفطرت کس ته خامخاکرکه ورځي.لکه حضرت مفتي صاحب رحمه الله چې ليکي:

,,اګرچې ريډيواستعمالونکودبدمذاقي له وجې دازياتره په ګانو بجانوکې لګولې وي،نوځکه ځينې اهل علم په دې باندې دقرآن پاک تلاوت درست نه ګڼي،خو دنورو مفيدو مضامينوهم په دې کې ډيراهميت موندل کيږي،له دې وجې داصحيح ده چې داپه الات لهولعب کې داخل کيدای نه شي اوله ريډيوڅخه چې په کوم مجلس کې چې تلاوت کيږي هغه مجلس هم د لهو لعب اولغوخبرو نه جدا دی.،،(ص:۱۶۲)

۳:...د جناب دا شک مې هم په پوهه کې رانغی چې که دټيپ ريکارډ تلاوت،صحيح تلاوت نه دی، نه په دې کې دتلاوت داوريدلوثواب شته نودګانواوريدوګناه هم پکارنه ده؛ځکه چې دتلاوت خاص شرعي احکام دي چې په تلاوت صحيحه باندې مرتب کيږي،دټيپ ريکارډآواز صحيځ تلاوت نه دی،محض دتلاوت آوازد،چنانچې که اذان ټيپ کړل شي نودموذن په ځای پنځه وخته ټيپ غږولوسره که څه هم داذان آوازخوبه راشي خو دې ته به اذان نه ويل کيږي،او نه به دې سره داذان سنت اداشي،همدغه شان دټيپ ريکارډتلاوت هم دتلاوت قائم مقام نه دی،خو شريعت دګانې آوازاوريدل مطلقاً حرام ګرځولي دي، لکه چې په يوحديث کې دي:

,,دوه آوازونه داسې دي چې په دنيااواخرت کې ملعون دي:يودخوشحالۍ په موقعه باندې دساز او باجوآواز،اودويم د مصيبت په وخت کې دنوحې آواز.،،(جامع صغير)[1]

---

۱ ] عن انس بن مالک رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم صوتان ملعونان فی الدنيا والاخرة :مزمارعندنعمة ورنة عند مصيبة _رواه البزار ورواته ثقات _(الترغيب والترهيب ج:٤ص:٣٥٠ ،جامع الصغيرص:۳۱۱ طبع درالکتب العلمية بيروت)_

ددې وجې نه دګانې آواز (که په هرې ذريعې سره واوريدل شي) اوريدل حرام دي. لهذا تلاوت باندې دګانې آواز قياس کول صحيح نه دي.

۴.....او د جناب دا ارشاد چې: د قرآن مجيد آيت سجده که هرې ذريعې سره د مسلمان تر غوږو پورې ورسيږي يا هغه په خپله تلاوت وکړي، په هغه باندې به سجده تلاوت واجبيږي، د تلاوت صحيحه ترحده پورې خوصحيح ده، مطلقاً صحيح نه ده. مثلاً يوويده کس آيت سجده تلاوت کړ، نه په هغهٔ باندې سجده واجب ده اونه په اوريدونکي، ځکه چې دويده کس تلاوت. تلاوت صحيحه نه دی، همدغه شان که يو مرغه ته آيت سجده وښودل شو، نو دهغه په ويلوسره سجده تلاوت نه واجبيږي، ځکه دمرغه لوستل تلاوت صحيحه نه دی، همدغه شان که يوکس آيت سجده تلاوت کړاويوکس په خپله دهغهٔ تلاوت وانه وريد، مګر دهغهٔ آواز دغرونو سره يا ګنبد سره وجنګيده اودهغه ترغوږوشو، نوبه دې انعکاسي اوازاوريدوسره سجده تلاوت نه واجبيږي، غرض داچې اصل دادی چې دتلاوت صحيحه اوريدلوسره سجده تلاوت واجبيږي، د ټيپ ريکارډ آوازتلاوت صحيحه نه دی، ځکه ددې اوريدلوسره سجده تلاوت نه واجبيږي.[1]

۵.....تاسوچې کوم د لاوډ سپيکرحواله ورکړې ده، هغه هم دلته بې موقعې ده، ځکه چې لاوډ سپيکر آواز ترلرې پورې رسوي، او مقتديانو پورې چې کوم آوازرسيږي هغه بعينه دامام دتلاوت اوتکبير آواز وي، ټيپ ريکارډ دا آوازمحفوظوي، اوس چې کله ټيپ ريکارډ وغږول شي؛ نوهغه به ددې تلاوت عکس وي، کوم چې په دې باندې شوی دی، هغه بذات خودتلاوت نه دی، ددې وجې نه يوپه بل باندې قياس کول صحيح نه دي.

کومې خبرې چې ماتاسوته عرض کړلې که اهل علم اواهل فتوی داغلطې وګرځوي؛ نوماته به هغوی ته په رجوع کولوکې هيڅ عار(شرم) نه وي اوکه اهل علم حضرات اواهل فتوی داصحيح ګرځوي نوزماپه ډيرادب سره دامشوره ده چې موږ عاميانوته دهغوی خبره منل پکاردي، د فقهې مسائل داسې باريک دي چې دهرچاپه پوهه کې په اسانۍ سره نه شي راتلی. والله الموفق.

## د پی ائی اې په فلائټ کې د موسيقي پرځای تلاوت اورول پکاردي

**سوال:** ما ډيره موده مخکې يوتجويز(پی ائی اے) والو ته وړاندې کړی و، چې داندرون ملک د هرپروازپه شروع کې څومنټه(دکم نه کم) پنځلس منټه اودپروازپه آخري وخت کې څومنټه(کم نه کم) پنځلس منټه له پاره دقرآن کريم دتلاوت ټيپ دی مسافروته اورول کيږي، ځکه چې تراوسه پورې په دې وختونوکې دموسيقي فرسوده سازونه غږول کيږي، هرکله که په دې وخت کې مسافروته دقرآن پاک دتلاوت ټيپ واورول شي نودې سره به يې ايمان ته تقويت حاصل شيي

---

١ ] فينظر الى اهلية التالى واهليته بالتميز وقدوجد فوجد سماع تلاوة صحيحة فتجب السجدة بخلاف السماع من البغاء والصدى فان ذلک ليس بتلاوة وكذا اذا سمع من المجنون لان ذالک ليس بتلاوة صحيحة لعدم اهليته لانعدام التميز (البدائع الصنائع ج:١ص:١٨٦، كتاب الصلاة ،وامابيان من تجب عليه السجدة ،طبع سعيد)۔

اوسفربه هم په خيراوعافيت سره تيرشي اودالله تعالى فضل به هم ورسره په سفركې شامل وي زماداتجويزو چې ديواسلامي ملک فضايي سروس په باره کې متعلقه ادارې ته پيش شوی و. چې داسلامي شعائرو په ترويج کې يوښه کوشش ثابتيدای شو. خو ددې جواب (پی ائی اے) چې راکړی دی له هغه څخه په ښې طريقې سره اندازه لګيدای شي چې په دې اداره باندې دڅه قسمه ذهنونه مسلط دي،چې دا خو غواړي چې دموسيقي سازونه دې غربيږي،خو دانه غواړي چې دالله تعالی کلام دې مسافرو ته واورول شي،بلکې دا عذر وړاندې کوي چې په دې کې د بې حرمتي ويره ده،ځکه چې په مسافرو کې ټول مسلمانان سفرنه کوي،ديوڅو غيرمذهبو خلکو د سفرپه وجه باقي ټول مسلمانان ددې نيک عمل نه محرومول.داموپه پوهه کې نه راځي، که دغه طريقه وي داسلامی نظام اواسلامي سوچ رائج کولو؛نوپه دې ټول پاکستان کې هم غيرمذهبه خلک اوسيږي، دهغوی له وجې نه به اسلامي نظام نه رائج کيږي،ځکه کيدای شي چې دې سره دبې حرمتي ويره وي،داکمزوری دليل مې په پوهه کې رانغې،براه کرام زما د تجويز مطالعه وکړئ اوکه صحيح وي؛ نوددې درائج کولوله پاره تاسوهم کوشش وکړئ،ځکه چې ستاسو تحرير زما د تحريرنه ډيرزيات مضبوط دی، په نيک کار کې ضرور برخه واخلئ الله تعالی دې دخير بدله درکړي(امين)

**جواب:** ستاسو تجويز ډيرښه دی اودبې حرمتۍ عذرخوبالکل لغو او مهمل دی،البته دا عذر کيدای شي چې کيدای شي چې غيرمسلم دا خوښ نه کړي،مګرداعذرهم کچه دی،دقرآن کريم دحلاوت و شيريني داحال دی چې که څوک په صحيح اندازې سره تلاوت کونکی وي؛ نو غيرمسلمه برادري نه يوازې دا خوښوي، بلکې له دښه خوندهم اخلي،دپی ائی اے اعلی حکامولہ پاره دې طرف ته ضرورتوجه کول پکاردي او موسيقي شرعا ناجائزه اوګناه ده[1]، دا سلسله بندول پکاردي.

## د قرآن په تعليم باندې اجرت

**سوال:** زه دجمعيت تعليم القرآن دطرف نه خلکوته دقرآن پاک تعليم ورکوم،خلکوته مفت تعليم ورکول کيږی،اوقاعدې هم مفت تقسيميږي،خو ماته تنخواه دجمعيت له طرف نه ملاويږي، هرکله چې زه دقرآن په تعليم باندې پيسې اخيستل حرام ګڼم، زمابله ذريعه معاش نشته،ماته خلکو وويل چې ته ماشومانوته دقرآن تعليم ورکوه.اوهرماشوم نه لس لس روپۍ اخله،ستاګزاره به پرې کيږي. خو زماضميروايي چې زه به نهره تيره کړم،خو کله به په پيسو باندې دقرآن تعليم ونه ښايم،اوس هرکله چې زه ديوې اسلامي ادارې له طرف نه خلکوته دقرآن تعليم ورکوم؛ نوزما په دې طريقې سره دقرآن په تعليم باندې تنخواه اخستل جائزدي

---

[1] ]وفى البزازية استماع صوت الملاهى معصية والجلوس عليها فسق والتلذذ بها كفر (درمختارمع الشامى ج:٦ ص:٣٤٩،كتاب الحظر والاباحة ،وايضًا فى الهندية ج:٥ص:٣٥١،كتاب الكراهية ،الباب السابع عشر...الخ)

اوکه نه؟ ځکه چې زمازړه په دې تنخواه مطمئن نه دی،زه الله تعالی ته سوالونه کوم چې اې الله! ته په خپل رحمت سره ماته بل ځای کې نوکري راکړه اوچې څومره موده ماپه تنخواه باندې دقرآن تعلیم ورکړی دی، همدومره موده به بغیر دتنخواه تعلیم ورکوم،تاسوماته دا ووایئ چې دقرآن په تعلیم باندې پیسې اخیستل جائزدي اوکه نه؟

**جواب:** دقرآن مجید په تعلیم باندې تنخواه اخیستل جائزدي،ددې وجې نه چې تاته دجمعیت القرآن دطرف نه کومه تنخواه ملاویږی هغه وظیفه وګڼه اوقبوله یې کړه اوقرآن مجیددالله تعالی درضاله پاره ښائیه.[1]

## د سړي استاذ ښځوته د قرآن مجید د ښودلوعملي تربیت ورکول

**سوال:** زنانه استاذانوته دناظره قرآن مجیددښودنې عملي تربیت دسړواستاذانوپه ذریعه ورکول کیدای شي اوکه نه؟هرکله چې داستاذ او شاګردپه مینځ کې څه پرده هم حائل نه وي،نورداچې آیا په دې سلسله کې داعذرکافي دی چې دزنانه استاذانودتربیت له پاره زنانه استاذانې موجودنه دي. ددې وجې نه دسړیواستاذانوپه ذریعه تعلیم ورکړل شي ؟

**جواب:** که په ناظره تعلیم ورکول دومره ضروري دي ایا د پردې خیال ساتل ددې نه زیات ضروري نه دي؟ دیوضروري کارکولوله پاره دشریعت ددومره اهمو اصولوخلاف ورزي مې په پوهه نه راځي[2]، که په ناظره تعلیم دومره اهم دی اویقیناً دی؛ نودپردې اونوروااسلامي امور خیال ساتلوسره دې څوک دینداراولوی عمربزرګ په ذریعه دې ځوزنانه وو ته دناظرې د تعلیم اوتربیت داسې ورکړل شي چې بیا مخکې هغه زنانه دنورو میرمنو تعلیم اوتربیت وکړای شي.

## د نامحرمه حافظ نه قرآن کریم څنګه ولوستل شي؟

**سوال:** مولانا صاحب! قاری صاحب چې نامحرم وي،که یوه انجیلۍ دهغهٔ نه قرآن پاک حفظ کول وغواړي؛ نوتاسودقرآن اوسنت په رڼا کې ووایئ چې ګناه خوبه نه وي؟ځکه چې زمادتره لور د قاري صاحب نه قرآن پاک حفظ کوي.

**جواب:** دنامحرمه نه قرآن پاک حفظ کول چې دپردې سره وي؛ نوګنجائش یې شته،په دې

---

[1] قوله ویفتی الیوم بصحتها لتعلیم القرآن قال فی الهدایة وبعض مشائخنارحمهم الله تعالی استحسنوا الاستئجارعلی تعلیم القرآن الیوم لظهور التوانی فی الاموالدینیة ففی الامتناع تضییع حفظ القرآن وعلیه الفتوی (شامی ج:٦ص:٥٥)۔

[2] وفی الدر المختار :وتمنع المرأة الشابة من کشف الوجه بین رجال لا لانه عورة بل لخوف الفتنة ۔وفی الرد:والمعنی تمنع من الکشف لخوف ان یری الرجال وجهها فتقع الفتنة لانه مع الکشف قدیقع النظر الیها بشهوة (الدرالمختارمع الردالمحتار ج:١ص:٤٠٦،کتاب الصلاة ،باب شروط الصلاة ،مطلب فی سترالعورة)۔

شرط سره چې د څه فتنې اندیښنه نه وي،مثلاً ددواړو ترمینځه یواځې والی نه وي،او که دفتنې احتمال وي نوجائزنه دي.[1]

## مراهقې انجیلۍ ته له پردې پرته سبق ښودل درست نه دي

**سوال:** دمراهقې انجیلۍ قرآن پاک لوستل څنګه دي؟نن سباچې کوم قاریان صاحبان اوملایان صاحبان په جومات کې مراهقه جینکو ته سبق ښیي ددو ی له پاره څه حکم دی؟

**جواب:** دقریب البلوغ انجیلۍ حکم هم دځوانې په شان دی،له پردې پرته ورته ښودنه دفتنې موجب دی.

## په بدځای کې دقرآن خواني هرشریک ګناهګاردی

**سوال:** دیوسوال په جواب کې تاسویوازې دګناه دکارکولوله پاره د قرآن خواني کونکي په باره کې لیکلي و،زه دامعلومول غواړم چې داسې ملا یانورخلک چې داسې ځایونوته دختم قرآن له پاره ځي هغوی دکومې ګناه ارتکاب کوي؟نورداچې په مدرسووغیره کې ملایان چې پیسې واخلي اوماشومان دختم له پاره بوځي؛ نو آیا داجائزدي اوددې ثوا ب مرحوم ته رسیږي اوکه نه؟

**جواب:** دلومړۍ مسئلې جواب خودادی چې دقرآن خواني کونکي او کولو والا دواړو یوحکم دی اودواړه ګناهګاردي.الله تعالی مودې معاف کړي،اودایصال ثواب له پاره په معاوضې سره قرآن خواني کول صحیح نه دي ،داسې قرآن خواني سره نه ویونکي ته څه ثواب رسیږي اونه مړي ته.[2]

## د ناجائزه کاروبارله پاره قرآ نی ایات اویزا نول ناجائزدي

**سوال:** .دوه یوکیم په دکان کې،تیزمیوزک،نیم برَبنډتصویرونه په دیوال باندې لګیدلي،دنوې دورهلکان جینکۍ په لوبوکولوکې مشغول دیاوپه دکان کې دقرآن پاک یوفریم لګیدلی و، ددکان مالک هلک ته مې وویل چې دادقرآن پاک بې حرمتي ده،سره ددې کارونوتاپکې په فریم هم لګولی دی، ویې ویل چې دادتولوشیانونه پورته دی،پوښتنه مې ترې وکړه چې څه له پاره دې لګولی دی؟ویې ویل دبرکت له پاره،ددې نه مخکې چې زه څه قدم اوچت کړم تاسوته مې عرض دادی چې آیا په داسې مقامات باندې قرآن یاددې آیتونه لګول جائزدي؟ که دابې

---

[1] اوګورئ:کفایة المفتي ج:۲ص:۵۱،کتاب العلم ،دریم باب دزنانو تعلیم)۔

[2] لمن جملة کلامه قال تاج الشریعة فی شرح الهدایة ان القرآن بالاجرة لایستحق الثواب لا للمیت ولا للقاری وقال العینی فی شرح الهدایة ویمنع القاری للدنیاوالآخذ والمعطی آثمان فالحاصل ان ماشاع فی زماننا من قراءة الاجزاء بالاجرة لایجوز لان فیه الامربالقراءة واعطاء الثواب ......فاذا لم یکن للقاری الثواب ......فاین یصل الثواب الی المستاجر (شامی ج:٦ص:٥٦،باب الاجارة الفاسدة)۔

حرمتي ده؛ نو د مسلمان په حیثیت سره به زمونږ څه ذمه واري وي؟ ځکه چې داشیان اوس په اکثر ځایونو کې لیدل کیږي.

**جواب:** ناجائزه کاروبارکې د برکت له پاره د قرآن پاک آیتونه لګول بې شکه د قرآن حکیم بې حرمتي ده، د مسلمان په حیثیت سره خوبه موږ فرض دي چې دا قسمه بې حیاکاروبارېږي نږدو، په کومه ګلۍ محله کې داسې دکان وي برداشت یې نه کړو، د قرآن کریم داسې بې حرمتي برداشت کول، د پوره معاشرې له پاره د الله تعالی قهرته دعوت ورکول دي.

## په سنیما کې قرآن خواني د سیرت پاک جلسه کول خدای او د هغه رسول سره ټوکې دي

**سوال:** آیا په سنیماګانوکې قرآن شریف کېښودل کیدای شي؟ او ایا هلته د سیرت پاک څه جلسه منعقد کیدای شي؟ او ایا هلته قرآن خواني کیدای شي؟

**جواب:** په سنیماګانوکې قرآن خواني کول، د سیرت جلسې کول، خدای او د هغه رسول ﷺ پورې د ټوکو کولو په شان دي.[۱]

## میوزک او د قرآن تلاوت

**سوال:** مسئله دا طلب کول دي چې زموږ د ورورولۍ یوه انتظامي کمیټي ده چې هغه هر کال په طالبانو او په طالباتو باندې انعامات تقسیموي او دا تقسیم انعامات پروګرام تلاوت، حمد، نعت، میوزک، قومي نغمې او تقریرونو وغیره باندې مبني وي، آیا دا پروګرام د قرآن پاک د تلاوت نه شروع کول جائز دي؟ که چیرې جائز نه وي نو د دې ناجائز امر ګناه به یوازې په انتظامیه کمیټي باندې وي یا په پروګرام کې شرکت کونکي ټول به په ګناه کې شریک وي؟ مهرباني وکړئ د قرآن او حدیث په رڼا کې د مسئلې حل بیان کړئ!

**جواب:** دا نن سبا یو نوی فیشن جوړ شوی دی چې هر قسم خرافاتو او لغویاتو نه مخکې د قرآن کریم تلاوت کیږي، په حقیقت کې دا د الله تعالي د کلام توهین او د مقدس کتاب استهزاء ده چې د یو مسلمان د شان نه ډیره بعیده ده[۲] حالانکې مسلمانانو ته خپل تقریبات او نور پروګرامونه په شرعي حدودو کې کول پکار دي، د غیر شرعي تقریباتو نه مخکې د قرآن تلاوت کول موجب توهین دی او داسې کونکي به ګناهګار وي، په غیر شرعي تقریباتو کې

---

۱ ] ومن حرمة القرآن ان لايقرأ فى الا سواق ،وفى موضع اللغو ،كذا فى القنية (فتاوى عالمگيرى ج:۵ص:۳۱٦)_

۲ ] ومن حرمة القرآن ان لايقرأ فى الا سواق ،وفى موضع اللغو ،كذا فى القنية (فتاوى عالمگيرى ج:۵ص:۳۱٦)

شریک حضرات هم سره د پوهې په دې ګناه کې شامل دي.

## د ګناه کار د قرآن د تلاوت نه شروع کول

**سوال:** څنګه چې د معاشرې قدر بدلیږي، هماغه شان عجیبه خبرې په نظر راځي چې په هغو باندې ځینې وخت غوسه هم راځي او افسوس هم راځي، مثلاً نن سبا په نظر راځي چې کله سحر د ریډیو او د کیسټو دکانونه کلاویږي؛ نو دټولو نه مخکې دکاندار حضرات د یو خوش آواز قاري دتلاوت کیسټ لګوي او بیا د دینه پس د نعتونو نمبر راځي او بیا د قوالیانو او بیا آو جې ... بیاهغه څه غږوي چې هغه هیڅ یو غیرت مند سړی دخپلې مور او خویندنو په مینځ کې نه شي آوریدلی، بیا په ډیر یقین سره وایي چې کاروبار کې برکت راځي، آیا واقعي داسې وي؟ زما خیال دادی چې په یو داسې کاروبار کې چې هغه سراسر د الله تعالي دخوښې خلاف وي، په دې طریقې سره د برکت توقع کول سراسر جاهلیت دی، ستاسو څه خیال دی؟

**جواب:** دګناه کار د قرآن کریم د تلاوت نه شروع کول ګستاخي ده[1] او دګناه په کار کې د برکت تصور هم عجیبه دی.!

## دفتري وخت کې د قرآن مجید تلاوت او نفل کول

**سوال:** سرکاري نوکري کې په دفتري وختونو کې قرآن شریف لوستل یانفل لمونځ کول ترکوم حدپورې جائزدي؟

**جواب:** که دفتري کارکې رکاوټ راځي، نوجائزنه دي اوکه کاریې ختم کړی وي او وزګار وي نوجائز، بلکې مستحسن دي.[2]

## قرآن پاک یادولونه پس هیرول لویه ګناه ده

**سوال:** که یوکس په وړوکوالي کې قرآن شریف ولولي اوبیاڅه ناګزیرو وجو په بنا پابندي سره دنه لوستلوپه صورت کې قرآن پاک ترې هیرشي؛ نودهغه له پاره دخلکوویناده چې که یوکس قرآن پاک یادکړي اوبیا ترې هیرشي اوهغه دوباره یادنه کړي نوهغه به دحشرپه ورځ ړوند راپورته کیږي اودا ډیره لویه ګناه ده؟ که دابالکل صحیح وي؛ نو ددې ګناه کفاره څنګه أدا کیدای شي؟ اوددې شرعي حل څه دی؟ جواب لږ وضاحت سره راکړئ!

**جواب:** قرآن پاک یادولونه پس هیرول ډیره لویه ګناه ده اوپه احادیثو کې ددې ډیرلویه ګناه راغلې ده، ددې تدارک همدغه دی چې همت دې وکړي اودویم ځل دې یادکړي اوهمیشه دې وایي اوکله چې دهیرولونه پس یې په دویم ځل ووایي اوبیایې همیشه لوستلو ترمرګه پورې یې

---

[1] ومن حرمة القرآن ان لایقرأ فی الا سواق،وفی موضع اللغو،کذا فی القنیة (فتاوی عالمگیری ج:٥ص:٣١٦)

[2] تفصیل دپاره اوګوره:معارف القرآن ج:٨ ص:٢٩٤،لمفتی محمدشفیع رحمه الله،طبع ادارة المعارف کراچی)

هیرنه کړ؛نود قرآن پاک د هیرولو وبال به پرې نه وي[۱]

## قرآن مجید حفظ کول پکار دي

**سوال:** زما د اوو کالو لور ده چې په ،،اقرأ روضة الاطفال ،،کې حفظ کوي او زه په خپله هم دې ادارې سره وابسته یم، لور مې ماشاء الله نهه سپارې لس سپارې یادې کړې دي او لسمه سپاره حفظ کوي په ځینې ځایونو کې مې آوریدلې دي چې د انجیلی له پاره حفظ کول بهتره نه دي،ځکه چې د واده نه پس هغه دومره مصروفه وي، د دور وخت ورته نه ملاویږي.دغه شان د قرآن د هیریدو ویره وي، داخبره تر کوم حده پورې درسته ده؟ دویم نن سبا ددې لور زړه نه لګیږي، تاسو یو شی راته وښایئ چې زړه یې د قرآن په رڼا سره منور شي.

**جواب:** د ماشومې حفظ کول ډیر لوی نعمت دی،خو دا ضروري ده چې د حفظ کولو نه پس دې د یاد ساتلو اهتمام هم وکړی شي ،ګني نو ددې وبال به ډیر سخت وي[۲]

## د یادلو نه پس دکوشش باوجود هیریږي نو ګناه نشته

**سوال:** ما تقریباً اووه کاله مخکې دوه سپارې یادې کړې وې،خو اوس مې هیرې شوې دي اوس په تبلیغ کې د وخت لګولو نه پس پته ولګیده چې قرآن پاک د یادولو نه پس هیرول ډیره سخته ګناه ده اوس زه کوشش کوم خو یادولی یې نه شم، ذهن مې کمزوری دی اودا هم غواړم چې سورت یسین او تبارک الذي یاد کړم.

**جواب:** که چیرې دماغ کمزورې وي؛ نو معذوره به وي[۳]ان شاء الله ددې ګناه به نه وي،خو همت کوه او یادوه یې.

## په حرم کې د قرآن کریم تلاوت کول اوشا کړې یې هم وي

**سوال:** په حرم شریف / مسجد نبوي کې څلور طرف ته خلق د قرآن شریف تلاوت کوي، سره لدې چې شا کړې یې هم وي؟

**جواب:** مجبوري ده الله تعالی دې معافي اوکړي.

---

۱ ] اذاحفظ الانسان القرآن ثم نسیه فانه یاثم وتفسیرالنسیان ان لا یمکنه القراءة من المصحف ......الخ ( هندیة ج:۵ص:۳۱۷ کتاب الکراهیة ،الباب الثالث فی الرجل رای رجلاً یقتل اباه ومایتصل به)۔

۲ ] ومن تعلم القرآن ثم نسیه یاثم لقوله علیه السلام عرضت علی اجور امتی حتی القذاة یخرجها الرجل من المسجد وعرضت علی ذنوب امتی فلم ارذنبااعظم من سورة من القرآن او آیة اوتیها رجل ثم نسیها (رواه ابوداؤد (حلبی کبیر ص: ٤٩٧،ایضًا :مشکوة المصابیح ،کتاب الصلاة ،باب المساجد ومواضع الصلاة ،الفصل الثانی ،طبع قدیمی کتب خانه کراچی)

۳ ] لایُکلف الله نفسًاالا وسعها (البقرة :۲۸٦)

## قرآن پاک چې دلاس نه پريوځي نوځه کول پکاردي

**سوال:** که قرآن پاک دلاس نه پريوځي ددې برابر غنم خيرات کول پکاردي اويوديني کتاب مثلاً حديث، فقه، وغيره دلاس نه پريوځي؛ نو دهغه له پاره څه حکم دی؟

**جواب:** قرآن پاک دلاس نه غورځيدوباندې دهغې برابر غنم خيرات کولو کومه مسئله چې په عوامو کې مشهوره ده داپه يوکتاب کې هم نشته، په دې کوتاهي باندې توبه اوستغفارکول پکاردي اوپه صدقه اوخيرات ورکولوکې هيڅ نقصان نشته.

## قبرکې قرآن پاک کيښودل بې ادبي ده

**سوال:** ايادمړي سره په قبرکې قرآن پاک، يادقرآن پاک څه برخه، يا څه دعاياکلمه طيبه کيښودل جائزدي اوکه نه؟دقرآن اوحديث اوفقه حنفي اوبزرگانودعمل په رڼاکې په تفصيل سره وضاحت وکړئ مهرباني به مووي.

**جواب:** قبرکې دمړي سره دقرآن پاک ياپې څه برخه ه خښول ناجائزدي، ځکه چې مړې په قبرکې وېرسيږي اوخراب شي، قرآن پاک په داسې ځاى کې کيښودل بې ادبي ده، هم دغه حکم دمقدسو کلماتوهم دی، بزرگانوپه دې باندې عمل نه دی کړی.[1]

## دېر تلاوت مبارک دی او د سورتونو موکل کيدوعقيده غلطه ده

**سوال:** زه دقرآن پاک دتلاوت سره سره سحرماښام دځوسورتونو، ياسين، رحمان، مزمل، النساء، او فجر او دالله تعالى دمبارکو نومونو تلاوت کوم، ماښام کې سورت ياسين، سجده، او ملک، او ماسخوتن کې سوره واقعه اوسوره مزمل، مورمې مااکثرمنع کوي چې په دومره عمرکې دومره تلاوت کول پکارنه دي، ځکه چې زمامشرې خور دموږپه ذهن کې مې داخبره اچولې ده چې کله پيغلې جينکۍ دومره عبادت کوي؛ نودهغوی ودونه زرنه کيږي، ځکه چې الله تعالى وايي چې دې وخت کې خوددې پوره خيال زماطرف ته دی، دوادهٔ نه پس به ددې خيال بل خواشي، يودويم صاحب دا وويل چې دهرسورت يوموکل وي اودسورت ياسين موکل د زمري په شکل کې وي دا موکل په لوستونکي، يادهغهٔ سره خواوشاکې اوسيږي چې له وجې يې په نوروخلکوباندې هيبت طاري کيږي اودهغه په کارونو کې رکاوټ پيداکيږي، يعنى رشتې والادراتلونه مخکې وتښتي.

ددې قسمه خبروله وجې نه ماتلاوت يوازې دقرآن پاک پورې محدودکړی دی، خو زما زړه مطمئن نه دی، ځکه چې کوم شيان زموږ دين اوايمان اوهرڅه دي، هغه څنګه زموږ په

---

[1] وقد افتى ابن الصلاح بانه لايجوز ان يكتب على الكفن يٰس والكهف ونحوهما خوفًا من صديد الميت ......الخ (شامي ج:٢ص:٢٤٦،مطلب فيمايكتب على كفن الميت قبيل باب الشهيد)۔

کارونو کې رکاوټ جوړیدای شي؟ خو دې سوچ سره مې خپل تلاوت محدود کړی دی چې د مور د ناراضګي په وجه پته نه لګیږي دې ته شرف قبولیت به حاصلیږي اوکه نه؟مهرباني وکړئ اوزما دامشکل حل کړئ. څومره چې زرکیدای شي ستاسوبه مهرباني وي،چې زما د مور غلط فهمی لرې شي اومادتلاوت کولونه منع کوي،ستاسوبه ټول عمرشکرګزاره یم.

**جواب:** ستاد خوراومورخیال صحیح نه دی،خو په تلاوت اوعبادت کې دخپل صحت اوتحمل لحاظ ساتل ډیرضروري دي، دومره کار دې ونه کړل شي چې په صحت باندې بد اثر وغورځوي، او باقي کوم صاحب چې داویلي دي چې دهرسورت یوموکل وي اودسوره یاسین موکل زمری دی دا بالکل لغواوغلطه خبره ده اوددې چې کوم خاصیت ذکرکړل شوی دی دا بالکل دځان نه خبرې دي.

## ګجراتي رسم الخط کې دقرآن کریم طباعت جائز نه دی

**سوال:** زمونږ په برادري کې دګجراتئ ژبې رواج عام دی،یعنې خلک زیاتره په ګجراتي ژبه کې لیکل اولوستل کوي،حتیٰ چې قرآني سورتونه مثلاً:سوره یاسین وغیره په ګجراتي ژبه کې لیکي او د هغې تلاوت کوي، یوصاحب ټول قرآن پاک په ګجراتي ژبه کې چاپ کول غواړي،یعنې دهغې ژبه خوبه عربي وي،مګرحروف تهجي به ګجراتي وي؛نوداسې قسم قرآن پاک چاپ کول اودهغه تلاوت کول په شرعي نقطه نظرسره څنګه دي؟ځکه چې څه خلکواعتراض کړی دی چې داسې دقرآن پاک په تلفظ کې دفرق راتلوامکان دی،لهذاتاسوته مویه ډیرادب سره دادرخواست دی چې ددې مسئلې واضحه جواب دقرآن اوسنت په رڼاکې راکړئ؛چې داسې کول جائزوي نوچې موږیې چاپ کړو،ډیرخلک عربي لوستلی نه شي،خو که همدغه متن په ګجراتي ژبه کې وي؛ نوپه اساني سره تلاوت کولی شي،واضحه دې وي چې سورت یاسین،سورت رحمان، اونورې دعاګانې همدغه شان شائع کیږي، یعنې حروف ګجراتي اومتن عربي.

**جواب:** دقرآن کریم رسم الخط متعین دی،دارسم الخط پریښودل اوپه بل رسم الخط کې قرآن پاک چاپ کول جائزنه دي اوداعذرچې خلک عربي لوستلی نه شي فضول دی.که لږ محنت وکړل شي نوسړی قرآن کریم زده کولی شي.[1]

## مونوګرام کې قرآني آیتونه لیکل جائز نه دي

**سوال:** انسټیټیوټ اف کاسټ اینډ منجمنټ(سولجربازار)انسټیټیوټ اف چارټرډ اکاؤنټنټ

---

[1] وینبغی لمن اراد کتابة القرآن ان یکتبه باحسن خط ......کما هو مصحف الامام عثمان بن عفان رضی الله عنه کذافی القنیة (هندیة ج:٥ص:٣٢٣،الباب الخامس فی آداب المسجد......الخ) (تفصیل دپاره اوګورئ: جواهرالفقه ج:١ص:٧٤)_

اف پاکستان (کفتن) اوپته نه لګیږي چې په څومره تعلیمي اداروپه مونوګرامونوکې قرآني ایاتونه اوپه ځینو مونوګرامو باندې احادیث لیکل شوي وي،دامونوګرام کم وبیش هر ستاویزات باندې خطونو باندې،چسپان کیږي یاپرې چاپ شوی وي،کوم سره چې بې اودسه لاس لګیږي. ډیرکاغذونه دردي په شان غورځول کیږي، تاسونه پوښتنه داوه چې آیا په اسلامي تاریخ کې په مونوګرام کې قرآني آیتونه لیکل کیدل؟ ایا ددې داسې استعمال بې ادبي نه ده،ایاددې ذمه وارکونسل ممبر انستیټیوټ وغیره نه دي؟ ایاحکومت پاکستان نه دی؟ایاددې بې ادبي عذاب به په دوی باندې نه نازلیږي؟

**جواب:** مونوګرام باندې قرآني آیتونه لیکل،هرکله چې ددې دبې ادبي اندیښنه غالبه وي، صحیح نه دي[1]کومه اداره چې ددې بې ادبي مرتکب شي، وبال به هم دهغې په ذمه وي.

## دقرآن پاک په خطاطي کې تصویر جوړول حرام دي

**سوال:** زموږ دیونیورستي(جامع کراچي) په مرکزي کتابتون(لائبریري) کې څوورځې مخکې د خطاطي دوه نمونې اویزان کړل شوې دي،دواړه نمونې ډیرښکلي دی اوخطاط په دې باندې کافي محنت هم کړی دی،خو په دې کې په یوه نمونه باندې دسوره العادیات ایات نمبریونه راخله ترپنځم پورې داسې پنټ کړل شوې دی چې په هغې باندې داسونودمکمل شکلونو اظهار کیږي،کوم چې په منډې وهي.فنکارغالباً ددې مفهوم ته ددتصویري شکل ورکولو کوشش کړی دی،ستاسونه زماسوال دادی چې ایاقرآني آیتونه په حیواني شکل اوصورت کې تحریر کیدای شي؟ ایاددې احکامو په روی سره غلط نه دی دکوموطابق چې دساه لرونکو ځیزونو شکل جوړول حرام ګرځول شوي دي اوکه داسې دی؛ نودداقسمه تصویردیونیورستي په مرکزی لائبریري کې اویزانول به مناسب وي؟ددې سوال جواب په وضاحت سره راکړئ!

**جواب:** دقرآن پاک دآیتونوتصویري خطاطي حرامه ده اودقرآن پاک بې ادبي هم ده،لکه چې په یو ناپاکه ځیزباندې آیتونه لیکل خلاف ادب اوناجائزدي[2] د یونیورستي انتظامیې ته پکار دي چې دا وران کړي.

## دقرآني آیتونوپه کتابت کې مبهم رسم الخط صحیح نه دی

**سوال:** اکثرپه ټیلي ویژن ،اخبارونو،اورسالوکې دقرآن پاک آیتونه مصوری اوفن خطاطي

---

[1] [وقدمناقبیل باب المیاه عن الفتح انه تکره کتابة القرآن واسماء الله تعالی علی الدراهم والمحاریب والجدران ومایفرش وماذاک الا لا حترامه وخشیة وطئه ونحوه ممافیه اهانة فالمنع هنابالاولی ......الخ ( شامی ج:۲ص:۲۴۶،۲۴۷)_

[2] [وفی الهندیة عن الحسن عن ابی حنیفة رحمه الله انه یکره ان یصغرالمصحف وان یکتب بقلم دقیق ......الخ (هندیة ج:۵ص:۳۲۳ الباب الخامس فی آداب المسجد.......الخ) دغه شان پاسنئ حواله اوګورئ)_

کې په مختلفو ډیزائنونوکې تحریرکیږي، ددې په وجه اکثرلوستونکې قرآني آيتونه غلط لوستلو مرتکب کيږي اوهغه قرآني آيتونه په مشکل سره په پوهه کې راځي اکثر زما سره هم داسې شوي دي چې آيتونه يوشان وي اوبل شان لوستل کيږي. په داسې صورت کې څه کول پکاردي؟

**جواب:** ايات کريمه په داسې اندازکې ليکل چې غلط ولوستل شي جائزنه دي.[۱]

## د جومات قرآن مجيد کورته وړل جائز نه دي

**سوال:** څنګه چې ستاسوپه علم کې دي چې په جوماتوکې دقرآن پاک بې شميره نسخې په المار يوکې پرتې وي، خو په دې کې تلاوت کم کيږي، که يوکس دخپل ځان له پاره يادخپلو بچيو له پاره د جومات نه قرآن مجيدراوړي؛ نوپه داسې صورت کې دهغه له پاره څه حکم دی؟ قرآن پاک د جومات نه کورته راوړلو له پاره د متولي نه اجازت اخيستل ضروري دي او که نه؟ ايا دقرآن پاک هديه چې په بازار کې ملاويږي هغه هديه به په جومات کې ورکول کيږي اوکه نه؟

**جواب:** په جومات کې پرتې دقرآن پاک نسخې که دجومات دضرورت نه زياتې وي؛ نوبل جومات يامدرسې ته دې نقل شي، کورته وړل يې صحيح نه دي.[۲]

## د مسجد نه دقرآن کريم کورته وړلو حکم

**سوال:** زموږ په مسجد کې (۷۰۰) قرآنونه دي، لوستلونکي د ورځې يوازې(۱۳) سړي وي په رمضان کې خلک نوي قرآنونه راوړي په الماريو کې ځای نه وي، لهذا د تير شوي کال قرآنونه په بورو کې اچوي چې سمندر ته يې وغورځوي په هر مسجد کې کم بيش دغه حال دی، قرآنونه د ضرورت نه زيات وي، هغه په بورو کې داچولو او سمندر ته د وړلو په ځای که خلک په کورونو باندې تقسيم کړي نو خلک منع کوي چې د مسجد مال تاسو په کورونو کې ولې تقسيموئ؟ سوال دادی چې آيا د مسجد نه قرآن اوچتولی او په خلکو يې تقسيمولی شو؟ چې بوجې ته د ويشتلو او د ضائع کولو نه بچ شي، ددې له پاره چې دا قرآن مکمل محفوظ شي.

**جواب:** که قرآن مجيد د مسجد دضرورت نه زيات وي، بهر وړو کليو ته دې ولیږل شي، کوم ځای کې چې د قرآن مجيد کمی وي.[۳]

---

۱ ] تيره شوی حاشيه (وفى الهندية عن الحسن عن ابى حنيفة رحمه الله انه يكره......الخ او ورپسی حاشيه (وقدمناقبيل باب المياه عن الفتح انه تكره كتابة القرآن...الخ) اوگورئ)۔

۲ ] وان وقف على المسجد جازويقرأ فيه ولايكون محصورًا على هذا المسجد وبه عرف حكم نقل كتب الاوقاف.....الخ (درمختارمع الشامى ج:٤ص:٣٦٥،كتاب الوقف مطلب متى ذكر للوقف مصرفًا.....الخ)۔

۳ ] وفى الدرر وقف مصحفا على اهل مسجد ان يحصون جاز وان وقف....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

## د ګټر د ډهکن لاندې اخبار لګول

**سوال:** کارخانې والا د لیټرین د کندې(ګټر) سر د سیمټو نه جوړ وي او حالانکې د سیمټو د سر لاندې اخبار لګیدلی وي او دې لره لرې کول هم ممکن نه وي په دې اخبارونو کې اکثر د الله نوم او آیاتونه هم وي، آیا دا د آیاتونو بې ادبې نه ده؟ ددې سرونو د پاسه ځپلې کیښودل او تلل جائز دي؟

**جواب:** داسې اخبارونه چې په هغو دالله او د هغه د رسول الله صلي الله علیه وسلم نومونه لیکل شوي وي د لیټرین د سر له پاره استعمالول جائز نه دي[1]

## د حاجیانو پریښودل شوی قرآن پاک که ځان سره کیښودل غواړئ نو د هغه قیمت صدقه کړئ

**سوال:** نن سباحاجیان صاحبان حج کولونه واپس راروان دي،په سعودی عرب کې دې حاجیانو ته دقرآن پاک یوه نادرتحفه ملاویږي.کوم چې حاجیان صاحبان ځان سره پاکستان ته راوړي، ځینې حاجیانو نه داقرآن پاک په هوایي جهازکې هیرشي یایې پریږدي،چونکې زه په جهاز کې کارکوم،ددې وجې نه داقرآن پاک ماته ملاوشو،ډپی ائی اے سکیورټي هم دانه اخلي، ځکه چې په هغې باندې نوم خولیکل شوی نه وي،ددې وجې نه داقرآن حاجیانوته واپس کول ممکن نه دي. اوبیاقرآن شریف په جهازکې پرېښودل هم مناسب نه دي،ځکه چې بې حرمتې یې کیږي لهذاددې قرآن شریفونونه یو ما کورته راوړی دی،اوس پوښتنه داده چې ما سره کوم کسان کارکوي هغوی راته وویل چې داقرآن پاک کورته وړل جائزنه دي،بلکې چېرته په جومات کې یې کیږده.زماهغه قرآن شریف چې سعودي کې عرب چاپ شوی دی ډیرزیات خوښ دی،ددې وجې نه دلوستلوپه غرض سره ماکورته وړی دی.اوس زماملګروزماپه زړه کې داشک اچولی دی چې ثواب به درته نه ملاویږي اوناجائزه هم دی،تاسوماته دقرآن اوحدیث په رڼاکې دا ووایئ چې داجائزدی اوکه نه؟اوکه ناجائز وی ماته څه کول پکاردي؟

**جواب:** غالب خیال دادی چې ځینې حاجیان صاحبان دقرآن پاک دا نسخې قصداًپریږدي، یا خو ددې وجې نه چې هغوی یې لوستلې نه شي یا ددې وجې نه چې هغوی دې رسم الخط سره بلد نه وي،په دې صورت کې چې دقرآن پاک دانسخې څوک هم راوچتې کړی دهغهٔ له پاره جائزدي،مګرچونکې دا احتمال هم شته چې دچانه به هیرشوی ویي؛ نوپه دې صورت کې

---

...بقیه د تیر مخ]..على المسجدجاز ويقرأ فيه ولايكون محصورًا على هذا المسجد وبه عرف حكم نقل كتب الاوقاف من محالها للانتفاع بها (شامى ج:٤ص:٣٦٥)

[1] ويكره ان يجعل شيئا فى كاغذة فيها اسم الله تعالى كانت الكتابة على ظاهرها اوباطنها (عالمگيرى ج:٥ص:٣٢٢ الباب الخامس فى آداب المسجد والقبلة والمصحف وماكتب فيه شيء من القرآن ......الخ)

دهغه مالک دطرف نه صدقه کول ضروري دي ددې وجې نه احتیاط خبره داده چې که تاسو دا قرآن پاک خان سره ساتل غواړئ؛ نو ددې قیمت صدقه کړئ[1]

# ❖ د روژې نیولو فضائل ❖

## درمضان اداب

(لاندې تحریر یو مستقل او جامع مضمون دی چې په کې د روژې ضروري فضائل او مسائل دي او د روژې په باره کې د ځینو کوتاهیو نشاندهي هم شوې ده، مناسب راته معلومه شوه چې دا ,,اپ کے مسائل،، کې شامل کړل شي)

## د رمضان د میاشتې فضیلت

دالله تعالی ارشاد دی: شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ فِيْهِ الْقُرْاٰنُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَ بَيِّنٰتٍ مِّنَ الْهُدٰى وَ الْفُرْقَانِ ۚ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ۚ وَ مَنْ كَانَ مَرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ ۚ يُرِيْدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَ لَا يُرِيْدُ بِكُمُ الْعُسْرَ ۚ وَ لِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَ لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ وَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ.(البقره:١٨٥)

**ترجمه**: رمضان داسې میاشت ده چې په کې قرآن پاک نازل شوی،چې دخلکوله پاره د هدایت ذریعه دی او واضح دلائل پکې دي،سره دهغه کتابونو چې(ذریعه) هدایت (هم) دی.(په حق او باطل)کې فیصله کونکی دی، نوچې کوم کس په دې میاشت درمضان کې موجودوي هغه ته ضرور ددې میاشتې روژې نیولي او کوم کس چې بیمار وي یا په سفر کې وي؛نو دنورو ورځو (هم دومره) شمار کولو سره روژې نیول پرې په هغه باندې واجب دي الله تعالی ته تاسو سره په احکامو کې اساني کول منظور دي او تاسو سره په احکام او قوانین مقررولو کې ګران والی منظور نه دی او چې تاسو خلک دقضا شویو ورځو شمار پوره کړئ، (چې په ثواب کې مو کمی پاتې نه شي)لهذا تاسو خلک دالله تعالی لویي او ثناء بیانوئ،په دې باندې ئې تاسو ته یوه طریقه وښودله چې هغې سره به تاسو درمضان د برکاتو او ثمراتو نه محروم پاتې نه شئ، او د عذر دوجې نه خاص درمضان دروژونه نیولو اجازت یې ځکه درکړی دی چې تاسو په دې نعمت باندې په اساني سره دالله تعالی شکر اداکړئ.(ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

---

١ ] فان کانت اللقطة شيئا يعلم ان صاحبها لا يطلبها كالنواة وقشر الرمان يكون القاؤه اباحة حتى جاز الانتفاع به من غير تعريف ولكنه يبقى على ملك مالكه لان التمليك من المجهول لا يصح وفى البزازية لو وجدها مالكها فى يده له اخذها (البحرالرائق ج:٥ص:١٦٥،طبع دارالمعرفة بيروت ،شامى ،كتاب اللقطة ج:٤ص:٢٨٠)_

# احاديث مباركه

**حديث:** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چې رمضان داخل شي نود آسمان دروازې پرانيستل شي، (اوپه يو روايت کې دي چې د جنت دروازې او په يو روايت کې دي چې: د رحمت دروازې پرانيستل شي) اود جهنم دروازې بندې کړل شي او شيطانان په قيد کې واچول شي. (بخاري او مسلم)[۱]

په يو بل روايت کې دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو باندې د رمضان مبارکه مياشت راغلې ده، الله تعالى په تاسو باندې د دې روژه فرض کړې ده، په دې مياشت کې د آسمان دروازې پرانيستل شي. او د دوزخ دروازې بندې کړل شي او سرکش شيطانان قيد کړل شي او په دې کې د الله تعالى د طرف نه داسې شپه ده چې د زرو مياشتونه بهتره ده، کوم کس چې د دې د خير نه محروم پاتې شو، هغه محروم شو. (احمد، نسائي، مشكوة)[۲]

په يو بل روايت کې دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چې د رمضان لومړۍ شپه وي نو شيطانان او سرکش پيريان قيد کړل شي او د دوزخ دروازې بندې کړل شي او د دوزخ هيڅ دروازه خلاصه نه پاتې کيږي او د جنت دروازې پرانيستل شی، هيڅ دروازه يې بنده پاتې کيږي او يو اعلان کونکې (فرښته) اعلان کوي چې: اې د خير تلاش کونکو! مخکې راشئ، او د شر تلاش کونکو، ودريږئ! او د الله تعالى د طرف نه ډير خلک د دوزخ نه آزاد کړل شي او دا د رمضان په هره شپه کې کيږي. (احمد، ترمذي، ابن ماجه، مشكوة)[۳]

**حديث:** حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ د شعبان په آخري ورځ موږ ته خطبه واوروله په هغې کې يې وفرمايل: اې خلکو! په تاسو باندې د يو ډير لوې عظمت والا مياشت راروانه ده، په دې کې يوه شپه داسې ده چې د زرو مياشتونه بهتره ده، الله تعالى په تاسو باندې د دې روژې فرض کړې دي او په دې کې قيام (تراويح) يې نفل (سنت موکده) جوړ کړي دي، کوم

---

۱] عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: اذا دخل رمضان فتحت ابواب السماء، وفي رواية: فتحت ابواب الجنة وغلقت ابواب جهنم وسلسلت الشياطين، وفي رواية: فتحت ابواب الرحمة _ متفق عليه (مشكوة المصابيح، كتاب الصوم، الفصل الاول ص: ۱۷۳)_

۲] عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: اتاكم رمضان شهر مبارک فرض الله عليكم صيامه تفتح فيه ابواب السماء وتغلق فيه ابواب الجحيم وتغل فيه مردة الشياطين لله فيه ليلة خير من الف شهر من حرم خيرها فقد حرم _ رواه احمد والنسائي _ (مشكوة المصابيح، كتاب الصوم، الفصل الثالث ص: ۱۷۳، طبع قديمي كتب خانه)_

۳] عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: اذا كان اول ليلة من شهر رمضان صفدت الشياطين ومردة الجن وغلقت ابواب النار فلم يفتح منها باب وفتحت ابواب الجنة فلم يغلق منها باب وينادي مناد يا باغي الخير اقبل ويا باغي الشر اقصر ولله عتقاء من النار وذلک كل ليلة ٠ رواه الترمذي وابن ماجة (مشكوة المصابيح، كتاب الصوم، الفصل الثاني ص: ۱۷۳ طبع قديمي كتب خانه)_

کس چې په دې کې دخه ښیګڼې (نفلي) کارپه ذریعې سره دالله تعالی تقرب حاصل کړې هغه داسې دې چاچې په غیررمضان کې فرض اداکړل اوچاچې په دې کې فرض اداکړل هغه داسې دي چې هغه په غیررمضان کې اویا فرض اداکړل،دادصبرمیاشت ده اودصبرثواب جنت دی اودا د همدردۍ اوغمخوارۍ میاشت ده،په دې کې دمومن رزق پراخ کړل شی اوچاچې په دې میاشت کې په چاروژه ماتی وکړ،نو دا دهغه له پاره دګناهونو ښښنه اوددوزخ څخه دخلاصي ذریعه ده اوهغه ته به هم دروژه داربرابرثواب ملاویږي،مګردروژه دارپه ثواب کې هیڅ کمی نه کیږي، موږ عرض وکړ:یارسول الله ﷺ په موږ کې هریوکس ته هغه څیزمیسرنه دی چې په هغه روژه ماتی وکړای شو؟رسول الله ﷺ وفرمایل:الله تعالی به داثواب هغه کس ته هم ورکوي چا چې اوبه ملاوکړل شویو شیدو یوغړپ،یاپه یوه کجوره،یاداوبوپهٔ غړپ(ګوټ) باندې روژه ماتی وکړ او چا چې په روژه داربانديې په مړه خیټه باندې ډوډۍ وخوړله په هغه به الله تعالی زما دحوض (کوثر) اوبه وڅښني چې ترهغه پورې به هیڅ کله نه تږی کیږي،تردې پورې چې جنت کې داخل شي (اوپه جنت کې دلوږې تندې هیڅ سوال نشته)داداسې میاشت ده چې ددې لومړی برخه رحمت، مینځنۍ برخه ښښنه اوداخري برخه ددوزخ نه دازادۍ ده اوچاچې په دې میاشت کې دخپل غلام(نوکر) کار سپک کړ، الله تعالی به دهغه ښښنه وکړي اوهغه به ددوزخ نه آزادکړي.(بیهقی شعب الایمان،مشکوة)[1]

**حدیث**: دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دی چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: ،دکال دشروع نه تراخره پورې درمضان له پاره جنت ښائسته کیږي ،کله چې درمضان لومړی تاریخ وي؛ نودعرش لاندې نه یوه هوا وچلیږي چې دجنت په پاڼواوحورو باندې ورشي،هغوی ووایي:اې زموږ ربه!دخپلوبندګانونه زموږ له پاره خاوندان جوړکړه چې هغو سره زموږ سترګې یخې شي اوموږ سره دهغوی سترګې یخې شي.(رواه الطبرانی فی شعب الایمان کمافی مشکوة ورواه الطبرانی فی الکبیروالاوسط کمافی المجمع ج:۳ ص:۱٤۲)[2]

---

۱ ] وعن سلمان الفارسی رضی الله عنه رقال:خطبنا رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال:یاایها الناس !قداظلکم شهر عظیم شهرمبارک شهرفیه لیلة خیرمن الف شهر جعل الله صیامه فریضة وقیام لیله تطوعا من تقرب.فیه بخصلة من الخیر کان کمن ادی فریضة فیما سواه ومن ادی فریضة فیه کان کمن ادی سبعین فریضة فیماسواه وهوشهر الصبروالصبرثوابه الجنة وشهر المواساة وشهریزادفیه رزق المومن من فطر فیه صائماًکان له مغفرة لذنوبه وعتق رقبته من النار وکان له مثل اجره من غیر ان ینتقص من اجره شیء _قلنا:یارسول الله صلی الله علیه وسلم! لیس کلنا نجد مانفطر به الصائم _فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم یعطی الله هذا الثواب من فطر صائما علی فرقة لبن اوتمرة اوشربة من ماء ومن اشبع صائما سقاه الله من حوضی شربة لا یظماحتی یدخل الجنة وهو شهر اوله رحمة واوسطه مغفرة وآخره عتق من النار،ومن خفف عن مملوکه فیه غفرالله له واعتقه من النار_(مشکوة المصابیح ،کتاب الصوم ،الفصل الثالث ،ص:۱۷۳،۱۷٤،قدیمی کتب خانه)_

۲ ] وعن ابن عمر رضی الله عنهما ان النبی صلی الله علیه وسلم قال:ان الجنة تزخرف لرمضان من راس الحول الی حول قابل ،قال :فاذاکان اول یوم من رمضان هبت ریح ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

**حدیث:** حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چي ما د رسول الله ﷺ نه په خپله دا حديث وارېده چي: رمضان راشي،په دې کې دجنت دروازې پرانيستل شي،ددوزخ دروازې بندې کړل شي،اوشيطانانو ته طوق په غاړه کړل شي،هلاکت دی هغه کس له پاره چي داميا شت بيامومي اوبياهم هغه ته ببنبه ونه شي،،چي په دې مياشت کي ببښنه ونشوه ،نوکله به کيږي؟(رواه الطبرانی فی الاوسط،وفيه الفضل بن عيسى الرقاشي وهواضعيف کمافی مجمع الزائد ج:١ ص:١٤٣)

## د روژې فضیلت

**حدیث:** دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:چاچي د ايمان په جذبې سره ثواب حاصلولوپه نيت سره د رمضان روژه ونيوله،دهغه دتيرشويوګناهونوببښنه وشوه.(بخاری ومسلم،مشکوة)[١]

**حدیث:** دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:(نيک) عمل چي انسان کوي نو (عام قانون دا دی چي) نيکي دلسونه واخله تراووسوه چنده پورې زياتيږي، مګر روژه ددې (قانون) نه مستثنى ده،( ددې ثواب اندازو سره نه ورکول کيږي) ځکه چي هغه زما له پاره ده او زه به په خپله ددې (بې حده او بې حسابه) بدله ورکوم (او د روژې زما له پاره د کيدو سبب دا دی) چي هغه خپل خواهش او خوراک (څښاک) يوازې زما د رضا له پاره پريږدي او د روژه دار له پاره دوه خوشحالۍ دي: يوه خوشحالي د روژه ماتي په وخت کې وي او دويمه خوشحالي به د رب سره دملاقات په وخت کې وي.اودروژه داردخولې بوى(چي د معدې دتش والي له وجي راځي) دالله تعالى په نزد دمشک اوعنبرنه زياته خوشبوداره ده .....الخ، ،(بخاری ومسلم ،مشکوة)[٢]

**حدیث:** دحضرت عبدالله بن عمر(رضی الله عنهما) نه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: روژه او قرآن(دقيامت په ورځ) دبندګانوشفاعت کوي،روژه وايي: اې زماربه!مادی تبوله ورځ د خوراک څښاک او نورو خواهشاتونه منع کړی و، لهذادده په حق کې زماشفاعت قبول کړه!

---

...بقيه د تير مخ]..تحت العرش من ورق ا لجنة على الحور العين فيقلن :يا رب! اجعل لنا من عبادک ازواجًا تقرهم اعيننا وتقر اعينهم بنا_رواه البيهقى الاحاديث الثلاثة فى شعب الايمان _(مشكوة المصابيح ،كتاب الصوم ،الفصل الثالث ص:١٧۴، طبع قديمى كتب خانه)_

١ ] وعن ابى هريرة رضى الله عنه :قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :من صام رمضان ايمانًا واحتسابًا غفرله ماتقدم من ذنبه (مشكوة المصابيح ،كتاب الصوم ،الفصل الاول ص:١٧٣قديمى كتب خانه)_

٢ ] وعن ابى هريرة رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :كل عمل ابن آدم يضاعف الحسنة بعشرامثالهاالى سبع مائة ضعف قال الله تعالى :الا الصوم فانه لى وانا اجزى به ،يدع شهوته وطعامه من اجلى_ للصائم فرحتان ،فرحة عندفطره وفرحة عند لقاء ربه ،ولخلوف فم الصائم اطيب عندالله من ريح المسك ......الخ (مشكوة المصابيح ،كتاب الصوم الفصل الاول ص:١٧٣طبع قديمى كتب خانه)_

اوقرآن وايي چې: ما دې دشپې له خوب نه محرومه کړی و(چې دشپې په لمونځ کې به يې دقرآن تلاوت کولو) لهذا دده په حق کې زماشفاعت قبول کړئ ،چنانچې ددواړشفاعت قبليږي.،،
(بيهقی شعب الايمان،مشکوة)[1]

## رؤيت هلال

**حديث**: دحضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دی چې رسول الله ﷺ به دشعبان (دتاريخونو) چې څومره نګهداشت فرمائيلوهغومره به ئې نورو مياشتونه فرمائيلو،(ځکه چې دشعبان په اختتام باندې درمضان د اغاز داروملاردې) بيارمضان په مياشت ليدوباندې به ئې روژه نيوله،اومطلع ابرالودکيدووجه سره به ئې(په ۲۹شعبان باندې مياشت)که په نظررانغله نو(شعبان) ديرش ورځې به ئې پوره کولې اوروژه به نيوله.(ابوداؤد،مشکوة)[2]

دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل:درمضان په خاطردشعبان دمياشتې اهتمام کوئ.(ترمذی،مشکوة)[3]

## پيشمنې کول

**حديث**:دحضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: پيشمنې کوئ،ځکه چې په پيشمنی کولوکې برکت دې.(بخاری ومسلم،مشکوة)[4]

**حديث**: حضرت عمروبن عاص رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل:زمونږ اواهل کتاب په مينځ کې دپيشمنی دخوراک فرق دې،(چې داهل کتاب داودۀ کيدونه پس خوراک څکاک منع وو،اومونږ ته دصبح صادق دطلوع کيدونه مخکې پورې اجازت شته.(مسلم،مشکوة)[5]

---

۱ ] وعن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما أن رسول الله صلی الله عليه وسلم قال:الصيام والقرآن يشفعان للعبديقول الصيام ای رب انی منعته الطعام والشهوات بالنهارفشفعنی فيه ،ويقول القرآن :منعته باليل فشفعنی فيه فيشفعان، رواه البيهقی فی شعب الايمان (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،الفصل الثالث ص:۱۷۳طبع قديمی کتب خانه)ـ

۲ ] وعن عائشة رضی الله عنها قالت: کان رسول الله صلی الله عليه وسلم يتحفظ من شعبان مالا يتحفظ من غيره ثم يصوم لرؤية رمضان فان غم عليه عدثلاثين يومًا ثم صام (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،باب روية الهلال الفصل الثالث ص:۱۷٤،طبع قديمی کتاب خانه)ـ

۳]وعن ابی هريرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :احصوا! هلال شعبان لرمضان،رواه الترمذی(مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم،باب رؤية الهلال ، الفصل الثانی ، ص:۱۷٤طبع قديمی کتب خانه)

٤ ] عن انس رضی الله عنه قال :قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :تسحروا فان فی السحور برکة، متفق عليه (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،با ب الفصل الاول ،ص:۱۷٤طبع قديمی کتب خانه)ـ

٥ ] وعن عمرو بن العاص رضی الله عنه قال :قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :فصل مابين صيامنا وصيام اهل الکتاب اکلة السحر(رواه مسلم (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،باب الفصل الاول ص:۱۷۴)ـ

## د نمر پريوتو نه پس په افطارکې جلدي کول

**حديث**: دحضرت سهل بن سعد رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل :خلق به هميشه په خير باندې وي ترڅوپورې چې(دنمر پريوتلو) نه پس په افطارکولوکې جلدي کوي.(بخاري اومسلم مشکوة)[1]

**حديث**: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: دين به غالب وي ترڅو پورې چې خلک په افطار(روژه ماتي) کولو کې بيړه کوي، ځکه يهود او نصارى تاخير کوي. (ابوداود،ابن ماجه،مشکوة)[2]

**حديث**: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ دالله تعالى داارشادنقل کړی دی چې:ماته هغه بندګان له ټولونه زيات محبوب دي چې په روژه ماتي کې جلدي(بيړه) کوي.(ترمذى مشکوة)[3]

## روژه په څه شي ماته کړل شي؟

**حديث**: دسلمان بن عامر رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چې په تاسوکې يو کس روژه ماتی کوي؛ نوکجورې سره دې روژه ماتی کوي،ځکه چې هغه برکت والا ده،اوکه کجوره پيدا نه شي نواوبوسره دې روژه ماتی کوي،ځکه چې هغه پاکوونکې دي.(احمد، ترمذى. ابوداود، ابن ماجه،دارمى،مشکوة)[4]

**حديث**: **حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ به د(ماښام) لمانځه نه مخکې تازه کجوروسره روژه ماتوله،اوکه تازه کجورې به نه وې؛نود وچې خرما ګودانوسره به يې افطار کولو اوکه هغه به هم ميسرنه وې؛ نوڅوغړپه اوبه به يې څښلې.**(ابوداود،ترمذى،مشکوة)[5]

---

١ ] وعن سهل رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :لايزال الناس بخير ماعجلوا الفطر، متفق عليه (مشکٰوة المصابيح ،كتاب الصوم ،باب الفصل الاول ص:١٧٥)۔

٢ ] عن ابى هريرة رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :لايزال الدين ظاهرًا ماعجل الناس الفطر لان اليهودوالنصارى يوخرون،رواه ابوداؤدوابن ماجة(مشكوة المصابيح،كتاب الصوم،باب الفصل الثالث ص:١٧٥)

٣ ] وعن ابى هريرة رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :قال الله تعالى:احب عبادى الى اعجلهم فطرًا. رواه الترمذى (مشكوة المصابيح ،كتاب الصوم ،باب الفصل الثانى ص:١٧٥،طبع قديمى)۔

٤ ] وعن سلمان بن عامر رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :اذا فطر احدكم فليفطرعلى تمرفانه بركة فان لم يجد فليفطر على ماء فانه طهور_رواه احمد والترمذى وابوداؤد وابن ماجة والدارمى _( مشكوة المصابيح ،كتاب الصوم ،باب الفصل الثانى ص:١٧٥)۔

٥ ] وعن انس رضى الله عنه قال: كان النبى صلى الله عليه وسلم يفطر....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

## د افطار (روژه ماتي) دُعا

**حديث**: دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی چې حضور ﷺ به کله روژه ماتی کولو، نوفرمایل به یې: ,,ذهب الظمأ وابتلت العروق وثبت الاجران شاءالله...،،[١]

**ترجمه**: تنده ماته شوه، کولمې لمدې شوې، اواجران شاءالله ثابت شو...

**حديث**: حضرت معاذبن زهره رضي الله عنه فرمایي چې: کله چې به نبی کریم ﷺ روژه ماتی کولو؛ نو دا دعا به یې یې لوستله: ,,**اللهم لک صمت وعلی رزقک افطرت**..،،(ابوداودمرسلاً مشکوة)[٢]

**ترجمه**: اې الله! ماستاله پاره روژه ونیوله اوستا په رزق مې ماته کړه!

**حديث**: دحضرت عمربن خطاب رضي الله عنه نه دحضور ﷺ دا ارشادنقل شوی دی چې په رمضان کې د الله تعالی ذکرکونکي ببنبل کيږي اوپه دې میاشت کې دالله تعالی نه غوښتونکي نامراد نه وي.،، (رواه الطبرانی فی اوسط،وفیه هلال بن عبدالرحمان وهوضعيف کمافي المجمع ج:٣ ص:١٤٣)

**حديث**: ابوسعيدخدري رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: ،،بیشکه درمضان په هره ورځ دالله تعالی دطرف نه ډیر خلک (ددوزخ) نه ازادیږي اودهرمسلمان په شپه ورځ کې یوه دعا قبلیږي.(رواه البزازوفیه ابان بن عیاش وهوضعيف،مجمع الزوائد:ج:٣ ص:١٣٤)

**حديث**: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د دريو کسانو دعا نه ردکيږي:دروژه دار،تردې پورې چې روژه مته کړي،د عادل حاکم اودمظلوم،الله تعالی هغه دوريخونه پورته کړي اودهغې له پاره دآسمان دروازې پرانيستل شي اورب تعالی فرمایي: زما دې په خپل عزت قسم وي،زه به ضرورستا مدد کوم،اګرکه څه موده پس یې وکړم. (احمد،ترمذی،ابن حبان،مشکوة،ترغيب)[٣]

**حديث**: عبدالله بن ابی ملیکه رحمه الله دحضرت عبدالله بن عمروبن عاص (رضی الله عنهما) نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل:دروژه دار دعا دروژه ماتی په وخت کې نه ردکيږي او

---

...بقیه د تیر مخ] .قبل ان یصلی علی رطبات فان لم تکن رطبات فتمیرات فان لم تکن تمیرات حساحسوات من ماء. رواه الترمذی ،وابوداؤد (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،باب الفصل الثانی ص:١٧٥)_

١] وعن ابن عمررضی الله عنه قال:کان النبی صلی الله علیه وسلم اذا افطرقال:ذهب الظماء وابتلت العروق وثبت الاجران شاء الله _رواه ابوداؤد –(مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،باب الفصل الثانی ص:١٧٥)_

٢ ] وعن معاذ بن زهرة رضی الله عنه قال:ان النبی صلی الله علیه وسلم کان اذا افطرقال:لک صمت وعلی رزقک افطرت ، رواه ابوداؤد مرسلاً (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،باب الفصل الثانی ص:١٧٥)_

٣ ] وعن ابی هريرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :ثلاثة لا ترد دعوتهم :الصائم حین یفطر والامام العادل ودعوة المظلوم یرفعها الله فوق الغمام وتفتح لها ابواب السماء ویقول الرب :وعزتی و جلالی! لانصرنک ولو بعد حین –رواه الترمذی (مشکوة المصابيح،کتاب الدعوات،الفصل الثانی ص:١٩٥)

حضرت عبدالله رضي الله عنه به د روژه ماتي په وخت کې دا دعا کوله:

**اللهم انی اسئلک برحمتک التی وسعت کل شیء ان تغفرلی.** (بیهقی، ترغیب)[۱]

**ترجمه:** اې الله! زه تاته سوال کوم ته ما د هغه رحمت په طفیل چې په هرشي باندې حاوي دی، زما بښنه وکړه!،،

## د رمضان آخري عشره

**حدیث:** حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې رسول الله ﷺ به درمضان په آخري عشره کې داسې عبادت او محنت کولو چې په نورو وختونو کې به نه و. (صحیح مسلم، مشکوة)[۲]

**حدیث:** دحضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې کله به درمضان آخري عشره راغله؛ نو حضور ﷺ به لنګ ښه مضبوط وتړلو (دهمت ملا به یې کلکه وتړله) په خپله به هم ټول شپه بیدار و او کور والا به یې هم بیدار ساتل. (بخاری ومسلم، مشکوة)[۳]

## لیلة القدر

**حدیث:** دحضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی چې رمضان المبارک راغی؛ نو رسول الله ﷺ وفرمایل ،، بیشکه دا میاشت په تاسو باندې راغلې ده او په دې کې یوه شپه داسې ده چې د زرو میاشتو نه بهتره ده، کوم کس چې ددې شپې نه محرومه شو، هغه دهرخیرنه محرومه شو، او ددې د خیرنه به هیڅ یو کس محروم نه پاتې کیږي، له بد قسمته او بې برخې شخه پرته .(ابن ماجه، واسناده حسن ان شاءالله ،ترغیب)[۴]

**حدیث:** دحضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: لیلة القدر درمضان په آخري عشره کې په طاقو شپو کې ولټوئ! (صحیح بخاری مشکوة)[۵]

---

۱ ] عن عبدالله یعنی ابن ملیکة عن عبدالله یعنی ابن عمرو ابن العاص رضی الله عنهما قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :ان للصائم عندفطره لدعوة ماترد قال: وسمعت عبدالله یقول عندفطره: اللهم انی اسئالک برحمتک التی وسعت کل شیء ان تغفرلی_رواه البیهقی (الترغیب والترهیب ج:۲ ص:۸۹ طبع داراحیاء التراث العربی بیروت)_

۲ ] عن عائشة رضی الله عنها قالت: کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یجتهد فی العشرالاواخرمالایجتهد فی غیره. رواه مسلم (مشکوة المصابیح، باب لیلة القدر، الفصل الاول ص: ۱۸۲)_

۳ ] وعن عائشة رضی الله عنها قالت: کان رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا دخل العشر شد میزره واحیی لیله وایقظ اهله متفق علیه –(مشکوة المصابیح، کتاب الصوم ،باب لیلة القدر ،الفصل الاول ص: ۱۸۲)_

٤ ] وعن انس بن مالک رضی الله عنه قال: دخل رمضان فقال: رسول الله صلی الله علیه وسلم :ان هذا الشهر قد حضرکم وفیه لیلة خیر من الف شهر ،من حرمها فقد حرم الخیر کله ،ولا یحرم خیرها الا محروم. رواه ابن ماجة واسناده حسن ان شاء الله (الترغیب والترهیب ج:۲ ص: ۹۹ طبع داراحیاء التراث العربی بیروت)_

٥ ] عن عائشة رضی الله عنها قالت: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم.... [بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

**حديث**: دحضرت انس رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ,, کله چې ليلة القدر راشي جبرائيل عليه السلام دفرښتو ديوي ډلې سره نازليږي اوهربنده چې په ولاړه ياپه ناسته دالله تعالی ذکر کوي(په دې کې تلاوت، تسبيح وتهليل اونوافل وغيره ټول شامل دي، غرض داچې په هرې طريقې سره عبادت کې مشغول وي)دهغه له پاره درحمت دعاګانې کوي.،(بيهقی شعب الايمان،مشکوة)[١]

## دليلة القدر دعا

**حديث**: دحضرت عائشې رضي الله عنها روايت دی چې ماعرض وکړ: يارسول الله ﷺ، داراته وفرمايئ چې که ماته معلومه شي چې دا ليلة القدر دی نوڅه ولولم؟ويې فرمايل، دادعا ولوله:

,, **اللهم انک عفوتحب العفوفاعف عنی**.،(احمد،ترمذی،ابن ماجه،مشکوة)[٢]

**ترجمه**: اې الله!ته ډېرمعاف کونکی يې، معاف کول خوښوې مامعاف کړې!،،

## له عذرپرته د رمضان روژه نه نيول

**حديث**: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: چاچې له عذر او ناروغۍ پرته د رمضان يوه روژه پرېښوده، نوکه ټول عمرروژې ونيسي هغه ددې تلافي نه شي کولی. ( دويم وخت کې روژه نيولوسره به اګرچې فرض اداشي خودرمضان المبارک برکت او فضيلت حاصلول ناممکن دي)(احمد،ترمذی،ابوداود،ابن ماجه،دارمی،بخاری فی ترجمة الباب،مشکوة)[٣]

---

...بقيه د تېر مخ]. تحروا ليلة القدرفی الوترمن العشرالاواخر من رمضان —رواه البخاری (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،باب ليلة القدر ،الفصل الاول ص:١٨١)_

١ ] وعن انس رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :اذا کان ليلة القدر نزل جبريل عليه السلام فی کبکبة من الملائکة يصلون علی کل عبدقائم اوقاعد يذکرالله عزوجل ......الخ،رواه البيهقی فی شعب الايمان (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،باب ليلة القدر،الفصل الثالث ص:١٨٢)_

٢ ] عن عائشة رضی الله عنها قالت:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم ! ارءيت ان علمت ای ليلة ليلة القدر مااقول فيها؟ قال:قولی :اللهم انک عفوّ تحب العفوفاعف عنی، رواه احمدوابن ماجة والترمذی وصححه (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،باب ليلة القدر الفصل الثانی ص:١٨٢،طبع قديمی کتب خانه)_

٣ ] وعن ابی هريرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم:من افطريومًامن رمضان من غير رخصة ولا مرض لم يقض عنه الصوم الدهر کله وان صامه. رواه احمد والترمذی وابوداؤد وابن ماجة والدارمی والبخاری فی ترجمة الباب (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،باب تنزيه الصوم ،الفصل الثانی ص:١٧٧،طبع قديمی)_

# د رمضان څلور عملونه

**حديث**: حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه د حضور صلى الله عليه وسلم دا ارشادمبارک نقل کوي چې په رمضان المبارک کې دڅلوروشيانو کثرت کوئ،دوه خوداسې دی چې تاسوبه يې په ذريعه خپل رب راضي کړئ، او دوه داسې دي چې تاسودهغو نه بې نيازه کيدای نه شئ،لومړنی دوه خبرې چې په ذريعه يې تاسو خپل رب راضی کړئ دادي: لااله الاالله،،ګواهي ورکول او استغفار کول، او دوه نور شيان چې تاسو ترې بې نيازه کيدای نه شئ دادي چې: تاسو د الله تعالی نه د جنت سوال کوئ او د جهنم نه پناه غواړئ!(ابن خزيمه،ترغيب)[1]

# تراويح

**حديث**: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفريل:چاچې دايمان په جذبې اوثواب په نيت سره درمضان روژه ونيوله،دهغه مخکيني ګناهونه وبښل شو،اوچاچې د رمضان په شپوکې قيام وکړدايمان په جذبې اوثواب په نيت سره، دهغه تيرشوي ګناهونه وبښل شو،اوچاچې دليلة القدرقيام وکړدايمان په جذبې اودثواب په نيت سره، دهغه مخکني ګناهونه وبښل شو.،،(بخاری ومسلم،مشکوة)[2]

اوپه يوبل روايت کې دي چې دهغه مخکښني اوروستني ګناهونه وبښل شو.،،(نسائی،ترغيب)[3]

# اعتکاف

**حديث**: دحضرت حسين رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې چادرمضان داخري لسو ورځو اعتکاف وکړ،هغه ته به ددوه حجونواودوو عمرو ثواب ملاويږي.(بيهقی،ترغيب)[4]

---

۱ ] وعن سلمان رضی الله عنه قال:خطبنا رسول الله صلى الله عليه وسلم فی آخر يوم من شعبان قال.... واستکثروا فيه من اربع خصال خصلتين ترضون بهما ربکم، وخصلتين لا غناء بکم عنهما، فاما الخصلتان اللتان ترضون بهما ربکم: فشهادة ان لااله الا الله وتستغفرونه ،واماالخصلتان اللتان لا غناءبکم عنهما فتسالون الله الجنة ،وتعوذون به من النار......الخ،رواه ابن خزيمة فی صحيحه (الترغيب والترهيب ج:۲ص:۹۵،طبع داراحياء التراث العربی بيروت)۔

۲ ] وعن ابی هريرة رضی الله عنه قال:قال ر سول الله صلى الله عليه وسلم :من صام رمضان ايمانًا واحتسابًاغفرله ماتقدم من ذنبه ،ومن قام رمضان ايمانًا واحتسابًا غفرله ماتقدم من ذنبه ،ومن قام ليلة القدر ايمانًا واحتسابًا غفرله ماتقدم من ذنبه –متفق عليه (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،الفصل الاول ص:۱۷۳، طبع قديمی کتب خانه)۔

۳ ] وفی رواية النسائی ......قال :وفی حديث قتيبة :وما تاخر (الترغيب والترهيب ج:۲ص:۹۰)۔

٤ ] روی عن علی بن حسين عن ابيه رضی الله عنهم قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :من اعتکف عشرًا فی رمضان کان کحجتين وعمرتين. رواه البيهقی (الترغيب والترهيب ج:۲ص:۱٤۹،طبع بيروت)۔

**حديث**: دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل: چاچې دالله تعالى درضا له پاره ديوې ورځې اعتكاف هم وكړ، الله تعالى به دهغه اوددوزخ په مينځ كې داسې درې خندقونه جوړكړي چې دهرخندق فاصله به دمشرق اومغرب نه زياته وي. ، (طبرانى، اوسط، بيهقى، حاكم، ترغيب)[١]

## روژه ماتى كول

**حديث**: حضرت زيدبن خالد رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: چاچې په روژه دار روژه ماته كړه ياچا غازي ته يې د جهاد سامان وركړ هغه ته به هم دومره اجر ملاويږي. (بيهقى،شعب الايمان،بغوى،شرح السنة،مشكوة)[٢]

## په رمضان المبارك كې د قرآن پاك دور، جود وسخاوت

**حديث**: دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ په جوداوسخاكې دټولو انسانانونه زيات و، اوپه رمضان المبارك چې حضرت جبرائيل عليه السلام به حضور ﷺ ته راتلو؛ نو د حضور ﷺ جود او سخا به نوره هم زياته شوه، حضرت جبرائيل عليه السلام به درمضان په هره شپه كې حضور ﷺ ته راته، دحضور ﷺ سره به يې دقرآن پاک دوركولو، په دغه وخت كې به دحضور ﷺ فياضي، سخاوت، او نفع رساني درحمت دباد نه هم زيات و. (صحيح بخارى)[٣]

## د روژه دار له پاره پرهيز

**حديث**: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: كوم كس چې د «روژې په حالت كې» بيهوده خبرې «مثلاً، غيبت، بهتان، كنځل، لعن طعن، غلط بياني وغيره» او د ګناه كارونه پرې نه ښودل؛ نو الله تعالى ته هيڅ حاجت نشته چې دى دې خپل خوراک

---

١ ] وعن ابن عباس رضى الله عنهما ............ومن اعتكف يومًا ابتغاء وجه الله تعالى جعل الله بينه وبين النارثلاث خنادق ابعد ممابين الخافقين -رواه الطبرانى فى الاوسط والبيهقى واللفظ له والحاكم مختصرًا (الترغيب والترهيب ج:٢ص:١٥٠،طبع داراحياء التراث العربى بيروت)۔

٢ ] وعن زيدبن خالدرضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :من فطرصائمًااوجهز غازيا فله مثل اجره. رواه البيهقى فى شعب الايمان ومحى السنة فى شرح السنة وقال صحيح (مشكوة المصابيح ،كتاب الصوم ،باب الفصل الثانى ص:١٧٥،طبع قديمى كتب خانه)۔

٣ ] عن ابن عباس رضى ا لله عنه قال:كان النبى صلى الله عليه وسلم اجودالناس واجود مايكون فى رمضان حين يلقاه جبريل كان جبريل يلقاه فى كل ليلة من رمضان فيدارسه القرآن فلرسول الله صلى الله عليه وسلم اجود بالخير من الريح المرسلة (صحيح البخارى ،كتاب المناقب ،باب صفة النبى صلى الله عليه وسلم ج:١ص:٥٠٢،طبع نورمحمد كراچى)۔

خپناک پرېږدي.(بخاری مشکوة)[1]

**حديث:** دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: ډېر روژه دار داسې دي چې هغوی ته دخپلې لوږې اوتندې پرته نور هيڅ حاصل نه شي،(ځکه چې هغوی په روژه کې هم بدګويي، بدنظري،اوبدعملي نه پرېږدي.)اوډېر دشپې قيام کونکي دي چې هغوی ته په قيام کې دويښ پاتې کيدونه پرته نور هيڅ حاصل نه شي (دارمی،مشکوة)[2]

**حديث:** دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: روژه ډال دی (دنفس اوشيطان دحملې نه بچ کول کوي، اودګناهونو نه هم بچ کول کوي،اودقيامت په ورځ به مودجهنم داور نه هم بچ کوي) کله چې په تاسوکې دچا روژه وي؛ نوبې کاره خبره دې نه کوي، نه دې شورجوړوي، که يوکس دهغه سره جنګ جګړه کوي (نوپه زړه کې د ووايي يا هغه ته دې په ژبې سره ووايي)چې زه روژه داريم،(ددې وجې نه تاته جواب درکولی نه شم چې روژه په دې کې مانع ده.)(بخاری ومسلم ،مشکوة)[3]

**حديث:** دحضرت ابوعبيده رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: روژه ډال دی ترڅوپورې چې هغه ونه شلول شي. ، (نسائی،ابن خزيمه،بيهقی،ترغيب)[4]

اوپه يوبل روايت کې دي چې: عرض وکړل شو: يارسول الله! داډال څه شي سره شليږي؟ وېې فرمايل، ،دروغ اوغيبت سره، ، (طبرانی فی الاوسط عن ابی هريره رضي الله عنه ترغيب)[5]

**حديث:** حضرت ابوسعيدخدري رضي الله عنه نه روايت دی چې نبی کريم ﷺ فرمايلي دي :چاچې د رمضان روژه ونيوله،اوددې حدونه يې وپيژندل،اوکوموشيانونه چې پرهيزکول غواړي دهغو

---

[1] عن ابی هريرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :من لم يدع قول الزور والعمل به فليس لله حاجة فی ان يدع طعامه وشرابه. رواه البخاری (مشکوة المصابيح ،باب تنزيه الصوم ،الفصل الاول ص:١٧٦)۔

[2] وعن ابی هريرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله عليه و سلم :کم من صائم ليس له من صيامه الا الظماوکم من قائم ليس له من قيامه الا السهر ٠رواه الدارمی (مشکوة المصابيح ،باب تنزيه الصوم ،الفصل الثانی ص:١٧٧)۔

[3] وعن ابی هريرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم ...... والصيام جنة واذا کان يوم صوم احدکم فلايرفث ولايصخب فان سابه احداوقاتله فليقل :انی امرؤ صائم ٠متفق عليه (مشکوة المصابيح ،کتاب الصوم ،الفصل الاول ص:١٧٣،ايضًا :الترغيب والترهيب ج:٢ص:١٤٧)۔

[4] عن ابی عبيدة قال :سمعت رسول الله صلی الله عليه وسلم يقول:الصيام جنة مالم يخرقها٠رواه النسائی باسنادحسن وابن خزيمة فی صحيحه ورواه الطبرانی فی الاوسط من حديث ابی هريرة (الترغيب والترهيب ج:٢ص:١٤٧)۔

[5] ورواه الطبرانی فی الاوسط من حديث ابی هريرة ،وزاد :قيل وبم يخرقها؟قال:بکذب اوغيبة (الترغيب والترهيب ج:٢ص:١٤٧،طبع داراحياء التراث العربی بيروت)۔

نه يې پرهيز وکړ،نو داروژه به دهغه له پاره دتيرشوو ګناهونوکفاره وي.[1] (صحيح ابن حبان،بيهقى،ترغيب)

## د دوو ښځو کيسه

**حديث**: حضرت عبيد رضي الله عنه درسول الله صلى الله عليه وسلم ازادکړل شوى غلام وايي چې: يوکس حضور صلى الله عليه وسلم ته عرض وکړ چې: دلته دووښځو روژه نيولې ده او دتندې له وجې دمرګ ترحدپورې رسيدلې دي حضور صلى الله عليه وسلم خاموشي اواعراض وفرمايل، هغه په دويم ځل عرض وکړ (غالبا دغرمې وخت و) چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم، والله ياخوبه هغه مړې شوى وي يابه مرګ ته نزدې وي، حضور صلى الله عليه وسلم يوه لويه پياله راوغوښته اوويې ته يې وفرمايل چې په دې کې قى وکړه، هغې دوينې، پيپ اوتازه غوښې وغيره قى وکړ، چې په هغه نيمه پياله ډکه شوه، بيايې دويمې ته دقى کولوحکم ورکړلو،اودهغې په قى کې هم وينا،پيپ،اوغوښه راوتله،چې هغې سره پياله ډکه شوله، حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې:دوى دالله تعالى حلال کړې شوې څيزونو باندې روژه اونيوله اوحرام کړې شوې څيزسره ئې روژه خرابه کړله، چې يوبل سره کېيناستلې اودخلقوغوښې ئې خوړلې. (يعنى غيبت ئې شروع کړلو) (مسنداحمد ج:٥ ص:٤٣٠ مجمع الزوائد ج:٣ ص:١٧١)[2]

## د روژې درجې

حجة الاسلام امام غزالى قدس سره فرمائى چې:دروژې درې درجې دى. ١: عام، ٢: خاص، ٣:خاص الخاص.عام روژه خوهم دغه ده چې دخيټې اوشرمګاه دتقاضونه پرهيز اوکړى. دکوم تفصيل چې دفقې په کتابونوکې درج دې.اوخاص روژه داده چې سترګې، غوږونه، ژبه، لاس، خپې، او نور اندمونه دګناه نه بچ کړى.دا د صالحينو روژه ده.اوپه دې د شپږو خبرو اهتمام لازم دې.

**اول**:...دسترګوحفاظت،چې سترګې دهرمذموم اومکروه اودالله تعالى ديادنه غافل کونکى څيزنه بچ اوساتى.دحضور صلى الله عليه وسلم ارشاددې چې: نظردشيطان دغشونه په زهروکې ککړشوې

---

[1] وعن ابى سعيدالخدرى رضى الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم قال:من صام رمضان وعرف حدوده وتحفظ مماينبغى له ان يتحفظ كفرماقبله ،رواه ابن حبان فى صحيحه والبيهقى (الترغيب والترهيب ج:٢ص:٩١طبع بيروت)_

[2] عن عبيدمولى رسول الله صلى الله عليه وسلم قال:ان امراتين صامتا وان رجلاً قال :يارسول الله !ان ههنا امرتين قدصامتا وانهما قدكادتاان تموتا من العطش. قال:فجيء بقدح اوعس فقال لاحداهما: قيى إفقاءت قيحًا او دمًا وصديدًا ولحمًا حتى ملات نصف القدح، ثم قال للاخرى :قيى!فقاءت من قيح ودم وصديدولحم عبيط وغيره حتى ملات القدح ثم قال:ان هاتين صامتا عما احل الله لهما وافطرتا على ماحرم الله عزوجل عليهما، جلست احداهما الى الاخرى فجعلتا كلان لحوم الناس (مسنداحمد ج:٥ص:٤٣٠،مجمع الزوائد ج:٣ص:١٧١)_

بوغشې دې.پس چاچې دالله تعالی دویرې نه بدنظرپریښودلو،الله تعالی به هغهٔ داسې ایمان نصیب کړی چې دهغې خوږوالې به په خپل زړهٔ کې محسوسوی.(رواه الحاکم.ج:٤ص:٣١٤٥،وصححه من حدیث حذیفة رضی الله عنه وتعقبه الذهبی فقال اسحاق رواه وعبدالرحمان هوالوسطی ضعفوه،ورواه الطبرانی من حدیث عبدالله بن مسعود رضی الله عنه، قال الهیثمی وفیه عبدالله بن اسحاق الواسطی وهوضعیف،مجمع الزوائد ج:٣ ص:٦٣)

**دویم**:....دژبې حفاظت،چې بیهوده خبرې،دورغ، غیبت، د دروغو قسم،جنګ جهګړونه ئې محفوظ اوساتی.دادژبې روژه ده.دسفیان ثوری رحمه الله قول دې چې غیبت کولوسره روژه ماتیږی، مجاهد رحمه الله فرمائی چې:غیبت اودروغوسره روژه ماتیږی،اودحضور صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دې چې: روژه ډهال دې پس کله چې په تاسوکې دچاروژه وی نونه دې بیهوده خبرې کوی اونه دې څه دجهالت کارکوی،او دهٔ سره څوک جنګ جګهړه یاکنځل ورته اوکړی نوورته دې اووائی چې زماروژه ده، ،(صحاح)

**دریم**:....د غوږونو حفاظت، چې دحرام اومکروه څیزونو د اوریدلو نه پرهیزاوکړی،ځکه چې کومه خبره په ژبې سره کول حرام دی دهغې اوریدل هم حرام دی.

**څلورم**:....دباقی اندامونوحفاظت،دلاسوخپواونوروواندامونه دحرام اومکروه کارونونه منع محفوظ ساتل،اودروژه ماتی په وخت کې څه مشتبه څیزپه خیټه کې وانچوی،ځکه چې ددې هیڅ معنی نشته چې ټوله ورځ خودې تهٔ په حلال روژه اونیسې اومابنام دې په حراموماته کړې.

**پنځم**:....دروژه ماتی په وخت کې حلال خوراک هم دومره اونه خوړلې شی چې ترپوزې پورې راشی،دحضور صلی الله علیه وسلم ارشادمبارک دې چې:دخیټې نه بدتره بل څه لوښې نشته،کوم چې بنده ډک کړی، ،(رواه احمدوالترمذی وابن ماجه والحاکم من حدیث مقدام بن معدیکرب رضی الله عنه)اوکله چې په مابنام کې دټولې ورځې کسرپوره کړی نوبیاروژې سره شیطان مغلوب کول اونفس شهوانی طاقت ماتولومقصدڅنګه حاصلیدې شی؟

**شپږم**:....اوروژه ماتی په وخت کې دهغهٔ حالت دخوف اورجاپه مینځ کې مضطرب وی،چې نه ده معلومه دهغهٔ داروژه دالله تعالی په دربار کې منظورشوه یانه،په اولنی صورت کې داکس مقرب بارګاه جوړشو،اوپه دویم صورت کې مطرودمردودشولو،هم دغه کیفیت دهرعبادت نه پس کیدل پکاردی.

اودخاص الخاص روژه داده چې ددنیاوي افکارونه دزړه روژه وي،اوله الله تعالی پرته له نورو شیانو بالکل منع کړل شي،البته هغه دنیا چې ددین له پاره مقصودوي،هغه دنیانه ده،بلکې د اخرت توښه ده، په هرحال دالله تعالی ذکر او د اخرت فکر پریښودل او نورو امورو کې زړه مشغولولو سره داروژه ماته شي،دارباب قلوب قول دی چې د ورځې کاروبارکې دا فکرکول چې د مابنام له پاره روژه ماتی مهیا شي داهم دیوې درجې خطاده،ګویادالله تعالی په فضل

اودهغه په رزق موعودباندې ددې کس کلک اعتماد نشته،دادانبياء(عليهم السلام)، صديقينو اومقربينو روژه ده.(احياءالعلوم ج:۲ ص:۱۶۸، ۱۶۹،ملخصًا)

## په روژه کې نقصانونه

حضرت حکيم الامت مولانااشرف علي تهانوي(قدس سره) په ,,اصلاح انقلاب.. کې په تفصيل سره دهغو نقصانونوذکرکړی دی ،چې دروژې په باره کې کيږي،ددې کتاب مطالعه کول پکاردي چې ددې ټولو نقصانونوازاله وکړل شي، دلته ترې يودوه اقتباسه نقل کيږي،زماپه وړاندې دمولاناعبدالباري ندوي کتاب,,جامع المجددين،،دی دالاندينې اقتباسات هم دهغه نه منتخب شوي دي:

ډيرخلک له څه قوي عذرپرته روژه نه نيسي،په دوی کې ډيرخويې دکم همتۍ له وجې نه نيسي،هم دغه شان يوصاحب چاچې په ټول عمرکې يوه روژه هم نيولې نه وه اودايې ګڼله چې پوره به يې نه کړل شي هغه ته وويل شوچې ته بطورامتحان اونيسه،ويې نيوله او پوره يې کړه،بيادهغه همت جوړشواو دروژونيول يې شروع کړل،څومره د افسوس خبره ده چې هيڅ دنيولوکوشش يې نه و کړی ،داپوخ يقين يې جوړشوی وچې نيوی يې نشي،داخلک دې لږشان سوچ وکړي اوودې ګوري چې که ډاکټر ورته وويل چې نن ټوله ورځ مه څه خوره مه څه څکښه،که نه، په فلاني مرض کې به راګيرشې، نوهغه ديوې ورځې له پاره ويلې وي اودی به دوه ورځې څه نه خوري،احتياط هم په دې کې دی.

افسوس!خدای پاک يوازې داغواړی چې دورځې ډوډۍ مه خورئ اودخوراک څښاک په باره کې يې مهلک وعيدونه اورولي دي اودهغه دقول دطبيب دقول برابرهم وقعت نشته.اناللّٰه وانا اليه راجعون!،،

دځينو دابې وقعتي تربدعقيدګۍ پورې ورسيږي چې دروژې دضرورت نه قسم قسم انکارونه کوي،مثلاً:روژه دقوت بهيميه دماتولوله پاره يادتهذيب نفس له پاره ده،اوموږ دعلم په ذريعه دا تهذيب حاصل کړی دی.....

اوځينې دتهذيب نه مخکې تيرشي اودګستاخي اوټوکو کلمات وايي مثلاً:روژه دې هغه کس نيسی چاکره چې څه دخوراک نه وي،يا وروره! موږ خوځان له لوږې نه شو وژلی ، نودا دواړه فريقه دروژې دفرضيت نهدانکار په وجه دکافرو په زمره کې داخل دي،دلومړي فريق قول محض ايمان ماتوونکی دی،اوددويم ايمان ماتوونکی هم اوزړه ماتوونکی هم دی.....

اوځينې له عذر پرته روژه نه ترک کوي مګرددې تميزنه کوي چې دا عذر شرعاً معتبر دی اوکه نه ؟ په معمولي بانه باندې روژه ماته کړي،مثلاً: که ديومنزل سفروي روژه ماته کړي، که څه د محنت مزدوري کار وي؛نوروژه پريږدي،په يوې طريقې سره دابغير دعذرنه روژه ماتولو والانه هم زيات قابل مذمت دی،ځکه چې دا خلک خپل ځانونه معذور اوبې ګناه ګڼي ،حالانکې هغوی شرعاً معذورنه وي ددې وجې نه ګناهګاربه وي....

دځینوخلکو روژه نه نیول خودشرعي عذر له وجې وي،مګردهغوی نه دا کوتاهي کیږي چې په ځینو وختونو کې ددې عذردرفع کیدوڅه وخت دورځې باقي پاتې وي،شرعاً په باقي ورځ کې دخوراک څښاک نه بندیدل واجب وي،مګرهغوی ددې پرواه نه کوي مثلاً: د شرعي سفرنه ماسپښین واپس راغی،یازنانه ماسپښین وخت کې دحیض نه پاکه شوه، نوهغې ته ترمابنام پورې خوراک څښاک کول پکارنه دي،ددې مسائلواواحکاموعلاج تعلیم اوتعلم دی...

ځینې خلک په خپله خوروژه نیسي،خو په بچیوباندې (باوجود ددې چې هغوی دروژې نیولو قابل وي) روژې نه نیسي، ښه پوهیدل پکاردي چې دبالغیدونه مخکې په ماشومانوباندې روژې نیول واجب نه دي،خو دې سره دانه لازمیږي چې دهغوی مشران دې هم په دوی نه نیسي،څنګه چې دلمانځه له پاره دعدم بلوغ باوجودهغوی ته تاکید کول، بلکې په نه کولو یې وهل ضروري دي؛ نوهمدغه شان دروژې له پاره هم دي،فرق یوازې دومره دی چې په لمونځ کې دعمر قید دی، اوپه روژه کې دارومدارپه برداشت باندې دی،(چې ماشوم دروژې نیولو طاقت لري)په دې کې رازدادی چې دیوکار ناڅاپه پابنده کیدل ګران وي؛ نوکه دبالغیدونه وروسته تمام احکام شروع شي؛ نوپه یوځای پرې زیات بوج راپریوځي،دشریعت رحمت دادی چې دمخکې نه په مزه مزه دټولو کارونوعادت جوړولوقانون یې مقررکړی دی.

ځینې خلک په نفس روژه کې خوکمی زیاتی نه کوي،خو روژه یوازې دصورت نوم ګڼي اودسهارنه واخله ترمابنام پورې (دخیټې اوشرمګاه)بندساتلوباندې اکتفاکوي،حالانکې د روژې نفس صورت په مقصود کیدوسره څه نورحکمتونه هم دي،دکوموپه باره کې چې په قرآن پاک اشاره، بلکې صراحت شوی دی چې: **لعلکم تتقون**...داټول نظراندازکوي اوخپله روژه، محض جسدبې روح، جوړکړي،خلاصه ددې حکمتونودګناهونواومنهیاتونه منع کیدل دي؛ نوظاهره ده چې اکثرخلک په روژه کې دګناهونونه بچ کیږي،که دغیبت عادت پکې و؛ نوهغه بددستورپه کې وي،که د بدنګاهۍ عادي و،نونه یې پریږدي،که دحقوق العبادپه کوتاهیو کې راګیرو،نودهغې صفایي نه کوي،بلکې دځینوګناهونه خو پکې زیات شي،چېرته په دوستانوکې کېني چې روژه به لنډه کړو،اوخبرې شروع کړي چې په هغې کې زیاته برخه دغیبت وي،یا چوسر، ګنجفه، تاش، هارمونیم، ګراموفون را واخلي او ورځ پرې تېره کړي،نوددې روژې نه څه فائده حاصله شوه؟ دومره خبره یې په عقل کې نه راځي چې خوراک څښاک چې فی نفسه مباح دي،کله چې هغه په روژه کې حرام شو؛نوغیبت اونورګناهونه چې په خپله هم حرام دي په روژه کې به څومره سخت حرام وي؟ په حدیث شریف کې دي چې: کوم کس چې بدګفتاري اوبدکرداری پرې نږدي، دالله تعالی په دې هیڅ پرواه نشته چې هغه خپل خوراک څښاک پریږدي..،ددې نه څوک داګڼي چې روژه بالکل ونه شوه لهذا دنیولویې څه فائده؟ روژه خوبه وشي، خودادنی درجې به وي.

لکه څنګه چې شل، ګوډ، ګنجی، کوڼ بنده، بنده خووي، مګر ناقص وي، لهذا روژه نه نیول ددې نه هم سخت دي، څکه چې د ذات سلب کول دصفاتو دسلب کولو نه زیات سخت دي.

بیا حضور ﷺ دروژې د خرابولو ګناهونو (غیبت وغیره) نه ډېر کیدو تدبیر هم ښودلی دی چې یوازې په درې خبروباندې مشتمل دی، اوپه دې باندې عمل کول هم ډېر اسان دي:

,,دخلکونه بغیر دضرورت نه تنها او ځانته اوسیدل، په څه ښه شغل مثلا تلاوت وغیره کې مشغولیدل، اونفس پوهول، یعنې وخت په وخت ددې خیال ساتل چې په لږ شان خوندکې دسهارنه واخله ترماښام پورې خپل مشقت ولې برباد کړم؟ اوتجربه ده چې نفس په غلولو باندې ډېرپه کار راځي، نونفس دې داسې وغولوي چې ترېوې میاشتې پورې ددې خبروپابندي وکړه بیابه ګورو، بیا داهم تجربه ده چې په کوم اندازباندې بنده څومره پاتې وي، هغه ورته آسان شي، خاص کراهل باطن ته درمضان په میاشت کې داحالت زیات آسان وي چې په میاشت کې یې کوم نیک عملونه کړي وي نوټول کال هم ورته دهغو توفیق ملاویږي...،

## د رمضان المبارک تر ټولو غوره عبادت

**سوال:** په رمضان المبارک کې ترټولو غوره عبادت کوم یودی؟

**جواب:** په رمضان المبارک کې روژه خوفرض ده، او رمضان کې په اعمالوکې تر ټولو افضل عمل تلاوت دی، چونکې دقرآن پاک نزول په رمضان کې شوی دی، ددې وجې نه ددې تلاوت دټولونه اهم عبادت دې، ددې نه علاوه دالله تعالی د ذکر او استغفار کثرت کول پکار دي، د صلواة التسبیح اوتهجد ودلمونځ هم اهتمام کول پکاردي.

## د رمضان المبارک مسنون عبادتونه

**سوال:** درمضان په میاشت کې دورځې اوشپې کوم داسې عبادتونه دي چې حضور ﷺ کړي دي اوپه کوموچې موږ ته دعمل کولو تاکید شوی دی.؟

**جواب:** تراویح، تلاوت کلام پاک، تهجد اوصدقه خیرات، ددې اهتمام کولو ترغیب ورکړل شوی دی.

## په رمضان المبارک کې د سرکشه شیطانانو قید کیدل

**سوال:** دروژې په میاشت کې دالله تعالی په حکم سره شیطانان قید کړل شي اواوریدلي مودي چې بیادرمضان نه وروسته ازادیږي اوپه دنیا کې نازلیږي، خو سوال دادی چې: مثلاپه ځینو ملکونو کې رمضان مخکې ختم شي (لکه څنګه چې اکثردپاکستان نه مخکې په عرب ملکونوکې) نو آیاهلته بیادهغه ځای د شیطانانوله پاره سرحدونه خلاص شي، اوپه پاکستان کې شیطانان دهغه ملکونونه دوه ورځې وروسته داخلیږي؟ یا دشیطانانو د پرېښودو او قیدولو څه سستیم دی؟

**جواب:** چېرته چې رمضان المبارک وي، هلته به سرکشه شیطانان په قید کې وي اوچېرته چې ختم شي؛ نوهلته به پابندي هم ختمه شي، په دې کې شک څه دی؟

# ❖ رویت هلال ❖

## په خپله میاشت لیدوسره روژه ونیسو، اختر وکړو که په رویت هلال کمېټۍ اعتماد وکړو

**سوال:** په موجوده دورکې چې سائنس ته فوقیت حاصل دی، درویت هلال کمیټۍ په اعلان باندې عمومًا درمضان المبارک روژې نیول کیږي اواخترکیږي ددې شرعي حیثیت څه دی؟روژه دې ونیول شي اوکه نه؟ اختروکړل شي او که نه؟هرکله چې په صحیح حدیث کې راغلي دي چې: دمیاشت لیدوسره روژه ونیسه او میاشت لیدوسره اختروکړه، پوښتنه داده چې ایادکمیټۍ په اعلان باندې روژه نیول اواخترکول واجب دي؟

**جواب:** ظاهره ده چې دحدیث مطلب خودانه دی چې هرکس دې میاشت وګوري اوروژه دې ونیسي اودمیاشت په لیدوسره دې اختروکړي، بلکې دحدیث نه مراددادي چې درویت په ثبوت سره به رمضان او اختروي،[1] رویت هلال کمیټۍ که شرعي قواعدومطابق دسپوږمۍ درویت اعلان وکړي ،عواموته به ددوی په اعلان باندې روژه یا اخترکول وي، باقي رویت هلال کمیټۍ په اهل علم باندې مشتمله ده، دوی دثبوت رویت مسایلوباندې زموږ نه زیات ښه پوهیږي، ددې وجې نه موږ ته په دوی باندې اعتمادکول پکاردي.[2]

## درویت هلال کمیټۍ فیصله

**سوال:** دموجوده رویت هلال کمیټۍ فیصله دمیاشت په باره کې خاص کرپه رمضان اواخترونوپه باره کې چې په ریډیواوټیلي ویژن باندې نشرکیږي دپوره ملک پاکستان له پاره واجب العمل ده، یاڅه برخه ددې خارج ده، اودموجوده رویت هلال کمیټۍ ارکان دجناب په نزدمعتبردي او که نه؟

---

[1] اویثبت رمضان برؤیة هلاله اوبعد شعبان ثلاثین یومًا لحدیث الصحیحین صوموا لرؤیته وافطروا لرؤیته فان غم علیکم فاکملوا عدة شعبان ثلاثین یومًا (البحر الرائق ج:۲ص:۲۸۳ ،کتاب الصوم)۔

[2] واما فی السواد اذا رای احدهم هلال رمضان یشهد فی مسجد قریته وعلی الناس ان یصوموا بقوله بعد ان یکون عدلاً اذا لم یکن هناک حاکم یشهد عنده کذافی المحیط –(هندیة ج:۱ص:۱۹۷)۰وفی البحرالرائق :لواخبر رجل عدل القاضی بمجیی رمضان یقبل ویامرالناس بالصوم یعنی فی یوم الغیم ولا یشترط لفظ الشهادة وشرائط القضاء اما فی العید فیشترط لفظ الشهادة –(البحر الرائق ج:۲ص:۲۸۳،کتاب الصوم)۔

**جواب:** ترڅو پورې چې ماته معلومه ده چې د رویت هلال فیصله د شرعي قواعدو مطابق کیږي، او دا د پوره ملک له پاره واجب العمل ده او ترڅو پورې چې دا کار لائق لاسونو کې وي او هغوی د شرعي قواعدو مطابق فیصلې کوي؛ نو د هغوی په اعلان باندې عمل کول لازم دي.[1]

## د رویت هلال مسئله

**سوال:** موږ هم دا لوستلي او اوریدلي دي چې میاشت لیدو سره روژه شروع کړئ او میاشت لیدو سره بنده کړئ او د یو بزرګ صاحب شریعت نه مو اوریدلي دي چې کوم خلک صائم الدهر وي، یعنی همیشه روژې نیسي، په هغوی هم په کال کې پنځه ورځې روژې حرامې دي: د عیدالفطر روژه، او د ذی الحجې د ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳ تاریخ روژې، او د عامو خلکو له پاره دا هدایت دی چې د شعبان په ۲۹، ۳۰ دې روژه نه نیسي، چې د رمضان د روژو سره د دې اتصال و نه شي، خو همیشه په مردان او پیښور صوبه سرحد کې په اکثر اضلاع کې یوه ورځ مخکې روژه شروع کیږي، حالانکې هلته هم رویت هلال کمیټۍ قائمې دي او د هیڅ یو ځائ نه تصدیق نه وي شوی، چې میاشت لیدل شوې ده او کله چې د هغوی سره خبره کوې نو دا جاهلانه جواب ملاویږي چې تاسو (۲۹) روژې ونیولې او موږ (۳۰) روژې پوره شوې.

**جواب:** په مردان وغیره علاقو کې یوه ورځ مخکې څنګه رویت کیږي دا معما زموږ په پوهه کې را نغله، په هرحال کله چې په ملک کې رویت هلال کمیټۍ مقرر ده او په سرکاري طور سره مرکزي رویت هلال کمیټۍ ته د میاشت د ښکاره کیدو یا نه کیدو د فیصلې اختیار ورکړل شوی دی؛ نو د مرکزي رویت هلال کمیټۍ د فیصلې خلاف د هیڅ یو عالم فیصله شرعي حجت نه دی، د دې وجې نه د دې علاقو د خلکو فرض دي چې د مرکزي رویت هلال کمیټۍ د فیصلې پابندي وکړي او که په دغه علاقو میاشت په نظر راشي نو باضابطه شهادت دې مرکزي رویت هلال کمیټۍ یا د هغې نامزد کړل شوې نمائندګۍ په وړاندې پیش کړي او د هغوی د فیصلې پابندي دې کوي.

## د سپوږمۍ په رویت کې د مطلع فرق

**سوال:** د درس په وخت کې استاد محترم (مرحوم) د سپوږمۍ په باره کې مسایلو وضاحت په حواله د معتبرو کتابونو لاندې ذکر شوی بیان کړی دی، هغه وفرمایل:

۱:.......وشرط مع غیم للفطر نصاب الشهادة لا الدعوی (ولا عبرة لاختلاف فی المطالع)

۲:.......ویلزم حکم اهل احدی البلدتین لاهل بلدة آخری.

---

[1] فیلزم اهل المشرق برؤیة اهل المغرب اذا ثبت عندهم بطریق موجب کما مردرمختار • وفی الشامیة :قوله بطریق موجب کان یتحمل اثنان الشهادة اویشهد علی حکم القاضی اویستفیض الخبر......الخ (شامی ج:۲ص:۳۹۴)۔

۳:. وجه قول المعتبرين ان سبب الوجوب وهو شهود الشهر لم يوجد فى حقهم .فلا يوجب وجود فى حق غيرهم.

٤:.....فقد ثبت عن النبى صلى الله عيله وسلم اجازة شهادة الواحد فى رمضان.اخرجه اصحاب السنن.وفى سنن الدارقطنى بسند ضعيف ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان لايجزى فى الافطار الاشهادة الرجلين.

**ترجمه**:۱....كه مطلع ابرالود وي،نود عيدالفطر دمياشت له پاره نصاب شرط دى،مګر دعوى شرط نه ده.او د اختلاف مطالع هيڅ اعتبار نشته.

۲....او ديو ښار دفيصلې پابندي د دويم ښار والو باندې هم لازم ده.

۳....کوم حضرات چې د اختلاف مطالع اعتبار کوي،د هغوی دليل دادی چې د روژې د واجبيدو سبب درمضان راتګ دی،او هغه (د اختلاف مطالع د وجې نه)د نورو خلکو په حق کې نه دی موندل شوی،لهذا ديو مطلع مياشت په نظر راتلل،د دويم مطلع د هلال رمضان وجود نه ثابتوي.،

۴....چنانچې دا ثابته ده چې نبی کريم ﷺ په هلال رمضان کې د يو کس شهادت قبول کړ، دا حديث په سنن کې دې،او په سنن دارقطنی کې په ضعيف سند مروي دی،چې حضور ﷺ به په عيدالفطر کې يوازې د دوو کسانو شهادت قبول مانه..،،

،پورتني بيانات صحيح دي که غلط؟ دمياشت د متعلقه اعلان معتبر او غير معتبر کيدو په باره کې په حواله د بياناتو د کتب معتبره او مستند وضاحت وفرمايئ؟ستاسو فتوی زمونږ له پاره د سند حيثيت لري.او ددې نه مخکې هم غير معترضانه او غير معروف طريقې باندې ډير متنازع فيه مسايلو په حل کې ستاسو نه استفاده شوې ده او ستا فتوې په هر لحاظ سره قابل عمل ګرځول شوې ده.

**جواب:** تاسو چې کوم عبارتونه ليکلي دي، هغه صحيح دي،خو ډير زيات مجمل مونقل کړي دي، زۀ د دې متعلقه مسايلو په آسان الفاظو کې وضاحت کوم:

۱:....که مطلع صفاوي،او په مياشت ليدو کې څه شی مانع نه وي، نو د رمضان او اختر دواړو مياشت ليدو له پاره د ګڼو کسانو شهادت ضروري دی،چې د هغوی خبر سره قريب قريب يقين وشي چې مياشت ليدل شوې ده[۱]خو که يو ثقه مسلمان د بهر نه راغلی وي او چېرته دا وچت ځای نه راغلی وي نو د رمضان د مياشت په باره کې به د هغه شهادت قبليږي.[۲]

۱ ]وان لم يكن بالسماء علة لم تقبل الاشهادة جمع كثير يقع العلم بخبر هم وهو مفوض الى راى الامام من غيرتقدير وهو الصحيح كذافى الاختيار شرح المختار (هندية ج:۱ص:۱۹۸، الباب الثانى فى روية الهلال)ـ

۲ ] وذكر الطحاوى انه تقبل شهادة الواحد اذاجاء من خارج المصروكذا اذا كان على مكان مرتفع كذا فى الهداية (هندية ج:۱ص:۱۹۸،الباب الثانى فى روية الهلال،وايضًا فى الدرالمختارمع ردالمحتارج:۲ص:۳۸۵ تا ۳۸۷)

٢:.....که مطلع ابرآلود یا غبار آلود وي؛ نودرمضان دمیاشت له پاره یوازې دیومسلمان خبرکافي دی، چې هغه میاشت لېدلې ده، خو داخترد میاشت له پاره شرط دادی چې دوه سړي یایوسړی او دوه ښځې ګواهي ورکړي چې هغوی په خپله میاشت لیدلې ده اوداهم په کې شرط دی چې دا ګواهان به د ,,اشهد،،لفظ سره ګواهي ورکوي،یعنې څنګه چې په عدالت کې ګواهي ورکول کیږي هماغه شان دې دلته هم داالفاظ ووایي چې: زه ګواهی ورکوم چې ماميا‌شت لیدلې ده.،کله پورې چې نصاب شهادت(دوه عادل ثقه مسلمانان سړي،یا یوسړی اودوه ښځې ګواهي ورکړي) اوپه لفظ شهادت سره ګواهی ورنکړي؛ نوداخترمیاشت به نه ثابتیږي.[١]

٣:.....کله چې په یوښارکې دشرعي شهادت سره رویت ثابت شي،نود نورو ښارونوپه حق کې به دارؤیت واجب العمل وي اوکه نه؟

## په دې ضمن کې په دریواصولوباندې پوهیدل ضروري دي:

١: شهادت علی الشهادت:یعنې په دویم ښارکې دوه عاقل اوبالغ عادل مسلمانان ددې ګواهي ورکړي چې په فلاني ښارکې زموږ په وړاندې دوعاقلواوبالغوعادل ګواهانودرؤیت ګواهي ورکړه.

٢: شهادت علی القضاء:یعنې په دویم ښارکې دوه عاقل عادل مسلمانان داګواهی ورکړي چې زموږ په وړاندې په فلاني ښارکې قاضي درؤیت کیدوفیصله وکړه.

٣: تواتر او استفاضه:یعنې په دویم ښارکې متفرق ډلې راشي اوبیان وکړي چې په فلاني ښارکې رؤیت شوی دی اوداډلې دومره زیاتې وي چې دهغه ښاردحاکم بالکل یقین وشي چې واقعي په فلاني ښارکې میاشت لیدل شوې ده.

که په دې دریوطریقوکې په یوه طریقه هم دیوښار رؤیت په دویم ښارکې ثابت شي: نوددویم ښاروالوپه حق کې به دارویت حجت وي.[٢]

دویم اصل دادی چې دیوقاضي فیصله یوازې دهغه دزیر ولایت علاقواوښارونوپه حق کې حجت دی،کومې علاقې اوښارونه چې دهغه زیرولایت نه دي په هغو کې به ددې قاضی

---

١ ] لواخبر رجل عدل القاضی بمجیی رمضان یقبل ویامرالناس بالصوم یعنی' فی یوم الغیم ولا یشترط لفظ الشهادة وشرائط القضاء امافی العید فیشترط لفظ الشهادة (البحرالرائق ج:٢ص:٢٨٣) ایضًاوان کانت السماء متغیمة تقبل شهادة الواحد بلاخلاف بین اصحابنا ......الخ (وبعد اسطر) واما هلال شوال.....وان کان بالسماء علة فلا تقبل فیه الاشهادة رجلین اورجل وامراتین ......الخ (البدائع الصنائع ج:٢ص:٨١ وایضًافی الهندیة ج:١ص:١٩٨)

٢ ] فیلزم اهل المشرق برؤیة اهل المغرب اذا ثبت عندهم بطریق موجب کان یتحمل اثنان الشهادة اویشهد علی حکم القاضی اویستفیض الخبر...الخ (شامی ج:٢ص:٣٩٤،اختلاف المطالع ،وایضًافی الهندیة ج:١ص:١٩٩)

فیصله نافذالعمل نه وي،خو که د درست ثبوت نه مطمئن کیدو سره دبل ښار یاعلاقې قاضي هم درؤیت فیصله وکړي؛ نو دهغه په زیرحکم علاقوکې به هم رؤیت ثابت شي.[1]

دریم اصل دادی چې په کوموعلاقوکې دمطالعو د اختلاف فرق نشته،په هغو کې دیوښاررویت دبل ښاروالوپه حق کې لازم العمل کیدل،دپورتنودوا،واصولومطابق که به بل ښار کې رؤیت ثبوت ته رسیدلی وي،دټولوپه نزدمتفق علیه دی،په دې کې دهیڅ اختلاف نشته،خو کوم ښارونه چې دیوبل نه دومره لرې پراته وي چې ددواړوپه مطالعوکې اختلاف شته، په داسې ښارونوکې به دیورویت دبل په حق کې لازم وي اوکه نه؟

په دې کې ظاهرمذهب دادی چې داختلاف مطالع هیڅ اعتبارنشته،ځکه که د دوه ښارونو په مینځ کې دمشرق اومغرب فاصله وي؛ نوبیاهم دیوښاررؤیت دبل په حق کې حجت لازمه دی،په شرط ددې چې ثبوت شرعي طریقې سره وشي،همدغه دمالکیه،او حنابله مذهب دی، خو ځینومتاخرینودا اختیارکړی دی چې چېرته دمطالع داختلاف فرق واقعي دی، هلته شرعاً هم اعتبارکیدل پکاردي،دحضراتوشافعیه ووهمدغه قول دی،خو فتوی په ظاهرمذهب باندې ده چې داختلاف مطالعوقطعاً اعتبارنشته، نه په بلادقریبه کې اونه په بلادبعیده کې.[2]

## د رویت هلال کمیټی ناوخته د میاشتې لیدو اعلان کول

**سوال:** تاسوته پته ده چې داخل رویت هلال کمیټی تقریباً دشپې یولس نیمې بجې درمضان مبارک دمیاشتې دلیدواعلان وکړ،هرکله چې د ابادي زیاته برخه دماسختن دلمانځه نه وروسته په اطمینان سره ویده شوي وو چې میاشت ونه لیدل شوه،یادساتئ چې په کراچی د میاشت دلیدو هیڅ اطلاع نه وه راغلې،دغه شان په زرګونوکسانو نه خو دتراویحولمونځ ادا کړای شواونه یې سهار روژه ونیولای شوه،په دې سلسله کې ستاسونه دلاندینو سوالاتو شرعي جوابات معلومول غواړم:

---

۱ ] ولوشهدوا ان قاضی بلدة کذا شهد عنده اثنان برؤیة الهلال فی لیلة کذا وقضی بشهادتهما جازلهذا القاضی ان یحکم بشهادتهما لان قضاء القاضی حجة وقدشهدوا به ......الخ (هندیة ج:۱ص:۱۹۹،الباب الثانی فی رؤیة الهلال)

۲ ] قال فی التنویر:واختلاف المطالع غیرمعتبرعلی المذهب وقال فی العلائیة :وعلیه اکثرالمشائخ وعلیه الفتوی بحرعن الخلاصة وفی الشامیة:وانما الخلاف فی اعتباراختلاف المطالع بمعنی انه هل یجب علی کل قوم اعتبارمطلعهم ولا یلزم احدالعمل بمطلع غیره ام لا یعتبر اختلافها بل یجب العمل بالاسبق رؤیة حتی لو رؤی فی المشرق لیلة الجمعة وفی المغرب لیلة السبت وجب علی اهل المغرب العمل بما رآه اهل المشرق فقیل بالاول... واعتمده الزیلعی وصاحب الفیض وهوالصحیح عندالشافعیة لان کل قوم مخاطبون بما عندهم ......وظاهر الروایة الثانی وهوالمعتمدعندنا وعندالمالکیة والحنابلة......الخ، شامی ج:۲ص:۳۹۳،کتاب الصوم ،مطلب فی اختلاف المطالع، ایضاًفی الهندیة ج:۱ص:۱۹۹)۔

**سوال:** ...دومره ناوخته د شپې د میاشت د لیدو د اطلاع څه شرعي حیثیت دی؟

**جواب:** رویت هلال کمیټې ته د مخکې شهادتونه ملاویږي، بیا هغوی په دې باندې غور کوي چې دا شهادتونه د اعتماد لائق دي او که نه؟ د غور او فکر نه وروسته چې هغوی په څه نتیجه باندې ورسیږي نو د دې اعلان وکړي، په دې کې کله ناکله د زیات وخت لګیدل بعید نه دي. کار ګران دی په دې باندې تنقید کول آسان وي.

**سوال:** ...آیا په دې صورت کې په عوامو باندې قضا روژه نیول لازم وي، هر کله چې هغوی دا روژه قصداً نه وه پریښې، یا په حکومت وقت باندې د دې روژې کفاره ادا کول واجبیږي؟

**جواب:** ...کله چې خلکو ته د رویت هلال د فیصلې پته و لګیږي نو په هغوی باندې روژه نیول لازم دي او کوم خلکو ته چې پته ونه لګیږي هغوی دې د روژې قضا راوړي، کومه روژه چې پاتې شي د هغې کفاره نه وي، یوازې قضا وي، حکومت باندې قضا نه شته. [1]

## د قمري میاشتې په تعین کې رؤیت شرط دی

**سوال:** مختلف مذهبي او غیرمذهبي تنظیمونه د روژه ماتي او پیشمني نظام الاوقات په سائنسي طریقې سره حاصل کړل شوي وختونه شائع کوي او ثواب ګټي، د دې حساب سره پیشمني او روژه ماتي کیږي، ایا په سائنسي طریقې سره د نوې میاشت د راختلو وخت تسلیمول شرعاً منع دي؟ او که نه دي؛ نو بیا د سائنس په حساب سره د هرې میاشتې شروع ولې نه کیږي؟ او که کېدلی؛ نو تیر کال به په سعودي عرب کې د ۲۸ ورځو میاشت نه وه.

**جواب:** د قمري میاشت شروع کیدل په میاشت لیدو باندې موقوف دي، د فلکیاتو د فن نه په دې کې دومره مدد خواخیستل کیدای شي چې نن د میاشت راختو امکان شته او که نه؟ مګر ترڅو پورې چې د رؤیت په ذریعه د میاشت د راختو ثبوت ملاو نه شي، یوازې د فلکیاتو په حساب سره د میاشتې د راختو فیصله نه شي کېدای، مختصر دا چې د میاشتې راختو اعتبار په رؤیت سره دی د فلکیاتو د حساب اعتبار پرته د رؤیت نه نه دی. [2]

## ایا رؤیت هلال کمیټۍ د سپوږمۍ صحیح فیصله نه شي کولی؟

**سوال:** په یوه انګریزي اخبار کې دیو صاحب یو خط شائع شو چې په هغه کې دوی لیکلي و چې ۲۹ شوال ۱۴۱۸ھ د مطلع د خرابیدو له وجې د ذوالعقدې میاشت په نظر رانه غله، خو بله

---

۱ ] واذاصام اهل مصرشهررمضان على غير رؤية ثمانيةً وعشرين يومًاثم راو هلا ل شوال ان عدو شعبان برؤيته ثلاثين يومًاولم يرو هلا ل رمضان قضوا يومًاواحدًا (هندية ج:۱ص:۱۹۹،الباب الثانى فى رؤية الهلال)

۲ ] قوله ولاعبرة بقول الموقتين اى فى وجوب الصوم على الناس بل فى المعراج لايعتبرقولهم بالاجماع ولايجوز للمنجم ان يعمل بحساب نفسه...الخ (شامى ج:۲ص:۳۸۷،كتاب الصوم ،مطلب لاعبرة بقول الموقتين فى الصوم)

ورځ په ۳۰ شوال باندې د لمر د غروب نه ۳۵ منټ مخکې میاشت صفا په نظر راتله ددې مطلب دا شو چې تېره ورځ د ذوالقعدې لومړۍ تاریخ و، دا خبره زما په ذهن کې ډیره اهمه ده، رؤیت هلال کمیټۍ په بله ورځ ۲۹ باندې میاشت په نظر د نه راتلو په صورت کې ۳۰ باندې هم نشت کول پکار دي دا حل مناسب په نظر راځي، د کوم شي له طرف نه چې دې صاحب خپل خط ته نشاندهي کړې ده ددې څه حل پکار دی؟ زما تاسو ته درخواست دی چې تاسو د یو عالم په حیثیت باندې د رؤیت هلال کمیټۍ چیئرمین ته خط ولیکئ، ځکه چې د یو عام سړي په مقابله کې تاسو په عالمانه ډول ده ته خط لیکلی شئ.

**جواب:** د قمري میاشتو اعتبار د سپوږمۍ په لیدو سره ده، په ټول ملک کې سپوږمۍ په نظر رانغله له دې وجې یوازې په خپل قیاس او اندازې سره نوې میاشت نه شي شروع کیدای، باقي رؤیت هلال کې د هرمکتب فکر علماء شامل دي او هغه حضرات د علم او د فهم په اعتبار سره زموږ نه فائق دي، له دې وجې دوی ته مشوره ورکولی شم؟ ګني: نو د (حکمت بلقماني اموختني) مضمون به صادق راځي.

## ایا په رؤیت هلال کې په فلکیاتو باندې اعتماد کیدای شي؟

**سوال:** رویت هلال کامسئله، په عنوان سره د مولانا محمد جعفر پهلواري یو مضمون په اپریل ۱۹۲۷ کې په ماهنامه، ثقافت، لاهور کې چاپ شوی و، چې اوس د ابتدایي تعارفی نوټ داضافې سره اداره ثقافت اسلامیه، کلب روډ لاهور، د کتابچې په شکل کې د، رویت هلال، په نوم سره شائع کړې دی، ایا ستاسو په نزد باندې د جناب پهلواري صاحب تحقیق د اعتماد وړدی؟ نور دا چې د رؤیت هلال په باره کې تاسو د هغوی د موقف سره اتفاق کوئ؟ او که نه؛ نو ولې؟ مدلل یې تحریر کړئ!

**جواب:** د موصوف مولانا د رؤیت هلال موقف او د هغوی د استدلال وړاندې نظر ستاسو د سوالونو مدلل جواب درکولو کوشش کوم:

موصوف ددې کتابچې موضوع دا ښودلې ده چې: د رؤیت هلال حکم په فن فلکیات باندې اعتماد کولو سره هم پوره کیدای شي،،

موصوف د خپل بحث اغاز د حضور ﷺ ددې ارشاد پاک نه کړی دی:

**صوموا الرؤيته وافطروا الرؤيته فان غم عليكم فاقدروا له...** (رواه الستة الاالترمذی)

ترجمه: د سپوږمۍ په لیدو سره روژه نیسئ او د سپوږمۍ په لیدو سره افطار (اختر) کوئ او که مطلع غبار الود وي؛ نو اندازه کوئ،،

د موصوف خیال دی چې دلته که د رؤیت د معنا وضاحت وشي؛ نو مسئله تر ډیره حده پورې صفا کیدای شي،، هغه د (المنجد، اقرب الموارد، البستان، القاموس، لسان العرب، منتهي الارب او مفردات) وغیره حوالو سره دې نتیجې ته رسیدلی دی چې:

په دې کې شک نه شته چې د رؤیت حقیقي معنا د سرپه سترګو باندې لیدل دي، خو په نورو مجازي معناووکې هم ددې استعمال په کثرت سره شوی دی..... ددې له وجې ګویا د رؤیت معنا ،،،علم کیدل،، دي، څه دیرش ځلوېښت ځایه په قرآن پاک کې هم دلفظ رؤیت استعمال د حقیقي معنا نه پرته په مجازي معناکې شوی دی.

ددې له وجې د فاضل مؤلف په نزد ،،رؤیت هلال د سرپه سترګوسره لیدل مخصوص کولوڅه خاص معقوله وجه نه معلومیږي،، بلکې دهغه په رایه: په فن فلکیات باندې اعتماد کولوسره هم هغه خپل ایمان محفوظ ساتل کیږي،،

دلته دا سوال پیدا کیږي که رؤیت هلال ته د سرپه سترګوسره مخصوص کول د موصوف په نزد غیرمعقول ،،دي؛ نو ایا دې طرز فکر ته به معقول وویل شي، چې کوم کس دلغت کتابونه را واخلي او دادعوه وکړي چې دفلاني لفظ دحقیقي معنا نه پرته ګڼ شمیرمجازي معناګانو له پاره هم راځي، ددې له وجې عرفا اوشرعا ددې نه چې کومه حقیقي معنا اخیستل کیږي، هغه صحیح نه ده، بلکې ،،غیرمعقوله ده،، مثلا: د(ضرب)لفظ دلغت مطابق د پنځوسو شپیتو معناګانو له پاره راځي، ددې له وجې نه (ضرب زید عمروا) دجملې په عرف عام کې چې کومه معنا اخیستل کیږي (یعنې زید عمر ووهلو) هغه غیرمعقول او غلط دی، ایا دې ته صحت مندانه استدلال ویل کیدای شي؟ اوایا دا انداز فکر او طرز استدلال دا هم ترین مسایلو دصحیح حل طرف ته راهنمایي کولی شي؟له دې خبرې نه چاته انکار دی چې د رؤیت دلفظ دحقیقي معنا نه پرته دمختلفو قرائنو په مدد سره، په نورومجازي معناګانوکې هم استعمالیږي، مګر د رؤیت هلال په حدیث کې دا لفظ په کومه معنا کې استعمال شوی دی، ددې له پاره دلغت دکتابوبوج راوچتلو په ځای له ټولونه مخکې په دې سلسله کې تمام احادیث مخې ته کېښودل او داکتل پکاردي چې حضور ﷺ دا لفظ په کوم سیاق اوسباق اودڅه معنا له پاره استعمال کړی دی؟ بیاداکتل و چې صحابه وو(رضي الله عنهم)، تابعینو اوائمه مجتهدینو (رحمهم الله، له دې نه کومه معنا مراداخیستې ده؟ امت اسلامیه دقرن بعدقرن نه څه مراد اخیستي دي اوپه عرف عام کې دمیاشتې لیدو څخه څه معنا اخیستل کیږي؟

دلغت نه فایده اخیستل څه ممنوع کارنه دی، بلکې ډیره ښه خبره ده، دیوې ژبې په مشکلاتو کې هم دلغت نه مدد اخیستل کیږي اودیوغیرمعروف لفظ دتحقیق له پاره هرکس ته هروخت دډکشنري دخلاصولوحق حاصل دی، خوکوم الفاظ چې دخاص اوعام په ژبه وي، معنایې دعام نه عام کس پیژني اوروزمره په خبرواتروکې خلک په سوونوځله هغه استعمالوي اوددې له پاره دډکشنري دحوالې لټول څه فائده بخش کارنه دی، بلکې کیدای شي چې دااهل علم په نزد، دابې معنا مشغله، بې سوده کوشش اودبې کاره حرکت نوم ورکړل شي، که یو دانشمن دلغت کتوپه شوق کې دلغت دمجازي معناګانوپه منطق کې شرعي اوعرفي معناګانې غیرمعقولې وګرځوي؛ نو داسې کس له پاره په ډکشنري کې چې کوم لفظ جوړ

شوی دی له هغه نه ټول خلک خبر دي.

داهم که د روایت په شان معروف اوعام لفظ له پاره، د کتاب دخلاصولو، ضرورت او افادیت ومنل شي؛ نوددې څه توجیه کیدای شي چې درؤیت د ، اووه، معنا ویستلوپه وخت کې فاضل مولف دلغت نه هم صحیح استفاده کړې نه ده اونه یې هغه قواعدضروري ګڼلي دي، چې ائمه لغت د ، رؤیت ، دمواقع داستعمال په سلسله کې ذکر کړي دي.

ځکه چې موصوف دلغت په مددسره درؤیت اووه معناوې راویستلې دي چې ګویا د رؤیت معنا ده پته لګیدل، ګویااهل لغت چې ددې معنا اوددې دموقع استعمال دکوم تفصیلي بیان سردردي اخیستې ده، هغه ټول فضول ده، ددې ټولې سردردي یوازې دومره فائده راووته چې درویت معنا ده، علم کیدل، هرکله چې هغه هم په دې کتابونوکې موجود دي، دکوموحواله چې موصوف ورکړې ده. مثلاً: لفظ رؤیت، مفعول واحد له طرف نه متعدي وي؛ نوهلته ترې عیني رؤیت یعنې دسرپه سترګولیدل مراد اخیستل کیږي اوکله چې د دوو فعلونوطرف ته متعدي وي؛ نوددې معنا به وي ،پوهیدل، معلومول، ، په صحاح جوهري، تاج العروس اولسان العرب کې دي:

**الرؤية بالعين تتعدى الى مفعول واحد وبمعنى العلم تتعدى الى مفعولين.** (الصحاح للجوهری :۶ ص:۲۳۴۸، تاج العروس للزبیدی ج:۱۰ ص:۱۳۹ لسان العرب لابن منظور الافریقی مادة:رای)

ترجمه: که درؤیت نه مرادرویت بالعین وي؛ نو رؤیت دیومفعول طرف ته متعدي وي اوکه درؤیت معنا دعلم وي؛ نوهغه به ددومفعولوله طرف نه متعدي وي. ، ،

همدغه شان په منتهی الارب کې دي:

، ،رؤیت: دیدن بچشم، واین متعدي بیک مفعول است، ودانستن، واین متعدي بدو مفعول. ، ،(منتهی الارب ص: ۶۲۴، عبدالرحیم بن عبدالکریم صفی پوری)

صراح کې دي: **رای روية: دیدن بچشم متعد الی مفعول ودانستن متعد الی مفعولین.** (الصراح من الصحاح ص:۵۵۹)

یاداچې درؤیت په باره کې څه محسوس اومشاهدشی وي، هلته ترې حسي رؤیت مراد وي، یعنې دسرپه سترګوسره لیدل اوکله چې ددې باره کې څه شی نه وي؛ نوهلته وهمي، خیالي، یاعقلي رؤیت ترمراد وي، دامام راغب اصفهاني رحمه الله په **المفردات فی غریب القرآن**: کې دي:

**ذلک الضرب بحسب قوی النفس الاولی بالحاسة ومایجری مجراها....الخ.**

عجیبه اتفاق دی چې داعبارت فاضل مولف هم نقل کړی دی، مګرکیدای شي چې په بېره کې په دې باندې پوهیدوکې یاددې تفصیل ملحوظ ساتل یې ضروري نه وي ګڼلي

یا دا چې رای: د مادې نه چې کله مصدر، ،روية، ،راشي: نوددې معنا به وي، ، سترګو سره لیدل، ، اوکه ، ،رای، ، راشي؛ نو ددې معنا به وي ، ، په زړه سره لیدل اوپوهیدل. ، ،

اوکه ، ،رویا، ، راشي؛ نو عموما د دې معنا وي په خوب کې لیدل، ، اوکله کله په بیداري کې په سترګوسره لیدل، په اساس البالغه کې دي

رای رایته یعنی رویة،ورایته فی المنام رؤیا،ورایته رای العین،فأرایته اراءة ورایت الهلال، فترائنا الهلال....ومن المجاز فلان یری الفلان رایا...(اساس البلاغه ص:۳۱۱ لجارالله ابوالقاسم محمود بن عمر الزمخشری)

ترجمه رای، رایته، د لیدو په معنا راځي، څنګه چې «ورایته في المنام رویا» کې هغه په خوب کې ولیدو او «رایته رای العین» کې هغه په سترګوسره ولیدو او «فارایته اراءة» کې یې هغه ته وښود «ورایت الهلال» او ما سپوږمۍ ولیده «فتراینا الهلال» موږ بل ته سپوږمۍ وښوده او مجازا ویل کیږي چې فلاني فلاني په خوب کې لیده.

ممکنه ده چې د مواقع استعمال له پاره داکلیه نه وي، خو د عربیت صحیح ذوق په دې باندې ګواه دی چې په دې کې اکثر صحیح دي، هسې هم فني قواعد عموما یوازې نه، اکثري وي. د دې د ریوواړو د قواعدو مطابق د رؤیت هلال، ،معنا د سر په سترګوسره د سپوږمئ لیدل جوړیږي، همدغه وجه ده چې کوم ائمه لغت د حقیقي او مجازي معناګانو کې د جدا جدا استعمالولو انتظام کړی دی هغوی رؤیت هلال په حقیقي معنا، یعنې په سترګوسره د لیدو لاندې ذکر کړی دی.

همدغه شان چې کومو حضراتو، فروق الفاظ، ، اهتمام کړی دی هغوی وضاحت کړی دی چې رؤیت هلال، ، اوتبصر، ، معنا ده د سپوږمئ لیدو له پاره افق ته په نظر سره کتل لکه څنګه چې په فقه اللغه کې دي فأن نظر الی افق الهلال للیلة لیراه قیل مبصر، ،(فقه اللغة: ص:۱۰۴ ،للامام ابومنصور عبدالملک بن محمد الثعالبی)

ترجمه: که یو سړی د شپې د افق هلال طرف ته د سپوږمۍ لیدو له پاره نظر اوچت کړي؛ نو هم ویل کیږي چې هغه کس سپوږمۍ لیدو والا دی.

د فاضل مولف د علم او تفقه پیش نظر د هغوی په باره کې د بدګماني نه شي کیدای چې دا ټول اموربه د هغوی د نظرنه تیر شوي نه وي، یاداچې هغوی د ائمه لغت صحیح مراد باندې پوهیدونه قاصر پاتې شوي دي، مګر حیرانیتاده چې موصوف د دې ټولو شیانونه سترګې پټې کړې دي او دې نیم ګړي خبرې پسې شوی د یچې د رؤیت لفظ د ګڼ شمیر معناګانو له پاره راځي. لهذا رؤیت هلال د سر په سترګوسره مخصوص کول غیر معقول دي، ، کوم حضرات چې په دغه موضوع باندې تحقیق له پاره قلم را واخلي او د دومره لوی پندار سره چې موږ د چار ایې ته که هغه د هغه خپله وي یاد اهل علم حرف اخرنه ګڼو، د هغوی له طرف نه کم نظري، تساهل پسندي، یاد مطلب پرستي مظاهره ډیره افسوس ناکه او تکلیف ورکونکې ده، کله چې د رؤیت په شان عام او چشم دید امورو کې زموږ د محققینو دا حال وي: نو د عملي، نظري او پیچیده

مباحثوکې ددوی نه ددقیقه رسیږي، بالغ نظري اواصابت رایې توقع فضول ده.
داخوخیر دائمه لغت تصریحات دي، دلچسپه خبره داده چې په خپله ماهرین فلکیات ریاپه قول باندې چې اعتمادکول دفاضل مولف په نزدحفاظت ایمان ذریعه ده، دهغوی په نزدهم درؤیت هلال معنا دسرپه سترګوسره لیدل مراد راځي، نورداچې دهغوی په نزددې رؤیت دوه درجې دي: ۱: طبیعي ۲: ارادي
که هلال دافق نه په دومره اوچت والي باندې وي چې هغه پرته دتکلیف نه ولیدل شي؛ نوهغه طبیعي رؤیت ګرځول کیږي اوکه په دومره اوچت والي باندې نه وي، بلکه دومره لاندې اوباریک وي چې داعلی قسم دوربین نه پرته دهغې لیدل ممکن نه وي؛ نوهغه ته درؤیت ارادي نوم ورکول کیږي، دفلکیاتودتصریح مطابق قابل اعتبارطبیعي رؤیت دی، نه ارادي، په مجله اسلامیه بهاول پورکې دي:
،،مراد از رؤیت طبیعي است، نه اراده که بتوسط منظارهائې جیده به بیند چې درین حالت هلال قبل ازانکه بحد رؤیت رسیده باشد ،دیده مے شود .(زیچ بهادرخاني باب هفتم دررؤیت هلال ص: ۵۵۲ طبع بنارس ۱۸۵۸ بحواله سه ماهي مجله جامعه اسلامیه بهاول پوري،اپریل ۱۹۲۸ ص: ۵۱ مقاله مولاناعبدالرشید نعماني، وماهنامه،،معارف،، اعظم ګره مارچ ۱۹۲۳ص:۱۸۸)

ترجمه: درؤیت هلال نه مرادطبعي رؤیت دی، نه رویت ارادي، چې داعلی قسمه په دوربینونودې هلال ولیدل شي ؛ ځکه چې په دې حالت کې خوهلال دحد رؤیت پورې رسیدونه مخکې هم لیدل کیدای شي،،.
اوفقهاءکرام چې د شریعت اسلامي حقیقي ترجمانان دي، هغوی هم په دې باندې متفق دي چې دحضور ﷺ دارشاد: صوموالرویته وافطروالرویته.کې دکوم رؤیت حسي یعنې دسر دسترګونه لیدل مراد دي ،،په بدایة المجتهد ،،کې دي:
**فأن النبی صلی الله علیه وسلم قداوجب الصوم والفطر لرؤیة، والرؤیة انما یکون بالحس، ولولا الا جماع علی الصیام بالخبر علی الرؤیة لبعد وجوب الصوم بالخبر بظاهر هذا الحدیث.،**(بدایة المجتهد لابن رشد ص:۲۸۵)
ترجمه: حضوراکرم ﷺ روژه اوفطردرؤیت سره خاص کړي دي او رؤیت یوازې په سترګوسره کیدای شي اوکه دروژو له پاره په رؤیت باندې حدیث پاک سره سره دامت اجماع ثابته شوې نه وي؛ نویوازې خبرسره روژه واجب کول (ددې حدیث دظاهرپه بنیادباندې)به مشکل وي.
اوپه دې باندې دټولو مسلمانانواجماع اواتفاق دی څنګه چې په ،،احکام القرآن ،،کې دي:
**قال ابوبکر:قول رسول الله صلی الله علیه وسلم :صوموالرؤیته؛موافق لقوله تعالی: یسئلونک عن الاهلة.قل هی مواقیت للناس والحج.واتفق المسلمون علی ان معنی الایة والخبر فی اعتبار**

رویة الهلال فی صوم رمضان، فدل ذلک علی ان رویة الهلال هی شهود الشهر..،(احکام القرآن لابی بکر الجصاص ج:١ ص:٢٠١ طبع ١٣٣٥هجری)

ترجمه: ابوبکروايي چې: دحضوراکرم ﷺ ارشاد دی: صوموالرؤيته..دالله تعالی ددې قول:یسئلونک عن الاهلة قل هی مواقیت للناس والحج..موافق دی اودمسلمانانويه دې خبره باندې اتفاق دی چې ايت اوحديث درمضان دروژوسره رؤيت هلال متعلق دی؛ نوداقول هم دې خبره باندې دلالت کوي چې رؤيت هلال نه مراددمياشتې موجودکيدل دي،،

له دې تفصيل نه معلومه شوه چې، ،رؤيت هلال، ،معنا دسرپه سترګوسره ليدل قطعي ډول متعين دي اوپه دې کې دهيڅ قسمه شک اوشبهې ګنجائش نه شته اوهمدغه معنا دحضور ﷺ دزمانې نه واخله تراوسه پورې اخيستل کيږي دادائمه لغت تصريحاتوسره يوشان ده، همدغه دفلکيات داصطلاح مطابق ده، همدغه معنا مزاج شناسان نبوت، فقهاء کرامو له حديث نه زده کړې ده اودځوارلسو پيړيو امت مسلمه هم په دې باندې متفق ديی مګردفاضل مولف دې کمال ته داد ورکړئ چې هغه دډکشنري په ورکي شان پوکي سره داسمان اوځمکې هرڅه الوزول غواړي ارمان چې فاضل مولف ته دادرخواست کيدای شوای دطنز او تشنيع په ډول نه، بلکې ديوازې ددينې خيرخواهي، اسلامي اخوت اواخلاص په ډول، چې تاسوپه دې مقام باندې کومه اسانه لار اختيار کړې ده، يعنې دلغت خلاصولوسره په ګنوشميرومعناګانې راويستل او بيا پرته له څه ويرې دهغه لفظ شرعي معنا مشکوکه کړه، دالاره چې څومره اسانه اومختصرده له هغه نه څوچنده زياته دخطرهم ده، ځکه چې دادتحقيق او اجتهاد طرف ته نه بلکې،ګستاخي معاف، نيغه دتلبيس اوالحادطرف ته ځي، خدای مکړه چې امت مسلمه هم دې چال روانه شوه؛ نود ملاحده ډله په دې غلط منطق سره د صوم اوصلاة، حج، زکاة اوتمام اصطلاحات شرعيه مسخ کولی شي، ويل کيدای شي چې د صلاة معنا په لغت کې داسې راځي، لهذا ارکان خصوصه سره دې ته خاص کول غيرمعقول دي، وعلی هذالقياس ددې نه ظاهره ده چې ددې انجام په دنياکې امن اواصلاح نه ده، بلکې انتشاراوفسادبه وي اوپه اخرت کې دارالقرار نه شته، دارالبواربه وي، الله تعالی که اهليت درکړی وي؛ نواجتهاد ضرور کوئ، مګر دخدای له پاره اول په اجتهاداوالحادپه مينځ کې بنه فرق کوئ،! تحقيق نوی وي يازوړ، ددې حق مسلم دی، خودخدای له پاره ،دتحقيق اوتلبيس دواړوحدونه جداجداکړئ.

درؤيت هلال احاديث حضرات: عمر، علي، ابن مسعود، عائشه، ابوهريره، جابربن عبدالله، عبدالله بن عمر، رافع بن خديج اوداسې نورو... صحابه کرامو(رضوان الله اجمعين) په رواياتوسره دحديثو په مستندو مجموعوکې موجوددي،کوم چې په دې مسئله کې دځه صحيح نتيجې پورې درسيدو له پاره پيش نظرساتل ضروري دي، مګرموصوف دخپل خاص مقصد پټ ساتلو له پاره ددې نه د استفادې ضرورت ونه ګڼلو، يوازې ديو روايت دکوم په اخر

کې چې په جمله لړ شان اجمال بیامونداى شي، نقل کړې ده اوفورا يې دلغت طرف ته مخ کړی دی، راځئ په څورواياتوباندې نظر واچوو اوبيا وګورو چې صحابه وو، تابعينو اوفقهاء مجتهدينو ددې نه په څه پوه شوي دي، په صحيحينوکې دي:

۱: عن عبدالله بن عمر رضى الله عنهما! ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: الشهر تسع و عشرون ليلة، فلاتصوموا حتى تروه، فان غم عليكم فاكملوا العدة ثلاثين. (متفق عليه، مشكوة، ص: ١٧٤)

ترجمه: دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دى چې: رسول الله ﷺ وفرمايل: مياشت ديوكم ديرشوهم وي، مګرتاسو، ،دمياشت ليدونه پرته،، روژه مه نيسئ اوکه (يوکم ديرشمه باندې) مياشت دوريځې ياغبارله وجې په نظررانه شي؛ نود ديرشو شمار پوره کوئ،،

۲: عن عبدالله بن عمر رضى الله عنهما ان رسول الله صلى الله عليه وسلم ذكر رمضان، فقال: لا تصوموا حتى تروا الهلال، ولاتفطروا حتى تروه، فان غم عليكم فاقدروا له،، (متفق عليه، مشكوة ص: ١٧٤) ترجمه: دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دى چې: حضور ﷺ درمضان تذکره کولوکې وفرمايل: (يوکم ديرشمه باندې) مياشت ليدونه پرته روژې نيول مه شروع کوئ اومه دمياشت دليدونه پرته روژې بندوئ اوکه دوريځې اوغبارله وجې په نظررانشي؛ نوددې له پاره (دديرشوورځو) اندازه ساتئ،،

۳: كتب عمر بن عبدالعزيز رحمه الله الى اهل البصرة بلغنا عن رسول الله ﷺ... نحو حديث ابن عمر رضى الله عنهما عن النبى صلى الله عليه وسلم زاد: وان احسن مايقدر له اذ راينا هلال شعبان لكذا وكذا فالصوم ان شاء الله لكذا وكذا الا ان يروا الهلال قبل ذلك،، (ابوداود ص: ٣١٨)

ترجمه: خليفه راشد عمربن عبدالعزيز رحمه الله دبصرې والاوو ته په خط کې وليکل چې: موږ ته دحضور ﷺ نه داحديث رارسيدلى دى، دلته هم ددې مذکوره حديث ابن عمر رضي الله عنهما مضمون ذکرکړ اوپه دې کې يې دومره اضافه وکړه اوبهترين اندازدادى چې موږ دشعبان مياشت په فلانۍ ورځ ليدلې وه؛ نوځکه (دديرشوورځوپه حساب سره) روژه به ان شاء الله په فلاني تاريخ وي، مياشت که ددې نه مخکې په يوکم ديرشم په نظرراشي؛ نوبيله خبره ده،،

۴: حدثنا حسين بن الحارث الجدلى......ان امير مكة خطب ثم قال: عهد الينا رسول الله صلى الله عليه وسلم ان ننسك للرؤية فان لم نره وشهد شاهدا عدل نسكنا بشهادتهما......ان فيكم من هو اعلم بالله ورسوله منى، وشهد هذا من رسول الله صلى الله عليه وسلم واوما بيده الى رجل قال الحسين: فقلت لشيخ الى جنبى: من هذا الذى اوما اليه الامير؟ قال: هذا عبدالله بن عمر وصدق كان اعلم بالله منه، فقال: بذلك امرنا رسول الله صلى الله عليه وسلم،،

(ابوداود ج: ۱ ص: ٣١٩)

ترجمه: حسين بن حارث جدلي فرمايي :اميرمکه خطبه ورکړه، بيايې وفرمايل چې: رسول اللهﷺ موږ ته تاکيدا داحکم کړی و چې موږ اختر،لوی عيديوازې مياشت ليدوسره کوو اوکه (دوريځې ياغبارله وجې) موږ ونه ليدای شو (يعنې عام رؤيت ونه شي) مګردوه معتبراوعادل ګواهان درؤيت شهادت ورکړي؛ نوموږ دهغه په شهادت باندې اخترو کړ اويوبل صاحب کوم چې په مجلس کې حاضرو، دهغه طرف ته يې په لاس سره اشاره وکړه اوويې فرمايل: ستاسو په دې مجلس کې هغه صاحب موجود دی، چې دالله تعالی اودهغه درسول ﷺ احکام زما نه ښه پيژني اودحضور ﷺ کوم حکم الهي چې ماذکرکړ دی دهغه ګواه دی، حارث وايي: مادځان سره نژدې ناست يوبزرګ نه پوښتنه وکړه چې: داصاحب څوک دی دچاطرف ته چې اميراشاره وکړه؟ هغه وويل چې داعبدالله بن عمر (رضي الله عنهما) دی او اميرصاحب ويلي و، دی په رښتيا دالله اود رسولﷺ داحکامو لوی عالم و، عبدالله بن عمر (رضي الله عنهما) وفرمايل : رسول اللهﷺ موږ ته هم ددې حکم فرمايلی و.

**۵: عن ابن عمر رضی الله عنهما قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :جعل الله الاهلة مواقيت للناس، فصوموا لرؤيته وافطروالرؤيته فان غم عليکم فعدوا ثلاثين يوما.**(رواه الطبرانی کما فی تفسيرابن کثيرج:۱ ص:۳۲۵،داراحياء الکتب العربية مصر،واخرجه الحاکم فی المستدرک بمعناه وقال:صحيح الاسناد،واقره عليه الذهبی.)

ترجمه: حضرت عبدالله بن عمر (رضي الله عنهما) نه روايت دی چې حضورﷺوفرمايل: الله تعالی هلال (نوې مياشت) دخلکوله پاره دوختونومتعين کولوذريعه جوړه کړې ده؛ نودمياشت ليدوسره روژه نيسئ اودمياشت ليدوسره روژه ماتوئ اوکه مطلع ابرالود وي؛ نوديرش ورځې شمارئ.،

**۶: عن ابن عباس رضی الله عنهما قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :صوموالرؤيته وافطروالرؤيته فان حال بينکم وبين منظرة سحاب اوقترة فعدوا ثلاثين.**

(احکام القرآن للجصاص ج:۱ ص:۲۰۱)

**ترجمه**: دحضرت دابن عباس (رضي الله عنهما) نه روايت دی چې حضورﷺ وفرمايل: دمياشت ليدوسره روژه ونيسئ اودمياشت ليدوسره افطارکوئ اوکه ستاسو او دهغې دنظرراتلوپه مينځ کې وريځ ياسياهي حائل شي؛ نوديرش ورځې شمارئ!،

**۷:عن ابن عباس (رضی الله عنهما) ان رسول اللهﷺ قال:صوموا رمضانا لرؤيته فان حال بينکم غمامة او ضبابة فاکملوا عدة شهرشعبان ثلاثين ولاتستقبلوا رمضان بصوم يوم من شعبان.**(احکام القرآن ج:۱ ص:۲۰۲)

**ترجمه:** د حضرت ابن عباس (رضي الله عنهما) نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د رمضان روژه مياشت ليدو سره نيسئ، بيا که ستاسو ترمينځه وريځ يا ګرد راشي؛ نو د شعبان د مياشتې ديرش ورځې پوره کړئ او د رمضان په استقبال کې د شعبان دورځې نه روژه مه شروع کوئ.،،

۸: **عن ابن عباس رضی الله عنهما قال: قال رسول الله ﷺ: لاتصوموا قبل رمضان، صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته، فان حالت دونه غيابة فاكملوا ثلاثين يوما.،،** (ترمذی ج:۱ ص:۸۷)

**ترجمه:** د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د رمضان نه مخکې روژې نيول مه شروع کوئ، بلکې مياشت ليدو سره روژه نيسئ او مياشت ليدو سره افطار کوئ او که د هغې په ليدو کې وريځ حائل شي؛ نو ديرش ورځې پوره کوئ.،،

۹: **عن ابی البختری قال: خرجنا للعمرة فلما نزلنا ببطن نخلة ترائينا الهلال فقال بعض القوم: هوابن ثلاث، وقال بعض القوم: هوابن ليلتين، فلقينا ابن عباس رضی الله عنهما فقلنا: انا رأينا الهلال فقال بعض القوم: هوابن ثلاث، وقال بعض القوم، هوابن ليلتين. فقال: ای ليلة رايتموه؟ قلنا: ليلة كذا وكذا. فقال: ان رسول الله صلی الله عليه وسلم مده للروية فهو لليلة رأيتموه. وفی رواية عنه: قال: اهل لنا رمضان ونحن بذات عرق فارسلنا رجلا الی ابن عباس رضی الله عنهما يساله. فقال ابن عباس رضی الله عنهما: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم: ان الله تعالی قدامده لرؤيته فان اغمی عليكم فاكملوا العدة.** (مسلم ج:۱ ص:۳٤۸ مشكوة ص: ۱۷٤،۱۷۵)

**ترجمه:** ابوالبختري وايي چې مونږ د عمرې له پاره ووتو، بطن نخله ته ورسيدو؛ نو مياشت مو وليده، چا ووئيل د دريمې شپې ده او چا ووئيل د دويمې شپې ده، بيا چې کله زمونږ ملاقات د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما سره وشو؛ نو مونږ هغه ته عرض وکړ، چې مونږ مياشت ليدلې وه، مګر د ځينو رايه وه چې د دويمې شپې ده او د ځينو رايه وه چې د دريمې شپې ده، هغه وفرمايل، تاسو په کومه شپه ليدلې وه؟ مونږ ورته عرض وکړ، په فلانۍ شپه، ويې فرمايل: حضور ﷺ د مياشت د مودې دارومدار په رويت باندې ايښی دی. لهذا مياشت د همدغې شپې وه، په کومه شپه چې تاسو ليدلې وه.

او په يو بل روايت کې دي چې مونږ د رمضان مياشت په عراق کې ليدلې وه، (او زمونږ ترمينځه اختلاف وشو چې دا د کوم تاريخ ده) مونږ يو کس حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته د تحقيق له پاره ورولیږه، ابن عباس رضي الله عنهما وفرمايل: رسول الله ﷺ د دې مدار په رؤيت باندې ايښی دی، که په نظر رانه شي؛ نو شمیره پوره کوئ.،،

۱۰: **عن ابی هريرة ﷛ قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم: صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته فان غم عليكم فاكملوا العدة ثلاثين.،،** (متفق عليه، مشكوة ص: ۱۷٤)

ترجمه: حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې: رسول الله ﷺ وفرمايل: دمياشتې په ليدوسره روژه نيسئ او دمياشتې په ليدوسره افطاركوئ او كه بياهغه دوريځې له وجې په نظررانه شي؛ نو دديرشو ورځو شميره پوره كوئ،،

۱۱: عن ابن عمر رضي الله عنهما قال: قال رسول الله ﷺ: انا امة امية لانكتب ولانحسب. الشهر هكذا وعقدالابهام فى الثالثة. ثم قال: الشهر هكذا وهكذا وهكذا يعنى تمام الثلاثين. يعنى مرة تسعًا وعشرين ومرة ثلاثين.،، (متفق عليه. مشكوة ص: ۱۷٤)

**ترجمه**: حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي چې: رسول الله ﷺ وفرمايل: موږ اميه امت يو، موږ ته دوختونودتعين له پاره دحساب كتاب ضرورت نه شته، (بس دومره پوه شئ)چې مياشت كله دومره، دومره وي اودواړولاسونوسره يې اشاره وكړه اوپه دريم ځل يې يوه ګوته بنده كړه (يعنې يوكم ديرشو) اوكله دومره،دومره دومره وي،يعنې دپوره ديرشو،كله ديوكم ديرشواوكله دديرشو،،

۱۲: عن جابربن عبدالله رضى الله عنهما قال: قال رسول الله ﷺ: اذا رايتم الهلال فصوموا واذا رايتموه فافطروا فان غم عليكم فعدوا ثلاثين يوماً. (الفتح الربانى تبويب مسنداحمدج:۹ ص:۲٤۸)

**ترجمه**: حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: كله چې تاسومياشت ووينئ؛ نوروژه ونيسئ اوكله چې مياشت ووينئ؛ نواخترکوئ، بياكه مطلع ابرالود وي؛ نو د ديرشو شمار پوره كوئ،،

۱۳: عن قيس بن طلق عن ابيه رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: ان الله عزوجل جعل هذه الاهلة مواقيت للناس، صوموا الرؤيته وافطروا الرؤيته فان غم عليكم فاتموا العدة.. (الفتح الربانى ج:۹ ص:۲٤۷)

**ترجمه**: طلق بن علي رضي الله عنه فرمايي چې: رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تبارک وتعالى مياشتې دخلكو له پاره د وخت دتعين كولوذريعه جوړه كړې ده، كله چې مياشت ووينئ؛ نوروژه نيسئ اولكه چې مياشت ووينئ؛ نواخترکوئ اوكه دمطلع ابرالود كيدوله وجې په نظررانه شي؛ نو(د ديرشو ورځو)شميره پوره كوئ؛

۱۴: عن عائشة رضي الله عنها تقول: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يتحفظ من شعبان مالايتحفظ من غيره ثم يصوم لرؤية رمضان، فان غم عليه عدثلاثين يوماً ثم صام.،، (ابوداود ص:۳۱۸)

ترجمه: ام المومنين حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي: نبي كريم ﷺ به چې څومره دشعبان د مياشت اهتمام كاو، دومره به يې دبلې مياشتې اهتمام نه كاو، بيامياشت ليدوسره به يې درمضان روژې نيولې، خوكه مطلع به ابرالود و (اودچيرته به هم دمياشت دليدوخبرنه ملاويدو په) صورت كې دشعبان ديرش ورځې پوره كولې،،

۱۵: عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال النبي صلی الله عليه وسلم: لاتقدموا الشهر بيوم ولا بيومين الا ان يوافق ذلک صوما کان يصوم احدکم. صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته فان غم عليکم فعدوا ثلاثين ثم افطروا.،،(رواه الترمذی وقال حديث ابی هريرة حسن صحيح والعمل علی هذا عنداهل العلم .ترمذی ج:۱ ص:۱٤۷)

**ترجمه:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي: نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: دمياشتې دراتلونه يوه دوه ورځې مخکې روژې نيول مه شروع کوئ، البته که ددغې ورځې دروژې نيولوخه عادت مووي: نوهغه بيله خبره ده، بلکې دمياشت په ليدوسره روژه ونيسئ اودمياشتې په ليدوسره اختر وکړئ اوکه دمطلع ابرالودکيدوله وجې هغه په نظررانه شي؛ نوديرش ورځې پوره کوئ او بيا اخترکوئ.،،

۱۶: عن حذيفة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم: لاتقدموا الشهر حتی تروا الهلال اوتکملوا العدة، ثم صوموا حتی تروا الهلال او تکملوا العدة..(ابوداود ص:۳۱۸)

**ترجمه:** حضرت حذيفه رضي الله عنه فرمايي: نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: دمياشتې دراتلونه مخکې روژې نيول مه شروع کوئ، ترڅوپورې چې مياشت ونه وينئ ياشميره پوره نه کړئ، بيامسلسل روژې نيسئ ترڅوپورې چې مياشت ونه وينئ ياشميره پوره نه کړئ.،،

۱۷: عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم: لاتقدموا الشهر بصيام يوم ولا يومين الا ان يکون شيء يصومه احدکم، ولا تصوموا حتی تروه ثم صوموا حتی تروه، فان حال دونه غمامة فاتموا العدة ثلاثين ثم افطروا، والشهر تسع وعشرون.(ابوداود ص:۳۱۸)

ترجمه: دحضرت ابن عباس (رضي الله عنهما) نه روايت دی چې حضور صلی الله عليه وسلم وفرمايل: د رمضان نه يوه دوه ورځې مخکې روژې نيول مه شروع کوئ، ياداچې ددغو ورځو د روژو نيولو عادت مو وي، (مثلا: دپيرياز يارت ورځ وي) په هرحال دمياشتې دليدونه پرته روژه مه نيسئ، بيامياشت نظر راتلوپورې برابرې روژې نيسئ اوکه ددې ترمينځه وريځې راشي؛ نودديرشوشميره پوره کوئ، بيا اخترکوئ، کله مياشت ديوکم ديرشوهم وي.

۱۸: عن عبدالرحمن بن زيدبن الخطاب يقول: انا صحبنا اصحاب النبی صلی الله عليه وسلم و تعلمنا منهم وانهم حدثونا ان رسول الله صلی الله عليه وسلم قال: صوموالرؤيته و افطرو الرؤيته، فان اغمی عليکم فعدوا ثلاثين، فان شهدذوا عدل فصوموا وافطروا وانسکوا.،،

(سنن دارقطني،ج:۲ ص:۱۶۸)

**ترجمه:** حضرت عبدالرحمان بن زيدبن خطاب رحمه الله فرمايي: موږ دحضور صلی الله عليه وسلم صحابه کرام رضوان الله اجمعين په صحبت کې پاتې شوي يو اوله هغوی نه موعلم زده کړی دی، هغوی

موړته وويل چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي:دمياشت په ليدوسره روژه ونيسئ اود مياشت په ليدوسره اختروکړئ اوکه دوريځ اوغبارله وجې په نظر رانه شي: نوديرش ورځې شميره پوره کوئ، خوکه په دې حالت کې دوه معتبراوعادل کسان درويت شهادت ورکړي؛ نوبياهم روژه، اختر اوقرباني کوئ،،.

ددې ټولواحاديثومضمون مشترک دی، مګرهريوحديث په يوه نوې افادې باندې مشتمل دی، ددې له وجې دټولومخې ته کينښودل ضروري دي اوددې احاديثونه حسب معمول اموريه اول نظرکې په ښکاره ډول ښکاره کيږي:

۱: په اسلامي احکاموکې به دقمري مياشتو او کلونواعتبار وي.

۲: قمري مياشت کله ديوکم ديرشو وي اوکله دديرشو.

۳: په رويت هلال کې دسرپه سترګوسره دمياشتې دليدومفهوم په قطعي ډول متعين دی اوپه دې احاديثوکې دځه بلې معنا داحتمال هيڅ ګنجائش نه شته په (بداية المجتهد) لابن رشدالقرطبی،،کې دي:

**فان العلماء اجمعوا ان الشهر العربي يكون تسعاو عشرين، ويكون ثلاثين ،وعلى ان الاعتبار فى تحديد شهر رمضان انما هوالرؤية،لقوله عليه الصلوة والسلام:صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته،، وعنى بالروية اول ظهورالقمر بعدالسوال.،،**(بداية المجتهد لابن الرشدالقرطبی ج:۱ ص:۲۰)

**ترجمه**: دعالمانوپه دې باندې اجماع ده چې عربي مياشت ديوکم ديرشوهم وي اود ديرشو هم اوپه دې باندې هم اجماع ده چې درمضان دمياشتې تحديديوازې درؤيت سره کيږي، له دې وجې حضوراکرمﷺ ارشاد دی چې: تاسودمياشتې په ليدوسره روژه نيسئ اودمياشتې په ليدوسره اختر کوئ،،، اوددې (سائل په) سوال باندې درؤيت نه مراد دلومړۍ مياشتې ظهور دی.،،

۴: دقمري مياشتې دتبديلي دارومداردمياشتې په نظرراتلوباندې يادېرش ورځې پوره کيدو باندې دی،که ديوکم ديرشومياشت په نظرراشي: نونوې مياشت به شروع شي،ګني دسابقه مياشت ديرش ورځې به شمارکول لازم وي.،،

په احکام القرآن کې ابوبکرجصاص رازيرحمه الله فرمايي:

**وقوله صلى الله عليه وسلم :صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته، فان غم عليكم فاكملوا العدة ثلاثين، هو اصل فى اعتبار الشهر ثلاثين،الا ان يرى قبل ذلک الهلال،فان كان شهرغم علينا هلاله فعلينا ان نعده ثلاثين هذا فى سائر الشهورالتى تتعلق بها الاحكام،وانما يصيرالى اقل من ثلاثين برؤية الهلال.،،**(ج:۱ ص:۲۰۲)

ترجمه: دحضور ﷺ دا ارشاد دی چې:دمیاشتې په لیدوسره روژه نیسئ اودمیاشتې په لیدوسره اختر کوئ اوکه دوریځوله وجې میاشت په نظررانه شي؛ نود دیرشوورځوشمیره پوره کوئ،،داحدیث ددې خبرې دلیل دی چې میاشت ددیرشوورځو وي،یاداچې میاشت مخکې په نظرراشي اوکه یوه میاشت داسې وي چې په هغه کې دوریځوله وجې میاشت په نظررانه شي؛ نوپه موږ باندې لازمه ده چې ددیرشوشمیره پوره کړو اودا اصول دهغه ټولو میاشتوپه باره کې دي دکوموسره چې احکام متعلق دي اودمیاشتې ددیرشونه کمیدواعتباریوازې دمیاشت په لیدوسره به وي.،،

۵: که په افق باندې وریځ، غبار، یاتوروالی یانورڅه شی درؤیت مانع نه وي؛ نودیوکم دیرشم دمیاشتې ثبوت،، رؤیت عامه، سره به کیږي،کله چې دپوره علاقې یاملک خلک دمیاشت دلیدو کوششونه کوي اوددې باوجودعام رؤیت ونه شي؛ نودعلاقې یاملک یوازې دوه څلورو کسانو دعوې سره به،،رؤیت،،نه ثبوت کیږي، په دې حدیثونوکې دانفرادي شهادت دقبلولوحکم د مطلع دابرالودکیدوپه صورت کې ورکړل شوی دی اودمطلع صفا کیدو په صورت کې د انفرادي شهادت په ځای،،اذا رایتم،،(کله چې تاسو ووینئ) فرمایلو سره رؤیت عامه،،باندې د میاشتې دثبوت مدارکیښودل شوی دی اوعقلا هم داخبره صحیح ده چې مطلع صفا وي اوخلک ډیر په شوق سره میاشتې ته ګوري څه شی هم په کې مانع نه وي اوددې باوجودهم رؤیت عام ونه شي؛ نو په داسې صورت کې ددوکسانودادعوه چې: موږ میاشت لیدلې ده.،،دپوره قوم په سترګوپه د خاورو اچولوبرابرده اوظاهره ده چې پوره قوم ړوند یا ضعیف البصرګرځول کیدای نه شي، بلکې ددې په ځای به دغه انفرادي بیان غلط ګرځول کیږي، خاصکرکله چې داوچتو اوچتوځایونونه د دوربین په مددسره هم میاشت په نظررانه شي؛ نوددې خلکوغلطي، یاغلط بیاني به نوره هم واضحه شي، په احکام القرآن کې ابوبکرجصاص رازي رحمه الله فرمایي:

قال ابوبکر:انما اعتبرا صحابنا اذالم یکن بالسماء علة شهادة الجمع الکثیرالذین یقع العلم بخبرهم .لان ذلک فرض قد عمت الحاجة الیه.والناس مامورون بطلب الهلال فغیرجائزان یطلبه الجمع الکثیرولاعلة بالسماء مع توافی هممهم وحرصهم علی رویته ثم یراه النفر الیسیر منهم دون کافتهم علمنا انهم غالطون غیر مصیبین.فاما ان یکونوا راوا خیالا فظنوه هلالا، اوتعمدوا الکذب، وجواز ذلک غیر ممتنع.وهذا اصل صحیح تقضی العقول بصحته.وعلیه مبنی امر الشریعة، والخطاء فیه یعظم ضرره ویتوصل الملحدون الی ادخال الشبهة علی الاغمار والحشو وعلی من لم یتیقن ماذکرنا من الاصل.(احکام القرآن ج:۱ ص:۲۰۲ طبع ۱۳۴۵هـ)

ترجمه: امام ابوبکرجصاص رحمه الله فرمایي: کله چې په اسمان باندې څه وریځې وغیره نه وي؛ نو د

رمضان د میاشت د رویت له پاره د یوداسې ګڼ شمیر کسانو شهادت ضروري دی چې د هغوی په خبر سره دا یقین حاصل شي چې هغوی میاشت لیدلې ده، ځکه چې د روژو د فرضیت له وجې میاشتې ته کتل فرض دي او د ټولو خلکو ضرورت د دې سره متعلق دی او کوم خلک چې د میاشتې لیدو له پاره مقرر دي، دا ممکن نه ده چې ټول خلک خپل مکمل کوشش وکړي او د میاشتې د لیدو د حرص او کوشش باوجود میاشت ونه لیدای شي، خو په هغوی کې څه لږو کسانو ته میاشت په نظر راشي، د دې نه معلومه شوه چې د الړ شان جماعت په غلطي باندې دی او ډیره ممکنه ده چې دې لږ شان جماعت څه خیالي شی لیدلی وي او هغه هغوی میاشت تصور کړې وي، یا قصداً دروغ وایي او دا اصول هم په خپل ځای باندې صحیح دي او د کوم د صحت چې عقل سلیم هم تقاضا کوي او په دې باندې د شریعت اصول وضع شوي دي او په دې کې غلطي کول د ډیرلوی نقصان سبب جوړیدای شي او د دې سره ملحدین اسلام، کې شک شبه پیداکیدای شي.

۲:که مطلع غبارالود وي څنګه چې په پورتنو احادیثو کې وضاحت موجود دی، د اختر د میاشتې ثبوت کم نه کم د دوه معتبر او عادل او دیانت دار ګواهانو چشم دید شهادت سره به وي او د دوه عیني ګواهانو په ګواهي باندې د دومعتبر کسانو ګواهي کوم ته ،،شهادت علی الشهادت،، وایي همدغه شان د قاضي په فیصله باندې د دوو عادلانو ګواهي (شهادت علی قضاء القاضي) حکم به همدغه شان وي ځکه چې دادواړه هم ،،حجت ملزمه،،دي کما صرح به القوم) یوازې د یوکس د شهادت یا محض په افواګانو به اعتبار نه کیږي، کوم حضرات چې د اختلاف مطالعو قایل نه دي (او زمونږ فاضل مولف هم د دې موید دی)د دوی په نزد د لاندې ذکر شوي حدیث محمل همدغه دي:

**عن کریب ان ام الفضل بنت الحارث بعثته الی معاویة بالشام قال:فقدمت الشام قضیت حاجتها واستهل علی هلال رمضان وانا بالشام فراینا الهلال لیلة الجمعة.ثم قدمت المدینة فی آخر الشهر فسالنی ابن عباس رضی الله عنهما ثم ذکرالهلال .فقال:متی رأیتم الهلال؟ فقلت:رأیناه لیلة الجمعة، فقال:انت رایته لیلة الجمعة؟ فقلت:راه الناس وصاموا وصام معاویة رضی الله عنه، فقال :لکن رأیناه لیلة السبت.فلا نزال نصوم حتی نکمل ثلاثین یوما اولنراه.فقلت:الاتکتفی برویة معاویة وصیامه؟ قال:لا!هکذا امرنا رسول الله صلی الله علیه وسلم،،**(ابوداود ص:۳۱۹ ترمذی ج:۱ ص:۸۷)

**ترجمه**: حضرت کریب فرمایي: ام الفضل بنت حارث رضي الله عنها (د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما موربې بي) هغه حضرت معاویه رضی الله عنه ته شام ته د څه کار له پاره ولیږلی و او هغه د خپل کارنه فارغ شو؛ نو د رمضان میاشت ما ته په شام کې په نظر راغله، مونږ د جمعې په شپه میاشت

ولیده، بیا د رمضان المبارک په اخره کې زه مدینې طیبې ته واپس راغلم، حضرت ابن عباس رضي الله عنهما زما د حال احوال پوښتنه وکړه، بیا د میاشتې ذکر راغی؛ نو پوښتنه یې وکړه چې تا میاشت کله لیدلې وه؟ ما ورته وویل: موږ د جمعې په شپه میاشت لیدلې وه، ویې فرمایل: تا د جمعې په شپه په خپله میاشت لیدلې وه؟ ما ورته وویل: خلکو میاشت ولیده او روژه یې ونیوله او حضرت معاویه هم روژه ونیوله، ویې فرمایل: خو موږ د هفتې په شپه میاشت لیدلې وه، د دې له وجې موږ خو به خپل حساب سره دیرش روژې پوره کوو، یا دا چې په یو کم دیرشم باندې په خپله میاشت ووینو، ما ورته وویل: ایا تاسو د حضرت معاویه رضي الله عنه رؤیت او د روژې نیولو (فیصله) کافي نه ګڼئ، ویې فرمایل نه، (ځکه چې موږ د هغه ځای ثبوت د دو وثقه ګواهانو شهادت سره ملاونه شو، یوازې یو ستا اطلاع زموږ له پاره د افطار حجت کیدای نه شي) موږ ته حضور صلی الله علیه وسلم همدغه شان حکم فرمایلی دی،،

او د کومو حضراتو په نزد چې د مطالعو اختلاف معتبر دی، هغوی به د دې دا توجیه وکړي چې د هرې علاقې مطلع جدا ده، د یوې مطلع رؤیت د بلې علاقې والاوو له پاره کافي نه دی، اګر که د دې ثبوت په صحیح شهادت سره وشي،،

او د مطلع غبارالوده کیدو په صورت کې د رمضان د میاشتې له پاره د دویم حدیث مطابق د یو عادل مسلمان یا مستور الحال خبر به کافي وي، څنګه چې په ابوداود کې دي:

۱:: عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: جاء اعرابي الى النبي صلى الله عليه وسلم فقال: اني رايت الهلال يعني هلال رمضان، فقال: اتشهد ان لا اله الا الله؟ قال: نعم! قال: اتشهد ان محمداً رسول الله؟ قال: نعم! قال: يا بلال! اذن في الناس ان يصوموا غدًا. (رواه ابوداود والترمذي والنسائي وابن ماجة والدارمي، مشكوة ص: ١٧٤)

**ترجمه:** د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی چې: یو بانډه چې د حضور صلی الله علیه وسلم خدمت ته راغی او ویې ویل: ما د رمضان میاشت لیدلې ده. (عام رؤیت نه و شوی) حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ایا ته د الله تعالی د توحید قائل یې؟ هغه وویل هو! ویې فرمایل: ایا ته زما رسالت منې؟ هغه وویل هو! رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: بلال! خلکو ته اعلان وکړه چې سبا روژه ونیسئ!...،

۲:: وعن ابن عمر رضي الله عنهما قال: تراءى الناس الهلال، فاخبرت رسول الله صلى الله عليه وسلم اني رايته، فصام وامر الناس بصيامه،،، (رواه ابوداود والدارمي والروايتان في المشكوة ص: ١٧٤)

**ترجمه:** حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمایي: خلکو میاشتې ته کتل (مګر د وریځې له وجې عامو خلکو ته په نظر رانغله) ما حضور صلی الله علیه وسلم ته خبر ورکړ، چې ما میاشت ولیده، حضور صلی الله علیه وسلم زما په خبر په خپله هم روژه ونیوله او خلکو ته یې هم د روژې نیولو حکم ورکړ،،

۷: په دې احاديثو کې چې د حضور ﷺ په فرمودا تواو هدایاتو باندې نظر واچوئ؛ نو واضحه به شي چې حضور ﷺ د میاشتې د ثبوت له پاره یو قطعي اصل او ضابطه مقرره کړه، يعنې په یو کم دیرشم باندې د مطلع د صفا کیدو په صورت کې د رؤیت عامه اعتبار وي او د مطلع غبارالوده کیدو په صورت کې به د شهادت اعتبار کیږي او که دواړه نه وي؛ نو دیرش ورځې به پوره کیږي ، د حضور ﷺ په خپله په دې ضابطه باندې عمل و او صحابه وتابعین (رضوان الله اجمعين) هم د دې اصل پابند و او امت مسلمه ته د دې قاعدې د پابندي باربار تاکید شوی دی او الحمدلله؛ امت مسلمه د خپل نبي ﷺ د دې هدایت په موجب د دې بنه التزام کړی دی، خو په هیڅ یو حدیث کې حضور ﷺ د وړوکي نه وړوکي اشاره هم دې طرف ته نه ده کړې چې دا اصل دې پریښودل شي او امت مسلمه دې په څه مرحله باندې په بل طریقه هم اعتماد کولی شي، د څه حسابي فن نه هم په دې سلسله کې مدد اخیستل کیدای شي یا د روژې او اختر دا وقاتو په تعین کولو کې د څو نورو اصولو طرف ته هم رجوع کیدای شي، اوس د حضور ﷺ وضع شوي فرموده اصل رؤیت پریښودو سره په څه فن باندې اعتماد کولو سره او د دې د ماهرینو طرف ته رجوع کول سره هم منشاء نبوت پوره کیدای شوه څنګه چې فاضل مولف د حضور ﷺ په سرتېل غواړي؛ نو د حضور ﷺ له طرف موږ ته د هغه معمولي شان اشاره خوملاویدل پکار و؟ یا کم نه کم د صحابه وو او تابعینو او ائمه هدی له طرف د دې اصل نبوي نه پرته څه بلې لارې اختیارولو ګنجائش خو چیرته پته لګیدله.

د موجوده دور د کم علمي او ستم ظریفي د ټولو نه يو لوی مظهر دا دی چې کوم شی ستاسو په ذهن کې راشي هغه راکاږه او یو لوی کس سره یې منسوب کړه او کوم شی چې د مشرانو نه صراحتا ثابت وي د هغه منکر شه او که داسې هم نه جوړیږي او تاو راتاو یې کړه او خراد ته یې پورته کړه، د خانداني منصوبه بندي نه واخله ترسوشلیزم، پورې کومه خبره چې د چاپه ذهن بنه ولګیده؛ نو فورا یې حضور ﷺ طرف منسوب کړه، د صحابه کرامو دا حال و، چې د حضور ﷺ نه کوم ارشادات هغوی یوځل دوه نه، بلکې په څوځله په خپلو غوږونو اوریدلي و، د هغه په روایت کولو کې هم د حد درجې پورې محتاط و، مګر دلته د خپل ذهن وساوس د حضور ﷺ سره منسوب کول ضروري ګڼل کیږي.

خو موږ دا وینو چې حضور ﷺ د اصل رؤیت په خپلولو او اختیارولو ترغیب ورکولو کې چیرته **لانکتب ولانحسب**.(موږ حساب کتاب نه کوو) ویلو سره د اوقاتو د تعین په باره کې د حسابي تخمینو حوصله شکني کړې ده او چیرته د دواړو لاسونو په اشارې سره :**الشهر هکذا وهکذا وهکذا** (میاشت دومره،دومره او دومره وي) ویلو سره د میاشتو او د کلونو په سلسله کې په حساب باندې بالکل د بې اعتمادي اظهار فرمایلی دی، ګنې ظاهره ده چې د دې مضمون باندې د پوهولو له پاره چې میاشت کله د ۲۹ وي او کله ۳۰ ،دواړه لاسونه شپږ ځله او چتول او هکذا ، لفظ شپږ ځله ویلو په نسبت ۲۹ ، ۳۰ مختصر عدد هم وو او واضح هم او د حضور ﷺ مخاطب د دواړو هندسو

سره نا اشناهم نه وو.

دصحيح مسلم شرح ،،اكمال اكمال المعلم..المعروف: شرح ابي،،كې دي:

**وفى احاديث الاشارة هذا الارشاد الى تقريب الاشياء بالتمثيل وهوالذى قصده صلى الله عليه وسلم ولم يصنع ذلک لاجل ماوصفهم به من الامية:،،لايحسبون لايكتبون،،لانهم لايجهلون الثلاثين والتسع وعشرين مع ان التعبير عنهما باللفظ اخف من الاشارة المكررة والما وصفهم بذلک سدا لباب الاعتداد بحساب المنجمين الذى تعتمده العجم فى صومها،وفطرها،وفصولها،،**(ج:۳ ص:۲۲۳ طبع مصر ۱۳۳۷ه)

**ترجمه**: اوپه كوموا حاديثوكې چې په اشاروسره دمياشتې د ديرشو او يوكم ديرشو كيدو مقدار ښودل شوى دى ددې نه دانښودل مقصود و چې دمثالونوپه ذريعه په خبره باندې پوهيدل اسان وي، ددې له وجې حضورﷺ دلاس په اشارې سره داخبره وښوده اودحضورﷺ ددې اشارودښودې طريقه ددې له پاره خپله نه کړه چې ګني هغه خلک بالكل ان پړه وو اوحساب كتاب يې كولى نه شو،ځكه چې هغه خلک د۲۹ او۳۰ دلفظ سره نابلده نه وو، حالانكې باربار اشاره كولوپه ځاى د۳۰ او۲۹ په لفظ سره تعبيركول اسان و، خوددې باوجود حضورﷺ اشارې سره په خبره باندې پوه کړل، ددې له وجې چې عجم خلكوكې دحساب كتاب عادت پريوتى و اوپه دې باندې عجمي خلكو دخپلو روژو او افطار كولو اود كلونو دشميرې اعتماد كولو، دې سره دحساب كتاب وغيره دروازه بندول مقصود و،،،

همدغه شان چيرته:**فلاتصوموا حتى تروه ولاتفطروا حتى تروه**،،(روژه مه نيسئ ترڅوپورې چې مومياشت ليدلې نه وي اواخترمه كوئ ترڅوپورې چې مياشت ونه وينئ) فرمايل درؤيت نه پرته په هرقسمه حساب تخميني باندې اعتمادكول اودروژې له پاره اوداخترله پاره امت صفامنع وفرمايل اوچيرته دمياشت په ليدوسره: ددويمې ورځې ده،، نعره لګول يې دقرب قيامت علامت ګرځولې ده اودحسابي طريقوباندې اعتمادنه يې نفرت ورکړى دى اوداپې دذهني انحطاط اوديني تنزل مظهرګرځولى دى اوځنګه چې په كنزالعمال كې دي:

**عن ابن مسعود رضي الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم :من اقتراب الساعة ان يرى الهلال قبلا فيقال: لليلتين،وان تتخذالمساجدطرقا،وان يظهرموت الفجاءة.**(رواه الطبرانى فى الاوسط كنز العمال:ج ک۷ ص:۱۷۶)

**ترجمه**: ابن مسعود رضي الله عنه دحضورﷺ داروايت نقل كوي چې:دعلامات قيامت نه داهم دې چې دمياشتې په ليدوسره به ويل كيږي چې:داخوددويمې شپې ده،، اوجوماتونوځخه به لارې جوړې کړل شي اوناګهانه مرګونه به زيات شي...،

او چيرته يې بلا استثناء داهل نجوم تصديق ،،كفر،، تعبيرفرمايلى دى، مګرپه يوه موقع يې

دا وضاحت هم کړی دی چې داهل نجوم تقویم (کلینډر) باندې اعتبارکولو سره دمیاشتې فیصله کیدای شي.. دابوداودپه شرح ،،المنهل العذاب المورود..کې دي:

**وحسبک فی ابطال العمل بالحساب والتنجیم قوله تعالی:قل لایعلم من فی السموات والارض الغیب الاالله،،وقوله صلی الله علیه وسلم :من اتی عرافاً اوکاهناً فصدقه بمایقول،فقدکفربما انزل علی محمدصلی الله علیه وسلم**،،(احمدوحاکم)ومن احادیث المصابیح:من اقتبس علماً من النجوم اقتبس شعبة من السحر...(ج:١٠ ص:٣٧)

**ترجمه**: ستاله پاره دعلم اعداد اوعلم نجوم باطل کیدوله پاره دالله تعالی دغه قول کافي دی چې: تاسوورته وفرمایئ چې داسمان اوځمکې علم سوادالله تعالی نه هیچاسره نه شته.،،
اوحضوراکرم ﷺ ارشاددی چې:کوم کس چې دعلم نجوم والاکاهن ته لاړ اوهغه چې ورته څه وویل ده یې تصدیق وکړ؛ نوده کفروکړدهغه دین کوم چې په حضور ﷺ باندې نازل شوی دی.
دمصابیح په حدیث کې دي چې:چا علم نجوم زده کړ، هغه دجادوڅه برخه حاصله کړه،،
دې خوا یې دقرآن کریم شرعي اصول اوقات پرېښودل اوخود ساخته اصطلاح سره د میاشتو او کلونو ادل بدل کوم چې دجاهلیت اولی شعارو،**زیادة فی الکفر**،،اودګمراهي زینه ګرځولې ده.(التوبه :٢)

دا ټول امور مخې ته کېښودوسره هرکس دچادانصاف سترګې چې بندې شوې نه وي په اسانۍ سره فیصله کولی شي چې دثبوت هلال شرعي اصل اونبوي ضابطې پرېښودل اویوازې د جنتري (کلینډر) په بروسه باندې روژه افطارکول مزاج نبوت سره ترکومه حده پورې یوشان ده اومنشاء نبوت ترکومه حده پورې پوره کوي اودفاضل مولف دقول مطابق دې ته،،درؤیت ترقي یافته تعبیر،، ویل اودې بدعت ته ،،دحفاظت ایمان،،ذریعه ښودل اوددې پرچارکول ترکومې پورې صحیح دي؟

علامه ابن عربي په شرح ترمذي کې په اصول رؤیت پرېښودو اودحسابي طریقوسره رؤیت ثابتولوپه مذمت کې لیکي:

**اوه یا ابن شریح! این مسالتک الشریحیة؟ واین صوارمک السریحیة؟ تسلک هذا المضیق فی غیرالطریق، وتخرج الی الجهل عن العلم والتحقیق،ما لمحمدوالنجوم؟....وکانک لم تقرا قوله:امانحن امة امیة لانحسب ولانکتب،الشهرهکذا وهکذا وهکذا ،،واشاربیدیه الکریمتین ثلاث اشارات وخنس بابهامه فی الثالثة،فاذا کان یتبرا من الحساب الاقل بالعقدالمصطلح علیه مبینا بالیدین تنبیها علی التبری عن اکثر منه فما ظنک بمن یدعی علیه بعدذلک ان یحیل علی حساب النیرین،وینزلهما علی درجات فی افلاک غائبا ویقرنهما باجتماع واستقبال حتی یعلم**

بذلک استهلال...(ج:۳ ص:۲۰۸)

**ترجمه:** اې ابن شريح! چيرته داستاشرعي مسئله؟ ته فراخه لاره پرېږدې اوپه دې تنګو لارو باندې ځې اوته دعلم اوتحقيق نه وځې اودجهالت طرف ته ځې.....دحضرت محمد ﷺ د ارشاد او د نجوم په خپل مينځ کې څه نسبت دی؟ ګويا تادحضور ﷺدا ارشاداوريدلی نه دی چې موږ امي امت يو، موږ په حساب کتاب باندې نه پوهيږو، مياشت ددومره، دومره، دومره اودومره وي او حضور ﷺ په خپلومبارکولاسونودرې ځله اشاره وکړه اوحضور ﷺ په دريم ځل خپله ګوته بنده کړه اوکله چې حضور ﷺ اصطلاحي شميره اودحساب مختصرطريقه پريښوده اود لاسونو په اشارې سره يې داخبره وکړه؛ نوپه دې کې په دې خبره باندې خبرداری دی چې ددې نه زيات دې پريښودل شي، ستاڅه ګمان دی دهغه بنده په باره کې چې ددې وروسته هم دعوه کوي چې داشی دې علم نجوم ته حواله شي اوهغه دادواړه داسمان په پټودرجاتوباندې راولي اودا دواړه يوکوي داجتماع اواستقبال سره چې په دې طريقې سره په سپوږمۍ باندې پوه شي.

په دې احاديثوکې دصحابه وو اوتابعينو(رضی الله عنهم اجمعين)دطرزعمل وضاحت هم موجود دی چې هغوی دحضور ﷺ قائم کړل شوي ،اصل رؤيت، په سختۍ سره پابند وو اوهغوی بارباريه خطبو ، خطونو اوذاتي مجلسونوکې،:**عهدالينا رسول الله صلى الله عليه وسلم**،،**هكذاامرنا رسول الله صلى الله عليه وسلم**،،ويلوسره امت ته په دې اصولوباندې په سختي سره دپابندپاتې کيدوتاکيدکړی دی، دحديثو ياسيرت پوره ذخيره ولټوئ مګرتاسوته به چېرته هم ديوصحابي په باره کې داملاونه شي چې هغه اصل رؤيت پريښې دی اوپه حسابي تخمينه باندې يې اعتمادکړی اوفتوا يې ورکړې ده، همدغه وجه ده چې دامت په اتفاق ، اسلامي شريعت دثبوت هلال په باب کې داهل حساب اوفلکياتو دراييې اعتبارنه دی کړی، بلکې ددوی تحقيق يې له سره لغوه اوکالعدم ګرځولی دی،مثلاً: دفلکياتودماهرينو رايهي چې په فلاني تاريخ به مياشت ښکاره کيږي،خوکه شرعي رؤيت ونه شي، نودامت په اجماع دې رويت باندې احکام هلال نه جاری کيږي اود فلکياتو دماهرينو رايه به لغوه وي.

چنانچې حافظ ابن حجرعسقلانی رحمه الله ، ،فتح الباری ، ،ج:۴ ص:۹۸ ، ،عمدة القاری، ، للعينی، ج:۵ ص:۱۸۲ ،ج:۵ ص:۱۹۹ ، ،زرقانی علی الموطا، ،ج:۲ ص:۱۵۴ ،ردالمحتار لابن عابدين الشامی،ج:۲ ص: ۱۰۰ ،احکام القرآن للجصاص او داسې نورو... مشرانوموقف هم دغه دی، ددې په ځای چې دهغوی وضاحتونه نقل کړل شي، دلته دهغوی ټولونومونوليکل هم ممکن نه دي، ،البته امام جصاص رازي رحمه الله تصريح خولږ شان واورئ ،هغوی فرمايي:

**فالقائل باعتبار منازل القمروحساب المنجمين خارج حكم الشريعة وليس هذا القول مما يسوغ الاجتهاد فيه.لدلالته الكتاب ونص السنة واجماع الفقهاء بخلافه**...(ج:۱ ص:۲۰۲)

**ترجمه:** منازل قمراودفلکياتوپه حساب باندې اعتمادکول حکم دشريعت نه خارج دي اودا

داسې قول نه دی چې په دې کې د اجتهاد ګنجائش وي، ځکه چې دا الله د کتاب، سنت نبوي، او د فقهاوو داجماع د دلائلو خلاف دی.،

پاتې شو دا سوال چې شريعت داحکام هلال مدار په رؤيت باندې ولې کيښوده؟ په فلکياتي تحقيقاتو باندې يې ولې کيښنبوده؟ زموږ په نزد دا سوال بې موقعې دی، د مسلمان په حيثيت سره زموږ کار دادی چې موږ په ډيرې ښې طريقې سره داتحقيق وکړو چې په فلاني باب کې شارع څه حکم کړی دی، ددې معلوميدونه وروسته موږ ته دشارع نه ددې پوښتنې حق نشته چې داحکم تاولې کړی و؟ ځکه چې زموږ د مسلمان کيدولو مړی نتيجه ددې خبرې قطعي يقين دی چې دشارع د طرف نه هرڅنګه حکم ورکړل شی دهغه سره دشارع هيڅ څه غرض نشته بلکه هغه خو سراسرد بندګانو دمصلحت له پاره ورکړل شوی دی، کله کله ددې مصلحت اظهارمناسب وي اوکله نه وي، خو هغه مصلحت به په هرحال په دې حکم باندې مرتب وي، که څه هم که بندګانوته دهغه پته وي يانه وي، له دې وجې نه که هغه په خپله دڅه مصلحت اظهار وکړي نودهغوی مهرباني ده، ګنی بنده ته داحق کله حاصل دی؟چې هغه په دې خبرې اصرار وکړي چې اول دحکم مصلحت ووايئ نوهلته به يې منم. (اوتاسوته پته ده چې که يومصلحت له وجې وي؛ نوبياهم دداسې ذهنيت کس ته ويل کيدای نه شي)

په هرحال موږ ته ددې تحقيق کولوحق شته چې شريعت دهلال مدار په فلکياتو باندې ايښی دی اوکه نه؟ اودايې په کومه درجه کې قابل اعتبار ګرځولی دی، يابالکل ناقابل اعتبار؟ خو موږ داسوال نه شو کولی چې شريعت دهلال مدار په رؤيت باندې ولې کيښوده، په فلکياتو وغيره باندې يې کيښنبوده؟کيدای شي چې په دې کې دشارع پيش نظر د بندګانو ډير مصلحتونه وي اوهغه صرف په رؤيت باندې مرتب کيدایٰ شي، په فلکياتو باندې نه، مثلاً: د نورو قومونو دمياشتوکلونومدار په تقويمي (کليندړ) حسابونو باندې و، شارع ددې امت دانفراديت محفوظ ساتلوله پاره څنګه چې په نورو ډيرشيانوکې مشابهت نه امت بچ کول غوښتي دي، همدغه راز يې دتقويمی مشابهت څخه هم امت محفوظ غوښت، ځکه يې دوی ته مستقل نظام تقويم ورکړ.

علامه ابی (رحمه الله) په شرح مسلم کې ليکي: **سدا لباب الاعتداد بحساب المنجمين الذی تعتمده العجم فی صومها وفطرها وفصولها.**،(اکمال اکمال المعلم شرح مسلم للابی ص:۲۲۷)

**ترجمه**: دعجمو خلکو د خپلو روژو او افطار او د کلونو د شمارله پاره د نجوميانو په حساب باندې اعتماد کولو، او عادت يې جوړ کړی و، ددې عادت د ختمولوله پاره حضورصلی الله عليه وسلم داسې وکړل.

يا کيدای شي چې چونکې نوروحسابي طريقوسره دمياشتې او کال تعين فطري اوتحقيقي نه و، بلکې اختراعي اوتقريبي و، چنانچې هغوی ددې کم اوزيات دبرابرولوله پاره د، ليپ،،

اصطلاح ایجاد کړل. ددې برعکس اسلام دین فطرت و،ده غوښتل چې دامت اسلامیه د میاشتو او کلونو دتعین له پاره درؤیت اومشاهدې فطري طریقه ،تاکل شي،ځکه چې دا اختراعي اوتقریبي طریقې ددې دفطرت سره سمون نه خوري،یاممکنه ده چې ددې امررعایت په کې اینبودل شوی وي چې د اسلام دپوره نظام بنیادپه تکلف اوتعمق باندې نه دی،بلکې په سادګۍ اوسهولت باندې کیښودل شوی دی ،ددې وجې نه داسلام نظام تقویم هم دمشاهدې اورؤیت په شان آسان او ساده اصولو باندې جوړکړل شوچې په دې نظام په جزء اوکل کې مناسبت وي،اوپه دې باب کې امت په تکلف اومشقت کې ونه غورځېږي،شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله ددې حکمت طرف ته اشاره کوي اولیکي:

**اقول:لما کان اوقات الصوم مضبوطاً بالشهرالقمری باعتبار رؤیة الهلال وهو تارة ثلاثون یوما وتارة تسعة وعشرون وجب فی صورة الاشتباه ان یرجع الی هذا الاصل.وایضاً مبنی الشرائع علی الامورالظاهرات ،عندالامیین دون التعمق والحسابات النجومیة بل الشریعة واردة باخمال ذکرها وهوقوله صلی الله علیه وسلم :انا امة امیة لانکتب ولانحسب..**

(حجة الله البالغه للشیخ المحدث الدهلوی ج:۲ ص:۵۱)

**ترجمه:** زهٔ وایم چې: کله دروژودوختونو انضباط دقمري میاشتو درؤیت په اعتبارسره دی اودا میاشت کله ددیرشو وي اوکله دیوکم دیرشو، نود شک په صورت کې هم دې اصولو ته واپس کیدل واجب دي اونورداچې دامیین په نزددشریعت بنیادپه امورظاهره باندې وي،نه چې په ژوروالي اودعلم نجوم په حساب باندې،بلکې شریعت خوددې ذکرکولونه هم دمنع حکم ورکوي ځنګه چې دحضور ﷺ فرمان دې :موږ امي امت یوموږ په حساب کتاب باندې نه پوهیږو..،

یاممکن وي چې ددې څیزلحاظ ساتل شوی وي چې نظام تقویم په هرحال دوختونودتعین یوه ذریعه ده،اوکوم قوم چې په ذرائعو کې مشغول شي؛ نواکثرمقاصددهغوی د نظرونونه پټې پاتې شي اوفطري طورسره دهغوی صلاحیتونه دذرائعوپه لټون کې ضائع شي،ددې وجې نه دا وغوښتل شو چې امت مسلمه ته داسې نظام تقویم ورکړل شي چې په هغه کې مشغولیدو سره دهغوی دمقصدي صلاحیتونه دورکیدو ویره نه وي،بس سترګې یې پرانستې میاشت یې ولیده تقویم درست شو،اوټول په خپلوخپلوکارونوکې مشغول شول،نه دضرب ضرورت اونه دتقسیم ضرورت،نه دمحکمه موسمیات قائمولوضرورت اونه پرې دریسرچ ضرورت..،

یاممکنه ده چې دا امرپیش نظر وي چې په دې امت کې به مالدارهم وي ،عالم هم، او جاهل هم، ښځې هم اوسړي هم،اواکثروعباداتواومعاملاتومداریه نظام تقویم باندې دی،ددې وجې نه وغوښتل شو چې ځنګه دنظام تقویم متعلقه احکام مکلف دامت ټول طبقات دې همدغه شان دوی ته داسې تقویم ورکړل شي چې په هغه باندې هریوکس دخپلې مشاهدې په رڼاکې په

پوره شرح صدر سره يقين وكړاى شي.
يا ممكنه ده چې شارع ته ديقين هلال په باب څه مطلوب دي هغه په رؤيت اومشاهدې باندې مرتب كيداى شي،دهغه په نظركې حسابي جنترى ددې يقين په پيداكولوكې ناكافي وي،يا كيداى شي چې شارع ته دا امرناخوښه وي چې روژه اوافطارخودې تړل كوي؛ مګردهغوى د وختونوتعين دې ديوې خاصې ډلې په لاس كې وي، ددې وجې نه يې نظام تقويم داسې مقرركړ چې يوأمي كس هم دخپل وخت تعين تيک هماغه شان كولى شي، لكه ماهر فلكيات. او يو كليوال هم دخپلواوقاتوحساب هماغه شان لګولى شي څنګه چې يوښاري،بلكې بعيدنه ده چې دماهر فلكيات ياعالم نظركمزورى وي اوديوعامي كليوال نظرتيز وي،په دې صورت كې په خپله ماهر فلكيات ياعالم هم دمسكين انړه طرف ته رجوع كوي.
الغرض! دشارع پيش نظربيشميره حكمتونه كيداى شي ددې وجې نه زموږ كاردانه دى چې داګرمګرسوالونه وكړو اودشارع سره په بحث كې مشغول شواودفرصت اووخت سره دين اوايمان هم ضائع كړو،زموږ كارخودادى چې دشارع په حكمت اوشفقت باندې يوځل ايمان راوړو،بيادهغه دطرف نه چې هرڅنګه حكم وشي هغه په خپل حق كې سراسر د خير و بركت موجب اوعين دحكمت مظهروګڼواوفوراًپرې عمل وكړو.

زبان تازه كردن باقرارتو نيا نګيختن علت ازكارتو

په پاى كې مناسب معلوميږي چې دراقم الحروف هغه تبصره كومه چې موصوف جعفرشاه پهلواري په دې كتاب باندې،ماهنامه ،،بينات شعبان ۱۳۸۸ه كې ،،نقدونظر،،كې شائع شوې ده درج كړل شي:

## رويت هلال

مولانامحمدجعفرشاه پهلواري زموږ دملک يومشهورصاحب قلم اودادارہ ثقافت اسلاميه ملګرى دى.په زيرنظركتابچې كې هغوى ،،رؤيت هلال اورفلكيات،،په موضوع باندې خبرې اترې كړې دي د كتاب په مندرجاتوباندې دنظركولونه مخكې ددې شان نزول باندې پوهيدل ضروري دي، د موصوف تعلق ددې ځاى حشويه فرقې سره دى دكومونعره چې دموصوف په الفاظوكې داسې ده:

حضرات!زموږ په خيال كې زموږ پاكستانيانو دې وخت كې څه معين شريعت نشته، تيرشويو وختونوپه شريعت باندې چليږو،كله چې موږ ددې .خامو موادو..نه استفاده وكړو او يوه خبره مقرركړواوحكومت هغه نافذكړي نوزموږ له پاره به هماغه شريعت وي،اوبيابه هغه هميشه له پاره نه وي،دضرورت په وخت كې مجالس قانون سازي يابلږ تاكل شوې كميټۍ هم په دې كې ترميم كولى شي.[1]

[1] ] دمولاناجعفرشاه مقاله،،تعقل وتدبرکے لئے قرآن کریم کی تاکید....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

ددې حضراتو په نزد حضرت محمد (صلى الله عليه وسلم) راوړل شوې ``دين ،،او ``شريعت،، دوه جدا جدا شيانو نومونه دي چنانچې:

دين خو روح اوجذبه ده ،کوم چې بدليداى نه شي اوشريعت ددې روح دتشکيل نوم دى مقصد دسپرتې باقي ساتل دي اوشکل بدليدوسره سپرتې نه بدليږي (حواله مذکوره ص:٨٤٣)

قرآن کريم اوسنت نبويه ﷺ عباداتو اومعاملاتوکې حلال اوحرام ،جائزاوناجائز،فرض او واجب،سنت اومستحب، اوصحيح اوفاسد چې کوم احکام نافذکړي دي، د عامو مسلمانانو په نزدهغه واجب التسليم دي،مګر د ،،حشويه،،خيال دى چې دايوازې دهغه دور شريعت و،په کوم کې چې ددين د روح اودجذبې دهغه دوردتقاضومطابق خيال ساتل شوى و.اوموږ لره هم ددې روح او جذبې باقي ساتلوسره دخپل دوردغوښتنو مطابق ددې بدلول په ځاى يې ،،نوې شريعت،، جوړول پکاردي اودوقتي تقاضومطابق شريعت محمديه ﷺ، کې دکټ کوټ ،ترميم اوتنسيخ او رد وبدل ،،نوم اجتهاددى.

دموصوف په الفاظوکې:

ناقابل ترميم يوازې دين(په معنا دروح اوسپرټ) دى اوشريعت په هردورکې ترميم قبلوي،اوهمدغه داجتهادضرورت وي،دترميم دامطلب نه دى چې دشروع نه واخله تراخره پورې هرڅه دې بدل کړل شي،بلکې(الف)په شريعتونوکې چې کوم شى دخپل عصري تقاضومطابق وي هغه دې باقي وساتل شي .(ب)اودکوموچې ضرورت نه وي هغه دې ترک کړل شي.(ج)دکوم نوي شي چې ضرورت وي دهغه دې په کې اضافه وکړل شي اودغه وخت کې په صرف عالمي مصالح امت لره په نظرکې ساتل وي.،،(حواله مذکوره بالا ص:٨٤٤)

مطلب داچې دشريعت خداوندي احکام،،دپوخ عقل خاوندانوله پاره،،دخام مال حيثيت لري، (دشريعت له پاره .،،خام مواد،،اصطلاح موصوف په خپله مقاله کې ځاى په ځاى استعمال کړې ده،ناقل)ددوى سلوک به دشريعت سره هماغه شان وي چې ديواجنبي تهذيب درسمونواوقانون سره کيږي،هغوى چې څومره شريعت فائده ورکونکى بياموميي هغه به باقي ساتي اوڅومره چې وغواړي هغه به ترک کړي.اوڅومره چې وغواړي په هغې کې به اضافه وکړي،په عباداتوکې هم اوپه معاملاتوکې هم.

اوس داسوال باقي پاتې کيږى چې د،،عالمي مصالحو،،دتعين حق چاته حاصل دى،ددې جواب دحشويه سره دادى چې په دين کې په اجتهادباندې دهيڅ يوې ډلې اجاره داري نشته، بلکې دا دپوره قوم حق دى، چې هغوى يې خپلومنتخبو نمائندګانو(مرکزي حکومت اود پارليمنټ وکيلانو) ته ورکوي،همدوى ته داحق دى چې هغوى دخپل صوابديد

...بقيه د تير مخ]..بشمول ماهنامه، فکرونظر، راولپنډى.(ازص:٨٣٢ تا٨٤٠)ماه مئ ١٩٦٨،دامقاله دراولپنډۍ دبين الاقوامى کانفرنس دپاره ليکلې شوې وه مګرورکيدوپه وجه باندې هلته اونه لوستلې شوله۔

مطابق دوقتي تقاضواومصالح امت تشخيص وکړي اوکه په هيره کې شپې ته ورځ ووايي نودتمام قوم دافرض دي چې هغوی هم، ،اينک ماه پروين، ،اقراروکړي.
ددې تشريح نه به معلومه شوې وي چې مولاناجعفرشاه صاحب دکوم اجتهادي شريعت يا نوي شريعت داعي دی هغه د مستر پرويز د نظريه، ، مرکزملت، ، او د مغربي نقالانو د نظريې ، ،تعميراسلام، ، معجون مرکب دی،دکوم مقصدچې په پوره اسلام باندې نظرثاني کول دي.
مګر في الحال چې کوم شرعی مسائل چې داجتهادي ترميم له پاره زيرغوردی دهغو مختصرشان فهرست موصوف داپيش کوي:
مثلاً: دانشورنس جواري،دبينکونوسود،خانداني منصوبه بندي،انتقال خون مسئله. د انساني اندامونو دبل انسان ته دلګولو مسئله، د ذرائع پيداوار قومياني کولو جواز.دجنتري مطابق د مياشت اعلان،دښځودپردې نوې حد بندي، تعدد ازواج، واده، طلاق، دعوت، ذبيحه، او سفرحج په شان جائز شيانو باندې دپابندي جواز، دجهيز اصليت،دحضانت موده، د مفقود الخبر ميعاد، د يتيم لمسي وراثت،فوټو،ګاڼې،اودتصويروېستلو مسئلهاو داسې نور...(حواله بالا ص:٨٤٦)
مولاناصاحب دخپلوملګروسره په دې خدمت باندې مقرردی چې قومي مشرانوته دشريعت محمدي دکومواصولواوفروعودمنسوخ کولواودهغو په ځای د، ،وقتي تقاضو، ،عين مطابق نوی شريعت جوړولوالهام وشي دهغوی له پاره راه عامه هواره کړي اوپه عالمي سطح باندې خلک په دې باندې قائل کړي ، په دې سلسله کې موصوف چې کوم اجتهادي صلاحيتونه په کار راولي اوکوم قسمه دلائل پيش کوي اوکوم قسم تخنيک استعمالوي زيرنظرکتابچه دهغو ډيرښه مثال دی.
اسلامي اصول دادي چې دقمري مياشتواوکلونوحساب په رؤيت باندې دی،دحضور ﷺ د دورنه راواخله تراوسه پورې امت هم په دې اصول باندې کاربند دی اوروژه،اختر،اعتکاف ، زکات ،حج، قرباني.عدت او داسې نور...ډيراحکام هم په دې باندې مقررېږي،ددې برعکس مولانا موصوف موقوف دادی چې ددې شيانو له پاره دمياشتې کتلو په دې ترقي يافته دورکې هيڅ ضرورت نه شته،ددې له پاره نه درؤيت ضرورت شته اونه دعالمانواونه دکميټو.اونه د ګواهانو، اونه په ټيلي فون باندې دتصديقونوکولو.(ص:٤١)
دادحکومت کاردی چې هغه جنتري ته وګوري او دډيرمخکې نه د اخترونو وغيره اعلان وکړي اومونږ په پټوسترګوپه دې باندې (آمنا و صدقنا) وايو. دموصوف په خيال کې ، ،په دې کې هيڅ قسمه شرعي نقصان نشته، ،بلکې شرعی نقصان خوپه اختلاف کې دی، ، (ص:٤٨)
اوس وګورئ چې په دې شرعي اصولو کې دترميم له پاره دکوم دوجې نه چې بې شميره احکام شرعيه مسخ کيږی ،موصوف دهغې څه اجتهادي اصول وضع کړي دي، ،
دادې واضحه وي چې مونږ دچا رايې ته، که د هغه خپله وي يادااهل علم حرف آخرنه ګڼو.(ص:٥)

خپل ذکر خو موصوف د تبرک په طور سره کړی دی وینا یې داده چې د شریعت هره مسئله که څه هم هرڅومره صریحي او قطعي وي او اهل علم په هغې باندې متفق نه وي ، په هغې کې څه نا څه نوې خبره راویستل کیداي شي لکه په زیرنظر مسئله کې دامت عالمان په دې باندې متفق دي چې د رؤیت هلال معنا د سرپه سترګو سره میاشت لیدل دي ۔

مګر د مولانا موصوف په اجتهاد کې ، ،دلته د رؤیت معنا هغه علم دی چې تاریخي یا فني شواهدو نه حاصلیږي یا د خوب په شان دزړهٔ او خیال نه..... رؤیت هلال یوازې د سرپه سترګو سره مخصوص کول څه معقوله وجه کیدای نه شي. ، ،

همدغه شان د ټولو عالمانو قانون په نزد د شهادت معنا ده:

دیو کس عدالت ته حاضریدل او ګواهي ورکول ، ،

مګر د مولانا موصوف په نزد دا صحیح نه ده ،بصیرت هم کافي دی چې غالب ګمان پیدا کړي.(ص: ٣٤)

او د مسلمانانو شریعت د دې اعتبار کوي او که نه او هغه مني یا نه مني مګر د موصوف په خیال کې: صرف د ګواهانو په شرعي ګواهي سره چې کوم غلبه ظن پیدا کیدای شي د هغې نه زیات په موجوده دور کې د فلکیاتو د علم سره حاصلیږي. ،(ص: ٣٤)

الغرض! کله چې دا اصول یوځل مقرر شي چې: لومړی قرآن او سنت او دین او شریعت کوم مفهوم ګڼلی و ، یا خو هغه د سرنه غلط دی ،یا د هغه دور په لحاظ سره صحیح و ،مګر کم از کم زموږ له پاره صحیح نه دی او ددې نه وروسته په شریعت الهیه کې ردوبدل کولو ډیر ګنجائش راتلی شي او دې سره اسلامي قطعیات ډیر په اساني سره د حشوي اجتهاد ، ،په زد کې راوستل کیدای شي،ددې د هرې مسئلې په باره کې ویل کیدای شي ،دزړې زمانې د مېلمانانو په دور کې د هغوی په خیال کې به داسې وه خو اوس داسې نه ده ، ،.

موصوف فلکیاتو باندې اعتماد سره همدغه منطق ثابتول غوښتي دي.(ص:٢٣)

٢::ددې ، ،حشوي اجتهاد ، ،دویم اصل دادی چې ددې امت په کروړونو عالمانو ، او فقهاوو خلاف که د چاقول ملاوشي نو که د هغې نقل هرڅومره ناقابل اعتبار او غلط وي لیکن هغه آسماني وحي وګڼه او د هغې اعلان وکړه ،چې دا مسئله د مخکې نه اختلافي راروانه ده او موږ د فلاني قول اختیارو و ،چنانچې په زیرنظر مسئله کې مولانا موصوف د مطرف بن عبدالله ، علامه سبکي رحمه الله ، قاضي عبدالجبار رحمه الله ،ابن مقاتل رحمه الله ،او مصنف جمع العلوم نومونه ورکړي دي. چې هغوی په دې فن باندې مکمل یا غیرمکمل اعتماد کولو.(ص:١١تا ١٣) حالانکې د اول الذکر طرف ته ددوی نسبت غلط دی.(فتح الباری ج: ٤ ص: ٩٤)د علامه سبکي رحمه الله قول مردود دی.(شامی ج:٢ ص:١٠٠) د باقي بزرګانو په باره کې خو اول موصوف دا لیکلي نه دي چې هغوی څوک وو؟ (حد دادی چې د مصنف جمع العلوم د نامې هم څه پته معلومه نه ده.)ددې نه علاوه ددوی دا قول بحواله شامي. د زاهدي ،قنیه، نه نقل کړي دي د کوم په باره کې چې علامه شامي رحمه الله

وضاحت موجود دی چې هغه ناقابل اعتبار دی.(شامي ج:١ ص:٥٢)

وګورئ د څو بزرګانو غلط، مردود، او ناقابل اعتبار اقوالو سره اجتهادي کلا جوړه شوه او څوارلسو پېړيو ته د غلط فهمي ښکار ويلو جواز پيدا شو.

٣: د حشويت دريم اصل دادی چې په موقع راتلو باندې د مکر، دوکې او غلط بياني نه مخ ګرځول پکار نه دي، چنانچې ټولو ته معلومه شوه چې امام شافعي رحمه الله په دې مسئله کې د ټول امت سره متفق دی، خو موصوف امام شافعي رحمه الله هم راضی کړ چې د رؤيت هلال په ځای د جنتري کتوسره د مخکې نه اعلان کيدای شي.(ص:٢٥)

د موصوف د دې دوکې مقصد دادی چې ،،يوم شک،، کې روژه نيول پکار دي او که نه؟ په دې باره کې د امام شافعي رحمه الله نه، بلکې بيا وروسته د شافعيه وو د مشايخوګڼ شمير اقوال دي چې د امام نووي رحمه الله په ،،شرح مهذب،، او حافظ ابن حجر رحمه الله په ،،فتح الباري،، کې کتل کيدای شي، هم په دې کې يو قول د بعضو محتاط شافعيه وو دادی چې که حسابي تخمينه د دې تائيد کوي نو کوم کس ته چې د دې په صحت باندې باور وي د هغه له پاره پرې روژه نيولو کې څه نقصان نشته. هم د غه موصوف د غلط فهمي يا جعل سازي دوجې نه، داسې مسخ کړی دی چې امام شافعي رحمه الله يا تمام شافعيه په فن فلکيات باندې د اعتماد قائل وو.(ص:١٢)

٤: د حشويت څلورم اصل دادی چې مختلف قسمه غلطيانو او ګپ شپ ته د ،،قياس،، نوم ورکړل شي او مولانا موصوف هم د دې اصل نه د پوره استفادې ډيره تجربه لري مثلاً:

١: که د ټيلي فون په اطلاع باندې د نني ماښامي دعوت قبليدايي نو د رؤيت شهادت پرې ولې نه شي قبليدای؟ (ص:٢٨)

٢: که کرنسي نوټونو د نقدي قائم مقام دی؛ نو د فلکياتو فن د رؤيت قائم مقام ولې نه شي کېدای؟(ص:٥)

٣: که ټينک چلول شهسواري ګڼل کيږي؛ نو د رؤيت تعبير د جنتري سره ولې نه شي کېدای؟(ص:٥)

٤: که د ميراث په تقسيم کې په حساب کتاب باندې اعتماد کيدای شي؛ نو په مياشت کې ولې نه شي کېدای؟

٥: که د مشکيزې په ځای پمپنګ سره د اودس له پاره اوبه اخيستل کېدای شي، نو د هوايي جهاز نه ولې مياشت لېدل کېدای نه شي؟

٦: که د غوښې په معامله کې په قصاب باندې اعتبار کيدای شي؛ نو د مياشتې په معامله کې حکومت باندې ولې نه شي کيدای؟ (ص:٤٢)

د دې خبرو په نقل کولو کې قلم ته هم اولټې (قی) ورځي مګر د دې حضراتو صبر او حوصله ده چې داسې شرعي مسائل په دې بچګانه سوالونو سره حل کول غواړي، د کوم له پاره چې نه د علم

ضرورت شته او نه د عقل او نه د فهم او پوهې.
که اداره ثقافت اسلامیه نه په اسلامي موضوعاتو باندې داسې معیاري کتابونه راوتل نویقین کول پکاردي چې هغه به په خپله نیک نامي کې د ،اداره طلوع اسلام، او، اداره تحقیقات اسلامي، نه مخکې لاړه شي.

## په انګلستان کې د اختر لمونځ

**سوال:** په انګلستان کې مسلمانانو ته د اختر مسئله د ټولو نه اهمه ده، مسلمانان په دې سلسله کې همیشه د اختلافاتو ښکار کیږي، په هر ښار کې څوڅو اخترې کیږي، په دې سلسله کې تاسو څه وفرمایئ مسلمانان څنګه یو شان اختر وکړي؟

**جواب:** په اصل کې د رمضان المبارک او د اختر تعلق د رؤیت هلال سره دی، نبي اکرم (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل چې سپوږمۍ وویني نو روژه کوئ او چې سپوږمۍ وویني نو اختر کوئ[1] عیسوي کال متعین دی او تاریخونه یې مقرردي، خو د قمري تاریخونو تعیین هره میاشت وي، کله ۲۹ تاریخ باندې کله ۳۰ تاریخ باندې د سپوږمۍ په تاریخ باندې د روژې یا د اختر فیصله کیږي، د یورپ د موسمي حالاتو په وجه په عام طور باندې د سپوږمۍ لیدل یوه ناممکنه خبره ده، په دې وجه عام طور باندې په دې سلسله کې اختلاف پیداکیږي او د فقهي مسئلو په لحاظ سره دداسې ملکونو د پاره مسئلې موجودې دي، که چیرې ددې مسئلو مطابق حکمونه بیان کړل شي ؛نو د اختلاف په وجه به نه وي د فقهې په اعتبار سره به وي په کومو ملکونو کې چې سپوږمۍ په نظر نه راځي؛ نو هلته چې کوم قریب ترین ملک وي ددې په رؤیت ( سپوږمۍ دلیدلو) اعتبار دی او د دوی د سپوږمۍ په لیدلو باندې به د اختر یا د رمضان المبارک اعلان کیږي، په دې اعتبار سره د انګلینډ قریب ترین ملک مراکش دی، په دې وجه د مراکش په سپوږمۍ باندې د انګلینډ خلک روژې نیسي او اختر کوي[2] زموږه په رایه په انګلینډ کې د مختلفو ملکونو په فقهي احکاماتو باندې د نظر ساتلو په وجه اختلاف وي، علماء کرامو ته په متفقه ضابطې سره په پوره انګلینډ کې په یوه ورځ باندې اختر کول پکار دي ددې له پاره چې د مسلمانانو اجتماعیت په نظر راشي او خلک د دین خلاف پروپیګنډه و نه کړي.

---

[1] عن ابن عمرقال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :الشهرتسع وعشرون فلاتصوموا حتى تروه ،ولاتفطروا حتى تروه (سنن ابى داؤد ج:١ص:٣١٧،كتاب الصوم ،باب الشهريكون تسعًاوعشرين) (ايضًا: ويثبت رمضان برؤية هلاله اوبعد شعبان ثلاثين يومًا لحديث الصحيحين :صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته ،فان غم عليكم فاكملوا عدة شعبان ثلاثين يومًا(البحرالرائق ج:٢ص:٢٨٣،كتاب الصوم)

[2] تفصيل دپاره اوګوره:شامى ج:١ص:٣٦٢مطلب فى فاقد وقت العشاء كاهل بلغار ، ايضًا اوګورئ:نظام الفتاوى ،ازمولانا مفتى نظام الدين اعظمى رحمه الله ج:١ ص:١٢٨ مكتبه رحمانيه لاهور)

## د چاپه نزد چې په شرعي شهادت سره سپوږمۍ ثابته شوه هغوی ته د یوې روژې قضا نیول پکار دي

**سوال:** په اخبار کې خبر شائع شو چې د رمضان المبارک سپوږمۍ (۲۸) مارچ باندې په نظر راغله او حالانکې شهادتونه هم موجود وو لکه څنګه چې سپوږمۍ د شپې د ماښام نه ظاهره وه چې سپوږمۍ د یوې ورځې د مخکې نه وه او هلال کمیټۍ د سپوږمۍ لیدو اعلان ونه کړ، چونکې سپوږمۍ د اولې غلطۍ د پټولو له پاره عالمانو د ښځو په سربراهي کې دحکومت د خوشحالولو له پاره د دین غلا و کړه او حق خبره یې پټه کړه، که چیرې (۲۹) روژې شوې وي نو آیا لومړۍ روژه چې کومه د هلال کمیټۍ د وجې نه پاتې شوې وه آیا هغه روژه به نیول کیږي؟ جواب راکړئ.

**جواب:** زما خو په اهل علم باندې داسې بدګماني نشته چې فرض شرعي یوازې د حکومت د خوشحالولو له پاره پریږدي او بیا په دې کې د حکومت څه مفاد دي چې رمضان یوه ورځ پس شروع شي، په هر حال د کومو خلکو په نزد چې په شرعي شهادت سره رمضان ثابت شوی وي، دوی ته د روژې قضاء نیول ضرور پکار دي.[1]

# ❖ د روژې نیت ❖

## د روژې نیت کله پکاردی؟

**سوال:** درمضان المبارک روژې نیت کوم وخت کې کول پکاردي؟

**جواب:** ۱ بهتردادی چې درمضان المبارک دروژې نیت دصبح صادق نه مخکې وکړل شي.[2]

۲: که دصبح صادق نه مخکې درمضان المبارک دروژې دنیولو اراده نه وه اودصبح صادق نه پس یې اراده وکړه نورروژه نیول پکار دي، که دصبح صادق نه پس یې څه خوړلي څښلي نه وي؛ نونیت صحیح دی.[3]

۳: که څه یې خوړلي څښلي نه وي نودغرمې نه یوه ګنټه مخکې (یعنې شرعي نصف النهارنه

---

[1] رجل رای هلال رمضان وحده فشهدولم تقبل شهادته کان علیه ان یصوم وان افطرفی ذلک الیوم کان علیه القضاء دون الکفارة .عالمگیری ج:۱ص:۱۹۸، الباب الثانی فی رؤیة الهلال)

[2] ووقتها بعدالغروب ولایجوزقبله والتسحرنیة کذافی الظهیریة (البحرالرائق ج:۲ ص:۲۷۹)۔

[3] وانما تجوز النیة قبل الزوال اذالم یوجدقبل ذلک بعدطلوع الفجرماینافی الصوم ...... الخ (هندیة ج:۱ص:۱۹۶، کتاب الصوم ،الباب الاول فی تعریفه وتقسیمه وسببه ووقته وشرطه)۔

مخکې، درمضان المبارک دروژې نیت کولی شئ.[1]

۴: درمضان شریف دروژې بس صرف دومره نیت کول کافی دي چې نن زماروژه ده، یادشپې نه دې اراده وکړي چې سهاربه روژه نیسم.[2]

## شرعي نصف النهار نه مخکې د روژې نیت کول پکاردي

**سوال:** ایا د نصف النهار شرعي په وخت کې دروژې نیت کولی شو اولمونځ کولی شو؟

**جواب:** اول خوپه دې پوهیدل پکاردي چې ,,نصف النهار شرعي ،، څه شی دی؟ نصف النهار دورځې نیمای ته وایي، اودروژه دار له پاره ورځ دصبح صادق نه شروع کیږي، دصبح صادق نه واخله تر غروب آفتاب پورې پوره ورځ شوه، اوددې نیمای ته ,,نصف النهار شرعي ،، وایي، او د لمر راختونه واخله تر پریوتو پورې ته په عرف عام کې ورځ وایي، ددې نمیای ته,,نصف النهار عرفي،، وایي، نصف النهارشرعي دنصف النهارعرفي نه کم وبیش څلویښت منټه مخکې وي.[3]

کله چې دامعلومه شوه نوپوهیدل پکاردي چې دروژې په نیت کې د ,,نصف النهار شرعي،، اعتباردی،له دې وجې نه درمضان المبارک دروژې اودنفلي روژې نیت دنصف النهار شرعي نه مخکې کول صحیح دي، (هرکله چې څه یې خوړلي اوڅښلي نه وي)ددې نه پس صحیح نه دی اوپه لمونځ کې نصف النهارعرفي ته اِعتباردی، اوپه هغه وخت کې لمونځ جائزنه دی، نصف النهار شرعي(کوم ته چې ضحوی کبری، هم وایي)دغه وخت کې لمونځ کول درست دي.[4]

---

١ ] ایضاً پورتنئ حاشیه)۔

٢ ] وعرفهافی المحیط بان یعرف بقلبه انه صوم ......الخ ( البحرالرائق ج:٢ ص:٢٧٩)٠ وایضًاماالقسم الذی لایشترط هذا تعین النیة لمایصومه ......فهو اداء رمضان ......وحقیقة النیة قصده عازمًا بقلبه صوم غد ولایخلو مسلم عن هذا فی لیالی شهررمضان (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ،فصل فیمایشترط ثبت النیة ص:٣٥٢ طبع نورمحمد)۔

٣] (فیصح اداء صوم رمضان... والنفل سنة من اللیل الی الضحوة الکبری لاعندها تنویرالابصار،وفی الشامیة: (قوله الی الضحوة الکبری)المراد بهانصف النهارالشرعی والنهارالشرعی من استطارة الضوء فی افق المشرق الی غروب الشمس والغایة غیرداخلة فی المغیاکمااشارالیه المصنف بقوله لاعندها......وفی الجامع الصغیرقبل النصف النهاروهو الاصح لانه لابد من وجود النیة فی اکثرالنهارونصفه من وقت طلوع الفجرالی وقت الضحوة الکبری لا وقت الزوال فتشترط النیة قبلها لتحقق فی الاکثر اه (شامی ج:٢ص:٣٧٧،کتاب الصوم)

٤ ] (فیصح اداء صوم رمضان ......والنفل سنة من اللیل الی الضحوة الکبری لا عندها تنویر الابصار٠وفی الشامیة :قوله الی الضحوة الکبری المراد بهانصف النهارالشرعی والنهارالشرعی من استطارة الضوء فی افق المشرق الی غروب الشمس والغایة غیرداخلة فی المغیاکمااشارالیه المصنف بقوله لا عندها......وفی الجامع الصغیرقبل النصف النهاروهوالاصح لانه لابدمن وجود النیة فی اکثرالنهار....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

## د روژې نيولو او روژه ماتي دعاګانې

**سوال:** دنفلي روژې نيولو نيت او د روژه ماتي دعاګانې څه دي؟

**جواب:** دنفلي روژې له پاره د مطلق روژې نيت کول کافي دی، او هغه دا دی:[۱]

،،**وبصوم غد نويت.. ترجمه:** زه دسبانۍ روژې نيت کوم،،

او د روژه ماتي دعا داده: ،،**اللهم لک صمت وعلی رزقک افطرت**،،[۲]

**ترجمه:** اې الله! ما ستا له پاره روژه ونيوله او ستا په رزق باندې روژه ماتی کوم،،

او د رمضان د روژې نيت دې داسې وايي:

،،**وبصوم غد نويت من شهر رمضان**،،[۳]

**ترجمه:** زه د سبانۍ رمضان روژې نيت کوم،،

## د افطار دعا د کوم حديث نه ثابته ده؟

**سوال:** په جنګ اخبار (۱۵) مارچ (۱۹۹۱ء) کې ستاسو مضمون د رمضان المبارک دفضيلت او اهميت باندې ډير معلوماتي مضمون و، په دې کې يوه خبره معلومول غواړم د افطار په دعا کې تاسو دوه دعاګانې ليکلې وې:

(۱) لوږه ختمه شوه، کولمې لمدې شوې او اجر ان شاء الله ثابت شو. (۲) اې الله ما ستاد پاره روژه ونيوله او ستا په رزق مې افطار وکړ.

پوښتنه داده چې په دواړو دعاګانو کې کومه يوه د صحيح حديث نه ثابته ده؟ او بل دا چې

---

...بقيه د تير مخ]..ونصفه من وقت طلوع الفجرالى وقت الضحوة الكبرى لا وقت الزوال فتشترط النية قبلها لتحقق فى الاكثر اه (شامى ج:۲ ص:۳۷۷) ايضًا: اماالقسم الذى لايشترط فيه نيته فهو اداء رمضان ......واداء النفل ......فتصح النية ولو نهارًا الى ماقبل نصف النهارلان الشرط وجودالنية فى اكثرالنهار احتياطًا وبه توجدفى كله حكمًا لاكثروخص هذا بالصوم فخرج الحج والصلاة لانهما اركان......ونصف النهار من ابتداء طلوع الفجر الى قبيل وقت الضحوة الكبرى لاعندهالان النهار قديطلق على ماعند طلوع الشمس الى غروبهالغة وعندالزوال نصفه فيفوت شرط صحة النية بوجودهاقبيل الزوال (مراقى الفلاح مع حاشية الطحطاوية ص:۳۵۲،۳۵۳،طبع مير محمد)۔

۱ ] ويصح ايضًا...... النفل بمطلق النية من غيرتقييد......وبنية النفل ايضًا (مراقى الفلاح على هامش الطحطاوى،فصل فيمالايشترط تثبيت النية ص:۳۵۳طبع مير محمدكتب خانه)۔

۲ ] وعن معاذ بن زهرة قال:ان النبى صلى الله عليه وسلم كان اذا افطرقال: اللهم لک صمت وعلى رزقک افطرت رواه ابوداؤد مرسلاً (مشكوة ص:۱۷۵،كتاب الصوم ،وايضًافى الهندية ج:۱ص:۲۰۰كتاب الصوم ،الباب الثالث)

۳ ]هندية ج:۱ص:۲۰۰كتاب الصوم ،الباب الثالث فيمايكره للصائم ومالايكره)۔

نورې دعا ګانې مونږه همیشه آورو او وایو یې چې اې الله! ما ستا د پاره روژه ونیوله او په تا باندې مو ایمان راوړی دی او په تاباندې مو توکل کړی دی او ستا په رزق مو افطار وکړ، ستاسونه دا معلومول غواړم چې کومه دعا لوستل پکار دي چې هغه د صحیح حدیث نه ثابته وي؟

**جواب:** ما په خپل مضمون کې چې کومې دوه دعا ګانې نقل کړې دي، هغه خود مشکواة (ص: ۱۷۵) کې د ابوداؤد شریف په حوالې سره ذکر شوې دې، او کوم الفاظ چې تاسو آورئ او وایئ دا ماته په هیڅ حدیث کې نه دہ معلومه، اګر چې مضمون صحیح دی.[۱]

## د روژې نیت کوم وخت وشي؟

**سوال:** ماته د بې خوبې شکایت دی او بل دا چې زما په ذمه باندې قضاء روژې دي، که چیرې زه د پیشمنې په وخت پاڅم نو د بې خوبې د مرض په وجه د خوب په وخت کې نوره کمې کیدو ویره ده، په دې صورت حال کې داسې کولی شم چې د شپې ۱۱ بجو پورې نیت وکړم او کله چې سهار پاڅم نو زما به روژه وي؟

**جواب:** که چیرې ته د خوب نه مخکې نیت وکړئ چې زما روژه نیول دي نو نیت به صحیح شي.[۲]

## د شپې د روژې د نیت کولو نه څه مراد دي؟

**سوال:** ما په یو کتاب کې لوستلي و چې د قضاء او نفل روژو نیت د شپې نه کول پکار دي، که چیرې داسې یې ونه کړ؛ نو روژه به دوباره نیسي، د شپې د نیت کولو نه څه مراد دي؟ آیا د شپې د نیت کولو نه پس سهار د فجر د آذان نه مخکې پیشمنی نه شي کولی؟ او که هیڅ هم نه شي کولی؟

**جواب:** د شپې نه د نیت کولو نه مطلب دادی چې د صبح صادق نه مخکې د روژې نیت وکړي.[۳]

---

[۱] عن ابن عمررضی الله عنه قال:کان النبی صلی الله علیه وسلم اذا افطرقال:ذهب الظماء وابتلت العروق وثبت الاجر انشاء الله .رواه ابوداؤد .وعن معاذبن زهرة رضی الله عنه قال:ان النبی صلی الله علیه وسلم کان اذا افطرقال: اللهم لک صمت وعلی رزقک افطرت.رواه ابوداؤد مرسلاً .(مشکوة ص:۱۷۵،کتاب الصوم ،باب ،الفصل الثانی)

[۲] ولو نوی من اللیل ثم رجع عن نیته قبل طلوع الفجرصح رجوعه فی الصیامات کلهاکذا فی السراج الوهاج ولوقال نویت ان اصوم غدًا انشاء الله تعالی صحت نیته هو الصحیح کذا فی الظهیریة .ووقت النیة کل یوم بعدغروب الشمس ولا یجوز قبله کذا فی محیط السرخسی .(عالمگیری ج:۱ص:۱۹۵،کتاب الصوم)۔ فیصح کل من هذه الثلاثة (ای اداء رمضان والنفل والنذر)بنیة معینة من اللیل .(مراقی الفلاح ص:۳۵۲،کتاب الصوم ،فصل فیمالایشترط تثبیت النیة)

[۳] اماالقسم الذی لایشترط فیه تعیین النیة لمایصومه ولاتبییتها ای ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

## د نفلی روژې نیت

**سوال:** دنفلي روژې نیولواوماتولو نیت څه دی؟که دنفلوپه طورسره روژې منل شوې وي چې که زمافلانی کار وشو؛ نودومره روژې به نیسم، دروژې نیت او دروژه ماتي څه نیت دی؟

**جواب:** نیت دزړه ارادې ته وایي،نفلي روژه کې دمطلق روژې نیت کول هم صحیح دي اود نفلي نیت هم،یعنې په زړه کې دې اراده وکړي چې زه روژه نیسم،مګردنذردروژې له پاره د نذر نیت کول ضروري دي،یعنې په زړه کې دا اراده وکړئ چې زه دنذرروژه نیسم[۱].

غالباً ستاسو مراددنیت نه هغه دعاګانې دي چې دروژې نیولو په وخت کې اوروژه ماتي په وخت کې لوستل کیږي،ددې دعاګانو لوستل مستحب دي، ضروري نه دي،روژه ددې نه پرته هم صحیح ده.البته ددې دعاګانوپه ژبه سره ویل مستحب دي.[۲]

## د پیشمني کولو نه پرته د روژې نیت کول صحیح دي

**سوال:** زه دامعلومول غواړم چې د روژې له پاره پیشمنی کول ضروري دی اوکه نه؟ زه ډیره پریشانه یم، څوک څه وایي اوڅوک څه؟ ددې له وجې تاسو زموږ اصلاح وکړئ!

**جواب:** دروژې له پاره پیشمنی کول دبرکت نه ډک دی، چې دې سره دټولې ورځې له پاره طاقت ملاویږي[۳]، مګردا دروژې له پاره دصحیح کیدوشرط نه دی، که دپیشمني کولو موقعه پیدا نه شي اوپرته د پیشمني کولونه یې روژه ونیوله؛ نوهم روژه صحیح ده.[۴]

## د قضا روژې نیت

**سوال:** په رمضان کې چې کله روژه نیسو؛ نودروژې نیت به وایو او روژه به نیسو؛ نوستاسونه

---

...بقیه د تیر مخ]..النیة فیه فهو اداء رمضان ......فیصح بنیة معینة مبینة من اللیل وهو افضل (مراقی الفلاح ص:٣٥٢،کتاب الصوم ،فصل فیما لایشترط تثبیت النیة)

١ ] واما القسم الثانی وهومایشترط له تعیین النیة وتبییتهایتادی به ویسقط عن المکلف ......والنذر المطلق عن تقیده بزمان......لانها لیس لها وقت معین فلم تتادی الا بنیة مخصوصة مبینة. (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ص:٣٥٤،کتاب الصوم طبع میرمحمدکتبخانه)۔

٢ ] فیصح اداء صوم رمضان والنذر المعین والنفل بنیة من اللیل ...... وبمطلق النیة ای نیة الصوم ...... وبنیة نفل درمختار —وفی الشامیة :النیة شرط فی الصوم وهی ان یعلم بقلبه انه یصوم ......الخ (شامی ج:٢ص:٣٧٧)۔

٣ ]عن انس بن مالک رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :تسحروا فان فی السحوربرکة (سنن ابن ماجة باب ماجاء فی السحورص:١٢١طبع نورمحمد)۔

٤ ] ولوقال نویت ان اصوم غدا ان شاء الله تعالی صحت نیته هوالصحیح ......جازصوم رمضان والنذرالمعین والنفل بنیة ذلک الیوم اوبنیة مطلق الصوم اوبنیة النفل من اللیل الی ماقبل نصف النهار (فتاوی هندیة ،کتاب الصوم الباب الاول ج:١ص:١٩٥،طبع رشیدیه)۔

مې پوښتنه داده چې که زموږ د رمضان روژې پاتې شي او بیا وروسته موږ قضا روژې نیسو، همدغه نیت به کوو؟

**جواب:** نیت دزړه ارادې ته وايي، هرکله چې تاسو دصبح صادق نه مخکې دقضاروژې نیت وکړ او روژه مو ونیوله؛ نوروژه صحیح ده که په ژبه موهم ,,وبصوم غدلویت من قضاء رمضان، (سهار درمضان دقضاروژې نیولونیت کوم) وویل؛ نوهم ښه ده، مګردروژې نیت دهغه الفاظ په ژبه سره ویلونه پرته هم کیږي.[1]

## درمضان روژه نیولونه وروسته مو ماته کړه؛ نوقضا اوکفاره به لازم وي

**سوال:** ایا قضا روژې دپیشمني نه پرته داسې نیول کیدای شي چې دشپې دویده کیدونه مخکې نیت وشي چې سبا به زماروژه وي، ځکه چې ما اوریدلي دي چې نفلي اوقضاروژې پرته د پیشمني نه هم نیول کیږي، که سهاردپورته کیدو فورا دسهارپه وخت کې نیت وشي؛ نو ایاروژه به اداشي؟ ځکه چې د روژې نیت د زوال نه مخکې کیږي اوکه سهار دپورته کېدو وروسته اراده بدله شي یادڅه مجبوري له وجې دروژې نیولوهمت ونکړای شي؛ نودداسې روژې له پاره به قضا لازمه وي یاکفاره؟ مهرباني وکړئ اوددې مسئلې په تفصیل سره وضاحت وکړئ ځکه چې زه به نفلي اوقضاداوړه روژې نیسم اوزه دصبح صادق نه مخکې پورته نه شم ددې له وجې نه تراوسه پورې مې خپل دافرض ادا نه کړای شو.

**جواب:** دلته څومسائلې دي:

۱:.......درمضان دقضايي روژې نیت پرته دپیشمني کولوهم کولی شئ، مګرشرط دادی چې دقضا روژې نیت دصبح صادق نه مخکې وشي.[2]

۲:.....که سهارشو؛ نودنفلي روژې نیت (اوهمدغه شان درمضان المبارک د ادا روژو نیت) دنصف النهارشرعي نه مخکې کول صحیح دي،[3] مګردقضاروژې نیت صحیح نه دی، همدغه شان دنذردروژې نیت هم دصبح صادق نه وروسته صحیح نه دی، ځکه چې دقضااودنذردروژونیت دصبح صادق نه مخکې کول شرط دي.[4]

---

۱ ] والنية معرفته بقلبه ان يصوم كذا فى الخلاصة ومحيط السرخسى والسنة ان يتلفظ بها كذا فى النهرالفائق (هندية ج:١ص:١٩٥،وايضًا فى الدرمع الشامى ج:٢ص:٣٨٠)_

٢ ] وشرط القضاء والكفارات ان يبيت ويعين كذافى النقاية (عالمگيرى ج:١ص:١٩٦،كتاب الصوم ،الباب الاؤل فى تعريفه وتقسيمه وسببه ووقته وشرطه ،طبع رشيديه ،وايضًاف الشامية ج:٢ص٣٨٥،كتاب الصوم)_

٣ ]فيصح اداء صوم رمضان والنذرالمعين والنفل بنية من الليل الى الضحوة الكبرى (درمختار)وفى الشامية :قوله الى الضحوة الكبرىٰ المراد بها نصف النهارالشرعى ......الخ (شامى ج:٢ص:٣٧٧،كتاب الصوم)_

٤ ] والشرط للباقى من الصيام قرآن النية للفجر ولوحكمًا وهوتبيت النية للضرورة وتعيينها (درمختار)وفى الشامية : (قوله :والشرط للباقى من الصيام) اى من انواعه اى الباقى....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

۳...... که دشپې نه مو د روژې نیت وکړ اوویده شوئ، که دصبح صادق نه مخکې سترګې وغړېدې؛ نودنیت بدلولو اختیار شته[1]، که روژه نیسې اوکه یې نه نیسې، خوکه دشپې نیت کولونه وروسته هغه وخت موسترګې وغړېدې چې صبح صادق شوی و؛ نواوس دنیت بدلولو اختیار نه شته، ځکه چې دشپې دنیت له وجې روژه شروع شوې ده اواوس دنیت بدلولومعنا به دروژې ماتول وي، په دې صورت کې که مودصبح صادق نه وروسته څه وخوړل؛ نوروژه به موماته شي.

اوکه بیادا د رمضان روژه وه؛ نوقضا او کفاره به دواړه لازم وي[2] اوکه دنفلورژوه وه؛ نودهغې قضابه لازمیږي.[3]

# ❖ پیشمنی او روژه ماتی ❖

## پیشمني کې خوراک کول مستحب دي

## اوکه یې ونه خواره؛ نوبیا هم روژه کیږي

**سوال:** سوال دادی چې ایا دروژې نیولوله پاره پیشمنی ضروري دی؟ اوکه څوک بشمني کې خوراک ونه خوري؛ نو ایا دهغه روژه نه کیږي؟ دروژې نیت هم وښیئ دکوم ویلوسره چې روژه نیول کیږي؟

**جواب:** دروژې له پاره پیشمنی کول مستحب اودبرکت باعث دی، دې سره په روژه کې طاقت پیداکیږي[4] اوپیشمني کولونه وروسته دادعا کول پکاردي: ,,**وبصوم غدلویت من شهر رمضان**[5]

---

...بقیه د تیر مخ].. منها بعد الثلاثة المتقدمة فی المتن وهو قضاء رمضان والنذر المطلق ......الخ (شامی ج:۲ص:۳۸۰ کتاب الصوم)۔

۱ ]ولو نوی من اللیل ثم رجع عن نیته قبل طلوع الفجرصح رجوعه فی الصیامات کلها......الخ (هندیة ج:۱ ص:۱۹۵،کتاب الصوم ،الباب الاول فی تعریفه وتقسیمه)۔

۲ ]وفی التنویر :وان جامع فی رمضان اداء ......عمدًا فظن فطره به فاکل عمدًا قضی وکفر (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۴۱۱،۴۰۹ ،باب مایفسدالصوم ومالایفسده ،وایضًا فی العالمگیریة ج:۱ص:۱۹۵)۔

۳ ] قوله لمامرای من ان الکفارة انماوجبت لهتک حرمة شهر رمضان فلاتجب بافساد قضائه ولا بافساد صوم غیره (شامی ج:۲ص:۴۰۹ ،باب مایفسدالصوم ومالا یفسده ،مطلب فی جواز الافطاربالتحری)۔

٤ ]التسحرمستحب ......الخ (عالمگیری ج:۱ص:۲۰۰) وعن انس رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :تسحروافان فی السحوربرکة (ابن ماجة ص:۱۲۱،باب ماجاء فی السحور،طبع نورمحمد)۔

٥ ] قوله ان یتلفظ بها فیقول نویت اصوم غدًا ......من فرض رمضان ......الخ ( شامی ج:۲ ص:۳۸۰،کتاب الصوم ،والهندیة ،کتاب الصوم ج:۱ص:۲۰۰، الباب الثالث فیمایکره للصائم وما لایکره،طبع رشیدیه)۔

څو که چاته دا دعا یاده نه وي؛ نو بیا هم دروژې په زړه کې نیت کول کافي دي.[۱]
که تاسو د صبح صادق نه واخله تر لمرپریوتو پورې څه ونه خوړل او یو لس بجې (یعني شرعي نصف النهار) نه مخکې مود روژې نیت وکړ نو ستاسو روژه صحیح ده، د قضا ضرورت نه شته.[۲]

## پیشمنی ناوخته او روژه ماتي کې بیړه کول پکار دي

**سوال:** زمونږ ځای کې ځینې خلک پیشمنی ډیر وخته کوي او د روژه ماتي په وخت روژه ماتی ناوخته کوي، ایا ددوی دا عمل صحیح دی؟

**جواب:** د لمرپریوتلو وروسته په روژه ماتولو کې تاخیر کول پکار نه دی، د حضور ﷺ ارشاد مبارک دی چې: زما امت به په خیرباندې وي ترڅو پورې چې د پیشمني په خوراک کې تاخیر او (لمر پریوتو نه وروسته) په روژه ماتي کې بیړه کوي.،(مسنداحمد ج:۵ ص:۱۷۲)[۳]

په یوبل حدیث کې دي چې: خلک به همیشه په خیرباندې وي ترڅوپورې چې په روژه ماتي کې بیړه کوي.،(صحیح بخاری،مسلم ومشکوۃ ص:۱۷۵)[۴]

په یوبل حدیث کې دي چې: الله تعالی فرمايي چې: ماته په خپلو بندګانو کې محبوب هغه خلک دي چې په روژه ماتي کې بیړه (تندي) کوي.(ترمذی،مشکوۃ،ص:۱۷۵)[۵]

په یوبل حدیث کې دي چې: دین به همیشه غالب وي ترڅو پورې چې خلک په روژه ماتي کې جلدي (بیړه) کوي ځکه چې یهود او نصارا تاخیر کوي،،(ابوداود،ابن ماجه،مشکوۃ ص:۱۷۵)[۶]

مګر دا ضروري ده چې د لمر د پریوتو یقین وشي؛ نو هله روژه ماتول پکار دي.[۷]

---

۱ ] قوله والشرط فيها......يكفيه ان يعلم بقلبه ان يصوم ......الخ (شامي ج:۲ص:۳۷۰ ،كتاب الصوم ،والهندية ج:۱ص:۱۹۵،كتاب الصوم ،الباب الاول فى تعريفه وتقسيمه وسببه و وقته وشرطه)۔

۲ ] فيصح اداء صوم رمضان والنفل بنية من الليل الى الضحوة الكبرى (درمختار)وفى الشامية قوله الى الضحوة الكبرى المرادبها نصف النهارالشرعى......الخ (شامي ج:۲ص:۳۷۷،كتاب الصوم ،والهندية ج:۱ص:۱۹۶)

۳ ] عن ابى ذر رضى الله عنه ان النبى صلى الله عليه وسلم قال...... لاتزال امتى بخير ماأخروا السحور وعجلوا الفطر (مسنداحمد بن حنبل ج:۵ص:۱۷۲طبع بيروت)۔

٤ ] وعن سهل رضى الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :لايزال الناس بخير ماعجلوا الفطر۰متفق عليه (مشكوة ،كتاب الصوم ج:۱ص:۱۷۵،باب الفصل الثانى ،طبع قديمى)۔

٥ ] وعنه (اى ابوهريرة)قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم، قال الله تعالى: احب عبادى الى اعجلهم فطراً، متفق عليه، (مشكوة، كتاب الصوم ج۱، ص۱۷۵، طبع قديمى)۔

٦ ] عن ابى هريرة رضى الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم:لايزال الدين ظاهرًا ماعجل الناس الفطرلان اليهودوالنصارى يوخرون رواه ابوداؤد وابن ماجة (مشكوة ،كتاب الصوم ج:۱ص:۱۷۵ طبع قديمى)

۷ ] ولايفطر مالم يغلب على ظنه غروب الشمس وان اذن الموذن بحرعن البزازية (ردالمحتار،كتاب الصوم ج:۲ص:٤۲۰)۔

## که چا دصبح صادق نه وروسته خوراک څښاک وکړ؛ نو روژه و نه شوه

**سوال:** روژه څومره وخت پورې وي؟ ایا دصبح صادق نه وروسته خوراک څښاک کولی شو؟

**جواب:** روژه دصبح صادق نه واخله ترلمرپریوتلوپورې وي، دصبح صادق نه مخکې دخوراک څښاک اجازه شته اوکه دصبح صادق نه وروسته یې څه خوراک څښاک وکړ نوروژه ونه شوه.[1]

## که پیشمنې ته راپورته نه شي؛ نو څه وکړي؟

**سوال:** که څوک پیشمنې ته راپورته نه شي؛ نوهغه ته څه کول پکار دي؟

**جواب:** پرته دڅه خوړلو،څښلو دې دروژې نیت وکړي.[2]

## د اوده کیدو نه مخکې یې د روژې نیت وکړ او د صبح صادق نه وروسته راپورته شو؛ نو روژه شروع شوه، اوس ددې د ماتولو اختیار نه شته

**سوال:** یوکس دروژې نیت وکړ او ویده شو، مګر پیشمنې کې راپورته نه شو؛ نوسهارایا په خپلې خوښې سره فیصله کولی شي، چې روژه ونیسي اوکه نه ؟

**جواب:** کله چې هغه دویده کیدونه مخکې دروژې نیت کړی و؛ نودصبح صادق نه وروسته دهغه روژه (دویده پاتې کیدو په حالت) شروع شوه اودروژې شروع کیدونه وروسته هغه ته ددې فیصلې کولو اختیار نه شته چې هغه روژه ونیسي اوکه نه؟ ځکه چې د روژې نیولو فیصله، خوهغه کړې ده او اوس دهغه په دې فیصله باندې روژه شروع شوې ده اواوس دروژې شروع کیدونه وروسته دماتولو اختیارنه شته[3]،که درمضان روژه ماته کړي؛ نوپه هغه به قضا او کفاره دواړه لازم وي.[4]

---

۱ ] فهوعبارة عن ترک الاکل والشرب والجماع من الصبح الى غروب الشمس......الخ (هندية ج:۱ ص:۱۹٤، کتاب الصوم ،الباب الاول فى تعريفه ......الخ (والشامى ج:۲ص:۳۷۱،کتاب الصوم)۔

۲ ] ولونوى قبل ان تغيب الشمس ان يکون صائمًا غدًا ثم نام .......لم يجزوان نوى بعد غروب الشمس جازکذا فى الخلاصة (هندية ج:۱ص:۱۹۵،کتاب الصوم ،الباب الاول ،وايضافى الشامى ج:۲ص:۳۷۷، کتاب الصوم)۔

۳ ]وقت النية فالافضل فى الصيامات کلها ان ينوى وقت طلوع الفجر ان ا مکنه ذالک او من الليل لان النية عندطلوع الفجر تقارن اول جزء من العبادة حقيقة ومن الليل تقارنه تقديرًا وان نوى بعدطلوع الفجر فان کان الصوم دينا لايجوز بالاجماع وان کان عينا وهو صوم رمضان وصوم التطوع خارج رمضان والنذر المعين يجوز (بدائع الصنائع ج:۲ص:۸۵ ،کتاب الصوم ،فصل واماشرائطها فنوعان ،طبع ايچ ايم سعيد)۔

٤ ] اذاکل متعمدًا مايتغذى به اويتداوى به يلزمه الکفارة وهذا اذاکان ممايوکل للغذاء او للدواء فاما اذالم يقصدلهما فلاکفارة وعليه القضاء کذافى خزانة المفتين فالصائم اذا أکل الخبزاو الاطعمة او الاشربة ......عليه القضاء والکفارة عندناهکذا فى فتاوى قاضيخان عالمگيرى ج:۱ص:۲۰۵،الباب الرابع فيمايفسدومالايفسد)

## د شپې د روژې نیت کولو والا پیمشنی وکړي؛ نو هم به د هغه روژه وشي

**سوال:** که یوکس له شپې د روژې نیت وکړي او ویده شي، څکه چې هغه سره ویره ده چې د پیشمني په وخت کې به د هغه سترګې ونه غړیږي؛ نو ایا د هغه روژه به وشي؟

**جواب:** وبه شي.[1]

**سوال:** اوکه سترګې یې وغړیدې؛ نو ایا له سرنه پیشمنی کولی شي؟

**جواب:** کولی یې شي.[2]

## ایا نفلي روژې نیولو له پاره د اذان پورې خوراک کولی شو؟

**سوال:** چې کله نفلي روژه نیسو؛ نو د سهار د اذان په وخت کې (یعنې کله چې د سهار لمونځ کیږي) روژه بنده کړل شي ، که روژه د اذان نه لس دولس منټه مخکې بندول پکاردي، کوم مسلمانان وروڼه چې د اذان په وخت کې روژه بندوي؛ نو ایا د هغوی روژه کیږي اوکه نه؟

**جواب:** که د صبح صادق نه وروسته یې څه وخوړل یا وڅښل؛ نو روژه ونه شوه، که اذان شوی وي اوکه نه او اذانونه عموما د صبح صادق نه وروسته وي، د دې له وجې د اذان په وخت کې خوراک، څښاک والاوو روژه نه کیږي، په جوماتونوکې عموما نقشې لګیدلې وي د ابتدائي فجر وخت وګورئ او له هغه نه څلورینځه منټه مخکې د پیشمني خوراک دې بند شي.[3]

## د اذان په وخت کې پیشمنی کول

**سوال:** که یوکس سهار د اذان په وخت کې بیدار شي؛ نو هغه روژه څنګه ونیسي؟

**جواب:** که اذان د صبح صادق نه وروسته شوی وي (څنګه چې عموما د صبح صادق نه وروسته کیږي) ؛ نو دې کس ته خوراک، څښاک کول پکارنه دي، ګني د هغه روژه به ونه شي، پرته له څه خوراک، څښاک نه دې د روژې نیت وکړي[4]، خوکه اذان مخکې شوی وي: نو بیابیله خبره ده.

## د پیشمني وخت په سائرن (ټالی) با ندې ختمیږي یا په اذان؟

**سوال:** په رمضان المبارک کې د پیشمني اخري وخت ترکله وي؟ یعنې سائرن پورې وي یا اذان پورې؟ دلته زمونږ په ځای کې ځینې خلک ناوخته راپورته کېدو له وجې اویا په بله څه وجه

---

۱] فیصح صوم رمضان.....بینة من اللیل الی الضحوة الکبری .....الخ (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۳۷۷)

۲ ] ایضا)_

۳] ولوتسحرعلی ظن ان الفجرلم یطلع فاذا هوطالع....فعلیه القضاء ولاکفارة علیه .....الخ (البدائع الصنائع ،کتاب الصوم ج:۲ص:۱۰۰،طبع ایچ ایم سعید،وایضافی الهندیة وکتاب الصوم ج:۱ص:۱۹٤طبع رشیدیه)

٤ ]ایضا)_

داذان پورې پیشمنی کوي، دهغوی دا طرزعمل څنګه دی؟

**جواب:** دپیشمني وخت ختمیدل متعین دي، سائرن اواذان دهغه له پاره یوعلامه ده، تاسوساعت ته وګورئ که سائرن په وخت باندې غږیدلی وي؛ نووخت ختم شوی دی، اوس خوراک، څښاک نه شئ کولی.[1]

## د سائرن غږیدو په وخت اوبه څښل

**سوال:** زموږ په ځای کې عموماخلک له سائرن څه وخت مخکې دپیشمني نه فارغ شي اود سائرن دغږیدو انتظار کوي، کله چې سائرن شروع شي؛ نویو یوګلاس اوبه وڅښي اوروژه بنده کړي، ایا داسې کول صحیح دي، زمامطلب دادی چې چیرته دسائرن دغږیدومطلب خودانه وي چې دپیشمني وخت ختم شوی دی.

**جواب:** سائرن یومنټ مخکې شروع کیږي، ددې له وجې ددې په دوران کې اوبه څښلې شئ، په هرحال داحتیاط غوښتنه داده چې د سائرن غږیدونه مخکې دې اوبه وڅښل شي.[2]

## د پیشمني وخت ختمیدو نه لس منټه وروسته خوراک څښاک کولو سره روژه نه کیږي

**سوال:** په کراچۍ کې دپیشمني اخري وخت تقریبا پاو باندې څلور بجې دی، که موږ څه وخت لس منټه وروسته پنځه ویشت منټه له پاسه څلور بجې) پیشمنی وکړو؛ نو ایاله دې سره روژه مکروه کیږي اوکه نه؟

**جواب:** په نقشوکې چې دصبح صادق کوم وخت لیکل شوی وي له هغه نه دوه څلورمنټه مخکې روژه بندول پکاردي، که یومنټ دوه مخکې وروسته شي؛ نوروژه به وشي، خولس منټه وروسته خوراک کولوپه صورت کې روژه نه کیږي.[3]

## د روژه ماتي له پاره نیت شرط نه دی

**سوال:** ماپه اول رمضان لوموړۍ روژه نیولې وه اوپه پیشمني کې مې یوازې دوه ګلاسه اوبه

---

[1] وان اراد ان يتسحر بصوت الطبل السحرى فان كثرذلک الصوت من كل جانب وفى جميع اطراف البلدة فلاباس به وان كان يسمع صوتًاواحدًا فان علم عدالته يعتمد عليه وان لم يعرف حاله يحتاط ولاياكل......الخ (هندية ،كتاب الصوم الباب الاول ج:١ص:١٩٥،طبع رشيديه)۔

[2] اذا شک فى الفجر فالافضل ان يدع الاكل ولواكل فصومه تام مالم يتيقن انه أكل بعد الفجرفيقضى حينئذ كذا فى فتح القدير (هندية ،كتاب الصوم ،الباب الاول ج:١ص:١٩٤،طبع رشيديه كوئته)۔

[3] تسحرعلى ظن ان الفجرلم يطلع وهوطالع ......قضاه ولا كفارة عليه ......الخ (هندية ،كتاب الصوم ،الباب الاول ج:١ص:١٩٤،طبع رشيديه)۔

ځنبلې وې، چې دهغه له وجې روژه په ماسخته شوې وه، دروژه ماتي په وخت کې مازر يوه کجوره په خوله کې کېښوده، خوهغه مې په غابښونوماته کړې نه وه، چې ناڅاپه ماته رایاد شو چې مانيت نه دی کړی، ددې له وجې کجوره مې په خولې کې وه اومانيت وکړ اوروژه مې ماته کړه، ايا زما روژه په دې صورت کې وشوه، يامکروه شوه.

**جواب:** د روژه ماتي له پاره نيت کول شرط نه دي، غالبا، دروژه ماتي نيت، ، نه ستاسو مراد هغه دعاده کومه چې دروژه ماتي په وخت لوستل کيږي، دروژه ماتي په وخت کې دعاکول مستحب دي مګر شرط نه دي،که دعادې ونکړه؛ او روژه دې ماته کړه؛ نوروژه پرته د کراهت نه صحيح ده، خودورژه ماتي په وخت دعاقبليږي ددې له وجې نه ددعااهتمام کول پکار دي، بلکې دروژه ماتي نه مخکې ښه په توجه سره دعاګانې کول پکاردي.[۱]

## پيشمني او روژه ماتي کې د کوم ځای دوخت اعتبار دی

**سوال:** زماورور په عربي اماراتوکې روژه نيولې وه اوراغی،دلته دکراچۍ دوخت مطابق يې روژه ماته کړه، حالانکې هغه علاقه دکراچۍ نه يوه ګنټه وروسته ده، ايا په داسې صورت کې هغه يوه ګنټه مخکې روژه ماته کړه؟روژه ماتی صحيح شواوکه غلط؟که غلط شو؛ نو ايا د روژې قضابه وي؟

**جواب:** اصول دادي چې په روژې نيولواوماتولوکې دهغه ځای دوخت اعتباردی چيرته چې بنده روژې نيولواوماتولوپه وخت کې موجود وي، کوم کس چې په عرب اماراتوکې روژه ونيسي اوکراچۍ ته راشي؛ نوهغه به دکراچۍ دوخت مطابق روژه ماتی کوي اوکوم کس چې د پاکستان دوخت مطابق روژه نيولې وي اومثلا:سعودي عرب ته تللی وي؛ نوهم هلته دلمر پريوتلونه وروسته به روژه ماتی کوي، ځکه چې دکراچۍ دغروب اعتبارنه شته.[۲]

## د ريډيو په اذان روژه ماتی صحيح دی

**سوال:** زمونږ کورسره نژدې جومات نه شته چې دهغه له وجې مونږ په اسانې سره اذان اوريدای نه شو؛ نوايا په رمضان شريف کې مونږ روژه ماتی ريډيو باندې داذان اوريدوسره کولی شو؟ ځنګه چې تاسوته معلومه ده چې ريډيو والا اعلان کوي چې: دکراچۍ او خواوشا علاقوکې دروژه ماتي وخت هم ښيي او له دې نه فورا وروسته اذان شروع کوي، په تيررمضان کې چې

---

۱ ] ومن السنة ان يقول عندالافطار:اللهم لک صمت وبک آمنت وعليک توکلت وعلى رزقک افطرت ......الخ (هندية ج:۱ص:۲۰۰کتاب الصوم ،الباب الثالث فيمايکره للصائم ومالايکره،طبع رشيديه)۔

۲ ] قال ا لشامي قبيل فصل فى العوارض (تنبيه)قال فى الفيض :ومن کان على مکان مرتفع کمنارة اسکندرية لايفطر مالم تغرب الشمس عنده ولا هل البلدة الفطر ان غربت عندهم قبله ......الخ (شامي ج:۲ص:۴۲۰)۔

موږ به څنګه په ريډيوباندې الله اکبر واوريده؛نوروژه ماتی به مو وکړ، مهرباني وکړئ اود کتاب اوسنت په رڼاکې موږ ته ووايئ چې زموږ روژه ماتی به صحيح وي اوکه نه؟

**جواب:** په ريډيوباندې په صحيح وخت باندې اطلاع اواذان ورکول کيږي ددې له وجې پرې روژه ماتی کول صحيح دي.[۱]

## په مسجد کې سائرن(ټالی) غږول اوپه دې سره د روژه ماتی کول

**سوال:** درمضان په مياشت کې روزانه د افطار سره داذان نه مخکې سائرن(ټالی)وهل کيږي، ايا سائرن وهل په مسجد کې صحيح دي؟ روزانه دټالی سره روژه ماتول پکار دي که له اذان سره؟

**جواب:** بهتره خو دا ده چې اذان وشي او که ټالی وهل کيږي؛ نو د مسجد نه دې بهر ووهي.

## ايا لمانځه کولو نه وروسته روژه ماتول پکاردي؟

**سوال:** زما مسئله داده چې زما والد دانډيا هتهيار شريف نه مريد دی او ټول وخت صحيح تيريږي خود رمضان په مياشت کې ډير مشکلات وي، هغه داسې چې والد صاحب وايي په رمضان کې چې لمونځ وکړئ؛ نو بيا به افطار کوئ هغه قرآن هم خلاص کړي او وايي يې، ماته په دې خبرو باندې يقين نه راځي، اخر په دنيا کې دومره لوی لوی عالمان تيرشوي دي، په خانه کعبه کې هم خلک د اذان نه فورا وروسته افطار کوي، مولانا صاحب! ايا زما د والد صاحب دا طريقه صحيح ده؟ که چيرې صحيح وي؛ نو د ټولې دنيا خلک ولې داسې نه کوي؟

**جواب:** ستاسو والد صاحب ته غلطه مسئله بيان شوې ده، د شريعت حکم دادی چې د غروب نه فورا وروسته دې روژه ماته شي.[۲]

## هوايي جازکې روژه ماتی دکوم وخت په لحاظ سره کول پکاردي؟

**سوال:** په جازکې دروژه ماتي څه حکم دی؟ هرکله چې جاز (۳۵۰۰۰)پنځه ديرش زره فټه لوړ والي باندې پروازکوي اود ځمکې په اعتبارسره دغروب افتاب وخت شوی وي مګر د بلندي له وجې لمرمخامخ په نظرراځي؛نوپه داسې حالت کې به دځمکې غروب معتبروي يادجاز؟

---

[۱] وان اراد ان يتسحر بصوت الطبل السحرى فان كثر ذلک الصوت من كل جانب وفى جميع اطراف البلدة فلابآس به وان كان يسمع صوتاً واحدًا فان علم عدالته يعتمدعليه وان لم يعرف حاله احتاط ولاياكل (هندية ج:۱ص:۱۹۵،كتاب الصوم ،الباب الاول)٠ولايفطر مالم يغلب على ظنه غروب الشمس وان اذن الموذن ،بحرعن البزازية (ردالمحتار كتاب الصوم ج:۲ص:۴۲۰، طبع سعيد)_

[۲] وتعجيل الافطار افضل فيستحب ان يفطرقبل الصلاة (عالمگيرى ج:۱ص:۲۰۰)٠عن ابى هريرة رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :قال الله تعالى :احب عبادى الى اعجلهم فطرًا (مشكوة ج:۱ص:۱۷۵، كتاب الصوم ،باب الفصل الثانى قديمى كتب خانه كراچى)

**جواب:** روژه دارته چې کله لمر په نظر راځي؛ نو د روژه ماتي اجازه نه شته د جاز اعلان هم مهمل او غلط دی او روژه دار چې چېرته موجودوي هم د هغه ځای غروب معتبر دی، که هغه په لس زره فټه لوړوالي باندې وي؛ نو ددې لوړوالي نه لمر په نظر راځي؛ نو روژه ماتی کول پکار دی، د کوم ځای په لوړوالي باندې چې جاز پروازکوي د هغه ځای په ځمکه باندې لمر پرېوځي؛ نو د جاز مسافر به روژه ماتی نه کوي.

## د هوايي جاز د عملې د پېښمني او روژه ماتي احکام

**سوال:** د هوايي جاز د عملې له پاره د رمضان د میاشت د روژو په باره کې څه سوالونه دي، د کومو وضاحت چې پکار دی، څنګه چې د یو مضبوط عمارت له پاره مضبوط بنیاد ضروري دی همدغه شان د ایمان له پاره صحیح عقیده او په هغه باندې عمل ضروري دی، په دې باره کې علماء راسخ صحیح نمائندګي کولی شي، تاسو ته ګزارش دی چې ددې سوالونو تفصیلي جوابونه په شریعت کې د فقه حنفي د علم په رڼاکې راکړئ ډېره مهرباني به مووي.
د هوايي جاز د عملې مختلف قسمه ډيوټي وي، د یو قسم ډیوټي نوعیت داسې دی چې هغه هم په کورباندې، ،stand by Duty،، ،اوسېږي او په دې صورت باندې ډیوټي ته ځي هرکله چې دویمه عمله کومه چې ډیوټي ته روانه وه د، ،Operating Gew، ،په عین وخت باندې ناروغ شي، یا دبل څه له وجې ډیوټي ته حاضریدای نه شي، خوداسې کله کله کیږي او زیاتر داسې قسم ډیوټي والا Stand by Duty،، په کورباندې وي، په دې شکل کې که عمله روژه نیول وغواړي؛ نو ترڅو مره حده ناوخته د روژې نیت کولی شي؟

**جواب:** د رمضان د روژې نیت چې د نصف النهار شرعي نه مخکې وشي؛ نو صحیح دی، ګني صحیح نه دی، د ابتدائي صبح صادق نه د غروب افتاب پورې که وخت په دوو برابر برخو کې تقسیم شي؛ نو دهغه ، ،عین وسط، ،یعنې درمیاني برخې ته ، ،نصف النهار، ،شرعي وایي او دا د زوال نه تقریبا درې پاوه مخکې شروع کیږي او که روژه نیول وي؛ نو د روژې نیت ددې نه مخکې کول ضروري دي، که عین د نصف النهار په وخت کې یا د نصف النهار نه وروسته د روژې نیت وشي؛ نو روژه به ونه شي.[1]

**سوال:** که د نیت کولو نه وروسته په فلائیټ باندې تلل وي او عملې روژه ماته کړه؛ نو ددې به څه کفاره اداکول وي؟

---

۱ ] فیصح اداء صوم رمضان والنذر المعین والنفل بنیة من اللیل ،فلاتصح قبل الغروب ولا عنده الی الضحوة الکبری لا بعدها ولاعندهااعتبارًا لاکثرالیوم (قوله الی الضحوة الکبری)المراد بها نصف النهارالشرعی ،والنهارالشرعی من استطارة الضوء فی افق المشرق الی غروب الشمس والغایة غیرداخلة فی المغیاکمااشارالیه المصنف بقوله لاعندها......الخ (ردالمحتارمع الدرالمختار:ج:۲ص:۳۷۷کتاب الصوم ،طبع ایچ ایم سعیدکراچی)۔

**جواب:** کفاره یوازې په دې صورت کې لازمیږي، کله چې د روژې نیت د شپې نه یعنې صبح صادق نه مخکې کړی وي او که د صبح صادق نه وروسته او نصف النهار نه مخکې یې د روژې نیت کړی و او بیا یې روژه ماته کړه؛ نو کفاره به پرې لازمه نه وي (درمختار،شامی)[۱]

**سوال:** دوه قسمه فلائټس وي، یو وړوکی فلائټ وي مثلاً د کراچۍ نه لاهور، یا اسلام اباد وغیره او واپس کراچۍ، سهار چې لاړشي غرمه واپسي وي یا غرمه چې لاړشي؛ نو د شپې واپس شي او دویم فلائټ داوږده وخت وي، کوم چې د ملک نه بهرته ځي، په دې صورت کې د عملې روژه نیول مستحب دي یا نه نیول؟ زیاتر عمله په وړوکي فلائټ کې روژې نیول غواړي.

**جواب:** که د سفر په دوران کې په روژې نیولو کې څه مشقت نه وي؛ نو د مسافر له پاره روژه نیول افضل دي، خو که د خپل ځان یا د ملګري په مشقت کې د اچولې کیدو ویره ورسره وي؛ نو نه نیول یې افضل دي.[۲]

**سوال:** د هوایي جاز عمله په دوه قسمه مسافروکې راځي، د دواړو قسمه عمله په ډیوټي کې شماریږي دیو قسم عمله هغه ده په چاباندې چې د جاز یا د مسافروڅه ذمه واري نه وي، هغه د دې له وجې سفرکوي چې هغه ته په نیمه لاره کې، یا درې برخې لاره وهلو نه وروسته کوزیدل دي او ورځ دوه ارام کولو نه وروسته جاز مخکې منزل طرف ته بوتلل دي، د دویم قسم عمله هغه وي په چاباندې چې د جاز او د مسافرو دواړو ذمه واري وي، په دې دواړه قسمه عمله باندې د روژې احکام څه دي؟

**جواب:** په کومه عمله چې د جاز او د مسافرو ذمه واري ده که هغه سره ویره وي چې د روژې نیولو په صورت کې دوی ته په ذمه واري پوره کې خلل به راشي؛ نو هغه ته روژه نیول پکار نه

---

۱ ] اولم ينو فى رمضان كله صومًا ولافطرًا مع الامساك لشبهة خلاف زفر او اصبح غيرناو للصوم فاكل عمدًا، ولو بعد النية قبل الزوال لشبهة خلاف الشافعي ،وفى الشامية : (قوله لشبهة قول زفر)...... واما عندنا فلابد من النية لان الواجب الامساك بجهة العبادة ،ولاعبادة بدون النية ......ويلزمه القضاء دون الكفارة ......(قوله قبل الزوال) هذا عند ابى حنيفة ......ثم المراد بالزوال نصف النهار الشرعي وهو الضحوة الكبرى (قوله لشبهة خلاف الشافعي) فان الصوم لايصح عنده بنية النهار كمالا يصح بمطلق النية ،وهذا تعليل لوجوب القضاء دون الكفار اذا كل بعد النية (ردالمحتار مع الدرالمختار ج:٢ص:٤٠٣،كتاب الصوم ،مطلب فى حكم الاستمناء بالكف)_

٢ ] فمن كان منكم مريضًا او على سفر فعدة من ايام آخر......وان تصوموا خيرلكم ان كنتم تعلمون (البقرة ؛١٨٤) وللمسافر الذى انشاء السفر قبل طلوع الفجر......الفطر لقوله تعالى فمن كان منكم مريضًا او على سفر فعدة من ايام آخر ولمارويناه وصومه اى المسافر احب ان لم يضر لقوله تعالى: وان تصوموا خيرلكم وهذا اذالم تكن عامة رفقته مفطرين ولامشتركين فى النفقة ،فان كانوا مشتركين او مفطرين فالافضل فطره اى المسافر،موافقة للجماعة كمافى الجوهرة (مراقى الفلاح على هامش الطحطاوى ص:٣٧٥،٣٧٤ ،كتاب الصوم ،فصل فى العوارض ،طبع ميرمحمد)

دي، بلکې په بل وخت کې قضانيول پکار دي، خصوصاکه دروژې له دوجې مسافرو يا د جاز سلامتي ته خطره وي؛ نو دهغه له پاره روژه نيول به منع وي مثلاً دجاز کپتان روژه ونيوله چې دهغه له وجې ورته جاز کنټرول کول ګران شي.[1]

**سوال:** سفردوه قسمه وي، يوسفردمغرب نه مشرق طرف ته وي، په کوم کې چې ورځ ډيره وړه وي هرکله چې دويم سفرکوم چې دمشرق نه مغرب طرف ته وي په هغه کې ورځ ډيره اوږده وي. لمر تقريبا دجازسره سره وي اوروژه تقريبا ددويشتوګنټوشي په دې صورت کې اکثرکتل شوي دي چې خلک روژه دګنټوپه حساب سره ماتوي مثلاً دپاکستان په حساب سره يې روژه نيولې وه اوپه پاکستان کې چې کوم وخت روژه ماتی وي هغه وخت کې دوی هم روژه ماته کړي، په دې صورت کې ځينې ځل لمربالکل پورته وي اوله کوم ځای نه چې جازتيريږي هلته د ماسپښين وخت وي؛ نو ايا داسې روژه ماتول به صحيح وي؟

**جواب:** دګنټوپه حساب سره دروژې ماتولوکوم صورت چې تاسوليکلی دی داصحيح نه دی د افطار په وخت کې چې روژه دار چيرته موجودوي دهغه ځای غروب به معتبروي کوم کسان چې په پاکستان کې روژه ونيسي اوروان شي هغوی ته دپاکستان دغروب مطابق دروژې ماتولو اجازه نه شته، کومو کسانوچې داسې کړي دي دهغوی روژه ماته شوه اودهغوی په ذمه ددې قضالازم ده.

**سوال:** پورتني استواء(Higher Latitudes)چيرته چې لمرد ۲۰_۲۲ ګنټو پورې رسيږي ياپورته تلو سره شپږو مياشتوپورې لمرنه پريوځي اوبياراتلونکي شپږومياشتوپورې تياره وي؛ نودهغه ځای له پاره دلمانځه اوروژې په باره کې څه احکامات دي؟ اکثرپه دغه ځايونوکې دمدينې منورې يامکې معظمې داوقات په اعتبارسره لمونځ اوروژې اختياروي، ايادهغوی داسې کول صحيح وي؟

**جواب:** دمدينې منورې يامکې معظمې دوختونواعتبارکول بالکل غلط دي په کومو مقاماتو باندې چې طلوع اوغروب کيږي، خوهلته ورځې اوږدې اوشپې وړې وي؛ نوهغوی ته دخپل ملک د صبح صادق نه غروب افتاب پورې روژه نيول لازم دي[2]البته په دوی کې چې کوم

---

١ ] وللمسافرالذى انشاء السفرقبل طلوع الفجر...... الفطر لقوله تعالى:فمن كان منكم مريضًا اوعلى سفرفعدة من ايام آخر ولمارويناه ،وصومه اى المسافراحب ان لم يضره ،وفى حاشية الطحاوى: (فعده من ايام آخر)اى فافطرفعليه عدة الايام التى افطرهامن ايام آخر (ولمارويناه)اى من قوله صلى الله عليه وسلم ان الله وضع عن المسافرين الصوم (وان لم يضره)اى ارادبالضرر،الضررالذى ليس فيه خوف الهلاک ،لان مافيه خوف الهلاک بسبب الصوم فالافطارفى مثله واجب لا انه افضل،بحر(حاشية الطحطاوى مع مراقى الفلاح ص:٣٧٤)

٢ ]كتاب الصوم......هولغة امساک عن المفطرات الاتية حقيقة اوحكمًاوفى وقت مخصوص وهو اليوم ....الخ (قوله وهو اليوم) اى اليوم الشرعى من طلوع الفجرالى الغروب(ردالمحتارعلى الدرالمختار ج:٢ص: ٣٧١كتاب الصوم)

کسان د کمزوري له وجې دومره اوږدې روژې نه شي نيولى؛ نوهغوى په معتدل موسم کې قضانيولى شي[1] په دې علاقوکې به دلمونځونواوقات هم دمعمول مطابق وي اوپه کومو علاقوکې چې هډو طلوع اوغروب نه کيږي؛ نوهلته دوه صورته کيداى شي يوداچې دساعت (ګړۍ) دڅليرويشتوګنټوپه حساب سره دلمونځونو وختونه مقررشي اوددې مطابق دې دپه روژوکې دپيشمني اوروژه ماتي تعين کوي[2] دويم صورت دادى چې دهلته نه نزديک ترين کوم ښارکې طلوع اوغروب په کوم معمول سره کيږي؛ نودهغه داوقاتومطابق دې د لمونځونو او پيشمني او افطارباندې عمل کوي.[3]

**سوال:** ځينې حضرات په درمياني استواء(Mid Letitudes)کې هم خپل لمونځونه اوروژې د مدينې منورې دلمونځونواوروژې اوقاتوسره اداکوي داترکومې صحيح ده؟

**جواب:** پورته معلوم شوي دي چې دهرښارله پاره دهغه دطلوع اوغروب اعتباردى، دلمانځه په وختونو کې هم اودروژې په وختونوکې هم، دمدينې منورې په وختونوکې لمونځ روژه کول بالکل غلط دي اوداټول لمونځونه اوروژې نه دي ادا شوې.

**سوال:** دکراچۍ نه لاهورياسلام اباد ته دتلوپه وخت کې اګرچې په لاهوراسلام ابادکې لمر پريوتى وي اوروژه ماتى کيږي، مګرپه جازکې دلوړوالي له وجې لمرپه نظرراځي، په دې صورت کې روژه دځمکې دوخت مطابق ماته شي ياترڅوپورې چې لمردجازنه پريوتى په نظر رانه شي دهغه پورې ملتوي شي؟

**جواب:** دپرواز په دوران کې دطلوع اوغروب دنظرراتلوبه اعتباروي، که په ځمکه باندې لمر پريوتلى وي، مګردجاز په افق باندې لاپريوتلى نه وي؛ نوجهازوالاوو ته به ددروژې ماتولو يا د ماښام دلمانځه کولواجازه نه وي، بلکې کله چې لمردجازدافق نه پريوځي؛ نوهلته به ورته اجازه وي.[4]

---

١ ]المريض اذاخاف على نفسه التلف اوذهاب عضو يفطربالاجماع وان خاف زيادة العلة وامتداده فكذالك عندنا وعليه القضاء اذا افطر كذافى المحيط (هندية ج١ ص٢٠٧،الباب الخامس فى الاعذار التى تبيح الافطار)

٢ ]عن النواس ابن سمعان قال:ذكر رسول الله صلى الله عليه وسلم الدجال ذات غداة ......قال :اربعون يومًا،يوم كسنة،ويوم كشهر،ويوم كجمعة ،وسائرايامه كايامكم، قلنا:يارسول الله !فذالک اليوم الذى كسنة اتكفينا فيه صلوة يوم؟ قال:لا،اقدرواله قدره (مسلم ج:٢ص:٤٠٠،٤٠١ ، باب ذكر الدجال)۔

٣ ] فان قلنابوجوب الصوم يلزم القول بالتقدير ،وهل يقدرليلهم باقرب البلاد اليهم كماقاله الشافعية هناايضًا،ام يقدرلهم بمايسع الاكل والشرب، ام يجب عليهم القضاء فقط دون الاداء ؟كل محتمل فليتامل .(شامى ج:١ ص:٣٦٦طبع ايچ ايم سعيد)۔

٤ ] والمراد بالغروب زمان غيبوبة جرم الشمس بحيث تظهرالظلمة حسافى جهة المشرق قال صلى الله عليه وسلم اذا اقبل الليل من ههنافقدافطرالصائم ،اى اذا وجدت الظلمة حسًافى جهة المشرق فقدظهروقت الفطر اوصارمفطرًافى الحكم لان الليل ليس ظرفاللصوم (شامى ج:٢ص:٣٧١،كتاب الصوم ،طبع ايچ ايم سعيد)

**سوال:** په دويم صورت کې کله چې عين د روژه ماتي په وخت کې که سفرشروع شي: نود جاز ترڅه حدپورې اوچتيدونه وروسته بيالمرپه نظرراشي اوپه مسافروکې بې چيني پيداشي، چې په روژه کې موګړېږ راغی، يامکروه شوه؟ددې متعلق څه احکام دي؟

**جواب:** که په ځمکه باندې دروژې ماتيدونه وروسته سفرشروع شو اواوچت تلونه وروسته لمرپه نظرراغی؛ نوروژه مکمل شوه دروژې مکمل کيدونه وروسته دلمرپه نظرراتلل هيڅ اعتبارنه لري، ددې مثال داسې دی چې يوکس ديرش روژې پوره کړي اوداخترلمونځ وکړي اوپاکستان ته راشي؛ نووويني چې دلته لارمضان ختم شوی نه دی؛ نودهغه په ذمه دلته روژې نيول به فرض نه وي.

**سوال:** که عمله دسفرپه دوران کې دامحسوس کړي دروژې نيولوله وجې نه موپه ډيوټي کې خلل راځي اوروژه يې ماته کړه؛ نو ايادد ې کفاره به اداکول وي؟

**جواب:** که روژې سره صحت متاثره کيږي اوپه ډيوټي کې دخلل راتلواوجازيامسافرومتاثره کيدو ويره وي؛نوروژه دې ماته شي اوددې به يوازې قضالازم وي،کفاره به لازمه نه وي. والله اعلم!

## ❖ کومو وجوهاتو سره روژه ماتول جائزدي؟ او کومو سره نه؟ ❖

..................

### د ناروغي د زياتيدو يا خپل ماشوم د هلاکت ويره وي؛ نوروژه ماتول جائز دي

**سوال:** مسئله دامعلومول دی چې يوکس ته قی ورشی اوس دهغه روژه پاتې شوه يانه؟ يا د يوسړي ياښځې روژه نيولوسره دناروغی دزياتيدو ويره محسوسه کړي؛ نو آياهغه روژه ماتولی شي؟

**جواب:** که په خپله ورته قی راشي نوروژه ماته نه شوه، که لږ وي يازيات اوکه په خپل اختيار سره يې قی وکړاوپه ډکه خوله يې وکړ؛نوروژه ماته شوه ګني نه.[1]

که روژه دارناخاپه ناروغ شي اوويره وي چې که روژه يې ماته نه کړه ؛ نو د سر خطره يې ده يا د

[1] اذا قاء او استقاء مل الفم او دونه عاد بنفسه اوعاد اوخرج فلافطرعلى الاصح الا في الاعادة والاستقاء بشرط ملء الفم....الخ (هندية ج:١ص:٢٠٤:،كتاب الصوم الباب الرابع ،وفي الشامية ج:٢ ص:٤١٤، مطلب في الكفارة)

ناروغۍ د زیاتیدو ویره ده، په داسې صورت کې روژه ماتول جائزدي.
همدغه شان که دحاملې ښځې سرته یادماشوم جان ته څه خطره شي؛ نوروژه ماتول جائزدي.[1]

## که د ناروغي له وجې روژه و نه نیسي؛ نوقضادې راوړي

**سوال:** مابه دشروع نه درمضان روژې نیولې،خودنن نه پنځه کاله مخکې مې یرقان (زیړی) شو، چې دهغې دوجې نه مې اوواته میاشتې په کټ پرېوتم،هسې تقریباً دلس دولسوکالوراهیسې په معده کې دخرابي اوګیس مریضه یم ،خو دیرقان دوجې ماته تنده دومره لګیږي چې روژه نیول راته ګران دي،چې دهغې په وجه ډیره زیاته پریشانه یم.تیرکال مادرمضان لومړۍ روژه ونیوله،خو سهاردنهو بجو نه تندې بدحاله کړم،چې له وجې مې روژه ماته کړه، تاسو مهرباني وکړئ اوماته ووایئ
چې دروژې ماتولو کفاره څه ده؟ اوکومې روژې چې مې و نه نیولې دهغې کفاره څه ده؟

**جواب:** تاچې درمضان کومه روژه ماته کړه، دعذردوجې نه دې ماته کړه، ددې وجې نه ددې کفاره ستاپه ذمه نشته،بلکې یوازې قضالازم ده اوکومې روژې چې تادناروغۍ له وجې و نه نیولای شوې دهغو په ځای هم قضاروژې ونیسه[2]،آینده هم که ته دناروغۍ په وجه د رمضان روژې نه شې نیولی ؛نودیخنۍ په موسم کې قضانیسه[3].اوکه په وړووړخوکې دې هم دروژونیولوطاقت نه وي؛ نوددې نه علاوه بله چاره نشته چې ددې روژوفدیه ورکړې،اودیوې ورځې دروژې فدیه دصدقه فطربرابرده.[4]

## که چاروژه د ناروغۍ له وجې ماته کړه نویوازې قضاء ده کفاره نشته

**سوال:** ما په تېر رمضان کې یوه رژه دمجبوري په حالت کې ماته کړې وه، وجه دا وه چې په معده کې تکلیف وو،دا درد د پیشمني په وخت تقریباً پاوباندې شپږ بجې را اوچت شوې وو چې تیزیده تیزیده او ناقابل برداشت شو (داسې قسمه اکثر درد زما په معده کې راځي چې

---

١ ] ومنهاالمرض :المريض اذاخاف على نفسه التلف اوذهاب عضو يفطر بالاجماع ......الخ•ومنه حبل المرأة وارضاعها الحامل والمراضع اذا خافتا على انفسهمااو ولدهماافطرتاوقضاء ولاكفارة عليهماكذا فى الخلاصة .(هندية كتاب الصوم ،الباب الخامس فى الاعذارالتى تبيح الافطارج:١ص:٢٠٧والشامى ج:٢ ص:٤٢٢،كتاب الصوم)_

٢ ]المريض اذاخاف على نفسه التلف اوذهاب عضويفطربالاجماع وان خاف زيادة العلة وامتداده فكذلک عندناوعليه القضاء ....الخ (هندية ج:١ص:٢٠٧،كتاب الصوم ،الباب الخامس فى الاعذارالتى تبيح الافطار)

٣ ]ولولم يقدرلشدة الزمان كالحرفله ان يفطروينتظرالشتاء فيقضى كذافى فتح القدير (هندية ج:١ص:٢٠٩)_

٤ ] فالشيخ الفانى الذى لايقدرعلى الصيام يفطرويطعم لكل يوم مسكينًاكمايطعم فى الكفارة .(هندية ،كتاب الصوم، الباب الخامس فى الاعذارالتى تبيح الافطار ج:١ ص:٢٠٧،ايضًا: ردالمحتار ج:٢ ص:٤٢٤٠٤٢٢ فصل فى العوارض)

هغه په يوې دوا باندې صحيح کيږي) په آخرکې چې کله د درد په شدت کې کمی رانغی: نو مجبوراً پاؤ باندې اووه بجو ته نژدې ما روژه ماته کړه او هغه دوا مې واخيسته ددينه پس مې توله ورځ هيڅ نه وو خوړلي، په هر حال اوس دا ووايئ چې د روژې د ماتولو به په ما باندې ګناه وي او که نه؟ ما په يو ځای کې د روژې د ماتولو کفاره مسلسل دوه مياشتې روژې نيول کتلي و، آيا واقعي دا صحيح ده؟ خو ما روژه په ډيرې مجبورۍ سره ماته کړې وه په خپله خوښه سره نه،آيا د کفارې څه بل صورت نه جوړيږي؟

**جواب:** په داسې مجبورۍ کې کومه روژه چې ماته کړل شي په دې باندې يوازې قضاء لازميږي، کفاره نه شته.[1]

## د بې هوشۍ په حالت کې که چا اوبه وڅښلې نو کفاره نشته صرف قضاء ده

**سوال:** د نن نه يو دوه درې کاله مخکې په رمضان کې زما طبيعت ناڅاپه خراب شو د نيمې بې هوشۍ په شان کيفيت و، خو ماته ياد دي چې مور ما باندې اوبه څښلې وې، مايو دوه درې ګوټه (غړپه) څښلې وې حالانکې زه د روژې په حالت کې وم،دا واقعه د سحر د لمونځ وغيره نه

چې فارغ شوم د ويده کيدلو او بيا تقريباً سحر د اتو بجو د راپاسېدو د وخت ده،اوس ماته دا معلومول دي چې آيا په داسې صورت کې به ماته کفاره ورکول وي يا قضاء روژه به نيسم؟حالانکې زما حالت داسې هم نه و.چې خدای دې نه کړي چې ساه مې ختلې وې،البته په طبعيت کې مې ويره ډيره وه. نو په دې وجه مې اوبه د خولې سره ولګولې اوس ماته ووايئ چې آيا په داسې صورت کې د روژې په ماتولو باندې به قضاء لازم وي يا کفاره؟

**جواب:** ستا مور په تا باندې په دې وجه اوبه وڅښلې چې ستا طبيعت زيات خراب نه شي، په دې وجه د ستا په ذمه باندې صرف قضاء واجب ده کفاره واجب نه ده.[2]

---

[1] ايضًا تيره شوى حاشية: المريض اذاخاف على نفسه التلف اوذهاب ........ فى الاعذار التى تبيح الافطار)

[2] ايضًا تيره شوى حاشية: المريض اذاخاف على نفسه التلف اوذهاب........ فى الاعذار التى تبيح الافطار)

# ❖ کومو وجوهاتوسره روژه نه نیول جائزدي ❖

## کومو عذرونوسره روژه نه نیول جائزدي

**سوال:** د کومو عذرونوپه وجې سره روژه نه نیول جائزدي؟

**جواب:** ۱: د رمضان روژې په هر عاقل اوبالغ باندې فرض دي اوبغیر د څه صحیح عذرنه روژه نه نیول حرام دي.[۱]

۲: که نابالغه هلک، انجیلۍ چې د روژې نیولوطاقت لري: نوپه موربلارباندې لازم دي چې روژې پرې ونیسي.[۲]

۳: کوم بیمارچې د روژې نیولوطاقت لري، اود روژې نیولوسره د بیمارۍ د زیاتیدوویره نه وي په هغهٔ هم روژه نیول لازم دي.[۳]

۴: که بیمارۍ داسې وي چې د هغو له وجې روژې نه شي نیولی یاروژې سره د بیمارۍ د زیاتیدو ویره وي؛ هغه ته د روژې نه نیولو اجازت دی، مګرکله چې روغ شي؛ نو د دې روژوقضاد هغه په ذمه فرض ده.[۴]

۵: کوم کس چې دومره ضعیف العمر وي چې د روژې طاقت نه لري، یاداسې بیماروي چې نه روژه نیولی شي اونه یې د صحت امید وي؛ نوهغه دې د روژې فدیه ورکوي، یعنی د هرې روژې په بدله کې د صدقه فطرپه مقدارکې غله یاد هغې برابرقیمت دې څامسکین ته ورکړي یاسهارماښام دې یومسکین ته خوراک ورکړي.[۵]

۶: که یوکس په سفرکې وي اوپه روژه نیولوسره په مشقت کې دراګیریدو ویره وي؛ نوهغه هم روژه ماتولی شي، په دویم وخت کې په هغه روژه نیول لازم دي، که په سفرکې څه مشقت نشته نو روژه نیول افضل دي اګرچې د روژې نه نیولواوبیاوروسته د قضا نیولوهم هغهٔ ته

---

۱] یاایهاالذین امنوا کتب علیکم الصیام کماکتب علی الذین من قبلکم .......الآیة سورة البقرة .وایضًا شرط وجوبه(ای الصوم)الاسلام والعقل والبلوغ...الخ (هندیة ج:۱ص:۱۹۵،کتاب الصوم الباب الاول فی تعریفه)

۲ ] ویومرالصبی بالصوم اذا اطاقه .......الخ (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۴۰۹،کتاب الصوم ،طبع سعید)۔

۳ ] واطلق الخوف ابن الملک فی شرح المجمع واراد الوهم حیث قال لوخاف من ا لمرض لایفطر .......الخ (البحرالرائق ،فصل فی العوارض ص:۳۰۳طبع بیروت)۔

۴ ] المریض اذا خاف علی نفسه اوذهاب عضو یفطر بالاجماع وان خاف زیادة العلة وامتداده فکذلک عندناوعلیه القضاء اذا افطرکذافی المحیط (هندیة ج:۱ص:۲۰۷،کتاب الصوم ،الباب الخامس فی الاعذارالتی تبیح الافطار)۔

۵ ] قال فی التنویر :وللشیخ الفانی العاجزعن الصوم الفطر ویفدی .وفی الشامیة :المریض اذا تحقق الیاس من الصحة فعلیه الفدیة لکل یوم من المرض...الخ (شامی ج:۲ص:۴۲۷،ایضًا:عالمگیری ج:۱ص:۱۹۱،کتاب الصوم)

اجازت شته.[۱]

۷: د ښځې د حیض او نفاس په حالت کې روژه نیول جائز نه دي، مګر د رمضان شریف نه پس د هغو مره ورځو قضا په هغې باندې لازمه ده.[۲]

۸: ځینې خلک له عذر پرته روژه نه نیسي او د بیماري یا سفر د وجې نه روژه پرېږدي او بیا وروسته قضا هم نه کوي، خاصکر په ښځو کې کومې روژې چې د ماهواري په ورځو کې پاتې شي، د هغو په قضا نیولو کې سستي کوي دا ډېره لویه ګناه ده.[۳]

## د کار له وجې د روژې د پرېښودو اجازه نشته

**سوال:** موږ په ګلف کې اوسیدونکي پاکستانیان د رمضان المبارک روژې یوازې د دې وجې نه پوره نه شو نیولی چې دلته په رمضان کې ډېره سخته ګرمي وي، او کار هم د محنت والا وي، ځکه چې په عام حالت کې هم د کار په دوران کې په دوه ګنټې کې لس دولس ګلاسه اوبه څښل کېږي، که موږ روژې و نه نیسو نه څه حکم دی؟

**جواب:** د کار له وجې نه د روژې پرېښودو حکم نشته[۴]. البته مالکانو ته حکم ورکړل شوی دی چې په رمضان المبارک کې په مزدورانو باندې د کار بوج کم کړئ[۵]. تاسو خلک چې په کومه کمپنۍ کې نوکران یئ د هغوی نه د دې مطالبه کول پکار دي.

## د سخت کار له وجې روژه پرېښودل

**سوال:** .زموږ څو مسلمانان ورونه په ابوظهبي، متحده عرب امارات په صحرا کې د ننه د تیلو

---

۱ ] (قوله وللمسافر وصومه احب ان لم يضره) اى جاز للمسافر الفطر لان السفر لايخلو عن المشقة فجعل نفسه عذرا بخلاف المريض فانه قديخف بالصوم ......الخ (البحرالرائق ج:۲ص:۳۰٤،كتاب ا لصوم فصل فى العوارض ،طبع بيروت ،وايضًا الشامى ج:۲ص:٤۲۱ ،فصل فى العوارض ،هندية ج:۱ص:۲۰٦،كتاب الصوم ،الباب الخامس)۔

۲ ] ويمنع صلاة مطلقًا ولوسجدة شكر وصومًاوجماعًا وتقضيه لزومًادونها للحرج (قوله يمنع) اى الحيض وكذا النفاس ......(قوله وتقضيه)اى الصوم على التراخى فى الاصح (ردالمحتارمع الدرالمختار،باب الحيض والنفاس والاستحاضة ج:۱ص:۲۹۰،۲۹۱) ، فتقضى الحائض والنفساءالصوم دون الصلاة لحديث عائشة رضى الله عنهاكان يصيبنا ذلک فنومربقضاء الصوم ولانومربقضاء الصلاة وعليه الاجماع (مراقى الفلاح على هامش الطحطاوى ص:۷۹)۔

۳ ] فالاثم اذا افسدبغيرعذرلانه ابطل عمله من غير عذروابطال العمل من غير عذر حرام لقوله تعالى:ولاتبطلوا اعمالكم ......الخ (البدائع الصنائع ج:۲ص:۹٤،فصل :واماحكم فساد الصوم)۔

٤ ]المحترف المحتاج الى نفقته علم انه لواشتغل بحرفته يلحقه ضرر مبيح للفطريحرم عليه الفطرقبل ان يمرض كذافى القنية (هندية ج:۲ص:۲۰۸ كتاب الصوم ،الباب الخامس فى الاعذارالتى تبيح الافطار)۔

٥ ] عن سلمان الفارسى (رض).....ومن خفف عن مملوكه فيه غفرالله له واعتقه من النار (مشكوة المصابيح ص۱۷۴، كتاب الصوم، الفصل الثالث).

راوینستلوپه کمپنۍ کې کارکوي اود کمپنۍ کارځلیرویشت ګنټې چلیږي،اوسپنه، مشینونه، او د سختې ګرمۍ شکې دګرمۍ له وجې دروژه دار ژبه راوځي،اومرۍ یې وچه شي.اوخبرې کول ورته ګران وي اودکمپنۍ مالکان مسلمانان او غیرمسلم دي اوکارکونکي هم اکثر غیرمسلم دي چې درمضان المبارک دبابرکت میاشتې رعایت هم نوکرانوته نه ورکوي،یعنې دکار اوقات نه کموي؛نوپه دې حالت کې دشریعت مطهره څه حکم دی؟

**جواب:** دکارله وجې دروژې پرېښودواجازه خونشته.ددې وجې نه روژه دې ونیول شي.خو کله چې په روژه کې حالت خراب شي نورژه دې ماته کړي،په دې صورت کې به قضالازمه وي. فتاوی عالمګیریه (ج:۱ ص:۲۰۸)کې دي:

"المحترف المحتاج الی نفقة علم انه لواشتغل بحرفته یلحقه ضرر مبیح للفطر یحرم علیه الفطر قبل ان یمرض .کذافی القنیة..."

## د امتحان له وجې روژه پرېښودل اوپه بل باندې نیول

**سوال:** که یوکس طالب علم وي اودرمضان له وجې دامتحان تیاری نه شي کولی؛نودهغه مور پلار، وروڼه خوېندې اودوستان هغه ته هدایت وکړي چې روژه مه نیسه،اوددې په بدله کې د دیرشو په ځای څلوېښت روژې په بل چانیسو.نو آیا داسې طالبعلم ته روژې پرېښودل پکار دي؟ ایا کومې روژې چې دده څوک رشته دارده ته ورکړی هغه به دالله تعالی په دربارکې قبولې شي؟په دې باره کې څه حکم دی؟

**جواب:** دامتحان دعذردوجې نه روژې پرېښودل جائزنه دي[۱].اودیوکس په ځای دبل کس روژې نیول صحیح نه دي،لمونځ اوروژه خالص بدني عبادتونه دي،په دې کې دبل نیابت جائزنه دی،څنګه چې دیوکس په ډوډۍ خوړلوسره دبل خیټه نه ډکیږي. همدغه شان دیوکس لمونځ یاروژې نیولوسره دبل په ذمه فرض نه اداکیږي.[۲]

## د امتحان او کمزوري له وجې روژې قضاکول ګناه ده

**سوال:** تیرو ورځوکې ماانټرسائنس امتحان ورکړ اوهغه ورځو کې ماسخت محنت وکړ، فوراً وروسته رمضان شروع شو.اوس څوورځې پس پریتیکلې شروع کیدونکې دي،خو زما نه

---

۱ ] فلاثم اذا افسدبغیرعذرلانه ابطل عمله من غیر عذروابطال العمل من غیر عذرحرام لقوله تعالی:ولاتبطلوا اعمالکم ......الخ (البدائع الصنائع ج:۲ص:۹٤،فصل :واماحکم فساد الصوم)_

۲ ] وان صام اوصلی عنه ولی لا لحدیث النسائی لایصوم احد عن احد ولایصلی احد عن احدولکن یطعم عنه ولیه (درمختار)وفی الشامی وقال مالک:لم اسمع عن احدمن ا لصحابة ولامن التابعین بالمدینة ان احدًامنهم امراحدًایصوم عن احد وهذا ممایویدالنسخ وانه الامرالذی استقرالشرع علیه وتمامه فی الفتح وشرح النقایه للقاری .(ردالمحتارمع الدرالمختار،فصل فی العوارض ج:۲ص:٤۲۵)_

تیاری نه کیږي، ځکه چې دروژې نیولوپه وجه زه خوبولی خوبولی شان یم اوهروخت سخت خوب راځي، اوکه څه لوستل وغواړم نوهم دخوب دوجې نه ممکن نه وي اصل که په ماکې اوس دومره طاقت اوقوت نشته چې زه دروژوسره سره ذهني طورسره څه ولوستل شم.آیا په دې حالت کې زه روژې نیولې شم؟ که نیسم یې: نو لوستل رانه نه کیږي، ځکه چې کمزوري مې ډیره زیاته شي اوپه ما کې طاقت ډیرکم دی.

**جواب:** آیا لوستل د روژې نه زیات لوی فرض دي؟[١]

**سوال:** آیا په دې حالت (د کمزورۍ په حالت) روژه فرض ده؟

**جواب:** که روژې نیولو طاقت درکې وی نوفرض ده.[٢]

**سوال:** که روژې ونه نیسم؛ نو ددې به څه کفاره ورکول وي؟

**جواب:** دقضاروژه به هم نیول وي[٣] او د روژې قضا کولوسزابه هم برداشت کول وي.[٤]

## آیا د امتحان په وجه روژه ماتول روا دي؟

**سوال:** د یوپروفیسر صاحبې نه سوال وکړل شو چې موږه د بي ایس سي طالبات یو امتحان ډیر سخت وي، ډیر محنت کول پکار وي آیا مونږه د رمضان په دروان کې روژه پریښودلی شو؟ نو پروفیسر صاحبې جواب ورکړو چې ،،لایکلف الله نفساً الا وسعها،،تاسو روژه پریښودلی شئ،تاسو د مسئلې وضاحت وکړئ ! ډیرو خلکو ته به مسئله معلومه شي، آیا طالبان د امتحان په دوران کې روژه پریښودلی شي اوکه نه؟

**جواب:** دا مسئله هم غلطه ده، د رمضان روژه فرض ده[٥] او بي ایس سي امتحان څه فرض او واجب نه دی چې د دې له پاره د رمضان روژې پریښودل شي، او بیا پروفیسرې صاحبې دا هم

---

١ ] قال فى الایضاح :اعلم ان ا لصوم من اعظم ارکان الدین واوثق قوانین الشرع المتین ......الخ (شامی ،کتاب الصوم ج:٢ص:٣٦٩،طبع سعید)۔

٢ ] وشرط وجوبه الاداء الصحة والاقامة .(هندیة ج:١ص:١٩٥ ،کتاب الصوم الباب الاول)۔

٣ ]وقضوا لزوما ماقدروابلا فدیة وبلا ولاء ......الخ (درمختارمع الشامی ج:٢ص:٤٢٣)٠وفی شرح مختصر الطحاوی (ج:٢ص: ٤٦٤). قال ابوجعفر:ومن اصبح فی یوم من شهررمضان ولم یکن نوی الصوم ثم اکل او شرب اوجامع متعمدًا ،فان اباحنیفة کان یقول:علیه القضاء بلاکفارة ایضًا:مراقی الفلاح ص:٢٣٧طبع نورمحمد)

٤ ] عن ابی هریرة رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال:من افطریومًا من رمضان من غیر رخصة ولامرض لم یقضه صوم الدهر کله وان صامه .رواه الترمذی واللفظ له .(الترغیب والترهیب ج:٢ص:١٠٨)۔

٥ ] اعلم ان صوم رمضان فریضة ،لقوله تعالی :کتب علیکم الصیام وعلی فرضیة انعقدالاجماع ،ولهذا یکفرجاحده (وفی البنایة) لقوله تعالی :کتب علیکم الصیام ای فرض علیکم الصوم کما کتب علی الذین من قبلکم یعنی علی الانبیاء علیهم ا لسلام والامم من لدن آدم علیه السلام الی عهدکم ......الخ (البنایة فی شرح الهدایة ،کتاب الصوم ج:٤ص:٢٤٨ طبع حقانیة)

نه ویل چې که چیرې روژې پرېښودل شي: نو بیا ددې په ځای څه کول پکار دي؟ آیا قضاء روژې به نیسي یا فدیه به ورکوي؟ یا د بي ایس سي په برکت سره د رمضان روژې به دغه شان معاف شي ...؟! او پروفیسرې صاحبې چې د آیت کومه حواله ورکړې ده هغه هم بې موقعې ده،په روژه کې خو مشقت ضرور وي؛خو روژه د سړي له وس نه بهر نه وي،په آیت شریفه کې خو دا فرمایل شوي دي چې الله تعالي چاته د داسې کار حکم نه ورکوي چې هغه د ده د طاقت نه بهر وي، دا یې نه دي فرمایلي چې په یو کار کې معمولي مشقت وي نو هغه هم معاف دی،په ریډیو او ټي وي باندې چې داسې قسمه غلطې فتوا جاري شي نو د دې نتیجه به دا وي چې عوام به په دې مسئلو باندې اعتماد نه کوي.

## په سفر یا ناروغۍ کې روژه پرېښودل

**سوال:** په سفر یا ناروغۍ کې روژه تر کوم حده پورې پرېښودل جائز دي؟ ځکه چې انسان سفر د دونیاوي کارونو د پاره کوي که چیرې هغه د دې له پاره روژه پرېږدي نو ګویا چې ده دنیاوي کار له په دیني کار باندې فوقیت ورکړ؟

**جواب:** الله تعالي انسان کمزوری پیدا کړی دی او دده د کمزوري لحاظ یې ساتلی دی، په دې وجه په دونیاوي ضرورتونو د پاره هم که چیرې سفر وکړل شي: نو هم رخصت شته .[1]

## د لمونځ او د قرآن نه لوستونکي ښځې له پاره فرض روژې نیول څنګه دي؟

**سوال:** زما مشکل دادي چې قرآن پاک او لمونځ مې نه دې یاد کړی، باقي د اردو تعلیم مې حاصل کړی دی، زه په رمضان المبارک کې روژې نیسم چې د هغې په وجه کور والاخفه کیږي چې دا جائز نه دي چې ته لمونځ او د قرآن تلاوت نه کوې . ستا روژې نه قبلیږي،خو زه بیاهم روژې نیسم،زه دا وایم چې ما د زړه نه روژه نیولې ده،خو کور والا په ضد دي چې داثواب نه دی ګناه ده،تاسو ووایئ چې څومره ګناه او څومره ثواب دی؟

**جواب:** ستا روژې نیول خو ګناه نه ده، بلکې ثواب دی او د دې اجر به تا ته ضرور ملاویږي، خو تاته لمونځ پرېښودل نه دي پکار، د لمونځ پرېښودل لویه ګناه ده،که چیرې تا ته لمونځ نه درځي نو ددې زده کول څه ګران نه دي تر څوپورې چې دې د لمونځ سورتونه نه وې زده کړي تر هغې پورې په لمونځ کې سبحان الله سبحان الله وایه[2]

---

[1] فمن كان منكم مريضًا اوعلى سفرفعدة من ايام اخر (البقرة :١٨٤)

[2] عن عبدالله بن ابي اوفى رضى الله عنه قال:جاء رجل الى النبى صلى الله عليه وسلم فقال:انى لا استطيع ان آخذ من القرآن شيئًا فعلمنى مايجزئنى اقال:قل سبحان الله والحمدلله ولااله الا الله والله اكبر... الخ (مشكوة ص: ٨١)

## حامله ښځه د خپل بچي د نقصان له ویرې روژه پرېښودلی شي

**سوال:** کومې ښځې چې حاملې دي یعني وختونو په لحاظ سره نژدې یا په مینځ کې وي که چیرې روژه نیسي نو د کمزورې ډیره ویره ده؛ ځکه چې وینه کمه وي یا بعضو ته کمزوري هم کیدلې شي چې په هغې سره بچي ته یا د ولادت نه پس مور ته کمزوري راځي په دې موقعه کې په دې ښځو باندې روژه نیول ضروري وي یا نه؟

**جواب:** کومه حامله چې د روژې طاقت نه لري په دې وجه چې بچي ته به د نقصان د رسیدلو ویره وي هغه دې روژې نه نیسي په بل وخت کې دې قضاء اوکړي[1]

## که د روژې نیولو سره پې کمې راځي یا یې د بندیدو خطره وي نو آیا روژه پرېښودل روا دي؟

**سوال:** کومې ښځې چې د ولادت نه وروسته بچیو ته پې ورکوي په دې کې هغه ښځې چې د چا پې کم راځي که چیرې روژه ونیسي اود پیود کمیدلو ګمان وشي: نو په داسې صورت کې روژه ونیسي او که څه حکم دی؟

**جواب:** که چیرې ماشوم نورې پې خښلی شي یا د یوې بلې ښځې پې خښلې شي نو بیادده مور ته د روژې د پرېښودو اجازت نشته،خوکه د ماشوم د پاره څه بل څه انتظام نه شي کیدای؛ نو هغه روژه ماتولی شي او بل وخت دې قضا راوړي[2]

## د پیو ورکونکې ښځې روژه قضا کول

**سوال:** یوه داسې مورچې دهغې ماشوم دپیونه پرته بل خوراک نه شي خوړلی دهغې له پاره درمضان په میاشت کې دروژې نیولو په باره کې څه حکم دی؟ ځکه چې دمورد روژې دوجې نه

---

[1] اوحامل اومرضع اما كانت اوظئرًا على الظاهر خافت بغلبة الظن على نفسها او ولدها ......الخ (الدرالمختارمع الردج:٢ص: ٤٢٢،كتاب الصوم ،فصل فى العوارض)۰ ايضًا :الحامل والمرضع اذاخافتا على انفسهما او ولدهما افطرتا وقضتا ولاكفارة عليهما (فتاوى عالمگيرى ج:١ ص:٢٠٧،ايضاً خلاصة الفتاوى ج:١ ص:٢٦٥، كتاب الصوم ،طبع رشيدية)۰ايضًا :قال ومن خاف ان تزاد عينه وجعًا،اويزدادحمّاه شدة، افطر وقضى ،وذلک لقول الله تعالى:ومن كان منكم مريضًا اوعلى سفرفعدة من ايام اخر۰تقضى ظاهره اباحة الافطار لكل مريض ،الا انه قداتفق اهل العلم على ان المرض الذى لايضرمعه الصوم لايبيح الافطار،فخصصناه من الظاهر وبقى حكم اللفظ فيما عداه ،واباح النبى صلى الله عليه وسلم الافطارللحامل والمرضع ،لمايخافان على الولدمن الضرر فضررنفسه اولى باباحة الافطار من اجله (شرح مختصرالطحاوى ج:٢ ص:٤٤٦،٤٤٧، كتاب الصوم)

[2] ايضاً حاشيه گذشته: اوحامل اومرضع اما كانت اوظئرًا .... الخ (شرح مختصرالطحاوى ج:٢ ص:٤٤٧، ٤٤٦. كتاب الصوم)

دماشوم له پاره دپیوکمی راځي او وړی پاتې کیږي.

**جواب:** که موریاپې خوړونکي ماشوم دروژې متحمل کیدای نه شي؛ نوبښځه روژه پریښودی شي، وروسته دې قضا ونیسي.[1]

## د سختې ناروغۍ له وجې دخوړل شویو روژو قضااوفدیه

**سوال:** زمامسئله داده چې زماپوزه اکثربنده وي،ددې تقریبادوه ځله اپریشن هم شوی دی، خو هیڅ فائده راته ونه شوه،ډاکټري او حکیمي علاج مې کافي کړی دی، دهغه سره هم څه فائده ونه شوه،ګرم شي خوړولوسره مې یوطرف ته پوزه خلاصه شي اوساه مې ننبتې راځي. مګر دملاستې په صورت کې هغه هم بنده شي،اوساه مې ننبتې راځي،چې دهغې د وجې نه خوب نه راځي،دوایي اچولوسره مې پوزه صرف دپنځومنټوله پاره خلاصه شي، بښکاره ده چې دوایي په پوزه کې اچولوسره اکثر حلق ته هم راځي،مهرباني وکړئ اوتاسو راته دا ولیکئ چې د روژې په حالت کې زه په پوزه کې دوایي اچولی شم؟یادساتئ که زه هغه په پوزه کې وانچوم نو یو منټ هم ویده کیدای نه شم،مهرباني وکړئ ددې وظیفه هم راته ولیکئ چې دا تکلیف مې لرې شي اوزمادزړه بې اختیاره ستاسوله پاره دعاګانې ووځي.

**جواب:** دروژې په حالت کې په پوزه کې دوایي اچول صحیح نه دي،دې سره روژه ماتیږي،[2] که ته دناروغۍ له وجې روژه پوره کولی نه شې نودروژې دپریښودواجازت شته[3].که ته په وړو ورځو کې روژه نیولی شې نوددې روژوقضالازم ده[4].اوکه په یوموسم کې هم دروژو نیولو

---

۱ ] اوحامل اومرضع اما كانت اوظئرًا على الظاهر خافت بغلبة الظن على نفسها او ولدها ......الخ (الدرالمختارمع الردج:۲ص: ۴۲۲،كتاب الصوم ،فصل فى العوارض)، ایضًا :الحامل والمرضع اذا خافتا على انفسهما او ولدهما افطرتا وقضتا ولاكفارة عليهما (فتاوى عالمگيرى ج:۱ ص:۲۰۷،ایضاً خلاصة الفتاوى ج:۱ص:۲۶۵،كتاب الصوم ،طبع رشيدية) ، ایضًا :قال ومن خاف ان تزداد عينه وجعًا،اويزدادحمّاه شدة، افطر وقضى ،وذلك لقول الله تعالى:ومن كان مريضًااوعلى سفرفعدة من ايام آخر، تقضى ظاهره اباحة الافطارلكل مريض ،الا انه قداتفق اهل العلم على ان المرض الذى لايضرمعه الصوم لايبيح الافطار، فخصصناه من الظاهر وبقى حكم اللفظ فيما عداه ،واباح النبى صلى الله عليه وسلم الافطار للحامل والمرضع ،لما يخافان على الولد من الضرر فضررنفسه اولى باباحة الافطارمن اجله(شرح مختصرالطحاوى ج:۲ص:۴۴۶،۴۴۷،كتاب الصوم)

۲ ]وماوصل الى الجوف او الى الدماغ من المخارق الاصلية كالانف والاذن والدبربان استعط او احتقن او اقطرفى اذنه فوصل الى الجوف اوالى الدماغ فسدصومه...الخ (البدائع الصنائع ج:۲ص:۹۳(فصل) وامار كنه)

۳ ]المريض اذا خاف على نفسه التلف اوذهاب عضو يفطربالاجماع وان خاف زيادة العلة وامتداده فكذلك عندنا وعليه القضاء اذا افطر كذافى المحيط(هندية ج:۱ص:۲۰۷،درمختارمع الشامى ج:۲ص:۴۲۲،فصل فى العوارض)

۴ ]ولولم يقدرلشدة الزمان كالحرفله ان يفطروينتظرالشتاء فيقضى كذافى فتح القدير (هندية ج:۱ ص:۲۰۹،وفى الشامية ج:۲ص:۴۲۷،فصل فى العوارض)۔

امکان نه وي؛ نود روژوفدیه لازم ده[۱]، البته دکوموروژوفدیه چې اداکړل شوه ،که په پوره ژوندکله هم دروژو نیولوطاقت درکې پیداشو نودافدیه به غیرمعتبره وي اودروژوقضابه لازم وي.[۲]

## د متیازو ناوغي په روژه کې مانع نه ده

**سوال:** زمامسئله داده چې زه دډیرې مودې راهیسې دمتیازوپه ناروغۍ کې مبتلایم اوپه دې کې څلیرویشت ګنټې پاک پاتې کیدل ممکن نه دي، په داسې صورت کې کله چې پورتنی صورت حال سر هوي نو آیابنده لمونځ روژه کولی شي اونه؟اکثرخلق وایي چې پاکي ناپاکي سره هیڅ نه کیږي نیت صفاپکاردی،قبلوونکی الله دی اوهمدغه وجه ده چې زه لمونځ وغیره بالکل نه پریږدم ایاتاسوماته په دې سلسله کې څه مفیدمشوره راکولی شئ؟

**جواب:** داناروغۍ په روژه کې رکاوټ(مانع) نه دی،خو اودس ورسره ماتیږي،مګرچونکې ته معذور یې ددې وجې دهرلمانځه له پاره نوی اودس کوه،ترڅوپورې چې دهغه لمونځ وخت وی ستااودس بغیردڅه عذرنه به نه ماتیږي.کله چې دلمانځه وخت تېرشي نوبیااودس اوکړه[۳]، لمونځ روژه پریښودل جائزنه دي.

## د مرض دوباره راتلود ویرې نه د روژې فدیه ورکول

**سوال:** زما دتیروپنځوکالوراهیسې په ګرده کې تکلیف دی،تیرکال زه پاکستان ته لاړم او اپریشن مې وکړ،اوکانی راووت، د اپریشن نه څلورمیاشتې پس بیاکانی پیداشو،دلته په (بحرین) کې مې دیوقابل ډاکټرنه علاج شروع کړوډاکټرصاحب ماته دصفااوبوڅښلو وویل او ما په ورځ کې تقریباڅلویښت ګلاسه اوبه وڅښلې،دالله تعالی په مهرباني سره هغه کانی په خپله د متیازو سره خارج شو.
ډاکټرصاحب ماته وویل چې دډیرکسانوګرده پوډرشان جوړوي چې دکانې په شان شي، که تا روزانه همدغه شان اوبه څښلې نوکانی به نه جوړیږي اوکه اوبه کمې کړې نوکانی به دوباره جوړشي. ډاکټرمسلمان دی اوډیرښه انسان دی،هغهٔ زه منع کړې یم چې ماته معلومه ده چې تاسو پاکستانیان روژه نه پریږدئ مګرته بالکل روژه مه نیسه،که تااوبه څښل پریښودل

---

۱ ] المريض اذا تحقق الياس من الصحة فعليه الفدية لكل يوم من المرض ......الخ (شامي ج:۲ص:۴۲۷)۔
۲ ] ولوقدرعلى الصيام بعدمافدى بطل حكم الفداء الذى فداه حتى يجب عليه الصوم هكذا فى النهاية .(هندية ج:۱ص:۲۰۷، والشامية ج:۲ص:۴۲۷،فصل فى العوارض)۔
۳ ] المستحاضة ومن به سلس البول ......يتوضون لوقت كل صلاة ويصلون بذلک الوضوء فى الوقت ماشاؤا من الفروض والنوافل هكذا فى البحرالرائق .(هندية ج:۱ص:۴۱،كتاب الطهارة ،ومما يتصل بذلک احكام المعذور)۔

نوکانې به دوباره پیدا شي اوس سخت پریشان یم چې څه وکړم؟

**جواب:** که ویره وي چې که روژه دې ونیوله نومرض به سردوباره شي؛ نوته د ډاکټرپه مشوره باندې عمل کولی شې[1]، اوکومې روژې چې ستاپاتې شي که دیخنی په ورځوکې دهغو قضاممکن وي نودا روژې پوره کړه[2]، ګنې دروژوفدیه ورکړه.[3]

# ❖رمضان کې دښځو دخاصو ورځو مسائل❖

................

## د حیض په ورځوکې دښځوروژې نیول جائزنه دي

**سوال:** په رمضان کې ښځې چې څومره ورځې په ناوغی(حیض)کې وي، په دې حالت کې روژې نیول پکاردي اوکه نه؟اوکه یې وخوري؛ نو وروسته نیول پکاردي اوکه نه؟

**جواب:** دناوغی (حیض اونفاس) په ورځوکې ښځوته روژې نیول پکارنه دي، وروسته قضا نیول فرض دي.[4]

## دوا خوړلو سره د ناوغی(حیض) ودرولو نکو ښځوروژې نیول

**سوال:** په رمضان کې ځینې ښځې دوایي(دړمل) وخوري اوخپلې ورځې وروسته کړي،دغه شان درمضان پوره روژې ونیسي اوپه فخرسره وایي چې موږ خودرمضان پوره روژې نیولې دي آیا داسې کول شرعاً درست دي؟

**جواب:** داخوواضحه ده چې ترڅوپورې ورځې شروع شوې نه وي نوښځه پاکه شمیرل کیږي اودهغې درمضان روژې نیول صحیح وي،پاتې شو داچې دحیض ایسارول صحیح دي اوکه نه؟ نوشرعاپه ایسارولو باندې څه پابندي نه شته،مګرشرط دادی چې داکار که دښځې دصحت له پاره نقصاني وي؛ نو جائزنه دی.

---

۱ ] تیره شوی حاشیه (اوحامل اومرضع اما کانت اوظئرًا علی الظاهر خافت بغلبة الظن...الخ) اوګوری)۔

۲ ] ولوقدرعلی الصیام بعدمافدی بطل حکم الفداء الذی فداه حتی یجب علیه الصوم هکذا فی النهایة .(هندیة ج:۱ص:۲۰۷، والشامیة ج:۲ص:۴۲۷،فصل فی العوارض)۔

۳ ]المریض اذا تحقق الیاس من الصحة فعلیه الفدیة لکل یوم من المرض ......الخ (شامی ج:۲ص:۴۲۷)۔

٤ ] ومنها الحیض والنفاس واذا حاضت المراءة اونفست افطرت (هندیة ج:۱ص:۲۰۷)۰وتشترط لوجوب الاداء الصحة....والطهارة عن الحیض والنفاس (مجمع البحرین وملتقی النیرین ،کتاب الصوم ص:۲۰۳،طبع مکتبة اسلامیه کوئته)، وتقضی الحائض والنفساء الصوم دون الصلاة لحدیث عائشة رضی الله عنها،کان یصیبنا ذالک فنومر بقضاء الصوم ولا نومربقضاء الصلاة وعلیه الاجماع...الخ.(مراقی الفلاح باب الحیض والنفاس ص:۷۹،طبع نورمحمدکتاب خانه)

## د روژې په دوران کې که بیماري (ماهواري) شروع شي نو روژه ختمه شوه

**سوال:** د رمضان په میاشت کې که دروژې نیولونه پس دورځې څه وخت کې بیماري (حیض) شروع شوه؛ نو آیا په دغه وخت کې روژه ماتول پکار دي او که نه؟

**جواب:** د ماهواري (حیض) شروع کیدو سره روژه په خپله ماته کیږي.[1]

## غیر رمضان کې د روژو قضا شته د تراویح نشته

**سوال:** د رمضان په میاشت کې دمجبوري نه چې کومې روژې پاتې شي؛ نودهغو د قضا نیولو په وخت کې تراویح کول پکار دي او که نه؟

**جواب:** تراویح یوازې په رمضان کې کیږي[2] د رمضان په قضایي روژوکې تراویح نه وي.[3]

## قضا روژې که پرلپسې یا وقفې سره نیول

**سوال:** کومې روژې چې پاتې شي،دهغې قضا لازم ده،ترننه پورې مورِ په دې دپوهیدونه محرومه وو، اوس راته الله تعالی په زړه کې واچول نوداپته راته ولګیده چې مسلسل روژې نیول منع دي، آیا زهٔ یوه ورځ پس یاپه هفته کې یوه ورځ یادوه ورځې روژې نیولې شم اوخپلې قضا روژې پوره کولی شم؟ ځکه چې دژوند څه باورنشته څومره زرچې اداکړل شي؛ نوبهترده.

**جواب:** کومې روژې چې پاتې شوې وي، دهغو قضافرض ده،که صحت اوقوت اجازت ورکوي؛ نودهغې په مسلسل نیولوکې نقصان نشته، بلکه ترکومې پورې چې ممکن وی نو زر تر زره قضا نیول بهتردي، ګنې چې څنګه درته سهولت وي هغسې یې ونیسئ![4]

## که په ټول عمرکې که هم قضاروژې پوره نه شي نود خپل مال نه دې وصیت وکړي

**سوال:** په رمضان المبارک کې چې کومې روژې دمجبوری نه پاتې شي هغه ماتراوسه پورې ونه نیولې،ان شاء الله داخل به یې نیسم اوتیرې شوې کومې روژې چې پاتې وې دهغې له پاره

---

۱ ] الحیض والنفاس یفسدان الصوم فیوجب القضاء دون الکفارة .(عالمگیری ج:۱ص:۲۰۹،کتاب الصوم)

۲ ]فصلاة التراویح فی لیالی رمضان .......الخ (البدائع الصنائع ج:۱ص:۲۸۸ (فصل) وامابیان ان السنة)_

۳ ] (فصل) وامابیان ادائها اذا فاتت عن وقتها هل تقضی ام لا.......والصحیح انها لاتقضی لانهالیست باکد من سنة المغرب والعشاء وتلک لاتقضی فکذلک هذه (البدائع الصنائع ج:۱ص:۲۹۰(فصل) وامابیان ادائها)

٤ ] تتابع القضاء :اتفق اکثرالفقهاء علی انه یستحب موالاة القضاء اوتتابعه لکن لایشترط التتابع والفورفی قضاء رمضان فان شاء فرقه وان شاء تابعه لاطلاق النص القرآنی الموجب للقضاء......الخ (الفقه الاسلامی وادلته ج:۲ص:۶۸۰ کذافی فتح القدیر ج:۲ص:۸۱)_

دالله تعالی نه معافي غوارم،پوښتنه مې داوه چې تيرشوې روژې کومې چې پاتې شوې دي دهغو له پاره يوازې توبه کول کافي دي ياکفاره به هم اداکول وي؟يابيابه هغه روژې نيول وي؟ماته داهم ياد نه دي چې څومره دي؟

**جواب:** الله تعالی دې تاسوته دخير بدله درکړي تاسوديوې داسې مسئلې پوښتنه کړې ده چې دهغې ضرورت ټولومسلمانو ښځوته دی اوپه کومه کې چې عموماًزموږ ميندې خويندې دغفلت نه کار اخلي اود ښځو کومې روژې چې دخاص عذرله وجې نه پاتې شي دهغو قضاواجب ده اوکه دسستي اوکوتاهي له وجې نه يې قضا ونه نيولې؛ نوترمرګه پورې به دهغې په ذمه وي،په توبې او استغفار سره په روژو کې دتاخيرګناه خوبه معاف شي؛خو روژې به درته معاف نه شي،هغه به موږه ذمه وي اداکول يې فرض دي،البته په دې کې تاخيراوکوتاهي دوجې نه به کفاره نه لازميږي[1] دکله نه چې په تاباندې لمونځ او روژه فرض شوي دي دهغه وخت نه چې درمضان څومر روژې پاتې شوې دي، دهغو حساب ولګوئ اوبيادهغې قضانيول شروع کړئ،ضروري نه ده چې پرله پسې يې ونيسئ، بلکې کله چې هم موقعه درته ملاوشي قضاروژې نيسئ اونيت کوئ چې دټولونه دلومړي رمضان کومه قضاروژه چې زماپه ذمه وه دهغې قضانيسم اوکه خدای مه کړه په ټول عمرکې هم هغه روژې پوره نه شي؛ نووصيت کول فرض دي چې زماپه ذمه دومره روژې باقي دي دهغو فديه دې زمادمال نه ورکړل شي[2]اوکه تاته يادنه دي چې دکله نه ستاپه ذمه روژې فرض شوي دي؛ نودخپل عمردلسم کال نه د روژو حساب ولګوئ اوپه هرمياشت کې چې څومره ورځې ستانه پاتې کيږي دهغومره ورځو د ټولو کالونو حساب ولګوئ!

## که د ناوغې په دوران کې څوک د روژې پوښتنه وکړئ خبره په بله اړوئ

**سوال:** په خاصو ورځو(حيض)کې کله زه اوزماخويندې روژې نه نيسي؛ نو پلار،وروريابل څوک پوښتنه کوي ،موږ ورته وايوچې روژه مو ده، موږ باقاعده دټولوسره پيشمنی کوو اوکه دورځې څه خوراک څښاک کول وي؛ نوپه پټه يې کوو.ياکله يې خورو هم نه،نو آيازموږ داسې کولو سره به موږ ته دروغوسزاملاويږي،هرکله چې موږ داسې دشرم له وجې کوو.

**جواب:** په داسې خبروکې شرم اوحياخوښه خبره ده،مګرپه ددې ويلوپه ځای چې زموږ روژه ده، څه داسې فقره دې وويل شي چې دروغ نه وي،مثلاً داسې دې وويل شي چې موږ خو دټولو سره يوځای پيشمنی کړی.

---

[1] والحيض والنفاس يفسدان الصوم فيوجب القضاء دون الكفارة(قاضی خان علی هامش الهندية ج:۱ص:۲۰۹)

[2] وقضوا لزومًا ماقدروا بلافدية وبلا ولاء ......الخ ...... ولوماتوا بعد زوال العذر وجبت الوصية بقدر ادراكهم عدة من ايام آخر......الخ (درمختارمع الشامی ج:۲ ص:۴۲۳،۴۲۴،ايضًامراقی الفلاح ،فصل ف اسقاط الصلاة والصوم ص:۲۳۷)۔

## د ښځو ته د کفارې د روژو وخت کې بیماري (حیض) راتلل

**سوال:** یو ښځې په رمضان کې قصداً روژه ماته کړه اوس کفاره ورکول غواړي. د کفارې روژې یې شروع کړې نو په مینځ کې یې حیض شروع شو ایا هغې ته به بیا روژې له سره شروع کول وي؟

**جواب:** د کفارې شپیته روژې متواتر (پرلپسې) نیول ضروري دي، که په مینځ کې یوه ورځ هم ناغه وشوه نو ټیرې ټولې روژې به ختمې شي او دنوې سرنه به بیا شپیتهٔ روژې پوره کول ضروري وي، خو د ښځو د حیض په ورځوکې چې کومه جبري ناغه وشي هغه معاف دهٔ، د حیض په ورځوکې دې روژې پریږدي او د پاکیدونه وروسته دې بغیر د وقفې نه روژې نیول شروع کړي. تردې پورې چې شپیته روژې پوره شي.[1]

# ❖ کوموشیانو سره روژه ماتیږي یا مکروه کیږي ❖

## په هیره خوراک کوونکی یا قی کوونکی که قصداً څه وخوري نو یوازې قضا به راوړي

**سوال:** فرض کړئ چې زید په هیره ډوډۍ وخوړه او روسته ورته یادشوچې دهغه روژه وه، اوس هغه دا او ګڼله چې روژه خو یاتې نه شوه نو نور څه خوراک یې وکړ؛ نو آیا د قضا سره کفاره به هم وي؟ همدغه شان که چاقي (ولټو) کولو نه وروسته قصداً څه خوراک څښاک وکړ؛ نو څه حکم دی؟

**جواب:** چا په هیره څه او خوړل او دا يې او ګڼل چې روژه مې ماته شوله، قصداً یې څه وخوړل نو قضا واجبیږي، همدغه شان که چاقی وکړ، او بیا یې دا خیال راغی چې روژه خو ماته شوه څه یې وخوړل، نو په دې صورت کې به قضا واجبیږي او کفاره به نه واجبیږي. خو که هغه ته دا مسئله معلومه وه چې قي سره روژه نه ماتیږي او د دې باوجود یې خوراک وکړا و په دې صورت کې د هغه په ذمه قضا او کفاره دواړه لازمیږي.[2]

---

١ ] قوله ککفارة المظاهرمرتبط بقوله وكفر......فان لم يجدصام شهرين متتابعين ......فلو افطر ولولعذر استانف الا لعذر الحيض .(شامى ،مطلب فى الكفارة ج:٢ص:٤١٢)٠ صام شهرين متتابعين ......فان افطرولوبعذرغيرالحيض استانف ويلزمها الوصل بعد طهرهامن الحيض حتى لولم تصل استانف ذكره السيد (حاشية الطحطاوى فصل فى الكفارة ومايسقطها ص:٣٦٦)_

٢ ] او اكل.....ناسيًااوذرعه القيى فظن انه افطرفاكل عمدًا للشبهة ولوعلم عدم فطره لزمته الكفارة ... الخ (درمختارمع الشامى ج:٢ص٤٠١،٤٠٢)،لو اكل اوشرب اوجامع ناسيًا وظن ان ذلك فطره فاكل متعمدًا لاكفارة عليه وان علم ان صومه لاتفسدبالنسيان عندابى حنيفة رحمه الله لاتلزمه وهوالصحيح .ولوذرعه القىء فظن انه يفطره فافطر لاكفارة عليه ،وان علم ان ذلك لايفطره فعليه الكفارة كذافى البحرالرائق .(فتاوى عالمگیری ج:١ص:٢٠٦كتاب الصوم،الباب الرابع فيمايفسدومالايفسدوممايتصل بذلك مسائل،طبع رشيديه)

## که په غلطي سره يې روژه ماته کړه نو يوازې قضا واجب ده کفاره نشته

**سوال:** يوځل په رمضان المبارک زما سره يوه حادثه وشوه،چې زما روژه وه چې د مازيګر لمونځ مې وکړ؛نوراغلم اوتلاوت ته کېيناستم، پنځه بجې مې تلاوت ختم کړ،اوذروژه ماتي په سلسله کې په کار کې لګياشوم،واضحه دې وی چې زه په کور کې يواځې اوسيږم. سالن وغيره مې تيار کړ، حسب معمول څه لږ شان پيي اوشربت مې جوړ کړ،اودباورچي خانې(پخلنځاى) نه واپس راغلم،نوپه ګړۍ کې پنځه نيمې بجې وې،اوس زما په خيال کې راغلل چې چونکې روژه ماتې په لس منټه کم شپږ بجې باندې وي په څلويښت منټه کې څه پکوړې پخې کړم.خيردخيال مطابق څلويښت منټه باندې باورچي خانې ته لاړم،اوپکوړې پخول مې شروع کړلې،په لس منټه شپږ بجې مې ټول سامان دروژه ماتی په ميزباندې کېښنوداوکېيناستلم، مګراذان مې وانوريد ، ائرکنډيشنډمې بندکړ بيا هم څه آواز رانه غې، بيا په ټليفون باندې وخت معلوم کړ ۵:۵۵ شوې وې،ماوګڼله چې اذان اوريدل شوى نه دی، ممکنه ده چې مائک خراب وي يابل څه عذروي،اوروژه مې ماته کړه.بيا د ماښام لمونځ مې وکړ،دلته کويت اردوسروس اووبجې شروع کيږي،دروژه ماتي نه پس مې هغه ولګولومګرهغه هم اونه لګيدو،په دې دروان کې بي بي سي اولګيده،اوزماخيال راغې چې روژه خو په لس منټه کم اووبجې باندې ماتيږي،پس دافسوس اوپښيماني نه پرته څه کولی شم، بيامې خوله کنګال کړه څومنټه باقي وو ،دوباره مې روژه ماته کړه اودماښام لمونځ مې وکړ.
مهرباني وکړئ اوماته ددې غلطي په باره کې ووايئ،چې زماروژه ماته شوې ده نو قضا واجب ده ياکفاره هم؟اوکه کفاره واجب وي نوزه اګرچې صحت مندیم بياهم شپيتو مسکينانو باندې خوراک کولی شم؟ په تفصيل سره جواب راکړئ مولاناصاحب!زه په دې نه پوهيږم چې د ۵:۵۰ په ځای ۶:۵۰ د روژه ماتی ټايم وګڼلواو خپل خيال مطابق مې روژه ماته کړه.

**جواب:** ستاروژه ماته شوه،مګرچونکې په غلط فهمي کې دې ماته کړې ده، له دې وجې ستاپه ذمه صرف دقضاروژه واجب ده کفاره نه ده.[1]

## که حلق ته وينه لاړه نو روژه ماته شوه

**سوال:** که څوک د روژې په حالت کې ووا ود ووريونه يې وينه راشي اود حلق نه تيره شي؛ نوپه داسې حالت کې په روژه څوڅه خراب اثرنه پريوځي؟خاص کردنيت په حالت کې.

---

۱ ] اوتسحر اوافطريظن اليوم اى الوقت الذى اكل فيه ليلاوالحال ان الفجرطالع والشمس لم تغرب (درمختار) وفى الشامية :اى يجب عليه القضاء دون الكفارة لان الجناية قاصرة ......الخ (درمختارمع الشامى ج:۲ص:٤٠٥ ،باب مايفسد الصوم ومالايفسده،وايضًا:عالمگيرى ج:۱ص:۲۰٦ ،کتاب الصوم ،طبع رشيديه)

**جواب:** که یقین وي چې وینه حلق ته تللې ده؛ نو روژه فاسده شوه دوباره نیول به یې ضروري وي.[1]

## روژه کې په مخصوص ځای دوايي کېښودو سره روژه ماتیږي

**سوال:** ځینې دوایانې چې په مخصوصو ځایونو کې دپاکي نه وروسته کېښودل کیږي، کومې ته چې دطب په اصطلاح کې «شیاف» وایي، ددې مسئلې معلومات غواړم چې ددې په استعمال سره په روژه څه اثرپرېوځي؟ آیا روژه کیږي؟

**جواب:** دروژې په حالت کې داعمل درست نه دی، دې سره روژه ماتیږي.[2]

## د لامبو په وخت کې په خوله کې اوبه تللو سره روژه ماتیږي

**سوال:** آیا د لامبو په وخت کې اوبه خوله کې تلوسره روژه ماتیږي؟ که غلطي سره وي یا قصداً وی؟

**جواب:** اودسیا غسل کولو په وخت کې که په غلطي سره اوبه حلق ته لاندې لاړې شي؛ نوروژه ماتیږي مګرپه دې صورت کې یوازې قضالازمه ده، کفاره نشته.[3]

## په روژه کې په هیره باندې خوراک څښاک کول

**سوال:** که څوک په روژه کې په هیره سره اوبه وڅښي یا بل څه شی وخوري او ده ته خیال نه وي راغلی چې دده روژه ده، نو د دې به څه کفاره اداء کول وي؟

**جواب:** که په هیره سره خوراک څښاک وکړل شي ؛نو دده روژه نه ماتیږي[4] آو که چیرې په خوراک کې یاد شي نو د یاد راتلو نه فوراً پس دې پرېږدي،خو که چیرې روژه خو یاده وي لیکن په غلطي سره اوبه د تالو نه کښته لاړې شي؛ نو روژه به یې فاسده شي.[5]

---

۱ ] اوخرج الدم من بین اسنانه ودخل حلقه یعنی ولم یصل الی جوفه امااذاوصل فان غلب الدم اوتساویا فسددوالا لا......الخ (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۳۹٤،باب مایفسدالصوم ومالایفسده)۔

۲ ] ومن احتقن او استعط او اقطر فی اذنه دهنا افطر ولا کفارة علیه هکذا فی الهدایة .(هندیة ج:۱ص:۲۰٤)۔

۳ ] لواکل مکرهااومخطئاعلیه القضاء دون الکفارة کذافی قاضی خان...... وان تمضمض واستنشق فدخل الماء جوفه ان کان ذاکرًا لصومه فسدصومه وعلیه القضاء ......وکذا اذا اغتسل فدخل الماء حلقه کذافی السراج الوهاج .(هندیة ج:۱ص:۲۰۲،کتاب الصوم ،الباب الرابع فیمایفسدومالایفسد)۔

۴ ] اذا اکل الصائم اوشرب اوجامع ناسیًا لم یفطر (عالمگیری ج:۱ص:۲۰۲،کتاب الصوم ،الباب الرابع)

۵ ] وان تمضمض او استنشق فدخل الماء جوفه ان کان ذاکرًا لصومه فسدصومه وعلیه القضاء.....الخ (عالمگیری ج:۱ص:۲۰۲،کتاب الصوم ،الباب الرابع فیمایفسدومالایفسد)

## په روژه کې فرض غسل سره په نوم یا غوږ کې اوبه اچول

**سوال:** په روژه کې د فرض غسل کولو په وخت په نوم او یا غوږ کې دننه اوبه اچولو سره روژه خو ماتیږي نه؟

**جواب:** په نوم کې په اوبو اچولو سره هیڅ نه کیږي او که چیرې اوبه په غوږ کې دننه شوې او دماغو ته ورسیدې نو روژه یې ماتیږي [1]

## په روژه کې غرغرې کول اوپه پوزه کې پورته اوبه راښکل منع دي

**سوال:** د روژې په حالت کې غرغرې کول اوپه پوزه کې اوبه پورته راښکل منع دي ،اوس پوښتنه داده چې هغه بالکل معاف دی یابل وخت کول پکار دي؟

**جواب:** دروژې په حالت کې غرغرې کول اوپه پوزه کې اوبه پورته راښکل منع دي،دې سره دروژې د ماتیدو قوی ویره ده.که غسل فرض وي، نوکلی دې وکړی په پوزه دې اوبه هم واچوی مګر د روژې په حالت کې دې غرغرې نه کوي،نه دې په پوزه کې پورته پورې اوبه کش کوي.[2]

## د روژې په حالت کې سګریټ یا چلم څښلوسره روژه ماتیږي

**سوال:** روژه دارکه سګریټ یاچلم وڅښي نو آیادې سره روژه ماتیږي؟

**جواب:** دروژې په حالت کې سګریټ یاچلم څښلوسره روژه ماتیږي.که داکاریې قصداً وکړ؛ نو قضا اوکفاره دواړه لازمیږي.[3]

## که داسې شی تیرشي چې غذا یا دوا نه وي نوصرف قضابه واجب وي

**سوال:** دزیدروژه وه.دهغه سکه تیره شوه،اوس پوښتنه داده چې ایا روژه ماته شوه؟اوصرف قضا واجبیږي؟

---

[1] فی الدرالمختار:اودخل الماء فی اذنه وان کان بفعله علی المختار۰وفی الشرح:اختاره فی الهدایة والتبیین وصححه فی المحیط وفی الولوالجیة انه المختاروفصل فی الخانیة بانه ان دخل لایفسدوان ادخله یفسدفی الصحیح لانه وصل الی الجوف بفعله فلایعتبرفیه صلاح البدن ،ومثله فی البزازیة واستظهره فی الفتح والبرهان شرنبلالیة ملخصًا۰والحاصل الاتفاق علی الفطربصب الدهن وعلی عدمه بدخول الماء واختلف الصحیح فی ادخاله نوح (شامی ج:۲ص:۳۹۶)

[2] وکذاتکره المبالغة فی المضمضة والاستنشاق....الخ (هندیة ج:۱ص:۱۹۹،الباب الثالث فیمایکره للصائم)

[3] ویفطر بتناول الدخان المعروف ونحوه کالتمباک والنشرق......الخ (الفقه الاسلامی وادلته ج:۲ص:۶۶۵، کتاب الصوم وفی الشامیة ج:۲ص:۳۹۵،کتاب الصوم ،باب مایفسدالصوم ومالایفسده)_

**جواب:** څه داسې شی یې تیر کړچې بطورغذا یادوا نه استعمالیږي؛ نو روژه ماته شوه اوصرف قضالازمیږي، کفاره واجب نه ده.[۱]

## د پیشمنی نه مخکې که څه شی په خوله کې کیښودل شواو ویده شو نود روژې څه حکم دی؟

**سوال:** درمضان شریف په میاشت کې چهالیه مې په خوله کې کیښودله اوپه بستره څملاستم، دامې خیال ووچې دابه دخولې لرې کړم اوروژه به اونیسم،ناګهانه سترګې مې ورغلې،اوخوب راباندې غالب شو،کله چې دپیشمنې وخت تیرشوی و؛نوهغه وخت کې بیدارشوم،اوچهالیه مې دخولې نه لرې کړه اوخوله مې صفاکړه، اوکلی مې اوکړله.ایازماروژه وشوه؟

**جواب:** روژه ونه شوه،قضا راوړه![۲]

## د چنې د دانې برابر د غوښې ریشې که په غاښونو کې وینښتې اوتیرې شوې نو روژه ماته شوه

**سوال:** یوه ورځ ماپه پیشمنې کې غوښه وخوړه اودهغې څه ریشې مې په غاښونوکې پاتې شوې،سحرڅه ریشې خومادغاښونونه راویستلې اوتیرې مې کړلې.اوس تاسوراته اووایئ چې روژه مې ماته شوه؟

**جواب:** په غاښونوکې دغوښې ریشې یاڅه شی پاتې شوي وو.اوپه خپله تیرشو،نوکه دچنې د دانې برابریاددې نه زیات وي؛ نو روژه ماته شوه،اوکه ددې نه کم وي؛ نوروژه نه ماتیږي[۳]. او که دبهرنه څه شی یې په خوله کې واچولواوتیریې کړ،که کم وي یازیات وي ،روژه ماته شوه[۴]

## د روژې په حالت کې په اوبو کې کیښاستل او تازه مسواک وهل

**سوال:** ایادروژې په حالت کې باربارترډیره وخته پورې په اوبوکې کیناستل یا باربارکلي کول، یا تازه مسواک مثلاً:نیم، کیکریا پیلوغیره کول،یامنجن کولوسره روژې ته څه نقصان خونه رسیږي؟

---

۱ ] اوابتلع مالایتغذی به ولایتداوی به عادة فسده صومه ولزمه القضاءولاکفارة علیه ......الخ (البحرالرائق ج:۲ص:۲۹۵،وکذا فی الهندیة ج:۲ص:۲۰۲الباب الرابع فیمایفسدالصوم ومالایفسد،کتاب الصوم)۔

۲ ] اذابقیت لقمة السحورفی فیه فطلع الفجر...... وان آخرجها......لاکفارة علیه ......الخ (هندیة ج:۱ ص:۲۰۳، کتاب الصوم الباب الرابع)۔

۳] وان اکل مابین اسنانه لم یفسدان کان قلیلاً وان کان کثیرًا یفسدوالحمصة وما فوقها کثیر وما دونها قلیل ......الخ (هندیة ج:۱ص:۲۰۲،کتاب الصوم ،الباب الرابع)۔

٤] وان ابتلع من الخارج یفسد...الخ (هندیة ج:۱ص:۲۰۳،کتاب الصوم ،وکذا فی الشامیة ج:۲ص:٤۱۵)

**جواب:** دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدمسواک مکروه خونه دی[۱]،مګر باربار کلي کول، او ډېر ساعت پورې په اوبوکې کیناستل مکروه دي.[۲]

## که د چا ښځې لیدو یا ښکلولو سره انزال وشي نو د روژې څه حکم دی؟

**سوال:** بغیر دجماع نه که انزال وشي؛ نو آیاروژه ماتیږي؟

**جواب:** که یوازې لیدوسره انزال وشي نوروژه نه فاسدیږي[۳]خو لمس، مصافحه، او تقبیل (بوسه اخیستوسره)که انزال وشي،نوروژه فاسدیږي اوصرف قضاواجبیږي کفاره نه لازمیږي[۴]

## روژه دار که استمنا بالید(جلق ) وکړي نوآیا کفاره به وي؟

**سوال:** په رمضان المبارک کې کفاره یوازې قصداً جماع کولوسره وي؟ اوکه یوکس دخپل لاس په ذریعه ذروژې په حالت کې خپل مني وباسي؛ نویوازې قضالازمیږي که کفاره هم؟

**جواب:** کفاره صرف دخوراک، څښاک شیانو یاجماع سره لازمیږي[۵]،د لاس استعمال سره یې که روژه خرابه کړه؛ نوپه دې صورت کې یوازې قضا لازمیږي.[۶]

# ❖ کومو څیزونوسره روژه نه ماتیږي ❖

## انجکشن سره روژه نه ماتیږي

**سوال:** تیرشوي رمضان کې شیشې سره زمالاس زخمي شوی و، زخم ډیرزیات و،ډاکټرتانکې لږولونه پس ماته انجکشن هم ولګوله اوڅه دوايي را بوی کړه،داوبوڅښلوله پاره راته ډاکټر صاحب اصرار اوکړلو مګر ما د روژې له وجې نه اوبه ونه څښلې دهلته نه چې اوزګارشوم نویومولوي صاحب ته ورغلم هغوی ته مې ذکر وکړچې ماته ستن لګول شوې ده،اوبیاتانکې

---

۱]ولاباس بالسواک الرطب والیابس فی الغداة والعشی عندنا.....الخ (هندیة ج:۱ص:۱۹۹، الباب الثالث)

۲ ] عن ابی حنیفة رحمه الله تعالی انه یکره للصائم المضمضة والاستنشاق بغیروضوء وکره الاغتسال وصب الماء علی الراس ......الخ (هندیة ج:۱ص:۱۹۹،الباب الثالث فیمایکره للصائم ،کتاب الصوم)_

۳ ]واذا نظرالی امراءة بشهوة فی وجههااو فرجها کررالنظراولا لایفطراذا انزل کذافی فتح القدیر (هندیة ج:۱ص:۲۰٤،الباب الرابع فیمایفسدومالایفسد)_

٤ ] واذاقبل امراته وانزل فسدصومه من غیرکفارة کذافی ا لمحیط ......والمس المباشرة والمصافحة والمعانقة کالقبلة کذافی البحرالرائق (هندیة ج:۱ ص:۲۰٤ ،الباب الرابع فیمایفسدومالایفسد،کتاب الصوم)_

٥ ] من جامع عمدًافی احدالسبیلین فعلیه القضاء والکفارة ......اذاکل متعمدًا مایتغذی به اویتداوی به یلزمه الکفارة.....الخ (هندیة ج:۱ص:۲۰٥ ،ایضًا:فتاوی شامی ج:۲ص:۳۹٤،باب مایفسدالصوم ومالایفسد)_

٦ ] الصائم اذاعالج ذکره حتی امنی فعلیه القضاء وهوالمختار وبه قال عامة المشائخ کذافی البحرالرائق (هندیة ج:۱ص:۲۰٥ ،الباب الرابع فیمایفسدومالایفسد،کتاب الصوم)_

ولګول شوې، نوهغه راته وویل چې ستاروژه ماته شوې ده،په خپله یې زماله پاره پې اوډبل روټۍ راوړه اوویې ویل چې اوخوره،او ما وخوړله؛نو آیا ددې روژې په بدله کې به صرف قضا وي؟او زما دا عمل صحیح شواوکه نه؟

**جواب:** دانجکشن سره روژه نه ماتیږي[۱]،خو تاچونکې دمولوی صاحب په فتوا باندې عمل کړی دی، له دې وجې نه ستاپه ذمه قضاشته کفاره نشته.[۲]

## روژه دارکه په ژبه څه شی وڅاکه اوتوبې کړ نوروژه نه ماتیږي

**سوال:** .که چاروژه داردروژې په حالت کې څه شی وڅاکه نودهغهٔ دروژې څه حکم دی؟

**جواب:** که په ژبه یې دڅه شي ذائقه وڅکله او توبې کړ؛ نوروژه نه ماتیږي مګربې ضرورته داسې کول مکروه دي.[۳]

## د خولې نه راوتلې وینه که د لاړو نه کمه وي نوروژه نه ماتیږی

**سوال:** .یوځل په رمضان کې زمادخولې نه ویناراووتله،اوماهغه تیره کړه،ماته چاوویل چې ستاروژه ماته شوه،ایاواقعي زماروژه ماته شوه؟

**جواب:** که وینه راوتله اوهغه دې دلاړوسره تیره کړه نوروژه ماته شوه، البته که دوینې مقدار د لاړونه کم وي او په ژبه دې دهغې ذائقه محسوس نه کړه، نوروژه ماته نه شوه.[۴]

## په روژه کې د لاړو تیرولو حکم

**سوال:** دروژې په حالت کې اکثروختونوکې مې په خوله کې ډیرې لاړې راځي،آیا په داسې حالت کې لاړې تیرولې شم؟ځکه چې دلمونځ کولوپه دوران کې په داسې حالت کې ډیرمشکل سره مخ کیږم؟

**جواب:** لاړې تیرولوسره روژه نه ماتیږی،مګرلاړې جمع کول اوتیرول مکروه دي.[۵]

## که بلغم خیټې ته لاړشي نوروژه نه ماتیږی

**سوال:** دیوکس نزله وي،اوهغه روژه نیولې وي،اولازمي ده چې په نزله کې بلغم به هم راځی،

---

۱] ومایدخل من مسام البدن من الدهن لایفطرهکذا فی شرح المجمع(هندیة ج:۱ص:۲۰۳،کتاب الصوم،الباب الرابع)

۲ ] واذا اکتحل اودهن نفسه اوشاربه ثم اکل متعمدًا فعلیه الکفارة الا اذا کان جاهلاً فافتی له بالفطر فلاتلزمه الکفارة هکذا فی فتاوی قاضیخان .(هندیة ج:۱ص:۲۰۶، کتاب الصوم)۔

۳ ] وکره ذوق شیء ومضغه بلاعذرکذافی الکنز (فتاوی هندیة ج:۱ص:۱۹۹کتاب الصوم ،الباب الثالث)

٤ ] الدم اذا خرج من الاسنان ودخل حلقه ان کانت الغلبة للبزاق لایضره وان کانت الغلبة للدم یفسد صومه......الخ (هندیة ج:۱ص:۲۰۳،کتاب الصوم ،الباب الرابع فیمایفسده ومالایفسد)۔

۵ ] ویکره للصائم ان یجمع ریقه فی فمه ثم یبتلعه کذافی الظهیریة (هندیة ج:۱ص:۱۹۹، کتاب الصوم)۔

که اتفاق سره بلغم د هغه خیټې ته لاړشي؛ نو آیا په دې صورت کې د هغه روژه ماتیږي؟
**جواب:** نه![1]

## بې ارادې که د حلق د ننه مچې، دوړه، ګردوغبار وغیره ننوتل نوروژه نه ماتیږي

**سوال:** که دچاحلق کې مچې ننوځي نوروژه ماته شوه؟

**جواب:** که حلق ته ددننه مچې ورغله یادوړه په خپله ورغله یاګردوغبار لاړشي نوروژه نه ماتیږي اوکه قصدایې داسې وکړل نوروژه ماتیږي.[2]

## پوزه او غوږکې دوایي اچولوسره روژه ماتیږي

**سوال:** سترګه،پوزه اوغوږکې دوایي اچولوسره په روژه باندې څه اثرپریوځي،زخم باندې دوایي لګولوسره روژه ماتیږي یانه؟دوایي که وچه یادمرهم په شکل کې وي؟
**جواب:** په سترګوکې دوایي اچولوسره[3]یاپه زخم باندې مرهم لګولو سره یادوایي لګولوسره په روژې هیڅ فرق نه پریوځي،خو پوزه اوغوږکې دوایي اچولوسره روژه فاسدیږي[4]،اوکه زخم په خیټه کې یاپه سرکې وي ،په هغه باندې دوایي لګولوسره دماغ یاخیټې ته دننه دوایي ورننوځي نوروژه ماتیږي.[5]

## د روژې په حالت کې په غوږکې دوایي اچولو سره قضاء لازمیږي

**سوال:** ما د پیشمني دوخت ختمیدو نه تقریباً نیمه ګنټه وروسته د سهار د لمونځ نه مخکې د مسئلې دمعلوملوپه سبب په غوږ کې دوایي واچوله په دې باندې قضاء لازمیږي اوکه کفاره؟
**جواب:** صرف قضاء لازمیږي کفاره نه؟

---

۱ ] ولودخل مخاط انفه من راسه ثم استشمه فادخل حلقه عمدًا لم یفطره لانه بمنزلة ریقه کذافی محیط السرخسی .(هندیة ج:۱ص:۲۰۳،کتاب الصوم الباب الرابع)_

۲ ] اودخل حلقه غباراوذباب اودخان ولو ذاکرًا استحسانالعدم امکان التحرزعنه،ومفاده انه لوادخل حلقه الدخان افطر ای دخان کان ......الخ (درمختارمع ا لشامی ج:۲ص:۳۹۵،کتاب الصوم ،وکذافی الهندیة ج:۱ص:۲۰۳)_

۳ ] ولواقطرشیئًامن ا لدواء فی عینه لایفطرصومه عندناوان وجدطمعه فی حلقه.....الخ (هندیة ج:۱ص:۲۰۳)_

٤ ]ومن احتقن اواستعط او اقطرفی اذنه دهناافطرولاکفارة علیه کذافی الهدایة .(هندیة ج:۱ص:۲۰٤)_

٥ ] وفی دواء الجائفة والآمة اکثرالمشائخ علی ان العبرة للوصول الی الجوف والدماغ ......الخ (هندیة ج:۱ص:۲۰٤، کتاب الصوم ،الباب الرابع فیمایفسدومالایفسد)_

## د روژې په حالت کې په خلاصو سترګو او ودس کول

**سوال:** آیا د روژې په حالت کې سترګې خلاصول او ودس کول جائز او درست دي؟

**جواب:** جائز دي.

## سترګو کې دوايي اچولو سره روژه ولې نه ماتيږي؟

**سوال:** ...تاسو دیوسائل په جواب کې فرمایلي وچې: په سترګو کې دوايي اچولو سره روژه نه ماتیږي، هرکله چې په غوږ کې دوا اچولو سره روژه ماتیږي، په دې سلسله کې عرض دی چې په سترګو کې دوا اچولو سره دهغې بوی اودوا حلق پورې رسیږي هرکله چې په غوږ کې اچولو سره حلق نه متاثرکیږي، لهذا درخواست دی چې په دې مسئله باندې نظرثاني وکړئ اوجواب راته راکړئ!

**جواب:** د دوباره کتلو نه پس هم مسئله هماغه ده دفقهې په کتابونو کې لیکل شوي دي چې په سترګو کې دوا واچول شي؛ نودوا مخامخ دماغ یاحلق ته نه رسیږي، له دې وجې دې سره روژه نه ماتیږي[1] اوپه غوږ کې دوا اچولو سره روژه ماتیږي.[2]

## په روژه کې په هیره سره خوراک څښاک کولو سره روژه نه ماتیږي

**سوال:** که څوک په هیره سره په روژه کې اوبه وڅښي یاڅه بل څه شی وخوري اودهغه خیال نه وي چې روژه یې ده، خو وروسته هغه ته رایادشي چې دهغهٔ روژه ده، نو ووایئ چې ددې به څه کفاره اداکول وي؟

**جواب:** که په هیره سره یې څه خوراک څښاک وکړ؛ نوروژه ورسره نه ماتیږي که خوراک کولو کې ورته وریادشونودیادراتلوسره دې فوراً پریږدي[3] خوکه روژه یې یاده وي اوپه غلطي سره یې اوبه دحلق نه دننه لاړلې نوروژه یې فاسدشوه.[4]

## که روژه دار په هیره سره کوروالی وکړي نو د روژې څه حکم دی؟

**سوال:** د یو مولانا صاحب یومضمون ,,فضائل ومسائل رمضان المبارک،، شائع شوی دی، چې په هغه کې دنوروخبرونه پرته مولاناصاحب ددې شیانوپه باره کې لیکلي چې روژه ورسره نه فاسدیږي اونه مکروه کیږي، هلته یې فرمایلي دي چې په هیره کوروالي کولو سره روژه نه

---

۱ ]ولواقطرشیئًامن ا لدواء فی عینه لایفطرصومه عندناوان وجدطعمه فی حلقه....الخ (هندية ج:۱ص:۲۰۳)

۲ ]ومن احتقن اواستعط او اقطرفی اذنه دهناافطرولاکفارة علیه کذافی الهداية .(هندية ج:۱ص:۲۰۴)ـ

۳ ]اذا اکل الصائم اوشرب اوجامع ناسیًا لم یفطر......کذافی الهداية .(هندية ج:۱ص:۲۰۲)ـ

٤ ] وکذا اذا اغتسل فدخل الماء حلقه (فسدصومه) .کذافی السراج الوهاج .(هندية ج:۱ص:۲۰۲،کتاب الصوم الباب الرابع فیمایفسدومالایفسد،وکذافی الدرمع الردج:۲ ص:۳۹٤،باب مایفسدومالایفسده)ـ

فاسد یږي او نه مکروه کیږي، زما په خیال کې هم بستری دیو کس هیره نه شي کیدای په دې کې دوه کسان شریکیږي اوچېرته چې دیو کس نه زیات افرادشریک شي او ددې قسمه عمل دروژې په حالت کې کړل شي هغې ته ګناه ضرور ویل کیدای شي.هیره نه،په دې سلسله ستاسورایه داسلامی قوانینو په رڼا کې خلکوته اطمینان ورکولای شي،شکریه.

**جواب:** دهیرې معنی داده چې داورته یادنه وي چې زماروژه ده،په هیره هم بستری په دې صورت کې کیدای شي چې دواړوته یادنه وي، ګنی یوبل ته وریادولی شي.او د یاد راتلو نه پس،، د هیریدو، څه معنا پاتې نه شوه،ددې وجې نه دمولاناصاحب مسئله خوصحیح ده،مګرداسې کار کله ناکله کیږی.ددې وجې نه ته حیرانیږې.[۱]

## په غوږنه او رګ کې د انجکشن لګولو حکم

**سوال:** کوم انجکشن چې ډاکټرپه لاسونوکې لګوي ایادهغه سره روژه ماتیږي؟ اوداچې دغوږنې والاانجکشن اورګ والاانجکشن ددې دواړو یوحکم دی او که جداجدا؟

**جواب:** یوانجکشن لګولوسره هم روژه نه ماتیږي اودرګ اوغوږنې دواړو انجکشن یوحکم دی.[۲]

## د روژې په حالت کې انجکشن لګول او د ساه په ذریعه دوایي راښکل

**سوال:** زه دساه دعلاج له پاره یوه دوایي استعمالوم.چې دپوډرو په شکل کې وي،اوهغه دورځې دریونه واخله تر څلورو ځلو پورې دساه په ذریعه راښکل وي،دې عمل سره زیا تره دوایي دساه په ذریعه پیپهټړو(سږو)ته داخلیږي،خوڅه مقداردحلق پورې اینښلي،اوظاهره ده چې وروسته بیاخیټې ته لاړه شي، مهرباني وکړئ اودا ووایئ چې دروژې په حالت کې ددې دوایي استعمال جائزدی اوکه نه؟

نورداچې که دروژې په حالت کې دساه دبیمارۍ حمله راشي نودهغې له پاره انجکشن لګول کیدای شي اوکه نه؟(دې انجکشن سره به روژه برقرارپاتې شي یا به ماته شي)

**جواب:** دادوایي دپیشمنی بندیدونه مخکې استعمالولی شئ،دوایي چې وخورئ نوښه خوله صفاکړئ،بیاکه څه په حلق کې پاتې شي نوڅه نقصان پکې نشته[۳]،خو که څه دوائی دحلق بیروني برخې پورې لګیدلې وي؛ نوهغه حلق ته مه بوځئ،دروژې په حالت کې ددې دوایي

---

۱ ] اذا اکل الصائم اوشرب اوجامع ناسیًا لم یفطر......کذافی الهدایة .(هندیة ج:۱ص:۲۰۲)۔

۲ ] ومایدخل من مسام البدن من الدهن لایفطرهکذا فی شرح المجمع .(هندیة ج:۱ص:۲۰۳)۔

۳ ](قوله ونطعم ادویة) ای لوذاق دواء فوجدطعمه فی حلقه زیلعی وغیره فی القهستانی طعم الادویة وریح العطراذا وجدفی حلقه لم یفطر کذا فی المحیط (شامی ج:۲ص:۹۶،باب مایفسدالصوم ومالایفسده)۔

استعمال صحیح نه دی،دې سره روژه فاسدیږي[1].د انجکشن دوایي که براه راست معدې ته یاحلق ته ونه رسیږي نودې سره روژه نه ماتیږي،ددې وجې نه ساه دتکلیف له پاره تاسوانجکشن لګولی شئ![2]

## د روژه دار ګلوکوز(ډراپ)یا انجکشن لګول

**سوال:** ګلوکوزچې دیوې لویې تهیلۍ (کخوړې) په شکل کې وي هغه ډاکټران صاحبان انساني رګ کې لګوي،ایاددې په لګولوسره روژه ماتیږي؟ که لګولووالا مریض وي یادبدن دطاقت له پاره لګوي؟

**جواب:** ګلوکوزلګولوسره روژه نه ماتیږي په شرط ددې چې داګلوکوز دځه عذرله وجې ولګول شي له عذر پرته ګلوکوزلګول مکروه دي.[3]

**سوال:** په رګ کې نورقسمه انجکشن لګول کیږي ایادهغو سره روژه ماتیږي اوکه نه؟ که دا طاقت له پاره ولګول شي یادمرض له پاره؟

**جواب:** دعذردوجې نه په رګ کې انجکشن لګولوسره روژه نه ماتیږي، صرف دطاقت انجکشن لګولوسره روژه مکروه کیږي، دګلوکوزو د انجکشن همدغه حکم دی.[4]

## په خپله قی(اولټی) راتلوسره روژه نه ماتیږي

**سوال:** که اولټی راشي؛ نوروژه ورسره ماتیږي؟ اوډرکي(تبغ) سره که اوبه حلق پورې راشي یااولټی راشي اوبیا واپس تلوسره روژه ماتیږي؟ ماته څوک وایي چې روژه وشوه،اوڅوک راته روژه دوباره نیولو مشوره راکوي.

**جواب:** قی که په خپله راشي نوروژه نه ماتیږي،البته که قی قصدا واپس کړل ي نوروژه ورسره ماتیږي اوکه بلاقصدواپس شی نوروژه نه ماتیږي.[5]

---

۱ ]ولوابتلع حصاة اونواة اوحجرا اومدرا اوقطنااوحشیشااوکاغذة فعلیه القضاء ولا کفارة علیه کذافی الخلاصة (هندیة ج:۱ص: ۲۰۳،کتاب الصوم ،الباب الرابع فیما یفسد وما لایفسد)_

۲ ] ومایدخل من مسام البدن من الدهن لایفطر (عالمگیری ج:۱ص:۲۰۳،کتاب الصوم ،الباب الرابع)_

۳ ] ایضاً)_

٤ ] ایضاً)_

٥ ] اذا قاء اواستقاء مل ء الفم اودونه عادبنفسه اواعاداوخرج فلافطر علی الاصح الا فی الاعادة والاستقاء بشرط ملء الفم هکذا فی النهرالفائق (هندیة ج:۱ص:۲۰۳،۲۰٤،کتاب الصوم ،وایضاًفی الدرمع الردج:۲ص:٤١٤)_

## په لمونځ او روژه کې قې راتلل

**سوال:** د لمونځ او د روژې په وخت کې د ډرکو(تېغونو) د راتللو په وجه چې د هغې په وجه د غذا څه برخه د تالو نه بره راشي او واپس شي یا قصداً واپس کړل شي په دې سره په لمونځ یا په روژه باندې اثر پریوځي؟

**جواب:** د لمونځ حکم دا دې که چیرې راشي او خپله واپس شي نو لمونځ نه فاسدیږي او که چیرې قصداً ئې واپس کړي نو د امام ابو یوسف رحمه الله د قول مطابق نه فاسدیږي او د امام محمد رحمه الله د قول مطابق فاسدیږي،په عالمګیري کې د قاضیخان په حوالې سره د امام محمدرحمه الله قول ته یې احوط (زیات احتیاطي) لیکلی دی[۱] دا حکم په هغه صورت کې دې چې کله قی په ډکه خوله باندې نه وي (او دا صورت ستا په سوال کې ذکر شوی دی)ی که چیرې په ډکه خوله قې راغی او راووت نو اودس به مات شي دوباره به اودس کول او لمونځ کول وي[۲]او د روژې حکم دادی چې که چیرې قې بغیر د قصد نه واپس شي نو روژه به نه فاسدیږي او که چیرې قصداً یې واپس کړي؛ نو د امام محمد رحمه الله په نزد که خوله ډکه وي یانه وي په دواړه صورتونو کې به روژه ماتیږي او د امام ابویوسف رحمه الله په نزد د قصداً د واپس کولو په صورت کې به که چیرې قې په ډکه خوله وي نو روژه به فاسده شي، ګني نو نه،په بحرالرائق کې یې دغه ته اصح (زیات صحیح) ویلي دي.[۳]

## وینه ورکولو سره روژه نه ماتیږي

**سوال:** که چادروژې په حالت کې په خپله خوښه وینه ورکړه نو دهغهٔ روژه به صحیح پاتې شي اوکه نه؟اوکه نه وي نوپه هغه باندې قضا لازمیږي یاکفاره؟

**جواب:** وینې ورکولوسره روژه نه ماتیږي.[۴]

---

[۱] وان قاء ملء الفم وابتلعه وهويقدرعلى ان يمجه تفسدصلاته وان لم يكن ملء الفم لاتفسدصلاته فى قول ابى يوسف رحمه الله تعالى وتفسدفى قول محمدرحمه الله تعالى والاحوط قوله كذا فى فتاوى قاضى خان .(عالمگيرى ج:١ص:١٠٣ كتاب الصلاة ،الباب السابع فيمايفسدصلاة)

[۲] وينقضه قيء ملأ فاه بان يضبط بتكلف من مرة...الخ (الدرالمختارمع الردج:١ص:١٣٧،نواقض الوضوء)

[۳] (قوله وان اعاده او استقاء اوابتلع حصاة اوحديدقضى فقط) اى اعادالقيء ......فسد صومه ولزمه القضاء ولاكفارة عليه واطلق فى الاعادة فشمل ماادالم يملاء الفم وهوقول محمدلوجود الصنع وقال ابويوسف لايفسدلعدم الخروج شرعاوهوالمختارفلابدمن التقييدبملء الفم ......وان صومه لايفسد على الاصح .(البحرالرائق ج:٢ ص:٢٩٥)

[۴] (قوله وكذا لاتكره حجامة)اى الحجامة التى لاتضعفه عن الصوم......الخ (شامى ج:٢ص:٤١٩،كتاب الصوم ،باب مايفسدالصوم ومالايفسده ،والهندية ج:١ص:١٩٩،كتاب الصوم الباب الثالث)۔

## وينه وتلوسره روژه نه ماتيږي

**سوال:** اياوينه وتلوسره روژه ماتيږي؟زماروژه وه تقريباً دوه بجې زمالاس زخمي كيدوسره ترې ډيره وينه لاړه،ايازماروژه شوې ده؟

**جواب:** وينه وتلوسره روژه نه ماتيږي.[۱]

## په روژه كې د غاښ نه د وينې وتلوحكم

**سوال:** غاښونونه له څه وجې وينه راځي نو آياروژه ورسره ماتيږي؟

**جواب:** اودس خوېې وينه وتوسره ماتيږي[۲]،اوپه روژه كې تفصيل دادى چې كه ويناد حلق نه لاندې لاړه شي؛ نوروژه ورسره ماتيږي، ګني نه.[۳]

## كه د غاښونونه وينه راځي نو آيا بيا دې هم روژې نيسي؟

**سوال:** كه دغاښونونه وينه راځي اودهغې علاج هم دخپل وس مطابق شوى وي اوبياهم د غاښونو وينه بنده نه شي؛ نو آيا په دې حالت كې روژه ونيول شي اوكه نه؟دوينې مقدارپه لاړوكې برابروي.

**جواب:** وينه كه دننه لاړه نه شي؛ نوروژه صحيح ده.[۴]

## غاښ ويستلوسره روژه نه ماتيږي

**سوال:** كه دروژې نيت ترې هيرشي نوروژه وشوه؟كه په غاښ كې دتكليف له وجې نه غاښ وويستل شي؛ نو آيا داروژه به بيانيول وي اوكه وشوه؟

**جواب:** نيت دزړه ارادې ته وايي كله چې يې دروژې نيولواراده وكړه نونيت وشو،په ژبې سره دنيت الفاظ ويل ضروري نه دي[۵].غاښ ويستلوسره روژه نه ماتيږي،په شرط چې وينه حلق ته لاړه نه شي.[۶]

---

۱ ] تيره شوى حاشيه ((قوله وكذا لاتكره حجامة)اى الحجامة...الخ) اوګورئ!)ـ

۲ ]ومنها(اى من نواقض الوضوء) مايخرج من غيرالسبيلين ويسيل الى ما يظهرمن الدم ......الخ (هندية ج:۱ص:۱۰)ـ

۳ ] الدم اذاخرج من الاسنان ودخل حلقه ان كانت الغلبة للبزاق ولايضره وان كانت الغلبة للدم يفسدصومه ......الخ (هندية ج:۱ص:۲۰۳،كتاب الصوم ،الباب الرابع فيمايفسدومالايفسد)ـ

۴ ] ايضًا)ـ

۵ ]النية قصده عازما بقلبه صوم غد......وليس النطق باللسان شرطًا (مراقى الفلاح على هامش الطحطاوى ص:۳۵۲)والنية معرفته بقلبه ان يصوم كذافى الخلاصة ومحيط السرخسى(هندية ج:۱ص:۱۹۵،كتاب الصوم)

۶ ] الدم اذا خرج من الاسنان ودخل حلقه ان كانت الغلبة للبزاق لايضره وان كانت الغلبة للدم يفسد صومه، ......الخ (عالمګيرى ج:۱ص:۲۰۳كتاب الصوم ،الباب الرابع فيما يفسد ومالايفسد،طبع رشيديه)

## رانجه لګولو سره او په آئينه کې کتلو سره روژه نه ماتيږي

**سوال:** په رمضان المبارک کې سرمه لګولو سره اوشيشه کې کتلو سره روژه مکروه کيږي؟

**جواب:** نه![1]

## د روژې په صورت کې نوکونه کټ کول

**سوال:** د ځيني خلکو وينا ده چې د روژې په حالت کې نوکونه کټ کول جائز نه دي، ځکه چې د نوکونو هم روژه وي، ځما يوه ملګرى ده هغه د روژې په حالت کې نوکونه بلکل نه کټ کوي؟

**جواب:** دا مسئله شرعي نه ده، دوى خپله جوړه کړې ده، په روژه کې د نوکونو په کټ کولو کې هيڅ کراهت نشته.

## په سر يا پوره بدن باندې تيل لګولو سره روژه نه ماتيږي

**سوال:** په سرياټول بدن باندې تيل لګولو سره روژه ماتيږي اوکه نه؟

**جواب:** په سرياټول بدن باندې تيل لګولو سره په روژه باندې هيڅ اثرنه پريوځي ى[2]

## په احتلام سره روژه نه ماتيږي

**سوال:** دروژې په حالت کې په سترګوکې سرمه لګولوسره، په سر تيل لګولوسره ياپه خوب کې احتلام سره روژه ماتيږي اوکه نه؟

**جواب:** دې شيانوسره روژه نه ماتيږي.[3]

## روژه دار په ورځ کې د غسل ضرورت څنګه پوره کړي؟

**سوال:** که چاباندې دورځې غسل واجب شي؛ نودهغه روژه ماتيږي اوکه نه؟اوکه نه ماتيږي؛ نوغسل څنګه وکړي؟ى

**جواب:** که د روژې په حالت کې احتلام وشي نو دې سره روژه نه ماتيږي[4] دغسل کولو په

---

۱ ] ولايكره كحل ......الخ (هندية ج:١ص:١٩٩،كتاب الصوم ،الباب الثالث فيمايكره للصائم ومالايكره)ـ

۲ ] ومايدخل من مسام البدن من الدهن لايفطرهكذا فى شرح المجمع .(هندية ج:١ص:٢٠٣،كتاب الصوم)ـ

۳ ] الغيبة لاتفسدصومه وكذا الاحتلام ......الخ (قاضى خان على هامش الهندية ج:١ص:٢٠٨) دغه شان اوګورئ تيرى شوى دوه حاشيې)ـ

٤ ]وان نام فاحتلم اونظرالى امراءة...فانزل...لم يفطرلعم يفطرلعم المنافى صورة ومعنىً (اللباب فى شرح الكتاب مالايفطربه الصائم ج:١ص:١٥٧طبع قديمى كتب خانه) (قوله فان نام فاحتلم) لم يفطرلقوله عليه السلام ثلاث لايفطرن الصائم القىءوالحجامة والاحتلام(الجوهرالنيرة كتاب الصوم,ج:١ص:١٧٠،طبع حقانيه ملتان)

وخت کې ددې خبرې خیال ساتل پکاردي چې اوبه ئیې دحلق نه تیرې نه شي اونه دماغو ته ورسیږي،ددې وجې نه په خوله کې داوبواچولوبه وخت کې دې غرغرې نه کوي،اونه دې په پوزه اوبه راکاږي.[۱]

## د روژې په حالت کې ټوت پیسټ استعمالول

**سوال:** ټوت پیسټ سره غاښونه صفاکولوسره روژه ماتیږي اوکه نه؟

**جواب:** دټوت پیسټ استعمال دروژې په حالت کې مکروه دی، بیاهم که حلق ته لاړنه شي: نوروژه ورسره نه ماتیږي.[۲]

## ماشوم سره مینه کولوسره روژه نه ماتیږي

**سوال:** .یوه خبره زه معلومول غواړم چې دروژې په حالت کې دماشوم سره مینه کولوسره (بوسې اخیستوسره) آیا روژه ماتیږي؟

**جواب:** دې سره روژه نه ماتیږي.[۳]

## په روژه کې تروشو اوبو سره اودس کول

**سوال:** آیا د روژې په حالت کې دسمندر اوبوسره اودس کولی شو؟

**جواب:** کولی یې شئ ،هیڅ نقصان پکې نشته.

## په روژه کې د ترخو اوبو استعمال

**سوال:** زه په یو مسجد کې امام یم او داجومات د کچي آبادي کونګي په علاقه کې واقع دی، هلته ترخې اوبه په اودس کې استعمالیږي، د خوږو اوبو بندوبست نشته ،خلک پوښتنه کوي ددې ترخو اوبو په خوله کې د اچولو سره روژه خو نه مکروه کیږي؟ په دې وجه چې مجبوري ده بل څه صورت نشته ، د ستاسو ته عرض دادی چې ددې مسئلې جواب د جمعې په ورځ اخبار کې ورکړئ چې ټولو خلکو ته ددې مسئلې پته ولګیږي،ځکه چې ډیرې نورې آبادۍ هم په دې کې ملوثې دي.

**جواب:** د ترخو اوبو په خوله کې اچولو سره روژه نه مکروه کیږي.

---

۱ ]وکذا (تکره) المبالغة فی المضمضة والاستنشاق...الخ (هندیة ج:۱ص:۱۹۹،کتاب ا لصوم ،الباب الثالث)

۲ ] اوذاق شیئًا بفمه وان کره لم یفطر......الخ (درمختارمع الشامی ج:۲ص:۴۰۰،باب مایفسدالصوم ومالایفسده)

۳ ] ولاباس بالقبلة ......الخ((هندیة ج:۱ص:۲۰۱)٠ولاباس بالقبلة اذا أمن علی نفسه ای من الجماع اوالانزال .(الجوهرالنیرة ج:۱ص:۱۷۰،کتاب الصوم ،طبع حقانیه ملتان)۔

## روژه کې اودس کولو کې احتیاط کوئ وهم مه کوئ

**سوال:** زه ډېره شکي او وهمي انجیلۍ یم، هروخت په یو اذیت او ذهني غم کې اخته یم، لمونځ کوم، نو دا ویره راسره وی چې اودس مې سم کړی و او که نه؟ څه غلطي خوپه کې شوې نه ده؟ نو تقریباً نیمه نیمه گنټه اودس کوم او یو لمونځ څوڅوځله کوم، اوس هم سجده سهوه کوم، چې چېرته غلطي په کې رانه شي، نو چې الله تعالی مې معاف کړي په رمضان المبارک کې دلمونځ له پاره اودس کوم؛ نو په خوله کې اوبه اچولونه وروسته څوځله تو توکوم، تردې پورې چې زمامرۍ وچې شي او عجیبه حالت مې شي، په توکلوتوکلو سره کرکه شان راشي، مهرباني وکړئ او تاسو دا مسئله حل کړئ چې دروژې په حالت کې اودس څنګه کول پکاردي؟ په پوزه کې اوبه اچولو وخت کې ویریږم چې حلق پورې مې لاړې نه شي، او که لږ شان هم شک مې راشي چې اوبو مې دحلق نه لاندې تللي دي؛ نو آیا روژه ماته شوه؟ ددې ویرې دوجې نه دسحر دلمونځ له پاره اودس دپیشمني ختمیدونه مخکې کوم.

**جواب:** غرغره کولو کې او بو غورځول کافي دي، باربار توکل فضول حرکت دی، همدغه شان دپوزې نرمې برخې پورې اوبه رسولو سره اوبه دماغ ته نه رسیږي، په دې سلسله کې هم وهم کول فضول دي. ستاد وهم علاج دادی چې په خپل وهم باندې عمل مه کوه، که طبیعت دې هرڅومره تقاضا کوي، دغه شان به په مزه مزه ستاد وهم بیماري هم ختمه شي.

## زهریله شي خوړولو سره روژه نه ماتیږی

**سوال:** که یو کس زهریله شی وخوري؛ نو آیا دهغه روژه ماته شوه؟ یا مکروه شوه؟

**جواب:** نه روژه ماته شوه او نه مکروه شوه.[۱]

## د میرګي دورې سره روژه نه ماتیږي

**سوال:** که د میرګي مریض روژه نیولې وي او په هغه دوره راشي: نو آیا روژه ماته شوه؟ دمیرګي دوره یو څومنټه وي او په مریض باندې بی هوشي راځي.

**جواب:** دې سره روژه نه ماتیږي.[۲]

## روژه دار نوکر که په خپل افسر باندې او به وڅښي نو د هغه د روژې څه حکم دی؟

**سوال:** زه په یو پرائیویټ فرم کې چپړاسي یم، زمونږ منیجرصاحب روژې نه نیسي، او په رمضان شریف کې په ما باندې اوبه اوچای راغواړي، هرکله چې زما روژه وي، مولاناصاحب! زه

---

۱ ] ومایدخل من مسام البدن من الدهن لایفطر هکذا فی شرح المجمع .(الهندیة ج:۱ص:۲۰۳، کتاب الصوم)

۲ ] قال فی الدروامالبلوغ والافاقة فلیسامن شرط الصحة لصحة صوم الصبی ومن جن او اغمی علیه بعدالنیة ......الخ (درمختارمع الشامی ج:۱ص:۳۷۱، کتاب الصوم ،وایضاًفی الهندیة ج:۱ص:۱۹۶، کتاب الصوم)_

ډېرزيات پريشان يم،دالله تعالى نه ډېرزيات ويرېږم.هروخت مې په زړه کې دغه پريشاني وي،چونکې اوس بيا رمضان راروان دى، ددې وجې نه تاسوته دمخکې نه ګزارش وکړ چې دې سره ايا زمارروژه ماتيږي يا نه؟ زۀ ګناه ګاريم يامنيجرصاحب ګناهګاردى؟ ځکه چې دنوکري معامله ده، ايا نوکري پرېږدم؟ ځکه چې مجبوري ده،ډېرپريشانه يم،مهرباني وکړئ اوزمادامسئله حل کړئ چې ماته څه کول پکاردي؟ زه به ستاسو ډېراحسان منديم.دالله تعالى نه ډېرزيات ويرېږم چې دقيامت په ورځ به زماڅه حشروي،دقيامت په ورځ به زمانه پوښتنه کيږي اوکه نه؟

**جواب:** ستاروژه نه ماتيږي،مګرپه ګناه فى الجمله ستاهم شرکت به وي[1]،ستامنيجرصاحب که مسلمان دى، نوهغه ته دومره لحاظ ساتل پکاردي چې په روژه داربانديې اوبه نه راغواړي،په هرحال که هغه خپل طرزعمل نه پرېږدي؛ نوهلته نوکري پرېږده،په دې شرط که څه ذريعه معاش ملاوشي ګنى نوکرى کوه اودالله تعالى نه معافي غواړه چې دخپتې دوجې نه زه هم په دې ګناه کې شريک شوم.

## په رمضان کې روژه نه نيونکي افسر له پاره اوبه وغيره راوړل

**سوال:** نن سبا په دفترونو کې عام طور ليدل کيږي چې زياتر افسران روژه نه نيسي او لاندې عمله خاص کر چپړاسي تول مياشت روژه نيسي، د ډيوټي په دوران کې لوى افسر تالى وهي د چپړاسي نه اوبه غواړي او حالانکې دده روژه وي او دې افسرانو ته معلومه هم وي چې ددې چپړاسي روژه ده او د اوبو کولر يا منګى هم دده په کمره کې ايږدي، سيګرټ وغيره هم دبازار نه راغواړي، که چيرې د کار کرلو نه انکار وکړي؛ نو افسر رُعب داب ورکوي، دا ووايئ چې چپړاسي ته څه کول پکار دي؟ او د افسرانو له پاره دالله تعالي څه حکم دى؟

**جواب:** داسې افسران ددې لائق دي چې دوى ته عبرت ناکه سزا ورکړل شي (په قبر کې خو به ورته ملاويږي) او چپړاسي بې چاره معذوره دى، که چيرې په ژبه باندې په انکار کولو قادره نه وي؛ نو دا کار دې په زړه کې بد وګڼي.[2]

---

[1] ]وتعاونوا على البروالتقوى ولاتعاونوا على الاثم والعدوان (المائدة :۲) وايضًا فى الدرالمختار ج:۲ص:۴۲۳)

[2] ] عن ابى سعيدالخدرى رضى الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال:من راى منكم منكرًا فليغيره بيده فان لم يستطع فبلسانه، فان لم يستطع فبقلبه وذلك اضعف الايمان. (مشكوة ص:۴۳٦) ولواكل عمدًا شهرة بلاعذرويقتل (الدرالمختارمع الرد ج:۲ص:۴۱۳)

## روژه داره ښځه د روځې چاته ډوډۍ پخولی شي؟

**سوال:** که چیرې د ښځې روژه وي او د کور نور افراد مثلاً خاوند ،لیور اواندرور وغیره روژه نه نیسي؛ نو آیا د روژې په حالت کې ښځه د کور نورو افرادو ته یعني لیور وغیره ته ډوډۍ پخولی شي، حالانکې په کور کې یوه ډوډۍ پخونکې پیغله اندرور هم شته؟

**جواب:** د مسلمان په کور کې دناروغ،معذور او ماشومانو نه پرته د ورځې په وخت کې ډوډۍ پخول او ورکول صحیح نه دي،خو که چیرې د کور خلک بې دینه وي او د الله او دهغه درسول نه حیا نه ورځي؛ نو ښځه بې چاره مجبوره ده.

## د روژو او لمونځونو قضاء کونکي آیا آینده نفل وکړي او که قضاء وکړي؟

**سوال:** یو سړی چې دهغه لس کاله لمونځونه او روژې پاتې شوي وي اوس هغه توبه اوباسي او لمونځونه او روژې په پابندۍ سره اداء کوي او قضاء لمونځونه او روژې هم اداء کوي ددینه پرته هغه د تهجد لمونځ هم کوي آیا دده لمونځونه به قبول شي او که نه؟ او نفل روژې کومې چې د رجب او شعبان په میاشتو کې نیسي، هغه به قبولې شي او که نه؟آوریدلي مو دي چې د چا فرض لمونځونه او روژې قضاء پاتې شوي وي، د دوی نفل عبادت نه قبلیږي داخبره صحیح ده او که نه؟

**جواب:** دتیرشویو لمونځو او روژو قضاء دې راوړي او آینده به قبولې شي.

## آیا په رمضان کې د شوي خرچ حساب نه کیږي؟

**سوال:** ما د چانه دا آوریدلي دي چې په رمضان کې د شوې خرچې به هیڅ حساب نه کیږي، په دې وجه ډیر خلک په دې میاشت کې د ډیرو نویو شیانو استعمال کوي، ددې له پاره چې د حساب نه بچ شم،آیا دا صحیح ده؟

**جواب:** ما دا نه دي آوریدلي.

# ❖ د قضا روژو بیان ❖

## د بالغیدو نه وروسته که روژې پاتې شي نو څه وکړل شي؟

**سوال:** په ماشوم والي کی به زماموربلارماته روژې نیولواجازت نه راکولو.چې په تاباندې روژې لافرض نه دي،زه دامحسوسوم چې زه بالغ وم،اوزمادخیال مطابق ماپنځه شپږ کاله وروسته روژې نیول شروع کړل.

**جواب:** دبالغیدونه وروسته چې تاڅومره روژې نه دي نیولي، دهغو قضا لازمه ده[۱]،که دبالغیدوکال درته صحیح معلوم نه وي: نوخپل ځان د (۱۳)کالودعمرنه بالغ حساب کړه اوددیارلسم کال نه دروژو قضا راوړه.[۲]

## د څو کلنو قضا روژې څنګه و نیول شي؟

**سوال:** که دڅوکلونو قضاروژې نیول وغواړو؛ نوڅه وکړو؟

**جواب:** که درته یاد نه وي چې په کوم رمضان کې درنه څومره روژې قضاشوي دي؛ نوداسې نیت کوئ چې دټولونه داول رمضان قضا روژه کومه چې زماپه ذمه وه هغه نیسم.[۳]

## قضا روژې که په ذمه وي؛ نو ایا نفلي روژې نیول کیدای شي؟

**سوال:** مااوریدلي دي چې دفرضي روژو قضاترڅوپورې پوره نه کړل شي ترهغه پورې نفلي روژې نه شي نیول کیدای، ایا داخبره صحیح ده؟ مهرباني وکړه اوددې جواب راکړه!

**جواب:** صحیح ده، ځکه چې دهغه په حق کې قضاروژې نیول زیاتې اهمې اوضروري دي، بیاهم که فرض قضاروژه پریږدي اودنفلي روژې نیت وکړي؛ نونفلي روژه به وشي.[۴]

---

۱ ]وقضوا لزومًاماقدروا بلافدیة وبلا ولاء لانه علی التراخی ٥)(درمختارمع الشامی ج:۲ص:٤٢٣)_

۲ ] وادنی مدته له اثنتا عشرة سنة ولهاتسع سنین هوالمختارکمافی احکام الصغار (الدرالمختار ج:۲ ص:١٥٤) ثم یحسب سن المیت فیطرح منه اثناعشرسنة لمدة بلوغه ان کان المیت ذکر،اوتسع سنین ان کانت انثی ،لان اقل مدة بلوغ الرجل اثناعشرسنة ومدة بلوغ المراة تسع سنین (منحة الخالق علی البحرالرائق ج:۲ص:۹۸)_

۳ ] اذاوجب علیه قضاء یومین من رمضان واحد ینبغی ان ینوی اول یوم وجب علیه قضاوه من هذا الرمضان وان لم یعین الاول یجوز وکذالوکان علیه قضاء یومین من رمضانین هو المختار ولو نوی القضاء لاغیر یجوز وان لم یعین کذا فی الخلاصة. (عالمگیری ج:۱ص:١٩٦) ایضًا:واذاکثرت الفوائت یحتاج لتعیین کل صلاة یقضیها لتزاحم الفروض والاوقات....فاذا ارادتسهیل الامرعلیه نوی اول ظهر... وکذا الصوم الذی علیه من رمضان اذا ارادقضاءه یفعل مثل هذا...الخ (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی،باب قضاء الفوائت ص:٢٤٢)

٤ ] ولایکره صوم التطوع لمن علیه قضاء رمضان (عالمگیری ج:۱ص:۲۰۱،کتاب الصوم ،الباب الثالث)_

## ایا قضا روژې د مشهورو نفلي روژو په ورځوکې نیولی شو؟

**سوال:** په رمضان شریف کې کومې روژې چې د مجبوري له وجې پاتې شي هغه مونږ وشمارو او په نورو ورځوکې یې ونیسو، که مونږ دا روژې په لویو ورځو په کوموورځوکې روژې غوره شمیرل کیږي یعني (۱۴)شعبان،(۷) رجب وغیره روژې، په دغه ورځ که دخپلې قضاروژې نیت وکړي؛ نو ایا دا طریقه صحیح ده، یاهغه روژې جدا ونیسو اودا پاتې شوې روژې چیرته په نوروورځوکې ونیسو، مهرباني وکړئ اوددې حل راته وښیئ، ځکه چې ماپه (۲۷)رجب دعبادت اوروژې په وخت کې دخپلې قضاروژې نیت کړی و.

**جواب:** قضاروژې چې دکال په کوموورځوکې هم نیول وغواړئ؛ نو نیولی یې شئ[1] یوازې پنځه ورځې داسې دي چې په هغوکې دروژو نیولو اجازه نه شته، دوه داخترونو او درې دایام تشریق ورځې یعني د ذوالحجې یولسم، دولسم اودیارلسم تاریخ.[2]

## د پاتې شویو روژو قضاء دې راوړي، که نه د مرګ په وخت کې دې دفدیې وصیت وکړي

**سوال:** زماطبیعت کمزوری شان دی،کله ټولې روژې ونیسم اوکله لس پریږدم، اوسه پورې اویا(۷۰) روژې فرض ماته پاتې شوې دي، ماحساب لګولی دی، الله تعالی دې ماته همت راکړي چې داپه ښه طریقې سره ونیسم، امین! خوکه خدای مه کړه دومره روژې ونه نیولی شم؛ نوددې له پاره ماته څه کول پکاردي؟چې په ماڅه ګناه نه وي؟ تیره هفته همدغه دیوې خوردسوال جواب مې چې واوریده؛ نوډیره فکرمنده شوم، چې رښتیامونږ څومره ناخبره یو.

**جواب:** کومې روژې دې چې په ذمه دي دهغو قضاء راوړه[3]، که څه هم په وړو وړو ورځوکې قضاوشي، خوکه خدای مه کړه قضا ونه نیسې؛ نودمرګ په وخت کې وصیت کول پکاردي چې ددې فدیه ورکړل شي.[4]

## (دحیض دورځو)دروژو قضا شته او د لمانځه نه شته

**سوال:** دخاصو ورځو(دحیض اونفاس) دروژو او لمونځونو قضا لازمه ده اوکه نه؟

---

[1] وقضوا لزومًا ما قدروا بلا فدية وبلا ولاء لانه على التراخي ولذا جازالتطوع قبله ......الخ (الدرالمختارمع الردج:۲ص:۴۲۳، کتاب الصوم فصل فی العوارض المبیحة لعدم الصوم)۔

[2] ویکره صوم یوم العیدین وایام التشریق وان صام فیهاکان صائمًاعندنا (عالمگیری ج:۱ص:۲۰۱)۔

[3] ایضاً تیره شوی حاشیه (وقضوا لزومًا ماقدروا بلافدیة وبلا ولاء لانه التراخی...الخ) اوګورئ!)۔

[4] فان بری المریض ......فان لم یصم حتی ادرکه الموت فعلیه ان یوصی بالفدیة کذافی البدائع .(عالمگیری ج:۱ص:۲۰۷،کتاب الصوم ،الباب الخامس فی الاعذارالتی تبیح الافطار)۔

**جواب:** د ښځو د خاصو ورځو د لمونځونو قضا لازمه نه ده، د روژو قضا لازمه ده.[۱]

## د حيض د ورځو د روژو يوازې قضا شته کفاره نه شته

**سوال:** د حيض په ورځو کې چې کومې روژې پاتې شي، ايا د هغو قضا او کفاره به دواړه وي؟

**جواب:** نه! بلکې يوازې قضا لازمه ده.[۲]

## د( نفاس )د ختمېدو نه وروسته قضا روژې و نيسئ

**سوال:** زما ښځې د رمضان په لومړۍ هفته کې دوه ماشومان وزېږول، هغې به په ځلويښتې لامبل، ظاهره ده چې روژې يې ونه نيولې ، اوس وايئ که هغه وروسته قضا روژې ونه نيسي سستي وکړي يا نيول ونه غواړي،ماشومانو ته د پيوورکولو په سلسله کې د معذوري اظهار وکړي؛ نو ايا هغه د دې روژو فديه ورکولی شي؟

**جواب:** د فديې ورکولو اجازه يوازې هغه کس ته شته چې د ناروغي او بوډاوالي له وجې روژې نه شي نيولی او نه په اينده ژوند کې دا طمع وي چې هغه به په روژو نيولو قادر شي[۳]، ستا کور والا په دې معيار باندې نه پوره کيږي، د دې له وجې په هغې باندې د روژو قضا لازمه ده[۴]،که څه هم د يخنۍ په موسم کې يې ونيسي فديه ورکول د هغې له پاره جائز نه ده.

## د نفلي روژې د ماتولو قضا شته کفاره نه شته

**سوال:** ما په نهم محرم الحرام باندې روژه نيولې وه، خود ماسپښين نه وروسته په ما باندې قی ولګيده او حالت مې ډيرزيات خراب شو، قي سره څه خوراک نه ووت يوازې اوبه وتې، په داسې حالت کې مې مورپه باندې د ګليکوز اوبه وڅښلې او د مجبوري له وجې ما روژه ماته

---

۱ ] الفصل الرابع فى احكام الحيض والنفاس......ومنها ان يسقط عن الحائض والنفساء الصلاة فلاتقضى ......منها ان يحرم عليهماالصوم فتقضيانه (عالمگيرى ج:۱ص:۳۸ ،كتاب الطهارة)۔ ايضًا:وتقضى الحائض والنفساء الصوم دون الصلاة لحديث عائشة رضى الله عنهاكان يصيبناذالک فنومر بقضاء الصوم ،ولا نومر بقضاء الصلاة وعليه الاجماع۔وفى الحاشيه:(ولانومربقضاء الصلاة)للحرج فى قضائــهالتكرار الحيض كل شهرغالبًابخلاف الصوم (حاشية الطحطاوى مع مراقى الفلاح ص:۷۹كتاب الطهارة ،طبع نورمحمدآرام باغ، ايضًافى ردالمحتارج:۱ص:۲۹۰)۔

۲ ] الحيض والنفاس يفسدان الصوم فيوجب القضاء دون الكفارة .(فتاوى قاضيخان على هامش الهندية ،الفصل السادس ج:۱ص:۲۰۹)۔

۳ ]فالشيخ الفانى الذى لايقدرعلى الصيام يفطرويطعم لكل يوم مسكينًاكمايطعم فى الكفارة كذا فى الهندية (عالمگيرى ج:۱ص: ۲۰۷)، ايضًاالمريض اذاتحقق الياس من الصحة فعليه الفدية لكل يوم من المرض (شامى ج:۲ص:۴۲۷)۔

۴ ] ايضاً پورتنۍ حواله)۔

کړه؛ نو اوس سوال دادی چې په داسې صورت کې ایاقضا واجبیږي یاکفاره هم؟ اوزه خو به ګناهګارنه یم؟

**جواب:** یوازې قضاواجب ده، کفاره نه، کفاره یوازې په رمضان کې روژه ماتولوسره لازمیږي[۱] اوکه دناروغي دزیادت له وجې روژه ماته کړې وه؛ نو درمضان دروژو هم کفاره نه شته یوازې قضاده.[۲]

## له عذرپرته نفلي روژې ماتولو کې ګناه شته؟

**سوال:** که څوک له څه عذر پرته نفلي روژه ماته کړي؛ نو د هغې ګناه به وي اوکه نه؟ او د هغې قضاء به وي اوکه نه؟

**جواب:** له عذر پرته نه روژه ماتول ګناه ده،[۳] او دهغې قضاء لازمه ده.[۴]

## تندرست بنده د قضا روژو فدیه نه شي ورکولی

**سوال:** دزیدښځې درمضان شریف روژې د ناروغۍ اوحامله کیدو له وجې ونه نیولې، زما د معلوماتومطابق دداسې روژو قضا وي، دیورمضان نه واخله تربل رمضان پورې داقضاروژې پوره کیږي، هرکله چې دزیدښځه وایي چې کله په رمضان کې مې روژې ونه نیولې؛ نوپه عامو ورځو کې څنګه نیول کیدای شي؟ ددې روژو په بدله په مسکینانوباندې ډوډۍ خوره، دغه شان هغوی تقریبا(۷۵) روپۍ یوې غریبې ښځې ته ورکړې، ایا داجائزدي؟ ایا د روژو بدله کیدای شي؟ ایاددې ورکولوسره دروژوقضامعاف شوه، کوم خلک دروژوپه بدله کې په مسکینانوباندې ډوډۍ خوړلی شي؟

**جواب:** دروژوفدیه یوازې هغه کس ورکولی شي چې په روژونیولوباندې نه خوفي الحال قادروي اونه اینده څه طمع وي، مثلا: څوک دومره بوډا وي چې دروژونیولومتحمل کیدای نه

---

۱ ] اوافسدغیرصوم رمضان اداء لاختصاصها بهتک رمضان......الخ،ای الکفارة وفی الشرح :بهتک رمضان ای بخرق حرمة شهررمضان فلاتجب (ای الکفارة) بافساد قضائه اوافسادصوم غیره لان الافطارفی رمضان ابلغ فی الجنایة فلایلحق به غیره لورودهافیه علی خلاف القیاس .(شامی ج:۲ص:۴۰۵،کتاب الصوم)۔

۲ ] المریض اذاخاف علی نفسه التلف اوذهاب عضویفطربالاجماع وان خاف زیادة العلة وامتداده فکذلک عندناوعلیه القضاء اذا افطرکذافی المحیط (عالمگیری ج:۱ص:۲۰۷،کتاب الصوم ،الباب الخامس فی الاعذار....الخ)

۳ ] ذکر الرازی عن اصحابناان الافطار بغیر عذر فی صوم التطوع لایحل هکذا فی الکافی .(عالمگیری ج:۱ص:۲۰۷، کتاب الصوم ،الباب الخامس فی الاعذارالتی تبیح الافطار،طبع رشیدیه)

۴ ] اذا نوی الصوم للقضاء بعدطلوع الفجرحتی لاتصح نیته عن القضاء یصیرشارعًا فی التطوع فان افطریلزمه القضاء کذافی الذخیرة .(عالمگیری ج:۱ص:۱۹۷)،ومن دخل فی صلوة التطوع اوفی صوم التطوع ثم افسده قضاه (هدایة ج:۱ص:۲۲۳،کتاب الصوم ،باب مایوجب القضاء والکفارة)

شي اوداسې ناروغ چې دهغه درغيدوطمع نه شته[1]، دزيدښځه روژې نيولی شي، يوازې دغفلت اوسستي له وجې يې نه نيسي، دهغې دروژوپه بدله کې فديه ورکول صحيح نه دي، بلکې د روژو قضا پرې لازمه ده[2]، هغې چې کومې پيسې چا محتاج ته ورکړي دي هغه به دخيرات په مد کې شماريږي اوڅومره روژې چې دهغې په ذمه دي دهغو قضادې ونيسي.

## د بل له طرف نه قضا روژې او لمونځ نه شي ادا کيدای

**سوال:** ايا ښځه دخپل خاوند قضاروژې، يا خاوند دخپلې ښځې قضا روژې، يا مورپلار دخپل اولاد قضا روژې يااولاد خپل مورپلار قضا روژې نيولی شي؟

**جواب:** هيڅ يوکس دبل له طرفه، نه قضالمونځ اداکولی شي اونه روژې.[3]

## د غروب نه مخکې په غلطي روژې ماتولوبا ندې يوازې قضا لازميږي

**سوال:** له نن نه تقريبا شل کاله مخکې خبره ده چې مور په يوداسې ځای کې اوسيدوچيرته چې بجلي نه وه اوداذان اوازبه زمور تر غوږوپورې نه رارسيده، په رمضان شريف کې به داسې کيدل چې دمحلې ټول ماشومان به دجومات خواته لاړل اوداذان کيدوسره به يې شورجوړکړ چې اذان وشو روژه ماته کړئ، زماعمربه هغه وخت کې لس کاله و، چې زماروژه وه اوددروازې نه بهرولاړه وم اود اذان انتظارمې کاو، ماددرې څلورو ماشومانو اواز واوريد چې ,,روژه ماته کړئ اذان وشو،، زه کورته راغلم اومورته مې وويل چې اذان وشو.

مورمې کجوره په لاس راکړه او ويې ويل چې دومره زر اذان وشو؟ماورته وويل هو! ماشومان شورکوي اومورمې روژه ماته کړه،دهغې نه درې څلورمنټه وروسته بياماشومانو شور جوړ کړ چې معلومات مو وکړل؛ نوپته ولګيده چې اذان اوس وشو، هغه خوشرارتي ماشومان وو چې شوريې جوړکړی و، دا ابادي بالکل نوې وه اوخلک هم غريبان و، نه چاسره ريډيو وه او نه ساعت(ګړی)، په ابادي کې بجلي نه وه ددې له وجې مور پورې داذان اوازنه رارسيده.

ماقصدا روژه ماته نکړه داالله تعالی ته پته ده، خوماپه خپله کم عقلي باندې افسوس کاو چې ارمان مالږ شان انتظارکړی وای يااذان کيدومې دخلکونه تصديق کړی وای، ددې خبرې احساس ماته دماشومانوپه دويم ځل دشورجوړولوسره وشو، چې داماڅه وکړل؟ددې خبرې ذکرماخپلې مورته ونه کړ، زه ويريدم چې هغه به ما ورټي، خوزه په زړه کې داالله تعالی په وړاندې ډيره شرمنده شوم، ماداالله تعالی نه معافي وغوښته، داهرڅه کولونه وروسته ماته

---

١ ]ومتی قدرقضی لان الاستمرارالعجز شرط الخلفية .......الخ،قوله ومتی قدر ای الفانی الذی افطروفدی (شامی ج:٢ص:۴٢٧،فصل فی العوارض المبيحة لعدم الصوم ،کتاب الصوم)۔

٢ ]وقضوا لزومًا ماقدروا بلافدية وبلا ولاء لانه علی التراخی..الخ (الدرالمختار ج:٢ص:٤٢٣،کتاب الصوم)

٣ ] وان صام اوصلی عنه الولی لا،لحديث النسائی :لايصوم احد عن احدولايصلی احد عن احدولکن يطعم عنه وليه (الدرالمختارمع الردج:٢ص:٤٢٥،فصل فی العوارض.المبيحة لعدم الصوم)۔

محسوسیږي چې ترڅوپورې ددې کفاره ادانکړای شي ماته به سکون ملاونه شي، تاسو راته ووايئ چې کفاره څنګه اداکړل شي اودروژې قضاکیدای شي اوکه نه؟ددې ګناه سزازما له پاره ده یازماموروته به هم ددې ناکرده ګناه سزاملاویږي؟

**جواب:** که غلطي سره دغروب افتاب نه مخکې روژه ماته شوه؛ نوقضاواجبیږي، کفاره نه[۱] اوکه په تاباندې هغه وخت کې روژه فرض شوې وه؛ نوته په خپله هم قضاروژه ونیسه اوپه خپلې مورهم ونیسه اوکه هغه وفات شوې وي؛ نودهغې دروژې فدیه ورکړه[۲] او فدیه داده چې چا محتاج باندې ددووختو ډوډۍ وخوره، یادپاوکم دووکیلوغنموقیمت نغد ورکړه![۳]

## په غلطي د وخت نه مخکې روژه ماتولوباندې قضا ده، کفاره نه شته

**سوال:** مسئله داده چې په څوارلسمه روژه باندې زموږ د محلې په مسجدکې پنځه منټه مخکې د ماښام اذان وشو، تفصیل دادی چې په څوارلسمه روژه باندې په مسجد کې نیم اذان د موذن په غلطي سره وشو، حال دا چې په روژه ماتي کې پنځه منټه باقي و، پنځه منټه مخکې ټول خلک دسترخوان ته کیني، چې څنګه د اذان اواز راغی خلکو روژه ماته کړه، چې په هغوی کې زه هم شامل یم، د نیم اذان نه وروسته مولوي صاحب وویل چې: په غلطي سره اذان شوی دی، تاسو روژه مه ماتوئ، چا چې ماته کړې ده هغه دې ایسار شي، د ماښام د لمانځه نه وروسته مولوي صاحب وفرمایل: چا چې روژه ماته کړې ده هغه به د اختر نه وروسته روژه نیسي، یا به مسکیناتو ته ډوډۍ ورکوي او د خلکو دا وینا وه چې دا غلطي خو د مؤذن نه شوې ده، هما غه به یې کفاره ادا کوي، تاسو په تفصیل سره جواب راکړئ!

**جواب:** کومو خلکو چې له وخت نه مخکې روژه ماته کړه، د هغوی دا روژه نه ده شوې، وروسته دې د هغې قضاء راوړي، دوی داسې ګڼل چې وخت شوی دی په غلطي سره یې روژه ماته کړه، له دې وجې ددې هیڅ فدیه یا کفاره نه شته.[۴]

---

۱ ]اوتسحراوافطریظن الیوم ای الوقت الذی اکل فیه لیلا الحال ان الفجرطالع والشمس لم تغرب....قضی فقط (الدرالمختارمع الردج:۲ص:۴۰۵،باب مایفسدالصوم ومالایفسده)

۲ ]وان لم یوص وتبرع ولیه به جازان شاء الله ،وفی الشامیة:وان لم یوص لایجب علی الورثة الاطعام لانها عبادة ......وان فعلواذلک جاز ویکون له ثواب ......لان الوصی انماتصدق عن المیت لاعن نفسه فیکون الثواب للمیت (ردالمختارمع الدرالمختار،ج:۲ص:۴۲۵،فصل فی العوارض المبیحة لعدم الصوم)۔

۳ ] یعطی لکل صلاة نصف صاع من برکالفطروکذا حکم الوتر والصوم (قوله نصف صاع من بر) ای اومن دقیق اوسویق اوصاع تمراو زبیب اوشعیر اوقیمته وهی افضل عندنالاسراعهابسدحاجة الفقیر (ردالمختارمع الدرالمختار، مطلب فی اسقاط الصلاة عن المیت ج:۲ص:۷۲،۷۳)۔

۴ ] اذاشهد اثنان ان الشمس غابت وشهدان آخران انها لم تغب فافطرثم ظهرانهالم تغب فعلیه القضاء دون الکفارة کذا فی فتاوی قاضیخان .(عالمګیری ج:۱ص:۱۹۵، کتاب الصوم ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

## د ساه بندي دوايي د روژې په حالت کې استعمالولو سره روژه ماتيږي، قضاء لازمه ده

**سوال:** ماته د ساه تکليف دی، کومې ته چې په عام عرف کې دمه (ساه بندي) وايي، لهذا يوه ورځ د روژې په حالت کې په ما باندې د دمې دوره راغله، ډير سخت تکليف و راته، لهذا ما په دې وخت کې ددې مرض علاج چې د هغه په استعمال سره فورا ارام راځي، استعمال کړ، د هغه دوايي نوم "وينتهولين انهيلر" دی چې هغه د اکسيجن نه ډک وي هغه ګيس د خولې په ذريعه استعماليږي، لهذا ددې په استعمال سره روژه ماته شوه او که نه؟ او د روژې د ماتيدو په صورت کې قضاء واجب ده او که کفاره؟ او د کفارې په صورت کې د کفارې پيسې يو مسکين ته ورکول جائز دي او که نه؟ او د پيسو به څومره مقدار وي؟

**جواب:** ددې دوايي په حلق کې پمپ کولو سره روژه ماتيږي، په تاسو باندې قضاء واجب ده، کفاره نه شته.[1]

## د ماشوم توب د ماتې کړې روژې قضاء نه شته، بله دا چې تر څو پورې د دوه مياشتو د روژو نيولو طاقت وي، فديه ورکول جائز نه دي

**سوال:** زما د مخکې کلونو د رمضان څه روژې پاتې دي، کومې چې ما هغه وخت کې د خاصو ورځو له وجې ونه نيولې، زما د حسابه د ټولو کلونو روژې چې يو ځای شي؛ نو دوه مياشتې جوړيږي او د دوه مياشتو نه پرته د رمضان هغه روژې دي چې کله زه وړه وم او روژې نيولو سره به مې د مالګې غړغړې کولې، زما والد صاحب وايي چې داسې روژه نه ماتيږي؛ نو اوس ماته معلومه شوه چې په مالګې سره خو روژه ماتيږي؛ نو اوس که زه د دې څلورو مياشتو د روژو نيولو په ځای که فديه ورکړم؛ ايا دا په اسلام کې جائز ده؟ او په ما باندې به په دويم ځل نيول خونه لازميږي؟ ځکه چې د ژوند هيڅ پته نه لګيږي او زه روژه هم نه شم نيولی، ځکه چې حامله يم، بل بچي ته به د پيدا کيدو نه وروسته دوه کاله پی ورکول وي او د ريمه خبره دا چې زما مخکې اپريشن شوی و يو ماشوم مخکې ضائع شوی و؛ نو اوس ډاکټر وايي چې کيدای شي د هغه اپريشن له وجې، اوس هم اپريشن ته ضرورت راشي؛ نو که په اپريشن سره ماشوم وشو؛ نو مکمل صحت ياب کيدو کې او د زخم په جوړيدو کې ډيره موده لګيږي او په داسې اپريشن

---

...بقيه د تير مخ]..الباب الاول فی تعريفه) (٤) ومن اوجراواحتقن اواستعط اواقطراذنيه الفطرلوجود صب الماء اواللبن او الدواء فی الفم......اوجرمكرهااونائمًا افطرولاكفارةعليه .(الجوهرة النيرة ج:١ص:١٤٥)

[1] ومن اوجز او احتقن او استعط او اقطر فی اذنيه افطر لوجود صب الماء او اللبن او الدواء فی الفم........ اوجر مكرها او نائماً افطر ولاكفارة عليه.(الجوهرة النيرة ج:١ ص:١٤٥)_

کې وینه ډیره ضائع کیږي، معلومه نه ده چې په څومره موده کې به طاقت بحال شي، په داسې صورت حال کې که زه فدیه ورکړم؛ نو ایا څومره کاله وروسته چې طاقت بحال شي او زه د څلورو میاشتو د روژو قابله شم؛ نوایا هغه به په دویم ځل نیول غواړي دفدیه ورکولونه وروسته؟

**جواب:** ترڅو پورې چې ته د دوه میاشتو روژو نیولو قابله یې، فدیه ورکول جائز نه دي، روژې نیول ضروري دي، په ماشومتوب کې چې تا کومې روژې ماتې کړې دي، د هغو قضاء ضروري نه ده.[۱]

# ❖ د قضا روژو فدیه ❖

## کمزوری یا ناروغ کس د روژو فدیه ورکولی شي

**سوال:** که یوکس کمزوری یاناروغ وي چې روژې نیولوسره کمزوري محسوسه کړي؛ نوایاهغه چابل چاته دماښامي یاپیشمني سامان ورکولوسره پرې روژه نیولی شي اوایادغه شان به دهغه له سرنه د روژې کفاره کوزه شي؟ څه گناه خوبه نه وي؟

**جواب:** که دومره بوډا یاناروغ وي چې روژې نه شي نیولی، نه داتوقع وي چې اینده به یې ونیولای شي، دهغه له پاره فدیه ورکول جائزدي[۲]اودهرې روژې دفدیې له پاره دې په چامسکین باندې ددوه وختونو ډوډۍ وخوري یادې ددوسیروغلې قیمت ورکړي[۳]باقي په بل چاباندې دڅان له پاره روژه نه شي نیولی.[۴]په شریعت کې دکمزروي کس له پاره د فدیې ورکولوحکم دی.

## د ډیرې زیاتې ناروغې ښځې دروژو له پاره فدیه ورکول جائزدي

**سوال:** زما موربې بې دناروغی له وجې شپږ روژې پریښې وې،اوس هم ناروغه ده اود روژو

---

[۱] مریض خاف بالاجتهاد اوالطبیب زیادة مرضه الکائن او امتداده او وجع العین او جراحة اوصداع اوغیره ......افطروا ......وقضواماافطروا قبل رمضان آخراوبعده بلافدیة ......الخ (جامع الرموز،فصل موجب الافساد،ج:۲ص:۳۶۸ طبع مکتبة الاسلامیة ایران)

۲ ]فالشیخ الفانی الذی لایقدرعلی الصیام یفطرویطعم لکل یوم مسکیناکمایطعم فی الکفارة کذافی الهدایة (عالمگیری ج:۱ص:۲۰۷،وایضًا جوهرة النیرة ج:۱ص:۱۴۷)،المریض اذا تحقق الیاس من الصحة فعلیه الفدیة لکل یوم من المرض (شامی ج:۲ص:۴۲۷،وایضًا الجوهرة النیرة ج:۱ص:۱۴۷)۔

۳ ]والفدیة لکل یوم مدحنطة کمافی البدائع .(شامی ج:۲ص:۴۲۳) وجازدفع القیمة فی زکاة ......وفطرة الخ (الدرالمختارج:۲ص:۲۸۶، وایضًا الجوهرالنیرة ج:۱ص:۱۴۷)۔

٤ ]وان صام اوصلی عنه الولی لا،لحدیث النسائی: لایصوم احدعن احد ولایصلی احد عن احدولکن یطعم عنه ولیه (الدرالمختار ج:۲ص:۴۲۵،فصل فی العوارض المبیحة)۔

نیولو قابله نه ده، هغې درې وارې د رسولي اپریشن کړی دی، هغې سره دا فکر دی چې د هغې روژې څنګه ادا کړل شي؟ تاسو ته درخواست دی چې ددې حل راته وښیئ او ددې د اداکولو طریقه هم راته وښیئ! څه شي سره ادا کیدای شي؟ الله تعالی دې تاسو ته جزا خیر درکړي. امین!

**جواب:** ستاسو مور بې بي د روژو نیولو طاقت نه لري، ددې له وجې څومره روژې چې د هغې په ذمه دي د هغو فدیه ادا کړئ او د یوې روژې فدیه د صدقه فطر برابر ده، یعنې دوه سیره غنم یا د هغو د قیمت حساب سره د قضا شویو روژو فدیه ورکړئ او اینده چې څومره روژې د هغې په ژوند کې راشي همدې حساب سره فدیه ورکوئ![1]

## که د قضا راوړلو طاقت نه لري؛ نو څه وکړي؟

**سوال:** زما د مور څخه په وړوکوالي کې ډیرې روژې پاتې شوې دي، (یعنې له کله چې روژې فرض شوي دي) چې لږ شان به یې هم طبیعت خراب و؛ نو د هغې د کور مشرانو به د روژو نیولو نه منع کوله او هغې ته داسې ماحول ملاونه شو چې هغې ته معلومه شوې وای چې روژې نیول ضروري دي.

اوس مې مور ته د ټول حقیقت پته لګیدلې ده او هغه ډیره پریشانه ده، اوس هغه د تیرو روژو قضا نیول غواړي، خو څنګه چې روژې نیول شروع کړي؛ نو درې څلور ګنټې وروسته پرې داسې سخته یخني راشي چې د هیڅ کار قابل پاتې نه شي، ډیر علاج مو ورته وکړ، خو هیڅ ګزاره یې ونه شوه، اوس تاسو نه دا پوښتنه ده چې مور بې بي مې خپلې قضا روژې څنګه ونیسي؟ یا بیا د هغو فدیه ورکړي؟ او که فدیه ورکړو؛ نو د یوې روژې په سر څومره ورکړو؟

**جواب:** که هغه د خپل ضعف او مرض له وجې نه قضا روژې نه شي نیولی؛ نو فدیه ادا کړئ، د هرې روژې په بدله کې د صدقه فطر برابر مقدار کې نغدي یا غله ورکړئ![2]

## که چا ته قی ورځي، روژو سره څه وکړي؟

**سوال:** د حمل په دوران کې پوره نهه میاشتې په ماته قی راځي او د کوشش باوجود هم هیڅ قسم نه کمیږي، اوس زه ډیر کوشش کوم چې خدای زما روژې پوره کړي را پاڅم او پیشمنی کوم او که

---

۱ ] والشیخ الفانی الذی لایقدرعلی الصوم یفطرویطعم لکل یوم مسکینًا نصف صاع من بر...... الفانی الذی قرب الی الفناء او فنیت قوته وکذا العجوزمثله......ان الاباحة فی التغذیة والتعشیة والقیمة فی ذلک جائز (الجوهرالنیرة ،کتاب الصوم ،ج:۱ص:۱۴۷،طبع مجتبائی دهلی)۔

۲ ] فان الشیخ الفانی الذی یعجزعنه فی الحال بسبب الهرم ویزاد کل یوم.....وفی حکمه....کل من یعجز عن الصوم فی الحال وییس عنه فی الاستقبال افطرواطعم تملیکاً او اباحة......لکل یوم الفطر فیه مسکیناً ای مصرفاً من المصارف کما اشرنا الیه، کالفطر نصف صاع من ا لبر (جامع الرموز الروایة فی شرح المختصرالوقایة ،فصل موجب الافساد،ج:۲ص:۳۶۶،۳۶۷طبع مکتبة الاسلامیة ایران،ایضًا جوهرة النیرة ج:۱ص:۱۴۷)۔

ونکړم؛ نو به لاسوپښوکې مې زورنه وي او د ماشومانو له پاره کار روزګار کول هم ضروري دي مګر چې سهارشي؛ نو بنه په ډکه خوله قی راځي او بیاراکې دومره طاقت نه وي چې روژه ونیسم؛ نو اوس مولاناصاحب! ایا زه دا کولی شم چې یو مسکین ته خوراک روزانه ورکوم چې هغې سره زما د روژو کفاره پوره شي؟

**جواب:** د حمل حالت عارضي دی[1]، په دې حالت کې که ته روژې نه شي نیولی؛ نو د صحت په حالت کې د دې روژو قضا لازمه ده، د فدیې ورکولو حکم د هغه کس له پاره دی چې نه خو في الحال روژې نیولی شي او نه اینده په پوره ژوندکې دا توقع وي چې هغه به دا قضا روژې ونیسي، تاسو بل وخت کې دا قضا روژې نیولی شئ د دې له وجې ستاله طرف نه د روژو فدیه ورکول صحیح نه دي.[2]

## د روژې فدیه څومره، چاته او کله ورکړل شي؟

**سوال:** زه د ناروغۍ له وجې روژې نه شم نیولی، اوس فدیه ورکول غواړم، فدیه په کوم حساب سره ورکول کیږي؟ تاسوراته دا ووایئ که روزانه په مسکین باندې خوراک خوړل ضروري وي؛ نو دا سهولت ماته حاصل نه دی، د دې له وجې د فدیې پوره رقم راته وښیئ چې زه د پوره روژو پوره قیمت مسکین ته ورکړم او که څوک حقدارپیدا نه شو؛ نو ایا فدیې دارقم یتیم خانې یا فلاحي ادارې ته ورکول کیدای شي؟ فدیه په رمضان شریف کې ورکول ضروري دي یا که مجبوري وي ؛نو د رمضان د تیریدونه وروسته هم ورکول کیدای شي؟

**جواب:** د هرې روژې فدیه د صدقه فطربرابرده، یعنې پاوکم دوه کیلوغله یا د دې قیمت[3]، د فدیې رقم چیرته په دیني مدرسه کې د یې جمع شي فدیه په رمضان المبارک کې اداکول بهتر دي او که په رمضان کې مواد انه کړه ؛ نو وروسته هم ورکول کیدای شي.[4]

## د روژو فدیه خپل اولاد یا لمسیو ته ورکول جائز نه دي

**سوال:** د روژوفدیه خپلې لور، لمسي، لمسۍ اوزوم ته ورکول پکاردي او که نه؟

---

۱ ]وقضوا لزومًا ماقدروا بلافدیة وبلا ولاء ......الخ (الدرالمختارج:۲ص:۴۲۳)،ویقضی مافطر واطعم ان قدرعلی الصوم لانه یشترط لجوازالخلف دوام العجز (جامع الرموزج:۲ ص:۳۶۷طبع ایران)_

۲ ] ومتی قدرقضی لان الاستمرارالعجزشرط الخلیفة .......الخ (الدرالمختار ج:۲ ص:۴۲۷، کتاب الصوم)_

۳ ]وان عجز عن الصوم اطعم ستین مسکینًا کالفطرة قوله: کالفطرة ای نصف صاع من براوصاع من تمراوشعیر (ردالمحتار ج:۲ ص:۴۷۸، وایضاً فی جامع الرموز ج:۲ص۳۶۶،۳۶۷ والجوهرة النیرة ج:۱ص:۱۴۷)_

٤ ] ثم ان شاء اعطی الفدیة فی اول رمضان بمرة وان شاء آخره ا الی آخره کذا فی النهرالفائق .(عالمگیری ج:۱ص:۲۰۷،کتاب الصوم ،الباب الخامس فی الاعذارالتی تبیح الافطار،طبع رشیدیه)_

**جواب:** د روژو فدیه خپل اولاد یا لمسیو ته ورکول جائزنه دي.[۱]

## د مدرسې غریبو طالبانو ته د روژو فدیه ورکړئ

**سوال:** زما موربې بې ضعیف العمره ده اوډیره زیاته کمزورې ده چې د روژو نیولوطاقت په کې نه شته، هغه دازادکشمیرراولاکوټ په یوکلي کې اوسیږي، زه دهغې دروژوپه بدله کې کفاره اداکول غواړم، زموږپه کلي کې څوک داسې مسکین نه شته چې په هغه باندې د دوو وختونو خوراک وخوړل شي، زموږ په مرکزکې یو جومات او یودیني مدرسه ده، زه هغې مدرسې ته رقم لیږل غواړم، مهرباني وکړئ اوتفصیل سره جواب راکړئ چې زه دشپیتو روژو د پاکستاني حساب سره څومره رقم ولیږم.؟

**جواب:** ددیني مدرسې غریبوطالبانوته دفدیې پیسې ورکول کیدای شي[۲] دمدرسې په څه بل څه مدکې ددې پیسواستعمال جائزنه دی[۳] اودهرې روژې فدیه دصدقه فطربرابره ده.

دشپیتوروژوفدیه دشپیتوصدقه فطربرابرشوه، په کومه ورځ چې ته فدیه اداکوې دهغې ورځې دقیمت په لحاظ سره یې ورکړه.[۴]

## د قضا روژو فدیه یومسکین ته په یو وخت ورکول جائزدي

**سوال:** درمضان المبارک دڅوقضا شویو روژو فدیه یوغریب یامسکین ته په یووخت کې ورکولی شو؟

**جواب:** دڅو روژو فدیه یومسکین ته په یووخت ورکول جائزدي، مګرپه دې کې اختلاف دی

---

۱ ] ولا الی من بینهما ولاد......الخ•وفی الشرح ......وفرعه وان سفل ......کاولاد الاولاد وشمل الولاد بالنکاح والسفاح ......الخ (شامی ج:۲ص:۳٤٦،باب المصرف ،طبع ایچ ایم سعید)۔

۲ ] مصرف الزکاة والعشر.....هوفقیر......ومسکین ......وعامل ......ولوغنیالا هاشمیًالانه فرع نفسه لهذا العمل فیحتاج الی الکفایة والغنی لایمنع من تناولها عندالحاجة ......وبهذا التعلیل یقوی مانسب للواقعات من ان طالب العلم یجوزله اخذالزکاة ولوغنیًا اذا فرع نفسه لافادة العلم واستفادته لعجزه عن الکسب والحاجة داعیة الی مالابدمنه ......وفی سبیل الله (الدرالمختار)وفی الشامیة (قوله ای مصرف الزکاة) وهو مصرف ایضًا لصدقة الفطروالکفارة والنذر وغیر ذلک من الصدقات الواجبة ......(قوله وقیل طلبة العلم)کذا فی الظهیریة قد قال فی البدائع :فی سبیل الله جمیع القرب فیدخل فیه کل من سعی فی طاعة الله وسبیل الخیرات اذاکان محتاجًا (ردالمحتارمع الدرالمختار،کتاب الزکاة ،باب المصرف ،ج:۲ص:۳۳۹تا۳٤۳،وایضًافی البحر، کتاب الزکوة ،باب المصرف ج:۲ص:٤۲٤)۔

۳ ]ویشترط ان یکون الصرف تملیکًا لا اباحة کمامرلایصرف الی بناء ......الخ•وفی الشرح :نحومسجدکبناء القناطر والسقیات واصلاح الطرقات وکری الانهار...الخ (شامی ج:۲ص:۳٤٤،کتاب الزکاة ،باب المصرف)

٤ ]وان عجز عن الصوم اطعم ستین مسکینًا کالفطرة ای نصف صاع من براوصاع من تمراوشعیر (ردالمحتار ج:۲۱ص:٤۷۸، وایضًا فی جامع الرموز ج:۲ص۳٦۷،۳٦٦ والجوهرة النیرة ج:۱ص:۱٤۷)۔

ددې له وجې احتياط خودادی چې دګڼو روژو فدیه دې يوته ورنکړل شي، خو د ورکولو ګنجائش هم شته.[1]

## د مرحومينو د قضا شويو روژو فديه ورکول ډير زيات ضروري دي

**سوال:** مسلمانان اکثريت بيلمازه اوروژه خواره دي، کله چې هغوی مړه شي: نودهغوی دريمه، لسمه، څلويښتي اوکال په عام ډول سره کيږي، قرآن خواني هم کيږي چې په هغه خلک په خوشالۍ سره شريکيږي، دګاونډ دجومات مدرسې طالبان هم ډيرپه بيړه قرآن پاک ختموي، دکجوروپه هډوکو باندې دکلمې طيبې وردهم کيږي، خوراکونه خوړل کيږي، څه خير خيرات هم ورکول کيږي، خو مرحوم چې کوم بې شميره روژې اولمونځونه قضاکړي دي دهغو دکفارې اداکولو ذکر چيرته هم نه وي، ماليدلي دي چې مرحوم په لکونو جائدادپريږدي اودمرحوم وارثان يعنې لوبه زامن اوښځه وغيرو ته خپلې خپلې برخې ملاوشي، خودمرحوم پلار د قضا روژو اوقضا لمونځونو بقاياڅوک هم نه اداکوي، زه په ډيرشوق سره،،اپ کے مسائل اور ان کاحل،، د(۱۹۷۴ء)کال څخه لولم، هم ددې نه راته معلومه شوه چې د قضا روژو فديه ورکول پکاردي، خو تاسوديوسوال په جواب کې داهم ليکلي دي چې مړکيدونکی دې وصيت وکړي چې دقضا شويو لمونځونو او روژو فديه دې وارثان اداکړي اوتاسوچيرته هم په دې زور نه دی ورکړی چې نالائقه وارثان دې په خپله دخپل موروپلار دقضا شويو لمونځونو او روژو فديه اداکړي، ماواوس يوکتاب فتاوا قادريه لوستې ده چې ديو فرنګي محلې عالم ليکلې ده، په هغه کې ديرش څلويښت کاله مخکې چاسعادت مند وارث دخپل يومرحوم دژوندتولولمونځونوفديه معلومه کړې وه عالم صاحب ورته دوه څلورلکه رقم ښودلی و؛ نوداخوډيره اهمه مسئله شوه، اوس تاسووايئ چې دمرحوم دقضا شويو لمونځونو او روژو دفديې کارنه کيږي؛ نو ايافوت شوي لمونځونه اورژوې به په ورځ حشرکې معاف شي؟

**جواب:** دمرحوم له طرف نه دفديې څومسائل ذکرکوم تولومسلمانانوته ددې علم پکاردی:

**اول:**.....کوم کس چې په داسې حال کې وفات شي چې دهغه په ذمه روژې وي يالمونځونه وي؛ نو په هغه باندې فرض دي چې هغه وصيت کولونه وروسته مړشي چې دهغه د روژو او لمونځونو فديه دې ورکړل شي، که هغه وصيت ونه کړ؛ نوګناهګاربه وي.[2]

---

۱ ] وللشيخ الفانى العاجزعن الصوم الفطرويفدى وجوبًا ......بلاتعدد فقير كالفطر(قوله وبلا تعدد فقير) اى بخلاف نحوكفارة اليمين للنص فيهاعلى التعدد،فلواعطى هنا مسكينًا صائمًا عن يومين جازلكن فى البحرعن القنية ان عن ابى يوسف فيه روايتين وعندابى حنيفة لايجزيه......الخ (ردالمحتار ج:۲ص:۴۲۷) ويجوزاعطاء فدية صلوت وصيام ايام ونحوها لواحد من الفقراء جملة (مراقى الفلاح مع الطحطاوى، فصل فى اسقاط الصلاة والصوم ص:۲۳۹، طبع ميرمحمد، وايضاً فى مراقى الفلاح، فصل فى الكفارة ص:۳۶۷)_

۲ ] وللشيخ الفانى العاجزعن الصوم الفطرويفدى وجوبًا ......الخ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

**دويم**:.....كه مړى دفديې اداكولووصيت وكړي؛ نودمړي په وارثانو باندې به فرض دي چې دمړي دكفن دفن اوقرض اداكولونه وروسته چې څومره جائداد پاتې شي دهغو په دريمه برخه كې دهغه د وصيت مطابق دهغه دلمونځونواوروژوفديه اداكړي.[١]

**دريم**:....كه مرحوم وصيت ونه كړي، ياهغه مال پرې نښود، خووارث له خپل طرف نه دمرحوم د لمونځونو، روژو، فديه اداكړي؛نودالله تعالى درحمت نه طمع ده چې دافديه به قبوله كړي.[٢]

**څلورم**:.....ديوې روژې فديه دصدقه فطربرابرده، يعنې تقريباً پاوكم دوه كيلوغله، د يو رمضان د روژو فديه دوه پنځوس نيم كولوشوه اوددريورمضانو(٩٠) روژوفديه (١٥٧.٥) كيلو غله شوه، ددې مطابق دې نورحساب ولګول شي.[٣]

همدغه شان دهرلمونځ فديه هم دصدقه فطربرابرده اوسره دوتريه شپه ورځ كې شپږ لمونځونه دي (پنځه فرض اويوواجب)[۴] ديوې ورځې دلمونځونو فديه لس نيم كيلو شوه او د يوې مياشتې د لمونځونو فديه (٣١٥) كيلوشوه اوديوكال دلمونځونو فديه (٣٧٨٠) كيلوغله شوه، د مرحوم په ذمه چې څومره لمونځونه اوروژې پاتې كيږي دې حساب سره دې فديه وركړل شي.

**پنځم**:....كوم حكم چې درمضان دفرضي روژودى هغه دنذر(منل شويو) روژوهم دى:[٥] كه چاځه دمنبتي روژې منلې وي اوهغه يې ادانه شوي چې وفات شو؛ نودهرې روژې فديه به

...بقيه د تېر مخ]..٠وشرحه :لان عذره ليس بعرضى للزوال حتى يصيرالى القضاء فوجبت الفدية ......وعند العجز بالموت تجب الوصية بالفدية.(شامى ج:٢ص:٤٢٧)_

١ ] وفدى لزومًا عنه اى الميت وليه الذى يصرف فى ماله كالفطر قدرا بعدقدرته عليه اى على قضاء الصوم ...... بوصيته من الثلث......الخ ( (قوله من الثلث)اى ثلث ماله بعد تجهيزه وتكفينه وايفاء ديون العباد (ردالمحتارعلى الدرالمختار ج:٢ ص:٤٢٤ ،فصل فى العوارض المبيحة لعدم الصوم ،كتا ب الصوم)_

٢ ] وان لم يوص وتبرع وليه به جازان شاء الله ويكون الثواب للولى (الدرالمختارمع الردج:٢ص:٤٢٥)_

٣ ] وان عجز عن الصوم اطعم ستين مسكينًا كالفطرة قوله: كالفطرة اى نصف صاع من براوصاع من تمر او شعير (ردالمحتار ج:٢ ص:٤٧٨، وايضًا فى جامع الرموز ج:٢ص٣٦٧،٣٦٦ والجوهرة النيرة ج:١ص:١٤٧) (قوله نصف صاع من بر) اى من دقيقه اوسويقه ......اوقيمته وهى افضل عندنا لاسراع سدحاجة الفقير (ردالمحتار، باب قضاء الفوائت ج:٢ص:٧٣،مراقى الفلاح ص:٣٦٧)_

٤ ] وفدية كل صلاة ولو وترا كمافى قضاء الفوائت كصوم يوم على المذهب ...... الخ (الدرالمختارمع الردج:٢ص:٤٢٦)،يعطى لكل صلاة نصف صاع من بركالفطروكذا حكم الوتروالصوم (درمختار،باب قضاء الفوائت ج:٢ص:٧٢،وكذا فى البحر،باب قضاء الفوائت ج:٢ص:١٠٦،وكذافى رشيديه ج:١ص:١٢٥)_

٥ ] الصوم ضربان واجب ونفل والواجب ضربان مايتعلق بزمان بعينه كصوم رمضان والنذر المعين (هداية ج:١ص:٢١١كتاب الصوم)_

دپورتنۍ شرحې مطابق وي.[۱]

**شپږم:**.....که دوارث سره دومره مال نه وي چې دمرحوم له طرف نه د لمونځونو اوروژو فدیه پرې په یوځای اداکړل شي؛ نولږلږ اداکول یې هم جائزدي.

## بې وزله مریض د روژې فدیه څنګه اداکړي؟

**سوال:** زمادزیابیطس (شوګر) مرض دی، چې دهغه له وجې زه د رمضان فرض روژې نه شم نیولی ما کوشش وکړ؛ نوپه ماچکرراشي اوزه ډیره زیاته ناروغه شم، زمادکورخرچ هم ډیرپه مشکل سره پوره کیږي، لهذاکفاره اداکولی نه شم، مهرباني وکړئ اوزمارهنمایي وفرمایئ.

**جواب:** څنګه توره سپوره چې په خپله خوري هما غه شان چامحتاج ته دورځې دوه وخته ورکوه[۲]،

اوکوم کس چې روژه نه شي نیولی اود هغه سره دفدیې ورکولوله پاره هم څه نه وي، هغه دې یوازې استغفارکوي اودانیت دې وکړي چې کله هم څه ګنجائش ملاوشي؛ نوهغه به ددې روژو فدیه ورکوي[۳]

## ایا د مړي له طرف نه د هغه ولي روژه نیولی شي؟

**سوال:** ایا د مړي له طرف نه د هغه ولي روژه نیولی شي؟

**جواب:** دمړي له طرف نه لمونځ او روژه بل څوک نه شي کولی،[۴] بلکې د لمونځونو او روژو فدیه ورکول ضروري دي، د یوې روژې فدیه د صدقه فطر برابر ده،[۵] همدغه شان د هر لمانځه فدیه د صدقه فطر برابر ده، په ورځ کې شپږ لمونځونه (د وترو سره) وي، د یوې ورځې

---

۱ ] اذا نذران یصوم کل خمیس یاتی علیه فافطرخمیسًاواحدًا فعلیه قضاؤه ،کذافی المحیط .ولو آخرالقضاء حتی صارشیخافانیًا اوکان النذربصیام الابدفعجز لذالک اوباشتغاله بالمعیشة لکون صناعة شاقة فله ان ینفطر ویطعم لکل یوم مسکینًا علی ماتقدم .(عالمگیری ج:۱ص:۲۰۹،کتاب الصوم ،الباب السادس فی النذر)_

۲ ]والشرط اذا اباح الطعام ان یشبعهم ولوبخبزالبرمن غیرادم (مراقی الفلاح ،فصل فی الکفارة ص۳۶۷،طبع میرمحمد)_

۳ ] کذا لونذرصوم الابدفضعف عن الصوم لاشتغاله بالمعیشة له ان یفطرویطعم لانه استیقن ان لایقدرعلی قضائه فان لم یقدرعلی الاطعام لعسرته یستغفرالله ویستقیلة......الخ (فتح القدیر ج:۲ص:۸۳) فان لم یقدرمن تجوز له الفدیة علی الفدیة لعسرته یستغفرالله سبحانه ویستقیله ای یطلب منه العفو عن تقصیره فی حقه .(مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ،باب مایفسدالصوم ویوجب القضاء ص:۳۷۶)_

۴ ] عن مالک بلغه ان ابن عمرکان یسال هل یصوم احدعن احداویصلی احدعن احد؟فقال:لایصوم احدعن احدولایصلی احدعن احد .(مشکوة ،کتاب الصوم ص:۱۷۸)

۵ ] من مات علیه قضاء رمضان فاوصی به اطعم عنه ولیه لکل یوم مسکینًا نصف صاع من براوصاعا من تمراوشعیر (هدایة ج:۱ص:۲۲۲،باب مایوجب القضاء والکفارة)

د لمونځونو شپږ فديې شوې.[۱]

## ايا د وفات شوي له طرف نه د کفارې روژې نيول کېداى شي؟

**سوال:** په يو سړي باندې د روژو کفاره وه، ايا د هغه اولاد دا کفاره ادا کولی شي او که نه؟ يا که د هغه اولاد روژې ونيسي؛ نو کفاره به يې ادا شي.

**جواب:** د چا په ځاى لمونځ نه شي کېداى، نه د هغه په ځاى روژې نيول کيداى شي،[۲] خو اولاد که د مور وپلار د روژو فديه ادا کړي؛ نو توقع ده چې قبوله به شي. [۳]

## ايا د بل چا له طرف نه روژه نيول جائز دي؟

**سوال:** د ريډيو پاکستان نه ديني مسائلو باندې مبني پروګرام "آپ نے پوچھا ھے" نشر کيږي، په هغه کې يو ډاکټر صاحب د سائل د سوال جواب ورکولو کې وفرمايل چې: د رمضان فرض روژې يو سړى د بل سړي له طرفه نيولې شي او مور ستاسو په شان جيد علماء کرامو نه اوريدلي دي چې څوک هم د يو بل له طرفه نه لمونځ کولی شي او نه روژه نيولی شي؛ نو ايا څوک د بل چا له طرفه روژه نيولی شي يا لمونځ کولی شي؟

**جواب:** بدني، عبادت، لمونځ روژه د بل چا له طرفه نه شي ادا کولی، کوم سړى چې خپله روژه نه شي نيولی شريعت د هغه له پاره د فديې حکم تجويز کړى دى، تاسو چې د ريډيو پاکستان د کومې مسئلې ذکر کړى دى، هغه غلطه ده.[۴]

## روژې نيولو سره که د ګيس تکليف پيداشي؛ نو ايا روژه ماتول روادي؟

**سوال:** عرض دى چې زما تقريبا درې څلويښت کاله عمر دى او د ماشوم والي نه تراوسه پورې ما د رمضان شريف روژې نيولې دي، خو يو خاص خبره دلته ذکر کوم چې د رمضان په مياشت کې پوره تکليف کې اخته شم، ځکه چې د روژې نيولو له وجې معده ګيس ونيسي، چې د هغه له وجې په دماغو باندې ګيس راوخيژي، دماغ شليدو ته نژدې شي، سر راباندې ګرځي، د خولې خوند مې خراب شي، مختصر الفاظو کې دا چې ځينې وخت خو قى محسوسوم، حال دا

---

۱ ] ولومات وعليه صلوات فائته واوصى بالکفارة يعطى لکل صلاة نصف صاع من برکالفطروکذا حکم الوتروالصوم ـ(الدرالمختارمع الردج:۲ص:۷۲،باب قضاء الفوائت)

۲ ] لايصوم عنه الولى ولايصلى لقوله عليه السلام :لايصوم احدعن احدولايصلى احدعن احد (هندية ج:۱ ص:۲۲۳،باب مايوجب القضاء والکفارة ،وايضامشکوة ج:۱ص:۱۷۸کتاب الصو م، طبع رشيديه)

۳ ] فان لم يوص وتبرع عنه الورثة جازـ (عالمگيرى ج:۱ ص:۲۰۷، کتاب الصوم، طبع رشيديه)

۴ ] من مات وعليه قضاء رمضان فاوصى به اطعم عنه وليه لکل يوم مسکيناًنصف صاع من براوصاع من تمراوشعير......ولايصوم عنه الولى ولايصلى لقوله صلى الله عليه وسلم لايصوم احدعن احدولايصلى احدعن احد (هداية مع فتح القدير ج:۲ص:۸۳ تا۸۵ طبع مصر)

چې کاروبار باقاعده کوم، صحت مند یم، خو په رمضان شریف کې د خولې د بندیدو له وجې راته پوره تکلیف وي.

**جواب:** که د روژې له وجې سخت تکلیف وي چې د هغو برداشت کول ګران وي؛ نو تاسو د روژې په بدل کې د صدقه فطر مقدار یو محتاج ته ورکړئ، تاسو ته د روژې د نه نیولو رخصت دی، د صدقه فطر قیمت نن سبا اته روپۍ دی.[1]

## د ګردو د ناروغ که روژه نه شي نیولی؛ نو څه وکړي؟

**سوال:** زما مور بي بي چې د هغې عمر پنځه څلویښت کاله دی، د رمضان روژې همیشه نیسي، خو د تیرو درې کلونو نه د ګردو د ناروغي له وجې روژې نه شي نیولی، اراده يې وه چې په صحت موندلو باندې به قضاء روژې ونیسي، خو صحت يې برابر نه شو، د دې روژو قضا یا کفاره څنګه ادا کیږي؟

**جواب:** ستاسو مور چې د کوم کال څومره روژې ونه نیولې، د هغې حساب کولو سره دې د یوې روژې فدیه د صدقه فطر مطابق ادا کړي، الله پاک دې قبول کړي، د معذوري او د ناروغي له وجې چې کومې روژې نه شي نیولی د هغو فدیه ورکول پکار دي.[2]

## په کټ باندې پرته ښځه د هغې نه پاتې شویو روژو سره به څه کیږي ځکه چې هغه وفات شوې ده

**سوال:** زما مور په دې کال دومره ناروغه وه چې تقریبا شپږ میاشتې په کټ باندې وه او بیا له دې دنیا نه رخصت شوه، په دې دوران کې هغې د رمضان روژې ونه نیولې، تاسو بیان کړئ چې زه د هغې د روژو څومره فدیه ورکړم او که زه فدیه ورنکړم؛ نو ایا په هغې باندې به د روژو بوج وي؟ د فدیې شرح راته هم بیان کړئ!

**جواب:** د خپلې مور له طرفه د هرې روژې په بدل کې دوه سیره غنم یا د هغو قیمت چا محتاج ته ورکړئ، انشاء الله د هغې د ذمې فرض به ادا شي.[3]

---

[1] وعلى الذين يطيقونه فدية طعام مسكين .(البقرة :١٨٤) فصل فى العوارض المبيحة لعدم الصوم ...... اومريض خاف الزيادة لمرضه وصحيح خاف المرض ......الخ٠وفى الشرح :قوله خاف الزيادة او ابطاء البرء اوفساد عضو بحراو وجع العين اوجراحة اوصداعااوغيره ......الخ (الدرالمختارمع الردج:٢ص:٤٢٢)

[2] والشيخ الفاني الذى لايقدرعلى الصيام يفطر ويطعم لكل يوم مسكيناً كما يطعم فى الكفارات، والاصل فيه قوله تعالى وعلى الذين يطيقونه فدية طعام مسكين قيل معناه :لايطيقونه .(هداية مع فتح القدر ج:٢ص:٨٢، كتاب ا لصوم طبع دارصادربيروت)

[3] ولوفات صوم رمضان بعذرالمرض ..........حتى مات لاقضاء عليه لكنه اوصى بان يطعم عنه صحت وصيته ...... فان لم يوص وتبرع عنه الورثة جاز (عالمگيرى فى الاعذارالتى تبيح الافطارج:١ص:٢٠٧)

## که په روژه نیولو سره د ګردې تکلیف زیاتیږي؛ نو ایا پریښودل یې جائز دي؟

**سوال:** ماته د (۱۹۶۸ء) کال نه د ګردې د درد تکلیف دی، د سختې پریشاني نه وروسته په مارچ (۱۹۷۱ء) کې ما ددې له وجې اپریشن وکړ، له دې وروسته به مې چې په رمضان کې روژې نیولې؛ نو متیازې به مې د ماسپښین نه وروسته بالکل سور رنګ کې راتلې او ډیره کمزوري به راته محسوسیده، خو په هر حال د روژو پابندي به مې کوله، بیا له دې وروسته معلومه نه ده چې څنګه مې په ښي ګرده کې هم غټې کاڼې و او هغه داسې وکړل چې د ګردې په کارکردګي کې یې هم فرق پیدا کړ، د هغې اپریشن مې په ایمرجنسي کې په (۱۹۸۰ء) کې وکړ، دا دواړه اپریشنونه د واده نه مخکې وشول او له دې وروسته به هم کله په ښي اوکله په ګسه(چپه) ګرده کې درد اوکله به تکلیف راته کیده، په هرحال دا تکلیف به ټول کال کله کله راته، بیا زما واده وشو، له دې نه وروسته به د حمل په دوران کې مستقل په ګرده کې تکلیف کیده، د دویم بچي د پیدائښ نه وروسته هم په ګرده کې مستقل تکلیف وي، یا خو درد او یا انفکشن، اوس جناب بیا روژې راروانې دي، د دې ټول تفصیل د بیانولو مقصد دادی چې زه تاسو نه دا معلومول غواړم چې زه روژې په پابندي سره نیولی شم اوکه نه؟ اوس که دا په دې تکلیف کې هم په ما باندې فرض وي؛ نو که هر څه وي زه به په هر حال روژې نیسم، خو که بل څه صورت وي؛ نو تاسو یې راته په تفصیل سره بیان کړئ، چې بیا د دې بدل څه دی؟

**جواب:** که تاسو د روژې طاقت نه لرئ یا ډاکټر مو د روژې نیولو نه منع کوي؛ نو د روژې په ځای فدیه ادا کوئ! یعنې د هرې روژې په بدل کې یو محتاج ته دوه وخته ډوډۍ ورکوئ، یا یو محتاج ته نغدې اووه روپۍ روزانه ورکوئ![1]

## که د روژې نیولو نه وروسته یې دوایي وخوړه؛ نو ایا کفاره به هم وي؟

**سوال:** زما عمر اولس کاله دی، زما مسئله داده چې زما په زړه کې پیدائشي سوری دی، زما اپریشن نه دی شوی، څکه چې په استخاره کې منع راغلې وه، زه د خپلې ناروغۍ له وجې یوه دوایي خورم، کومه چې د اکسیجن له پاره ده او زه هغه نه شم پریښودلی، چې د هغه له وجې زه روژې نه شم نیولی، یو کرت ما ضد کولو سره نیولې وې؛ نو په مینځ کې مې دوایي وخوړله او په ورځ کې څلور کرته خوړل ضروري دي، معلومات دا کول دي چې د دولسو نه اولس کلنو پورې د روژې نه نیولو به څومره کفاره ادا کول وي؟ یا که دومره روژې به نیول غواړي؟ ایا زه د

---

[1] کل من یعجزعن الصوم فی الحال وینس عنه فی الاستقبال افطر واطعم ......لکل یوم افطرفیه مسکیناای مصرفامن المصارف کمااشرنا الیه ،کالفطرنصف صاع من بر (جامع الرموز ج:۲ ص:۳۶۶،۳۶۷، وایضاف الجوهرة النیرة ج:۱ص:۱٤۷،کتاب الصوم ،هدایة مع الفتح)

روژې د نه نیولو په وجه ګناهګاره یم؟ هغه روژې چې د هغې په مینځ کې ما دوایي خوړلې وه، ایا هغه ماتې شوې؟ که هغه ماتې شوې وي؛ نو د هغو کفاره څه ده؟ یو کرت ما روژې نیولې وې او په مینځ کې مې دوایي نه وه خوړلې؛ نو زه سخته بیماره شوې وم او تر یوې میاشتې پورې مې هسپتال کې ته تلو سره اکسیجن لګاو.

**جواب:** د روژې په دوران کې په دوایي خوړلو سره روژه ماتیږي،[1] او د هغې کفاره داده چې روژه دې قضا هم وکړل شي او شپیته روژې دې متواتر پرته له عذر نه ونیول شي او ته یوه روژه هم په ګرانه نیولی شي؛ نو شپیته روژې به څنګه نیسې، ددې په ځای شپیتو مسکینانو ته خوراک ورکړه[2] اولس روپۍ د یو محتاج خوراک جوړیږي ته اولس روپیو ته په شپیتو کې ضرب ورکولو سره چې څومره پیسې جوړیږي هغه په یو دیني اداره کې جمع کړه.

۲: ستا له پاره روژه نیول مشکل دي، له دې وجې که په رمضان کې کومه روژه نیولی شې؛ نو ویې نیسه، د باقي روژو فدیه ادا کړه او فدیه د یوې روژې هم هغه د صدقه فطر برابر اولس روپۍ ده. والله اعلم!

## له چت نه د ماشوم په غورځیدو سره د مور حالت خطرناک شو، هغې روژه ماته کړه؛ نویوازې قضا واجب ده

**سوال:** مادخپل زوی له پاره چې د دولسو کلونو وو په چت باندې د پتنګ بازي په شوق کې راپریوتی و، هغه د رمضان میاشت وه او زما روژه وه، د سهار څه د نهه نیمو بجو وخت و، چې زما حال خراب شو؛ نو د کور خلکو زما روژه ماته کړه او کله چې زما حال څه ګزاره وکړه؛ نو ما د منبنتې په ډول لس روژې ومنلې، په دې لسو روژو کې مې شپږ روژې دوه دوه نیولې دي د اوس نه درې کلونو مخکې پورې، خو اوس ماته د دمې ناروغي هم ده، بلډ پریشر هم دی او ددې نه پرته نورې ناروغیانې هم دي او د دوایانو نه پرته څو ګنټې هم نه شم پاتې کیدای، ایا زما زوی چې اوس ځوان دی هغه دا روژې نیولی شي؟ یا که کفاره به ادا کول غواړې، زه د رمضان فرض روژې هم نه شم نیولی دومره زما حالت خراب دی.

**جواب:** کومه روژه چې یې تاسو ماته کړې وه که ستاسو حالت خراب شوی و؛ نو د هغې

---

[1] اکل او شرب غذاء......او دواء......عمداً.......قضی....... وکفر....الخ. (الدرالمختار ج:۲ ص۴۰۹، ۴۱۱، کتاب الصوم، باب مایفسد الصوم وما لا یفسده، طبع سعید)

[2] فیعتق اولاً فان لم یجد صام شهرین متتابعین فان لم یستطع اطعم ستین مسکیناً. (حاشیة ردالمحتار ج۲ ص۴۱۲) اذا اکل متعمداً ما یتغذی به او یتداوی یلزمه الکفارة. (فتاوی هندیة، کتاب الصوم، النوع الثانی ما یوجب القضاء والکفارة ج۱ ص۲۰۵، طبع رشیدیة کوئته)

يوازې قضاء واجب ده، کفاره نه[1] خو که ستاسو حالت صحيح و اوبرته له ضرورت نه يې درته روژه ماته کړې وي؛ نو د هغې کفاره هم واجب ده[2] او د کفارې په ډول د دوه مياشتو مسلسل روژې واجب دي او که د هغې طاقت نه وي؛ نو شپيتو مسکينانو ته دې دوه وخته ډودۍ ورکړل شي. [3]

د کومو روژو چې تاسو منښته کړې وه او اوس مو د روژو د نيولو طاقت پاتې نه شو، د هغو فديه ادا کړئ، د يوې روژې فديه د صدقة الفطر برابر ده، همدغه شان کومه روژه چې تاسو ماته کړې وه، که تر اوسه پورې مو هغه نه وي نيولې، د هغې فديه هم ادا کړئ![4]

## د بلډ پريشر او شوګر مريض که روژې نه شي نيولی؛ نو څه به کوي؟

**سوال:** زما عمر دا وخت تقريبا د (۷۲)کلونو څخه زيات دی، زه د بلډ پريشر او شوګر مريض يم، خودرمضان روژې به مې برابرې نيولې، کله به د زيات تکليف له وجې روژې قضاء شوې، د هغو فديه به مې ورکوله، خو اوس ډير زيات کمزوری شوی يم، ايا زه د قضا روژو فديه ورکولی شم؟

**جواب:** په ظاهر په دومره عمر کې روژې نيول ګرانې دي، له دې وجې تاسو حساب کولو سره چې درنه په ژوند کې څومره روژې پاتې شوې دي د هغو فديه ادا کړئ او نيت دا ساتئ چې که الله پاک توفيق راکړ؛ نو ان شاء الله دا روژې به نيسم. [5]

---

[1] وفى الظهيرية رضيع مبطون يخاف موته من هذا الدواء وزعم الاطباء ان الظئر اذا شربت دواء كذا برئ الصغير وتماثل وتحتاج الظئر الى ان تشرب ذلك نهاراً فى رمضان قيل لها ذلك اذا قال الاطباء الحذاق وكذلك الرجل اذا لدغته حية فافطربشرب الدواء قالوا ان كان ذلك ينفعه فلا باس به.(البحر الرائق ج۲ ص۳۰۳، فصل فى العوارض)

[2] ومن جامع.........او اكل او شرب ما يتغذى به او يتداوى به فعليه القضاء والكفارة لكمال الجناية بقضاء شهوة الفرج او البطن مثل كفارة الظهار......الخ. (اللباب فى شرح الكتاب، كتاب الصوم، باب ما يفسد الصوم ج۱ ص۱۵۷، طبع قديمى كتب خانه)

[3] فمن لم يجدفصيام شهرين متتابعين من قبل ان يتمآسّا،فمن لم يستطع فاطعام ستين مسكيناً..الآية (المجادلة:۴)

[4] اذا نذران يصوم كل خميس ياتى عليه فافطرخميسًاواحدًا فعليه قضاؤه ،كذافى المحيط .ولو آخرالقضاء حتى صارشيخافانيًا اوكان النذربصيام الابدفعجز لذالک اوباشتغاله بالمعيشة لكون صناعة شاقة فله ان ينفطر ويطعم لكل يوم مسكينًا على ماتقدم .(الفتاوى الهندية، كتاب الصوم،كتاب الصوم ،الباب السادس فى النذر ج:۱ص:۲۰۹)

[5] ويجوز الفطر لشيخ فان وعجوز فانية سمى فانيا لانه قرب الى الفناء او فنيت قوته وعجز عن الاداء و تلزمها الفدية...لكل يوم نصف صاع من بر او قيمته بشرط دوام عجز الفانى والفانية الى الموت. (مراقى الفلاح على هامش الطحطاوى، كتاب الصوم، فصل فيما يكره للصائم ص:۳۷۶)

# ❖ د روژې ماتولو کفاره ❖

## د روژې ماتونکي په باره کې د کفارې مسائل

**سوال:** مولاناصاحب! داراته ووايئ چې دقضاروژه په بدله کې يوازې ديوې روژې نيولوحکم دی خود کفارې په صورت کې په شپيتو مسکينانوباندې چې کوم دډوډۍ خوړلوحکم دی ددې په باره کې وضاحت وکړئ چې په شپيتومسکينانوباندې په يوځای دډوډۍ خوړلوحکم دی، يا ديووخت د ډوډۍ حساب لګولوسره هماغومره رقم په شپيتومسکينانوباندې تقسيم کړل شي يابيا د خوراک ورکولوحکم دی مثلاً: پنځه روپۍ في کس په حساب سره په شپيتو مسکينانو باندې رقم تقسيم کړل شي؟

**جواب:** د کفارې مسائل په لاندې ډول دي:

۱ :.....کوم کس چې دروژې نيولوطاقت لري دهغه له پاره دروژې کفاره دوه مياشتې پرله پسې روژې نيول دي، که په مينځ کې ترې يوه روژه پاتې شوه؛ نوپه دويم ځل دنوي سرنه به روژې نيسي.[۱]

۲ :.....که دسپوږمۍ دمياشتې دلومړي تاريخ نه يې روژې نيول شروع کړي وي؛ نودمياشتې حساب سره دې دوه مياشتې روژې ونيسي، که مياشت د۲۹، ۲۹ وي، ياد ۳۰، ۳۰وي، خوکه دمياشتې په مينځ کې يې شروع کړې؛ نوشپيته روژې پوره کول ضروري دي.[۲]

۳ :.....کوم کس چې په روژو نيولوباندې قدرت نه لري هغه دې په شپيتو مسکينانو باندې د دوو وختوډوډۍ وخوري، ياهرمسکين ته دې دصدقه فطربرابره غله يادهغې قيمت ورکړي.[۳]

---

۱] ومن جامع فى احدالسبيلين عامدًا فعليه القضاء ......والكفارة ......ولواكل اوشرب مايتغذى به او ما يتداوى به فعليه القضاء والكفارة ..... والكفارة مثل كفارة الظهار لماروينا ولحديث الاعرابى رضى الله عنه وفى البناية :(ثم قال والكفارة مثل كفارة الظهار)......وهى عتق رقبة فان لم يجدفصيام شهرين متتابعين ،فان لم يستطع فاطعام ستين مسكينًالكل مسكين نصف صاع من براوصاع من تمر......الخ(البناية فى شرح الهداية ،كتاب الصوم ج:٤ص:٣٠٠ تا٣٠٨ طبع حقانية) (ككفارة المظاهرمرتبط بقوله وكفراى مثلهافى الترتيب فيعتق اولا فان لم يجدصام شهرين متتابعين فان لم يستطع اطعم ستين مسكينًا لحديث الاعرابى المعروف فى الكتب الستة فلوافطرولولعذراستانف الا لعذرالحيض (شامى ج:٢ص:٤١٢ ،باب مايفسدالصوم ومالايفسده)

۲ ] اذاصام المظاهر شهرين متتابعين بالاهلة اجزاه وان كان كل شهرتسعة وعشرين يومًا،وان صام بغيرالاهلة ثم الفطرلتمام تسعة وخمسين يومًا فعليه الاستقبال (عالمگيرى ج:١ص:٥١٢ ،الباب العاشرفى الكفارة)_

۳ ] وللشيخ الفانى ......ومثله ......المريض اذاتحقق الياس من الصحة فعليه الفدية لكل يوم من المرض (ج٢ ص٤٢٧) كل من يعجز عن الصوم فى الحال وييئس عنه فى الاستقبال افطر واطعم......لكل يوم افطرفيه مسكينًا اى مصرفا من المصارف ......كالفطرنصف صاع من بر (جامع الرموزج:٢ص:٣٦٧)_

۴:.....که دیورمضان روژې یې څوځله ماتې کړې؛ نوهم یوه کفاره لازمیږي اوکه دجداجدا رمضانونو روژې یې ماتې کړې وي؛ نودهرې روژې له پاره مستقل کفاره به اداکول کوي.[۱]

۵:.....که ښځه خاوند درمضان دمیاشتې دروژې په مینځ کې صحبت وکړي؛ نوپه دواړوباندې جدا جدا کفاره لازمیږي.[۲]

## د رمضان د روژې په ماتولو باندې کفاره ده، له مسئلې ناخبري هیڅ عذر نه دی

**سوال:** که موږ ته د یوې مسئلې علم نه وي او مسئله موږ د شریعت خلاف وکړو، کله موږ ته د هغه مسئلې د خلاف شرع کیدو علم وشي؛ نو ایا ماته به د هغه مسئلې (کله چې ماته د مسئلې د خلاف شرع کیدو علم نه و) د خلاف شرع کیدو ګناه وي اوکه نه؟ د مثال په ډول ما د رمضان په روژو کې یوه روژه قصدا ماته کړه او ماته یوازې دومره علم و چې د روژې د ماتولو نه وروسته به په یوه ورځ دا ونیسم، یا دا چې قصدا روژه ماتولو باندې به قضاء روژه نیول وي؛ نو زه به یې وروسته ونیسم، خو ماته دا علم نه شته چې په قصدا روژه ماتولو باندې کفاره ادا کول وي چې هغه شپیته روژې یا ۶۰ مسکینانو ته خوراک ورکول دي. اوس ماته قصدا د روژې د ماتولو نه وروسته د مسئلې علم وشو؛ نو ایا کفاره به ورکوم یا که یوازې د الله پاک نه معافي غوښتل کافي دي؟ اوس ماته د دې مسئلې علم وشو، لهذا اوس به زه کله هم قصدا روژه نه ماتوم.

**جواب:** د رمضان المبارک روژه قصدا ماتولو سره کفاره لازمه ده او هغه دي شپیته ورځې مسلسل روژې نیول او څوک چې په روژو نیولو باندې قادر نه وي، هغه دې شپیتو مسکینانو ته ډوډۍ ورکړي او چاته د مسئلې علم نه کیدل عذر نه دی،[۳] له دې وجې ستاسو په ذمه شپیته روژې مسلسل نیول لازمي دي، اګر که په یخني کې یې نیسئ![۴]

---

۱ ] فان الطرفی رمضان مرارًا ان کان فی یوم واحدکفته کفارة واحدة بالاجماع وان کان فی رمضانین لزمه لکل یوم کفارة بالاجماع وان لم یکفرللاول فی الصحیح وان کان فی رمضان واحدفافطرفی یوم ثم فی یوم آخرفان کفرللاول لزمه کفارة للثانی بالاجماع وآن لم یکفرللاول کفته کفارة واحدة عندنا (الجوهرالنیرة ،کتاب الصوم ج:۱ص:۱۴۵ ،وکذا فی ردالمحتار ج:۲ص:۴۱۳ ،باب مایفسدالصوم ومالایفسده)۔

۲] من جامع عمداً فی احدالسبیلین فعلیه القضاء والکفارة ولایشترط الانزال فی المحلین کذافی الهدایة وعلی المراة مثل ماعلی الرجل ان کانت مطاوعة...الخ (عالمگیری ج:۱ص: ۲۰۵ ،وکذافی الجوهرة ج:۱ص:۱۴۴)

۳ ] ومن جامع عامدًا فی احدالسبیلین اواکل اوشرب ...... فعلیه القضاء والکفارة لان الجنایة متکاملة لقضاء الشهوة ......والکفارة مثل کفارة الظهار (الجوهرة النیرة ،کتاب الصوم ج:۱ ص:۱۴۳ ،طبع بمبئ)

۴ ](والکفارة مثل کفارة الظهار)...... وهی عتق رقبة فان لم یجدفصیام شهرین متتابعین فان لم یجدفاطعام ستین مسکینًا،لکل مسکین لصف صاع من تمر...الخ (البنایة فی شرح الهدایة ج:۴ص:۳۰۸ ،کتاب الصوم طبع حقانیة)

## که چا قصدا درمضان روژه ماته کړه؛ نو قضا او کفاره لازم ده

**سوال:** مولاناصاحب!که چاقصدا روژه ماته کړه؛ نودهغې کفاره څه ده؟ کفاره به څنګه ادا کیږي؟ مسلسل روژې نیول ضروري دي؟

**جواب:** درمضان شریف روژې ماتولوباندې قضا لازمه ده اوکفاره هم، د رمضان شریف دروژې ماتولو کفاره داده چې پرلپسې دې دوه میاشتې روژې ونیسي، په مینځ کې وقفه کول درست نه دي، که له څه وجې دیوې ورځې روژه هم پاتې شوه؛ نوپه دویم ځل دې له سرنه شروع وکړي، تردې پورې چې دوه میاشتې پرته له وقفې نه پوره شي اوځوک چې دبوډاوالي یاناروغي له وجې په روژونیولوباندې قادرنه وي هغه دې په شپیتومسکینانوباندې ډوډۍ وخوري.[۱]

## قصدا خوراک څښاک کولوسره قضا او کفاره دواړه لازمیږي

**سوال:** کوم کس چې درمضان دروژې په دوران کې قصدا څه وخوري وڅښي، ایادهغه روژه ماتیږي؟ اوکه ماتیږي؛ نوپوازې قضابه وي یاکفاره هم؟

**جواب:** که چادرمضان شریف روژه قصدا ماته کړه، مثلا: قصداخوراک څښاک یې وکړ، یا وظیفه زوجیت یې اداکړ؛ نوپه هغه باندې قضااوکفاره دواړه لازم دي.[۲]

## درانجواو تیل لګونکي په دې ګمان چې روژه یې ماته شوه خوراک او څښاک کول

**سوال:** زماروژه وه،اوپه سرمې تیل ولګول،چاراته وویل چې په سر کې تیل لګولوسره روژه ماتیږي،ماخوراک څښاک وکړ،اوس په ماباندې صرف قضاده یاکفاره هم؟

**جواب:** که چاپه روژه کې سرمه ولګوله یایې سر غوړ کړ او په دې ګمان چې روژه یې ماته شوه اوڅه خوراک څښاک یې وکړ؛ نوپه دې صورت کې قضااوکفاره دواړه واجبیږي.[۳]

---

۱ ] ومن جامع عامدًا فى احدالسبيلين اواكل اوشرب ...... فعليه القضاء والكفارة لان الجناية متكاملة لقضاء الشهوة ......والكفارة مثل كفارة الظهار (الجوهرة النيرة ،كتاب الصوم ج:١ ص:١٤٣،طبع بمبئ) (والكفارة مثل كفارة الظهار)..... وهى عتق رقبة فان لم يجدفصيام شهرين متتابعين فان لم يجدفاطعام ستين مسكينًا،لكل مسكين نصف صاع من تمر..الخ (البناية فى شرح الهداية ج:٤ص:٣٠٨،كتاب الصوم طبع حقانية)

۲ ] من جامع عمدًا فى احدالسبيلين فعليه القضاء والكفارة ......اذا اكل متعمدًا مايتغذى به اويتداوى به يلزمه الكفارة ......الخ (عالمگيرى ج:١ص:٢٠٥) وايضًا ومن جامع عامدًا فى احدالسبيلين او اكل اوشرب ......فعليه القضاء والكفارة لان الجناية متكاملة لقضاء الشهوة ......الخ (الجوهرة النيرة ج:١ص:١٤٣)_

۳ ] اذا اكتحل او ادهن نفسه اوشاربه ثم اكل متعمدًا فعليه الكفارة الا ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

## روژه ماتونکی کس به څومره کفاره اداکوي؟

**سوال:** په ماباندې ددوو روژو ماتولو کفاره وه، چې ماد يوې روژې کفاره اداکړې ده. کومه چې شپيتو مسکينانوته ددوو وختوډوډۍ يافي کس دوه سيره غله ده، اوس پوښتنه داکوم چې اياد دويمې کفاره به هم دغه شان اداکول وي، هرکله چې ماکفاره تقريباً ديرش کاله پس اداکړې ده اودا غله ماد اوړوپه شکل کې تقسيم کړې ده اوپه دې تقسيم کې راته ډيرمشکلات راپيښ شوي وو، ځکه چې په خيرغوښتونکي اومسکين کې فرق کول ډيرګران و، ايادغلې په بدله کې ددې قيمت اداکولی شو؟

**جواب:** درمضان المبارک روژه ماتولوباندې چې کومه کفاره لازمه ده هغه داده چې دوه مياشتې پرله پسې روژې ونيسې، کوم کس چې دروژې طاقت لری دهغه له پاره شپيتو مسکينانو باندې ډوډۍ خوړل کافي نه دي[1]. هو! کوم کس چې دروژې نيولوطاقت نه لري، هغه دې په شپيتو مسکينانوباندې ډوډۍ وخوري، که دواړه روژې دې په يورمضان کې ماتې کړې وي نوددواړوکفاره داشوه اوکه په بيل بيل رمضان کې دې ماتې کړې وې نوددوهمې کفاره لازمه ده[2]. د مسکينانو د لټولو دې خامخا کوشش کولو په ځای ديني مدرسې ته به دې هغومره پيسې ورليږلې وې چې په طالبانوباندې خوړلې شوې وای.

## روژه کې په کوروالي کفاره لازميږي

**سوال:** ديوکس واده وشو او رمضان راغی، د ورځی ښځې خاوندته تخليه ملاوشوه، هغوی کور والی وکړ، اوهمدغه شان يې تقريباً څلور ورځې کوروالی وکړ، صورت مسئوله کې به قضا او کفاره دواړه وي يا جدا جدا کيدې شي؟ اوس دکفارې په صورت کې هغوی لره ۲۴۰=۴x۶۰ مسکينانوباندې ډوډۍ خوړل وی ياهمدغه شان دروژې په صورت کې به ۲۴۰ روژې نيول وي؟

**جواب: الف:**.... قضاروژې چې کله وغواړئ نونيولی يې شئ[3]، مګردکفارې روژې چې کله

...بقيه د تير مخ]..اذاكان جاهلاً فافتى له بالفطر فلاتلزمه الكفارة هكذا فى فتاوى قاضيخان (الفتاوى الهندية ج:١ص:٢٠٦، وكذالك فى فتح القدير مع الهداية ج:٢ص:٩٦)۔

[1] ولوقدر على الصوم يبطل حكم الفداء لان شرط الخليفة استمرار العجز (فتح القدير ج:٢ص:٨٣)۔

[2] فان الفطر فى رمضان مرراً ان كان فى يوم واحد كفته كفارة واحدة بالاجماع وان كان فى رمضانين لزمه لكل يوم كفارة بالاجماع وان لم يكفرللاول فى الصحيح (الجوهرة النيرة ج:١ص:١٤٥ شامى ج:٢ص:٤١٣)

[3] ثم اذا كان مخيرًا فى قضاء رمضان فالمتابعة مستحقة مسارعة الى اسقاطه عن ذمته كذا فى السراج الوهاج (عالمگيرى ج:١ص:٢١٥، الباب السابع فى الاعتكاف)۔

شروع کړئ نو چې مسلسل وي، او که په مینځ کې ئې وقفه راغله نو بیا د نوي سرنه شروع کړئ؛ البته ښځې ته چې د حیض د وجې نه کومه وقفه کول وي، هغه معاف ده.[1]

**ب:**.....که د الومړي روژې کفاره دې ورکړې نه وي؛ نو د ټولو له پاره یوه کفاره کافي ده، مګر شپیتو مسکینانو ته د خوراک ورکولو اجازت په دې صورت کې شته چې بنده په روژه نیولو باندې قادر نه وي.[2]

# د روژې په دوران کې که ښځې خاوند صحبت وکړ، نو کفاره په دواړو لازمیږي

**سوال:** د نن نه تقریباً پنځلس کاله وړاندې مونږ ښځه خاوند د روژې په حالت کې وو، چې شیطان راباندې غالب شوا و مونږ صحبت وکړ، مولانا صاحب! الله تعالی دې زمونږ ګناهونه معاف کړي داسې یو ځل نه بلکې درې ځل وشو، دویم ځل د ۹ بجو نه مخکې شوي و، مونږ پیشمنی نه پس نیت کړی و، مګر د کور والي نه مخکې مو دا نیت وکړ چې نن زمونږ روژه نشته، بلکې ماخپلې ښځې ته دې پورې وویل چې د دې نیت کولو باوجود که ګناه وشي، نو د هغې کفاره به زه ورکوم او یو ځل د غرمې په وخت کې داسې وشو، هغه د خوانۍ ورځې وې او زمونږ تنهایي هم وه، او س دا خیال زما او زما د ښځې له پاره سوهان روح جوړ شوی دی، زه دا هم واضحه کوم چې مونږ تر اوسه پورې کفاره نه ده ورکړې اوس زۀ ګناهګار او عاجز بنده تاسو نه داپوښتنه کوم چې د دې ګناه کفاره څه ده؟ آیا د دواړو د طرف نه به وي یا د یو طرف نه؟ او څومره؟ او د دې کفاره څنګه چې مالوستلي دې مسکینانو باندې ډوډۍ خوړل دي؛ نو د مسکینانو د نه موندلو په صورت کې ایا هم دومره رقم یا خوراک یتیم خانې ته ورلیږل کیدای شي؟

**جواب:** په تاسو دواړو د دې روژو قضا هم لازمه ده او قصداً روژه ماتولو باندې کفاره هم لازمه ده،[3] که تاسو دواړه د روژو نیولو طاقت لرئ نو د دواړو په ذمه پرله پسې شپیته روژې نیول لازم دي او که د روژې طاقت مو نه وي نو تاسو دواړه په شپتو شپیتو مسکینانو باندې ډوډۍ وخوروئ[4]، او که مسکینان نه وي نو مدرسه یا یتیم خانه کې رقم جمع کړئ، او هغوی باندې واضحه کړئ چې دا د روژې کفاره ده.

---

۱ ] فان لم یجدصام شهرین متتابعین فان لم یستطع اطعم ستین مسکینًا لحدیث الاعرابی المعروف فی الکتب الستة فلوافطرولولعذراستانف الا لعذرالحیض (ردالمحتار: ۲ص: ۴۱۲، باب مایفسدالصوم ومالایفسده)۔

۲ ] ایضاً تیره شوی حاشیه (ولوقدر علی الصوم یبطل حکم الفداء...الخ) او وړپسی حاشیه (فان افطر فی رمضان مرراً ان کان فی یوم واحد...الخ) او ګوری)۔

۳ ] من جامع عمدًا فی احدالسبیلین فعلیه القضاء والکفارة ......وعلی المراة مثل ماعلی الرجل ان کانت مطاوعة ......الخ (عالمګیری ص: ۲۰۵، النوع الثانی مایوجب القضاء والکفارة)۔

۴ ]وللشیخ الفانی ......ومثله ......المریض اذاتحقق الیاس من الصحة ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

## قصداً روژه ماتونکي باندې کفاره لازمیږي

**سوال:** که ښځه په پوهه سره (دلوږې تندې له وجې) روژه ماته کړل شي، ددې کفاره څنګه اداکیږي؟

**جواب:** که یو کس کمزوری وي اودلوږې تندې له وجې دهغه ژوندته خطره لاحق شي؛ نوروژه ماتول ورته جائزدي[1] اوکه داسې حالت نه و اوروژه یې ماته کړه؛ نودهغه په ذمه قضاو کفاره دواړه لازمیږي، کفاره داده چې دوه میاشتې پرله پسې روژې ونیسي،اوکه ددې طاقت نه وي؛ نوپه شپیتو مسکینانو باندې دې ددوو وختوډوډۍ وخوري.[2]

## د ناروغۍ له وجې که د کفارې روژې په مینځ کې پاتې شي نو پوره روژې به بیا نیول وي

**سوال:** دچاپه ذمه د کفارې روژې وې، هغه دکفارې روژې شروع کړې، په مینځ کې ناروغ شو، اوس سوال دادی چې بیابه دنوې سرنه دوه میاشتې روژې پوره کول وي؟

**جواب:** که دناروغۍ له وجې نه دکفارې څه روژې په مینځ کې پاتې شوې؛ نودرغیدونه پس به دنوې سرنه دوه میاشتې روژې پوره کوي، همدغه شان که دښځې دنفاس دوجې نه څه روژې په مینځ کې پاتې شوې نوهغه دې هم دنوې سرنه روژې پوره کړي.[3]

## ښځه به د کفارې روژې مسلسلې څنګه نیسي؟

**سوال:** ما یوه روژه نیولو سره ماته کړه، چې د هغې کفاره په ما باندې مسلسل شپیته روژې نیول دي، پوښتنه داده چې زه دا روژې څنګه ونیسم؟ ځکه چې په مینځ کې د روژو د ماتیدو ویره ده؟

**جواب:** که روژه مو د رمضان ماته کړې وي؛ نو شپیته روژې مسلسل نیول ضروري دي، که

---

...بقیه د تیر مخ]..فعلیه الفدیة لکل یوم من المرض (شامی ج:۲ص:۴۲۷،فصل فی العوارض المبیحة)۔

[1] اومریض خاف الزیادة لمرضه وصحیح خاف المرض ......الخ، وفی الشرح :فی القهستانی عن الخزانة مانصه ان الحرالخادم.... وخاف الهلاک فله الافطارکحرة او امة ......الخ (شامی ج:۲ص:۴۲۲،طبع سعید)

[2] ومن جامع عامدًا فی احدالسبیلین او اکل او شرب ......فعلیه القضاء والکفارة لان الجنایة متکاملة لقضاء الشهوة (الجوهرة النیرة ج:۱ص:۱۴۳)وفی البنایة :(ثم قال والکفارة مثل کفارة الظهار)......وهی عتق رقبة فان لم یجد،فصیام شهرین متتابعین فان لم یستطع فاطعام ستین مسکینًا ،لکل مسکین نصف صاع من براوصاع من تمر......الخ(البنایة فی شرح الهدایة ،کتاب الصوم ج:۴ص:۳۰۰تا ۳۰۸ طبع حقانیة)۔

[3] فان لم یجدصام شهرین متتابعین ......فلو افطر ولولعذراستانف الا لعذرالحیض...... الخ (شامی ج:۲ص:۴۱۲باب مایفسدالصوم ومالایفسده)۔

په مینځ کې یوه هم پاتې شوه نو دوباره یې د نوی سر نه شروع کړئ، تردې چې شپیته روژې پوره شي، او یوه روژه د قضاء هم ونیسئ، خوکه د حیض ورځې په مینځ کې راشي:نو مجبوری ده، دا مسئله خو د رمضان د روژې د ماتولو ده.[۱] او که په عام روژو کې یې یوه روژه ماته کړه نو یوه روژه نیول کافي دي.[۲]

# ❖ نفل او نذر روژې ❖

## د نفلي روژې نیت یې د شپې نه وکړ، خود عذر له وجې یې و نه شوه نیولی

**سوال:** دنفلی روژې له پاره یې که دشپې نه نیت وکړ، چې زه به سبا روژه نیسموخو دپیشمني له پاره راپورته نه شو یا راپورته شو خو طبیعت یې خراب شو، نوهغه روژه به وروسته نیول وي یانه؟ مطلب دادی که پریږدي نه نوڅه نقصان خونشته؟

**جواب:** که دشپې یې دانیت کړی و اوویده شوی و چې سهاربه نفلي روژه نیسم؛ نودصبح نه مخکې هغه ته دنیت بدلولو اختیارشته، که دصبح صادق نه یې مخکې سترګې وغړیدې اود روژې نه نیولو اراده یې وکړه ؛نودهغه په ذمه هیڅ نه شته[۳]،خوکه دشپې نه یې دروژې نیت وکړ او ویده شو، بیا دصبح صادق نه پس یې سترګې وغړیدې؛نواوس دهغه روژه شروع شوې ده[۴]،که داماته کړي ،قضاء پرې لازمیږي.[۵]

## د نذرد روژو شرعي څه حیثیت دی؟

**سوال:** دنذر(منښتې) روژې که ونه نیول شي نوڅه نقصان خونشته؟ یا کله چې هغه کار وشي؛

---

[۱] وکفرای مثلها فی الترتیب فیعتق اولا فان لم یجدصام شهرین متتابعین فان لم یستطع اطعم ستین مسکینًا لحدیث الاعرابی المعروف فی الکتب الستة فلو الفطر ولو لعذراستانف الا لعذرالحیض ,(شامی ج:۲ص:٤۱۲،باب مایفسدالصوم ومالایفسده)

[۲] او افسدصوم غیراداء رمضان بجماع اوغیره لعدم هتک حرمة الشهر......الخ (مراقی الفلاح مع حاشیة الطحطاوی ص:۳۷۰،کتاب الصوم ،طبع میرمحمدکتب خانه)

۳ ] ولونوی من اللیل ثم رجع عن نیته قبل طلوع الفجرصح رجوعه فی الصیامات کلها کذافی السراج الوهاج (عالمگیری ج:۱ص:۱۹۵،کتاب الصوم ،الباب الاول فی تعریفه)_

٤ ]ولوقال نویت ان اصوم غدًا ان شاءالله تعالی صحت نیته هو الصحیح کذافی الظهیریة (عالمگیر ج:۱ص:۱۹۵)۰ولاتبطل بالمشیئة بل الرجوع عنهابان یعزم لیلاً علی الفطرونیة الصائم الفطرلغو (الدرالمختار مع الردج:۲ص:۳۸۰کتاب الصوم)_

۵ ] او افسد غیرصوم رمضان ...... قضی ..... فقط ......الخ (الدرالمختارمع الردج:۲ص:٤۰٤)_

نو روژه نیول پکار دي؟ یاچې کله یې هم ونیسي؟

**جواب:** دنذر(منښتې) روژې واجب وي، دهغو اداکول لازم وي[۱] اونه اداکول یې ګناه ده، که دمشخصو ورځو د روژو نذر یې کړی و، نوبیاخوپرې هغه معینې ورځې روژې نیول واجب دي، په تاخیر کولو باندې به ګناهګاروي. هغه له په تاخیرکولوباندې استغفارکول پکار دي، مګر تاخیر کولوسره هغه روژې معاف کیږی نه ،بلکې هغومره روژې په نورو ورځوکې نیول واجب دي اوکه ورځې یې مقررې کړې نه وې، مطلقاً داسې یې ویلي و چې: دومره ورځې روژې به نیسم ؛نوچې کله هم یې اداکړي ادابه شي،خو څومره چې بیړه وکړي غوره ده.[۲]

## نفلي روژه ماتولوسره یوازې قضا لازمیږي

**سوال:** که چانفلي روژه ماته کړه نو آیاکفاره به هم لازمیږي؟

**جواب:** کفاره یوازې درمضان شریف فرض روژه ماتولوباندې لازمیږي، که بله روژه یې ماته کړه نوصرف قضابه واجب شي، کفاره نه لازمیږي.[۳]

## که څوک د نذرروژې نه شي نیولی نوڅه وکړي؟

**سوال:** که چادنذر روژې منلې وي چې فلانی کارمې وشي: نودومره روژې به نیسم، بیاهغه کاروشي،مګرهغه دضعیف العمرې له وجې یادسختې ګرمې له وجې هغه روژې ونه نیولی شي نوددې په بدله کې په مسکینانوباندې ډوډۍ خوړلی شي؟

**جواب:** که دګرمې له وجې یې نه شي نیولی نوپه یخنې کې دې ونیسي. دهغه له پاره روژې نیول لازمې دي[۴] اوکه بوډاوالی داسې دی چې په یخنې کې هم روژې نه شي نیولی نودهرې روژې په بدله کې دې چامحتاج ته دصدقه فطرپه مقدارکې غله یاقیمت ورکړي.[۵]

---

۱ ] وواجب وهو نوعان :معین کالنذرالمعین وغیرمعین کالنذرالمطلق ......الخ (الدر المختار مع الرد ج:۲ص:۳۷۳کتاب الصوم)۔

۲ ] وفی الشرح :قوله متتابعًا افاد لزوم التتابع آن صرح به وکذا اذا نواه ما اذا لم یذکره ولم ینوه ان شاء تابع وان شاء فرق وهذا فی المطلق اماصوم شهربعینه اوایام بعینها فیلزمه التابع(شامی ج:۲ص:۳۴۵،فصل فی العوارض المبیحة)

۳] اوافسدغیرصوم رمضان ....قضی فقط(الدرالمختارج: ۲ص:۴۰۴)۰وایضًا :اوافسدصوم غیراداء رمضان بجماع اوغیره لعدم هتک حرمة الشهر(مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ص:۳۷۰،کتاب الصوم)

۴ ] اذا نذرشیئًا من القربات لزمه الوفاء به لقوله تعالی:ولیوفوانذورهم ،وقوله صلی الله علیه وسلم :من نذران یطیع الله فلیطعه.....الخ (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ،باب مایلزم الوفاء به ص:۳۷۸) ولولم یقدرلشدة الزمان کالحرفله ان یفطر وینتظر الشتاء فیقضی کذا فی فتح القدیر (فتاوی هندیة الباب السادس فی النذر ج۱ ص۲۰۹)۔

۵ ] ولو آخر القضاء حتی صار شیخاً فانیاً اوکان النذر بصیام الابد....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

## د مجبورۍ له وجې د نذر روژې پرېښودل

**سوال:** ما د څه کار له پاره نذر منلی و، چې که زما فلانی کار وشو؛ نو شپږ روژې به نیسم، اوس زه هغه روژې نه شم نیولی، ځکه چې زه یوه نوکرپیشه اینجلۍ یم او ډېر د محنت کار کوم، لهذا تاسو ما ته ووایئ چې د دې به څه کفاره وي؟

**جواب:** که بنده د بوډاوالي له وجې بې وسه شي او د روژې د نیولو طاقت په کې پاتې نه شي؛ نو بیا د روژې فدیه ورکولی شي، تاسو سره خوځه داسې بې وسي نشته د دې وجې نه ستا په ذمه شپږ روژې نیول واجب دي، د دومره ورځو رخصتي واخله! ستا له پاره فدیه ورکول کافي نه دي.[1]

## د نذر روژې په بل چا نیول جائز نه دي

**سوال:** یو کس نذر وکړ چې که زما فلانی کار وشو؛ نو زه به پنځلس روژې نیسم، کله چې هغه کار وشو، هغه کس هغه روژې په خپل کور والو باندې تقسیموي، هر کله چې د نذر منلو په وخت کې هیڅ چا ته دا دې ذکر کړې نه و، چې که کار وشو؛ نو ټول کوروالا به روژې نیسو، تاسو د قرآن او حدیث په رڼاکې دا وښایئ چې هغه دا روژې په نورو باندې نیولی شي، که یو ازې دی به یې نیسي؟ هر کله چې نور هم نیولو ته تیار دي.

**جواب:** دا روژې به په خپله باندې نیسي[2]، په نورو باندې یې نه شي نیولی، ځکه چې لمونځ روژه خالص بدني عبادتونه دي او کومه وظیفه چې د کوم بدن له پاره تجویز کړل شي، د هغې نفع به خاص د هغې په کولو سره وي، بل باندې کولو سره به هغه خاص نفع هغه بدن ته حاصله نه شي، د دې وجې نه خالص بدني عبادتونه (مثلاً: روژه، لمونځ) کې نیابت جائز نه دی، یعنې د یو په ځای بل کس دا نه شي ادا کولی[3] او که یو کس د دې بدني عبادتونو له کولو نه عاجز شي؛ نو د دې په بدله کې شریعت فدیه تجویز کړې ده، یعنې د هر لمونځ او روژې په بدله کې د دې د صدقه فطر برابر مقدار چا محتاج ته غله ورکړل شي (واضحه دې وي چې د لمونځ نه

---

...بقیه د تیر مخ]. فعجز لذلك او باشتغاله بالمعيشة لكون ضاعته شاقة فله ان يفطر ويطعم لكل يوم مسكينًا على ماتقدم ......الخ (الفتاوى العالمگيرية ،الباب السادس فی النذرج:۱ ص:۲۰۹ ،وكذا فی الحاشية للطحطاوی على الدرالمختارج:۱ص:٤٦٥ ،كتاب الصوم ،طبع مكتبة رشيدية كوئته)_

۱ ] تيره شوى حاشيه (ومن جامع عامدًا فى احدالسبيلين او اكل او شرب .....الخ) او وروستى حاشيه (اذاصام المظاهر شهرين متتابعين بالاهلة اجزاه....الخ) او گورئ)_

۲ ] اذا نذرشيئًا من القربات لزمه الوفاء به لقوله تعالى :وليوفوا نذورهم ،ولقوله صلى الله عليه وسلم من نذران يطيع الله فليطعه (مراقى الفلاح ،باب ما يلزمه الوفاء به ص:۳۷۸)_

۳ ] وان صام اوصلى عنه الولى لا، لحديث النسائى لايصوم احدعن احد ولايصلى احدعن احدولكن يطعم عنه وليه (الدرالمختارمع الرد ج:۲ص:٤۲٥فصل فی العوارض المبيحة)_

داعاجز کیدوصورت یوازې مرګ سره کیدای شي او د روژې نه عاجز کیدل د بوډا والي له وجې نه هم کیدای شي اوداسې بیماري چې دهغې نه درغیدوامیدنه وي.[1]

## د نذر روژې نه نیول ګناه ده

**سوال:** زما یوه خور ده، چې د هغې د واده ډیره موده تیریدو سره هم څه اولاد نه و شوی، په دې وجه هغې نذر کړی و چې زه جوړه هم شم او زما اولاد هم وشي؛ نو زه به د هرې جمعې روژه نیسم، د الله پاک په مهرباني سره هغه جوړه هم شوه او اولاد یې هم وشو، اوس زما د خور درې زامن او دوه لوڼه دي، په کور کې د کارونو د ډیر والي له وجې د جمعې د ورځې روژه نه شي نیولی، په دې وجه تاسو ته درخواست دی چې د دې منل شوي نذدر څه آسانه کفاره چې زما خور هغه ادا کولو سره د ګناه نه خلاصه شي، زما د خور مالي حالت هم کمزوری دی.

**جواب:** داسې کول نذر بالکل نه دی پکار چې هغه وروسته پوره کولی نه شي، د کور کارونه خو عذر نه دي چې د هغې د وجې نه روژه و نه نیول شي، په دې وجه د هغې په ذمه روژې نیول لازم دي، خو که داسې کمزورې شي چې د روژې نیولو طاقت یې نه وي؛ نو څنګه چې معذور انسان د رمضان د روژې فدیه ورکوي، هغه دې هم فدیه ورکوي، که د طاقت باوجود هغې د جمعې د ورځې روژې او نه نیولې نو د هغې قضاء د هغې په ذمه واجب ده، او د نه نیولو په وجه به یې چې کومه ګناه وي د هغې له پاره دې د الله پاک نه معافي هم غواړي. [2]

## د جمعې ورځ د روژې له پاره خاص کول

**سوال:** یو صاحب زمونږ ورور ته وویل چې: رسول الله ﷺ به د جمعې په ورځ باندې نفلي روژه نه نیوله او منع یې فرمایله، ما ورسره بحث وکړ چې د عاشورې یا پنځلسم شعبان یا ایام بیض د قمري میاشتې په دیارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاریخ باندې یا د عرفې روژه نیسي؛

---

[1] وللشيخ الفاني العاجز عن الصوم الفطر ويفدي وجوباً، (قوله وللشيخ الفاني) وهو الذي كل يوم في نقص الي ان يموت......وانما ابيح له الفطر لأجل الحرج وعذره ليس بعرض الزوال حتي يصار الي القضاء فوجبت الفدية لكل يوم نصف صاع من بر......كصدقة الفطر، بحر، وافاد القهستاني عن الكرماني ان المريض اذا تحقق اليأس من الصحة فعليه الفدية لكل يوم من المرض. (حاشية الطحطاوي علي الدر المختار/١/ ٤٦٥/ طبع رشيديه كوئته)_

[2] اذا نذر ان يصوم كل خميس يأتي عليه فافطر خميساً واحداً فعليه قضاؤه كذا في المحيط ولو اخر القضاء حتي صار شيخاً فانياً او كان النذر بصيام الابد فعجز لذلک او باشتغاله بلمعيشة لكون صناعته شاقة فله ان يفطر ويطعم لكل يوم مسكيناً. (عالمگيري/١/٢٠٩). ومتي قدر قضي لان استمرار العجز شرط الخلفية (قوله ومتي قدر) اي الفاني ومن في حكمه علي الصوم (قوله لان استمرار لعجز) اي الي الموت....الخ. (حاشية الطحطاوي علي الدر المختار/١ /٤٦٥/طبع رشيديه كوئته)

نو آیا چې جمعه راشي؛ نو روژه نه دي نیول پکار؟

**جواب:** دا صحیح ده چې د جمعې ورځ د روژې له پاره د خاص کولو نه منع راغلې ده،[۱] هم په دې وجه فقهاء کرامو د روژې له پاره د جمعې د ورځې مخصوص کولو ته مکروه ویلي دي، خو که د چا له پاره په نورو ورځو کې د مشغولتیا د وجې نه روژه نیول گران وي؛ نو د اختر نه پس شپږ روژې د جمعې په ورځ هم نیولی شي.

## آیا د جمعة المبارک روژه نیول یوازې په رمضان کې جائز ده؟

**سوال:** د ځینو خلکو وینا ده چې په جمعة المبارک کې روژې یوازې په رمضان کې نیول جائز دي او په عامو حالاتو کې د جمعې په ورځ باندې روژه نیول جائز نه دي، ځکه چې جمعة المبارک د اختر ورځ ده، او د اختر په ورځ روژه نیول حرام دي، دا خبره صحیح ده یا غلطه؟

**جواب:** د جمعې په ورځ روژه نیول بغیر د کراهت نه جائز دي[۲] د جمعې د ورځې د اختر د ورځې کیدو دا معنا نه ده چې په دې باندې د اختر ټول احکام نافذ شو.

## آیا یوائې د جُمعې په ورځ روژه نیول صحیح دي؟

**سوال:** زما یو دوست چې په مذهب کې خاص معلومات لري، هغه دیوې مسئلې په باره کې ویلي و چې که مونږ دجمعې په ورځ باندې روژه نیول وغواړو؛نو ورسره یوه ورځ مخکې یا وروسته یعنې زیارت یاهفتې په ورځ باندې روژه نیول ضروري دي آیا داخبره صحیح ده؟

**جواب:** په حدیث کې دجمعې ورځ دروژې له پاره خاص کولوڅخه ممانعت راغلې دی[۳] ددې وجې نه صرف دجمعې دورځې روژه نیول پکارنه دي،البته که یې ونیسي؛ نومخکې وروسته ترې روژې نیول ضروري نه دي.

## خاص دجُمعې په ورځ روژه نیول موجب فضیلت نه دی

**سوال:** نبی اکرم ﷺ یوائې دجُمعې دورځې دروژې نه منع فرمایلې ده ،مګرماته په نورو ورځو کې فرصت نه ملاویږي، ځکه چې په نورو ورځوکې زه دالله تعالی دکارله پاره ځم، نو

---

[۱] عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلي الله عليه وسلم : لايصم احدكم يوم الجمعة الا ان يصوم قبله بيوم اوبعده. (سنن ابي داؤد/١/٣٢٩). عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلي الله عليه وسلم: لا تختصوا ليلة الجمعة بقيام من بين الليالي ولا تختصوا يوم الجمعة بصيام من بين الأيام الا ان يكون في صوم يصومه احدكم. رواه مسلم (مشكوٰة/١٧٩)

[۲] وصوم يوم الجمعة بانفراده مستحب عند العامة كالاثنين والخميس. (البحر الرائق/٢/٢٧٨)

[۳] عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لايصم احدكم يوم الجمعة الا ان يصوم قبله او يصوم بعده. (ترمذي/١/٩٣/طبع دهلي). ومنها: تخصيص ليلة الجمعة دون غيرها وقد ورد النهي عن تخصيص يوم الجمعة بصيام وليلة بقيام. (حلبي كبير/٤٣٣/تتمات من النوافل)_

روژې سره کمزوری کیږم؛ نوزه یوازې دجُمعې ورځ روژه نیولی شم؟

**جواب:** یوازې دجمعې روژه نیول مکروه دي،خو تاسوسره بله ورځ د نیولو ګنجائش نشته نوڅه نقصان پکې شته،روژه نیسئ،مګر خاص داورځ دې دفضیلت والانه ګڼل کیږي.[۱]

## دجُمعة الوداع د روژو ثواب

**سوال:** درمضان المبارک داخري جُمعې دروژې نیولوثواب زیات ملاویږي یادباقی ورځوپه شان ثواب ملاویږي،ځکه چې په دغه ورځ د روژې نیولوپه خاص طورسره اهتمام کیږي، په دغه ورځ په خصوصیت سره په ماشومانوباندې روژه نیول کیږي، ددې شرعي حیثیت څه دی؟

**جواب:** درمضان المبارک داخري جُمعې دروژې خصوصي فضیلت ماته معلوم نه دی، کیدای شي چې په دې کې داغلطه نظریه هم کارامد وي چې داخري جُمعې روژه دټول عمردروژوقائم مقام وي مګردامحض جاهلانه تصوردی.[۲]

## آیا دجُمعة الوداع روژه نیولو سره تیرې روژې معاف کیږي؟

**سوال:** ځینې خلک وایي چې دجُمعة الوداع روژه نیولوسره تیرې شوې ټولې روژې معاف کیږي،آیا داصحیح ده؟

**جواب:** بالکل غلطه اودروغ دي،دپوره رمضان روژې نیولوسره هم تیرې روژې نه معاف کیږي بلکه دهغو قضاواجب ده[۳]،شیطان دا قسمه خیالات دخلکوپه زړونوکې ځکه پیدا کوي چې دوی په فرض پوره کولوکې کوتاهي وکړي، دې خلکوته خودومره سوچ کول پکاردي چې صرف دجُمعة الوداع روژې نیولوسره دټول عمر روژې معاف کیږي؛ نوهرکال درمضان دروژوفرضیت خو.. نعوذبالله....یوه فضول شان خبره شوه.

## د جمعة الوداع د روژې حکم هم د نورو روژوپه شان دی

**سوال:** که یوکس دجُمعة الوداع روژه ونیسي اوسخت ناروغ شي او دهغه له پاره روژه ماتول ضروري شي نوهغه څه وکړي؟ آیا روژه ماته کړي؟ اوکه روژه ماته کړي؛ نودهغې دکفارې له

---

۱ ] ایضا، نیز وایضاً وفي الخانیة ولا باس بصوم یوم الجمعة عند ابي حنیفة ومحمد لما روي عن ابن عباس رضی الله عنهما انه کان یصومه ولایفطره. وظاهر الاستشهاد بالاثر ان المراد بلا بأس الاستحباب....الخ. (شامي/۲/۳۷۵)۔

۲ ] ولاینبغي ان یتکلف لالتزام مالم یکن في الصدر الأول: کل هذا التکلیف لاقامة امر مکروه. (غنیة المتملي شرح منیة المصلي/۴۳۳/طبع سهیل اکیدمي لاهور). وهو......فرض وهو نوعان: معین کصوم رمضان اداء وغیر معین کصومه قضاءً. (الدرالمختار/۲/۳۸۳/ طبع ایچ ایم سعید)۔

۳ ]المریض اذا خاف علي نفسه التلف او ذهاب عضو یفطر بالاجماع وان خاف زیادة العلة وامتداده فکذالک عندنا وعلیه القضاء اذا افطر کذا في المحیط. (عالمګیري/۱/ ۲۰۷/الباب الثاني في الاعذار التي تبیح الافطار)۔

پاره به څه کول وي؟ که یو کس یوازې دګرمي له وجې قصداً روژه ماته کړي؛ نو دهغې کفاره به دنورو روژو څخه زیاته وي؟ یا دهغې برابربه وي؟ صحیح صورت حال نه موخبر کړئ!

**جواب:** په داسې حالت کې چې روژه ماتول ضروري شي؛ نوروژه دې ماته کړي وروسته دې دهغې قضا ونیسي، دهغې هیڅ کفاره نشته، یوازې قضاواجب ده.[1]

که یو کس قصداًدرمضان المبارک روژه ماته کړي؛ نوپه هغه باندې قضااوکفاره دواړه لازم دي[2] کفاره داده چې پرله پسې دوه میاشتې روژې ونیسي[3] دجُمعة الوداع دروژې هماغسې حکم دی څنګه چې دنورو ورځو د روژو دی.

## د رجب، شعبان او رمضان د روژو نیولو عهد کول

**سوال:** د رجب، شعبان او رمضان درې واړو میاشتو روژې نیسم نو ماته د چا نه معلومه شوه چې دا روژې حرامې دي، اوس روژې خو نیسم خو په زړه کې مې ویره ده، او عهد مې کړی و چې درې میاشتې به نیسم، او اوریدلې مې دي چې زموږ خوږ نبي ﷺ به هم درې میاشتې روژې نیولې، الله پاک ماته دا طاقت راکړی دی چې زه درې میاشتې روژې ونیولې شم، د روژو د نیولو خاص وجه یو خو دا ده چې زه په هر حال کې ځان تهجد سره عادتوم، که زه د درې میاشتو روژې ونیسم ؛نو د تهجد د لمانځه عادت به مې هم کلک شي، او دغه شان به مې بیا همیشه د تهجد د مانځه له پاره سترګې غړیږي، که دا روژې نیولې کیدای شي، نو څومره ګنتې مخکې روژه بندول پکار دي، هسې خو یې مونږ نیمه ګنته مخکې بندوو.

**جواب:** که تاسو د رجب، شعبان او د رمضان د روژو نذر کړی وي (لکه چې ستاسو د "عهد کړیو" الفاظو نه معلومیږي) نو ستاسو په ذمه د دې دوه میاشتو مسلسل روژې نیول واجب دي.[4] د رجب او شعبان د روژو په فضیلت کې هیڅ صحیح حدیث نه دی راغلی.[5] د شعبان

---

[1] وفي الظهيرية رضيع مبطون يخاف موته من هذا الدواء وزعم الاطباء ان الظئر اذا شربت دواء كذا بريئ الصغير وتماثل وتحتاج الظئر الي ان يتشرب ذالک نهاراً في رمضان قيل لها ذالک اذا قال الاطباء الحذاق وكذالک الرجل اذا لدغته حية فافطر بشرب الدواء قالوا ان كان ذالک ينفعه فلا باس به. (البحرالرائق/٢/٣٠٣/فصل في العوارض)۔

[2] ومن جامع عامداً في احد السبيلين او اكل او شرب......فعليه القضاء والكفارة لان الجناية متكاملة......الخ. (الجوهرة النيرة/١/١٤٣/كتاب الصوم/ طبع بمبئ)۔

[3] (والكفارة مثل كفارة الظهار)......وهي عتق رقبة، فان لم يجد فصيام شهرين متتابعين فان لم يجد فاطعام ستين مسكينا، لكل مسكين نصف صاع من بر اوصاع من تمر..الخ(البناية في شرح الهداية/٤/٣٠٨/ طبع حقانيه)

[4] اذاقال لله علي صوم شهر لزمه ثلاثون يوماً وتعيين الشهر اليه(عالمگيري/١/٢٠٩/الباب السادس في النذر)

[5] تفصيل دپاره اوګورئ: اللآليئ المصنوعة في الأحاديث الموضوعة. (٢/١١٤ تا ١١٧ طبع دارالفكر بيروت. ايضاً: تنزيه الشريعة المرفوعة/٢/١٥١/ طبع دارالكتب العلمية/بيروت.

د پنځلسم تاریخ د روژې فضیلت راغلی دی،[1] خو هغه روایت هم کمزوری دی، او د کوم مضمون چې تاسو حواله ورکړې ده په دې کې لیکل شوي اکثر روایات موضوع یا سخت ضعیف دي، د رجب او شعبان روژو سره که د خصوصي فضیلت اعتقاد و نه ساتل شي؛ نو د روژو د نیولو اجازت دی. خو په یو حدیث کې دي چې د شعبان د نیمای نه وروسته روژه نه دي نیول پکار،[2] (مشکاة)

د دې حدیث په بناء باندې بعض اهل علم د شعبان د نصف نه پس روژو نیولو ته مطلقا ممنوع ویلي دي، او ځینو دا ممانعت په شفقت او مهرباني باندې محمول کړی دی، چې د رمضان المبارک له پاره یې طاقت په خپل حال وي.[3]

## د رجب او د شعبان د روژو شرعي حیثیت

**سوال:** زه ستاسو کالم "ستاسو مسائل" هره جمعه مطالعه کوم د جمعې په ورځ (٨) فروري باندې یو مسئله راغلې وه، د روژې فضیلت، دا داسې شروع کړل شوه : د رجب، شعبان او رمضان درې میاشتو روژې نیسم نو د چا نه معلومه شوه چې داسې روژې نبول حرام دي، نه خو تاسو دا وضاحت وکړې چې محترم رمضان المبارک سره یوځای لیکلو باندې غلطې کړې ده، ځکه چې د حرام لفظ خو ډیره لویه ګناه ده،دهغه میاشتې له پاره چې دهغې فضیلت او زینت پخپله د هغې روژې دی،په هرحال کیدای شي چې د غلطي له وجې نه داسې لیکل شوې وي،زما اصل مسئله بله ده، تاسو په جواب کې لیکلي دی چې د رجب او شعبان په روژو کې هیڅ حدیث نه دی راغلې، او د دې د فضیلت اعتقاد که و نه ساتل شي؛نودروژې نیولو اجازت دې، په (١٨) جنوری په جنګ اخبار کې ستاسو د کالم سره سره د جناب اقبال احمد اختري قادري صاحب مضمون هم و، چې په هغه کې هغوی د مختلفو احادیثو په حوالې سره د رجب المرجب فضیلت بیان کړی و، خاص طور د روژې د نیولو،تاسوپه وضاحت سره جواب ولیکئ چې زموږپه شان خلک چې یوازې د علماء کرامو مضامین لوستلوسره استفاده کوي. هغوی به ستاسوپه جواباتوسره په ذهني اضطراب کې اخته کیږي. ما روژې نیول خو پریښي دي،تاسوبلې جمعې ته جواب ولیکئ چې څه صحیح دي او څه غلط؟

---

[1] ] عن علي رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم؛ ان كانت ليلة النصف من شعبان فقوموا ليلها وصوموا يومها......الخ. (مشكوٰة/ ١١٥/ابن ماجة/١٠٠/باب ماجاء في صلاة التسبيح/طبع مير محمد كتب خانه).

[2] ] عن ابي هريرة رضى الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: اذا انتصف شعبان فلا تصوموا. (مشكوٰة/١/ ١٧٤). وفي المرقاة شرح المشكوٰة: (فلاتصوموا) اي بلا انضمام شيء من النصف الاول........وفي رواية: فلا يصام......والنهي للتنزيه رحمة علي الأمة ان يضعفوا عن حق اليقام بصيام رمضان علي وجه النشاط......الخ. (مرقاة شرح مشكوٰة/٢/٥٠٥/طبع بمبئي)

[3] ] ايضاً_

**جواب:** د رمضان المبارک په روژو باندې خو هر مسلمان پوهیږي، د سائل مقصد د رمضان نه مخکې د رجب او د شعبان د روژو په باره کې پوښتنه کول و.

۲: تاسو چې کوم سوال اوچت کړی دی، که تاسو په غور سره لوستلې وې نو د هغې جواب زما په ذکر کړې مسئله کې مخکې راغلی و، ما لیکلي وو:

" د کوم مضمون چې تاسو حواله ورکړې ده، په هغې کې لیکل شوي اکثر روایات ډیر سخت ضعیف دی." دا فقره راقم الحروف د هغو احادیثو د مفصل جانچ پړتال نه وروسته لیکلې وه. ستاسو دا خبره ډیره صحیح ده چې د اهل علم مختلف جوابات لوستلو سره ذهني اضطراب پیدا کیږي، د دې اضطراب حل دا دی چې تاسو ته د کوم عالم په تحقیق باندې اعتماد وی، هم د هغه مطابق دې عمل وکړل شي. د فضائلو په باب کې خلکو د ترغیب او ترهیب په غرض باندې ډیر روایات وضع کړي دي، د هغو نه ډیر دځینو بزرګانو په کتابونو کې هم نقل شوي دي، په اهل علم فرض ده چې یو څیز رسول الله ﷺ ته په منسوب کولو کې د احتیاط نه کار واخلي، که یو روایت د ځانه جوړ شوی وي، یا سخت کمزوری وي، هغه دې ذکر نه کړل شي، ځکه چې د رسول الله ﷺ طرف ته داسې خبره منسوبول کومه چې رسول الله ﷺ نه وي فرمایلې، ډیره سخته ګناه ده.[1]

## د رمضان د روژو قضاء د نهم لسم محرم د نفلي روژو سره یوځای نیول

**سوال:** آیا د رمضان د روژې قضاء د نهم اولسم محرم د نفلي روژوسره په یونیت باندې کیدای شي؟

**جواب:** د رمضان د قضاء نیت وکړئ، دوه نیتونه جمع کول صحیح نه دي.[2]

## رسول الله ﷺ له وحې پرته د عاشورا روژه ولې و نیوه؟

**سوال:** محترم (مولوی صاحب) چونکې زه هم د مطالعې ډیر شوق لرم په دې وجه زما په ذهن کې څو سوالات پیدا شوي دی، چې د هغو جوابات ستاسو نه غواړم.

**اول سوال:** دا دی چې په قرآن کریم کې الله پاک فرمایي چې زما نبي زما د وحې نه پرته خبره نه

---

[1] عن عبدالله بن عمرو رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلي الله عليه وسلم: بلغوا عني ولو آية، وحدثوا عن بني اسرائيل ولا حرج، ومن كذب علي متعمداً فليتبوأ مقعده من النار. رواه البخاري. (مشكوٰة /۳۲/كتاب العلم/الفصل الاول).

[2] ومتي نوٰى شيئين مكتلفين متساويين في الوكادة والفريضة ولا رجحان لاحدهما علي الآخر بطلا ومتي ترجح احدهما علي الآخر ثبت الراجح كذا في محيط السرخسي. واذا نوي قضاء بعض رمضان والتطوع يقع عن رمضان في قول ابي يوسف رحمه الله تعالي وهو رواية عن ابي حنيفة رحمه الله تعالي كذا في الذخيرة. (عالمگيري/۱/۱۹۶، ۱۹۷)

کوي، تاسو بیان کړئ چې رسالة "یوم عاشورا د تاریخ په آینه کې" شائع کرده صدیقی ټرسټ کراچی په صفحه ۲ او ۳ باندې لیکل شوي دي چې : سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمایي چې رسول الله ﷺ چې کله مدینې منورې ته تشریف راوړ؛ نو یهودو به د عاشورا د ورځې روژه نیوله، رسول الله ﷺ د هغوی نه تپوس وکړ چې : تاسو روژه ولې نیسئ؟ نو هغوی وویل چې زموږ له پاره ډیره د خوشحالۍ ورځ ده، سیدنا موسی علیه السلام او د هغوی قوم ته خلاصی ملاؤ شو، او فرعون غرق شوی و، نو سیدنا موسی علیه السلام د شکرانې روژه نیولې وه په دې وجه مونږ خلک هم روژه نیسو، نو په دې اوریدو باندې رسول الله ﷺ وفرمایل چې بیا خو مونږ ستاسو په نسبت د سیدنا موسی علیه السلام د قرب زیات مستحق یو. لهذا رسول الله ﷺ روژه نیول شروع کړل او نورو ته یې هم د روژې د نیولو حکم وکړ. زه تاسو نه تپوس کوم چې رسول الله ﷺ چې د هغه له پاره دنیا جوړه وه د سیدنا موسی علیه السلام د واقعې نه (الله پاک دې معافي وکړي) بې خبر و چې یهودو هغه خبر کړ او دویمه دا چې آیا په رسول الله ﷺ باندې هغه وخت وحی نازل شوې وه چې ته هم روژه ونیسه او نورو ته هم حکم وکړه، چې هر کله رسول الله ﷺ بغیر د وحی نه خبرې نه کولې، قرآن ګواه دی؛ نو بیا رسول الله ﷺ داسې ولې وکړل؟ تاسو بیان کړئ بلکه ثبوت راکړئ چې وحی راغلې وه او که نه وه نازل شوې نو رسول الله ﷺ دا واقعه د کوم ځای نه رانقل کړه؟ یا خو د قرآن کریم نه جواب راکړئ او یا د حدیث قدسی نه، ستاسو به ډیره مهرباني وي.

**جواب:** په دې کې دوه اشکالات ذکر شوي دي، یو دا چې د سیدنا موسی علیه السلام د واقعې رسول الله ﷺ ته مخکې نه علم ولې نه و؟ ماته نه ده معلومه چې دا څه اشکال دی؟ په قرآن کریم کې دي: تاسو نه پوهیدلئ چې کتاب څه دې او ایمان څه دی؟[1] که د کتاب او ایمان تفصیلات د وحی نه مخکې نه معلومیدل څه عیب نه دي، نو د یوې تاریخي واقعې د خبر ورکولو نه مخکې نه معلومیدل ولې عیب شو؟ او که دا عیب دی؛ نو هغه ولې عیب نه دی؟

دویم اشکال دا دی چې بغیر د وحي نه رسول الله ﷺ روژه څنګه شروع کړه؟ د دې جواب دا دی چې په قرآن کریم کې رسول الله ﷺ ته د مخکې انبیاء کرامو علیهم السلام د امور خیر د اقتداء حکم ورکړل شوی دی.[2] تر هغه وخته پورې چې د الله پاک په وحی کولو سره د هغې نه منع نه وکړل شي، په دې وجه د رسول الله ﷺ د موسی علیه السلام په موافقت کې د عاشورا روژه اختیارول د هغه آیت کریمه د لاندې وو او د دې له پاره د نوې وحي ضرورت نه و، نه د دې د ثبوت پیش کولو حاجت، او که دا کار د الله پاک په نزد غوره نه وي، نو رسول الله ﷺ به یې د دې نه منع کړی و.

**والله اعلم!**

---

[1] وکذالک او حینا الیک روحا من امرنا ماکنت تدري ماالکتٰب ولا الایمان ولکن جعلنٰه نورا نهدي به من نشاء من عبدنا. (الشوري/۵۲)

[2] اولٰئک الذین هدي الله فبهدهم اقتده. (الانعام/۹۰)

# ❖ داعتكاف مسائل ❖

........................................

## داعتكاف مختلف مسائل

**سوال:** اعتكاف ولې كيږي؟ او طريقه يې څه ده؟

**جواب:** درمضان په آخري لسوورځوكې په جوماتو كې اعتكاف كول ډيرلوى عبادت دى. ام المومنين حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې حضورﷺ به هركال درمضان په آخري لسوورځوكې اعتكاف كولو (بخارى ومسلم)[1]

ددې وجې نه كه الله تعالى توفيق وركړى نو هرمسلمان ته ددې سنت دبركتونونه فائده اوچتول پكاردي، جوماتونه دالله تعالى كورونه دي اودكريم مالک په دركې دسوال په شان كېناستل ډيرلوى سعادت دى، دلته داعتكاف څومسائل ليكلې كيږي مزيد مسائل دعلماء كرامو نه معلوميداى شي:

۱:.....درمضان المبارک د آخري عشرې اعتكاف كول سنت كفايه ده، كه دمحلې څه كسان داسنت اداكړي؛ نودجومات حق چې په محله والوباندې لازم دى به ادا شي اوكه جومات خالي وي او هيڅ يوكس اعتكاف ونه كړي؛ نوټول محلى والا به لائق عتاب وي، او دجومات د اعتكاف نه پرته پاتې كيدو وبال به پوره محله باندې وي.[2]

۲:.....په كوم جومات كې پنځه وخته دجمعې لمونځ اداكيږي په هغه كې داعتكاف له پاره كېناستل پكاردي اوكه جومات داسې وي چې په هغه كې پنځه وخته دجمعې لمونځ نه ادا كيږى نوپه هغې كې دپنځه وخته جمعې سره دمونځ كولوانتظام كول په محله والوباندې لازم دى[3]

---

۱ ] عن عائشة ان النبي صلى الله عليه وسلم كان يعتكف العشر الآواخر من رمضان حتي توفاه الله ثم اعتكف ازواجه من بعده. متفق عليه. (مشكوة/۱/ ۱۸۳/باب الاعتكاف/الفصل الاول/طبع قديمي)۔

۲ ] وسنة مؤكدة في العشر الأخير من رمضان اي سنة كفاية كما في البرهان وغيره.....الخ. وفي الشرح: لظيرها اقامة التراويح بالجماعة فاذا قام بها البعض سقط الطلب عن الباقين.....الخ. (شامي/۲/۴۴۲/باب الاعتكاف/وايضاً في الفتاوي الهندية/كتاب الصوم/الباب السابع في الاعتكاف/۱/۲۱۱/طبع رشيديه/كوئته)۔

۳] هو...لبث...ذكر ولومميزا في مسجدجماعة هو ماله امام ومؤذن اديت فيه الخمس او لا وعن الامام اشتراط اداء الخمس فيه وصححه بعضهم....الخ. (قوله في مسجد جماعة) انما شرط لقول حذيفة لا اعتكاف الا في مسجد جماعة...الخ. وينبغي ان لايصح مسجد الحياض ومسجد قوارع الطريق وينبغي ان يصح في مصلي العيد والجنازة.......الخ. (حاشية الطحطاوي مع الدرالمختار/باب الاعتكاف/۱/۴۷۲، ۴۷۳/ وايضاً هداية مع فتح القدير/۲/ ۱۰۹/ باب الاعتكاف/وايضاً في العالمگيري/۱/ ۲۱۱/كتاب الصوم/ الباب السابع في الاعتكاف)

۳:....ښځه دې په کورکې دلمونځ له پاره يوځای مقررکړي اوهلته دې په اعتكاف كې كېني، نوهغې ته به په جومات كې اعتكاف كې دناستې ثواب ملاوشي.[1]

۴:....په اعتكاف كې دقرآن پاک تلاوت،درودشريف، ذكر او تسبيح، ديني علم زده كول او نورو ته ښودل،دانبياء كرام عليهم السلام ،صحابه كرامو او بزرگانو دين حالات لوستل او اوريدل خپل معمول جوړول پكاردي،بې ضرورته خبرو نه دې ځان ساتي.[2]

۵:....اعتكاف كې بې ضرورته داعتكاف دځای نه ووتل جائزنه دي،گني اعتكاف به يې مات شي[3]،واضحه دې وي چې داعتكاف دځای نه مراد پوره جومات دی په كوم كې اعتكاف وكړل شی خاص ځای ترې مراد نه دی چې په جومات كې د اعتكاف د پاره خاص كيږي.

۶:....متيازواوغسل جنابت له پاره دجومات نه بهرتګ جائزدی،همدغه شان كه دكورنه څوک ډوډۍ راوړلووالا نه وي؛ نو ډوډۍ خوړلوله پاره كورته تګ هم جائزدی.[4]

۷:..په كوم جومات كې چې اعتكاف كوي كه هلته دجمعې لمونځ نه كيږي؛ نودجُمعې دلمونځ له پاره جامع مسجدته تلل هم درست دي، مگرپه داسې وخت كې لاړشي چې هلته تحية المسجد او سنت وكړل شي اودجمعې دمانځه نه فارغ شی نوفوراً دخپل اعتكاف واله جومات ته واپس راشي.[5]

۸:......كه په هيره سره دخپل اعتكاف دجومات نه ووت ؛نواعتكاف مات شو.[6]

۹:.....په اعتكاف كې بې ضرورته په دنياوی كاركې مشغوليدل مكروه تحريمي دي.مثلاً: بې ضرورته خريدوفروخت كول،اوكه څوک غريب سړی دې چې په كوركې يې دخوراک څه نشته

---

١ ] والمرأة تعتكف في مسجد بيتها اذا اعتكفت في مسجد بيتها فتلك البقعة في حقها كمسجد الجماعة في حق الرجل لاتخرج منه الا لحاجة الانسان كذا في شرح المبسوط للامام السرخسي. (عالمگيري/١/٢١١/كتاب الصوم/ الباب السابع في الاعتكاف. وايضاً حاشية الطحطاوي علي الدرالمختار/١/٤٧٣/باب الاعتكاف)۔

٢ ] ويلازم التلاوة والحديث والعلم وتدريسه وسير النبي صلى الله عليه وسلم والانبياء عليهم السلام واخبار الصالحين وكتابة امور الدين كذا في فتح القدير. (عالمگيري/١/٢١٢. ايضاً فتح القدير/٢/١١٢)۔

٣ ]فلو خرج ولو ناسياً ساعة.......بلا عذر فسد.......الخ. (الدرالمختار مع الرد/٢/٤٤٧). وايضاً: ولو خرج من المسجد ساعة بغير عذر فسد اعتكافه عند ابي حنيفة لوجود المنافي. (هداية مع فتح القدير/٢/١١٠)

٤ ] وحرم عليه اي علي المعتكف.......الخروج الا لحاجة الانسان طبيعية كبول وغائط وغسل لواحتلم ولا يمكنه الاغتسال في المسجد. (الدرالمختار مع الرد/٢/٤٤٥/ باب الاعتكاف/وايضاً حاشية طحطاوي علي الدرالمختار /١/٤٧٤/باب الاعتكاف/طبع رشيديه)۔

٥ ] ويخرج للجمعة حين تزول الشمس......يخرج في وقت يمكنه ان يأتي الجامع فيصلي اربع ركعات قبل الاذان عند المنبر وبعد الجمعة يمكث بقدر مايصلي اربع ركعات اوستا علي حسب اختلافهم في سنة الجمعة كذا في الكافي. (عالمگيري/١/٢١٢. وايضاً فتح القدير/٢/١١٠، حاشية لطحطاوي علي الدر/١/ ٤٧٥)۔

٦ ]فلو خرج ولو ناسياً ساعة.......بلا عذر فسد.......الخ. (الدرالمختار مع الرد/٢/٤٤٧). وايضاً: ولو خرج من المسجد ساعة بغير عذر فسد اعتكافه عند ابي حنيفة لوجود المنافي. (هداية مع فتح القدير/٢/١١٠)

نوهغه په اعتکاف کې هم اخيستل خرڅول کولی شي، مګر داخيستلو خرڅولو سامان جومات ته راوړل جائزنه دي.[۱]

۱۰ :.....داعتکاف په حالت کې بالکل چپ کېناستل درست نه دي.هو!که ذکراوتلاوت کولو باندې ستړی شي؛ نود آرام په نيت سره چپ کېناستل جائزدي.[۲]

ځينې خلک داعتکاف په حالت کې بالکل خبرې نه کوي،بلکې مخ سر راونغاړي اودې چپ پاتې کيدوته عبادت وايي داغلطه ده،دښو خبرو کولواجازت شته،هو!بدې خبرې دې دخولې نه نه اباسي،همدغه شان بې ضرورته اوفضول خبرې دې نه کوي،بلکې په ذکراو عبادت اوتلاوت کې دې خپل وخت تيروي،خلاصه داده چې چپ کېناستل عبادت نه دی.

۱۱ :.....درمضان المبارک لس ورځې اعتکاف پوره کول ضروري دي. چې دشلم تاريخ دلمر پريوتلونه مخکې جومات ته دې اعتکاف په نيت سره داخل شي ځکه چې دشلم تاريخ لمر پريوتو سره آخري عشره شروع شي، که دلمرپريوتلونه وروسته يې يوڅولمحې هم اعتکاف دنيت نه بغيرتيرې شوې نواعتکاف به مسنون نه وي.[۳]

۱۲ :.....داعتکاف له پاره روژه شرط ده،پس که خدای مه کړه دچا روژه ماته شوه، نواعتکاف مسنون يې مات شو.[۴]

۱۳ :.....دمعتکف دچابيمارپرسي(عيادت) له پاره دجومات نه وتل درست نه دي[۵].هو! که دخپل څه ضرورت له پاره دجومات نه وتلې و اوپه تلوتلو کې يې بيمارپرسي هم وکړه ؛نوصحيح ده مګرهلته دې ايساريږي نه.[۶]

---

۱ ] وخص المعتکف......عقد احتاج اليه لنفسه اوعياله فلو لتجارة کره کبيع.......فلو خرج لاجلها فسد لعدم الضرورة وکره اي تحريماً.........احضار مبيع فيه کما کره فيه مبايعة غير المعتکف.......الخ. (الدر المختار مع الرد/۲/۴۴۸، ۴۴۹/باب الاعتکاف، وايضاً حاشية طحطاوي علي الدر/۱/۴۷۶/طبع رشيديه)_

۲ ] قال ولا يتکلم الا بخير ويکره له الصمت لان صوم الصمت ليس بقربة في شريعتنا لکنه يتجانب مايکون ماثما (قوله ويکره له الصمت ) اي الصمت بالکلية تعبداً فانه ليس في شريعتنا.....الخ. (فتح القدير مع الهداية/۲/۱۱۲، وايضاً (فتاوي شامي/۲/۴۴۹/باب الاعتکاف)_

۳ ] واعلم ان الليالي تابعة للايام اي کل ليلة تتبع اليوم الذي بعدها.......فعلي هذا اذا ذکر المثني اوالمجموع يدخل المسجد قبل الغروب، ويخرج بعد الغروب من آخر يوم. (شامي/۲/۴۵۲/باب الاعتکاف)_

۴ ] (واما شروطه).........ومنها الصوم وهو شرط الواجب منه رواية واحدة. (فتاوي عالمگيري/الباب السابع في الاعتکاف/۱/۲۱۱/ طبع رشيديه کولته)_

۵ ]عنها اي عائشة قالت: السنة علي المعتکف ان لا يعود مريضاً. (مشکوٰة/۱/۱۸۳). وايضاً ولا يخرج لعيادة المريض کذا في البحرالرائق. (عالمگيري/ باب الاعتکاف واما مفسداته/۱/۲۱۲)_

۶ ] لو خرج لحاجة الانسان ثم ذهب لعيادة المريض او لصلاة الجنازة من غير ان يکون لذٰلک قصد فانه جائز......الخ. (البحرالرائق/۲/۳۲۶/ باب الاعتکاف/طبع بيروت)_

۱۴: ......درمضان المبارک آخری عشرې اعتکاف کول خوسنت دی، هسې مستحب دادی چې بنده جومات ته لاړشي نوچې څومره وخت پورې په جومات کې وي؛ نوداعتکاف نیت دې وکړي.[۱]
۱۵: ......داعتکاف نیت په زړه کې کول کافي دی خوکه په ژبې سره یې هم ووایي نوبهتره ده.[۲]

## د اعتکاف درې قسمه دی او د نیت الفاظ په ژبې ویل ضروري نه دی

**سوال:** اوس درمضان میاشت ده،زه به آخري لس ورځې په اعتکاف کې کېنم،پوښتنه دادہ چې: ۱:داعتکاف نیت څنګه کول پکار دي؟ ۲:داعتکاف څوقسمونه وي؟
۳: که داعتکاف نیت وکړي او جومات ته لاړشي اوکه دمتیازو ضرورت وي نودحاجت پوره کیدونه پس دوباره نیت کول پکاردي یانه؟

**جواب:** ۱:داعتکاف نیت دادی چې بنده داعتکاف په نیت سره جومات ته داخل شي،اوکه په ژبې سره هم ووايي مثلاً:زهٔ دلسو ورځو د اعتکاف نیت کوم نوبهتره ده.
۲: درمضان المبارک داخری عشرې اعتکاف کول سنت دي،دباقی ورځواعتکاف نفل دی، اوکه دڅو ورځو د اعتکاف نذر یې کړی و؛ نوهغه اعتکاف واجب دی.
نو د اعتکاف درې قسمونه دي: واجب ، سنت اونفل.[۳]
۳:که درمضان المبارک دآخري لسوورځواعتکاف یې کړی وي؛ نویوځل نیت کول کافي دي اودځیل ضروري حاجات نه فارغ شي او جومات ته راشي؛ نودوباره نیت کول ضروري نه دي.

## دآخري عشرې نه پرته اعتکاف مستحب دې

**سوال:** رمضان مبارک کې داعتکاف له پاره آخری عشره خاص ده،آیادلسم رمضان هم اعتکاف کیدای شي، حضور ﷺ غالباًپه لسم هجري کې دلسم رمضان نه اعتکاف کړی و.

**جواب:** درمضان المبارک د آخري عشرې اعتکاف کول سنت موکده علی الکفایه دي[۴].او

---

۱ ] وسنة مؤكدة في العشر الأخير من رمضان........واقله نفلا ساعة من ليل او نهار عند محمد وهو ظاهر الرواية. (الدرالمختار مع الرد/۲/۴۴۲، ۴۴۳/باب الاعتكاف/طبع سعيد)_

۲ ] والنية معرفته بقلبه ان يصوم........والسنة ان يتلفظ بها كذا في النهر الفائق. (عالمگيري/۱/ ۱۹۵)_

۳ ] وينقسم الي واجب وهو المنذور تنجيزاً او تعليقاً والي سنة مؤكدة وهو في العشر الاخير من رمضان والي مستحب وهو ماسواهما هكذا في فتح القدير.(عالمگيري/۱/۲۱۱/ كتاب الصوم/ الباب السابع في الاعتكاف)

۴ ]وسنة مؤكدة في العشر الاخير من رمضان اي سنة كفاية كما في البرهان وغيره لاقترانها بعدم الانكار علي من لم يفعله من الصحابة، (قوله اي سنة كفاية) اذا قام بها البعض ولو فرد اسقطت عن الباقين ولم يتركه صلي الله عليه وسلم الا لعذر. (حاشية الطحطاوي مع الدرالمختار/ باب الاعتكاف/۱/۴۷۳، وايضاً في الشامية/۲/۴۴۲/ والهندية/۱/۲۱۱/ كتاب الصوم/الباب السابع في الاعتكاف/طبع رشيديه)

حضور ﷺ ددې فضائل بیان کړي دي[1] البته که یوکس دټول رمضان المبارک اعتکاف وکړي؛ نودا اعتکاف مستحب دی،[2] بلکې په غیررمضان کې هم دروژې سره نفلي اعتکاف کیدای شي[3] حضور ﷺ په نهمه هجري کې داخري عشرې اعتکاف نه وکړی، لهخدې وجې یې په لسمه هجري کې دشلوورځو اعتکاف وکړ.[4]

## اعتکاف له پاره هرمسلمان کېناستی شي

**سوال:** داعتکاف له پاره هرکس په جومات کې کېناستی شي یایوازې بزرګ؟

**جواب:** اعتکاف ته هرمسلمان کېناستی شي[5] خوکه نیک اوعبادت ګزار خلک اعتکاف وکړي نودا اعتکاف حق زیات اداکیږي.

## دکوم عمر خلکوله اعتکاف کول پکاردي؟

**سوال:** عام تاثردادی چې پوخ عمري اوبوډاګانو کېناستل پکاردي په دې خیال کې ترکوم حده پورې صداقت دی؟

**جواب:** اعتکاف ته بوډاګان اوځوانان دواړه کېناستلی شي،چونکې بوډاګانوته دعبادت ضرورت زیات محسوسیږي، ددې وجې نه مشران ددې زیات اهتمام کوي اوکول یې هم پکاردي.[6]

---

۱ ]وعن ابن عباس رضی الله عنهما ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال في المعتكف هو يعتكف الذنوب ويجزي له من الحسنات كعامل الحسنات كلها.رواه ابن ماجة.(مشكوٰة/ باب الاعتكاف/١/١٨٣/الفصل الاول/طبع قديمي)

٢ ]الحق ان يقال: الاعتكاف ينقسم الي واجب.......والي مستحب وهو ماسواهما......الخ. (فتح القدير/باب الاعتكاف/٢/١٠٦، وايضاً في الهندية/باب الاعتكاف/١/٢١١). وايضاً ومستحب في غيره من الأزمنة (قوله في غيره) اي غير المذكور من الواجب والمسنون. (حاشية طحطاوي مع الدر المختار/١/٤٧٣)۔

٣ ]قال رحمه الله: الاعتكاف مستحب يعني في سائرالزمان.........وهو اللبث في المسجد.........مع الصوم ونية الاعتكاف واما الصوم فشرط والصوم شرط لصحة الواجب رواية واحدة لصحة التطوع فيما روي الحسن عن ابي حنيفة لقوله عليه السلام لا اعتكاف الا بصوم فعلي هٰذه الرواية لايكون اقل من يوم. (الجوهرة النيرة/باب الاعتكاف/١/١٤٩، ١٥٠)۔

٤ ] عن انس رضي الله عنه قال: كان النبي صلى الله عليه وسلم يعتكف في العشر الأواخر من رمضان فلم يعتكف عاماً فلما كان العام المقبل اعتكف عشرين.رواه الترمذي (مشكوٰة/١٨٣/باب الاعتكاف/الفصل الاول/ طبع قديمي)

٥ ]وشرعاً اللبث في المسجد مع نيته فالركن هواللبث والكون في المسجد والنية......ومنها الاسلام والعقل .......واما البلوغ فليس بشرط حتي يصح اعتكاف الصبي العاقل........الخ. (البحر الرائق/٢/٣٢٢)۔

٦ ] ايضاً۔

## معتكف د تقرير له پاره بل مسجد ته تلل

**سوال:** آيا معتكف د يو مسجد نه بل مسجد ته د تقرير له پاره تلی شي، حال دا چې هغه په خپل دليل کې وايي چې دا تقرير کول د اعتکاف نه افضل دي؟

**جواب:** که خپل مسجد پرېږدي او بل مسجد ته لاړ شي؛ نو اعتکاف به يې ختم شي.[۱]

## که معتکفه ښځه د مجبوري له وجې په نهمه ورځ پاڅي؛ نو قضاء به څنګه راوړي؟

**سوال:** زما مور د نن نه څلور پنځه کاله مخکې په خپل کور کې په اعتکاف کې ناسته وه، د مجبوري له وجې په نهمه ورځ پاڅيده، د هغې قضاء به څنګه کوي؟

**جواب:** د قضاء کولو ضرورت نشته، که کول يې غواړي؛ نو د روژې سره دې د يوې شپې او ورځې اعتکاف وکړي.[۲]

## د اعتکاف په دوران د ښځو د حيض ورځې شروع کېدل

**سوال:** که د اعتکاف په دوران کې د ښځو خاصې (د حيض) ورځې شروع شي؛ نو په دې صورت کې هغوی ته څه کول پکار دي؟

**جواب:** اعتکاف به يې ختم شي، ی بهر دې راشي.[۳]

## واده او ناواده دواړه قسمه ښځې اعتکاف ته کيناستلی شي

**سوال:** آيا واده کړې زنانه اعتکاف کې کيناستلی شي؟

**جواب:** واده کړې ښځه د خپل خاوند په اجازه اعتکاف ته کيناستلی شي.[۴]

---

[۱] فلو خرج ساعةً بلا عذر فسد. (الدرالمختار مع الرد المحتار/ ۴۴۷/۱). وايضاً: ولايخرج الكمعتكف من المسجد الا لحاجة لازمة شرعية كالجمعة او لحاجة طبيعية كالبول والغائط......ولايعود مريضاً ولا يشهد جنازة فلو خرج المعتكف عن المسجد بغير عذر ساعة بطل اعتكافه في قول ابي حنيفة. (فتاویٰ قاضي خان علي هامش الهندية/باب الاعتكاف/۲۲۱/۱، ۲۲۲). واما مفسداته: فمنها الخروج من المسجد، فلا يخرج المعتكف من معتكفه ليلاً ونهاراً الا بعذر وان خرج من غير عذر ساعة فسد اعتكافه. (فتاویٰ عالمگيري/باب الاعتكاف/۲۱۲/۱)

[۲] واذا فسد الاعتكاف الواجب وجب قضاؤه فان كان اعتكاف شهر بعينه اذا افطر يوماً يقضي ذٰلك اليوم. (فتاویٰ عالمگيري/۲۱۳/۱/ الباب السابع في الاعتكاف/طبع رشيديه).

[۳] واما شروطه........الخ. منها الاسلام والعقل والطهارة من الجنابة والحيض والنفاس. (عالمگيري/۲۱۱/۱)

[۴] فيصح من المرأة والعبد باذن المولي والزوج ان كان لها زوج. (عالمگيري/۲۱۱/۱/ طبع رشيديه).

**سوال:** آیا ناواده ښځه په اعتکاف کې کیناستلی شي؟

**جواب:** ناواده کړې زنانه د خپل مور پلار په اجازه اعتکاف ته کیناستلی شي.

**سوال:** د پورته دواړه قسم ښځو اعتکاف کې د کیناستلو څه طریقې دي؟

**جواب:** صرف یوه طریقه ده چې د خپل کور څه برخه د خپل اعتکاف له پاره تجویز کړي، او له ضرورت پرته د هغه ځای څخه ونه وځي. [1]

**سوال:** آیا دا پورته دواړه قسم ښځې په خپل کور کې اعتکاف ته کیناستلی شي؟

**جواب:** ښځه به په کور کې اعتکاف ته کیني. [2]

## آیا سړی په کور کې اعتکاف ته کیناستلی شي؟

**سوال:** آیا نارینه حضرات د مسجد په ځای کور کې اعتکاف ته کیناستلی شي؟

**جواب:** د سړیو له پاره په کور کې اعتکاف جائز نه دی. [3]

## د ښځو اعتکاف هم جائز دی

**سوال:** زه دزړه په صدق سره داغواړم چې په رمضان کې په اعتکاف کې کېنم مهرباني وکړئ او د ښځو د اعتکاف شرطونه او طریقې نه مو خبر کړئ!

**جواب:** ښځې هم اعتکاف کولی شي، ددې طریقه داده چې په کورکې په کوم ځای کې لمونځ کوي، په هغه ځای کې یا په بل مناسب ځای وې؛ نو هغه دې مخصوص کړي او دلسوورځو سنت اعتکاف نیت دې وکړي او په عبادت کې دې مشغوله شي، دشرعي حاجت نه پرته دې د هغه ځای څخه نه راپاځي[4]، که د اعتکاف په دوران کې د ښځې خاص ورځې شروع شي؛ نو اعتکاف به یې ختم شی ځکه چې په اعتکاف کې روژه شرط ده.[5]

---

[1] والمرأة تعتكف في مسجد بيتها اذا اعتكفت في مسجد بيتها فتلك البقعة في حقها كمسجد الجماعة في حق الرجل لاتخرج منه الا لحاجة الانسان. (عالمگيري/١/٢١١/ الباب السابع في الاعتكاف).

[2] ولو لم يكن في بيتها مسجد تجعل موضعا منه مسجداً لتعتكف فيه. (عالمگيري/١/٢١١).

[3] واما شروطه.......منها مسجد الجماعة فيصح في كل مسجد له اذان واقامة هوالصحيح كذا في الخلاصة. (عالمگيري/١/٢١١). ومقتضاه انه يندب للرجل ايضاً.......اما الفريضة والاعتكاف فهو في المسجد كما لايخفي. (ردالمختار/كتاب الصوم/باب الاعتكاف/٢/ ٤٤١)

[4] والمرأة تعتكف في مسجد بيتها اذا اعتكفت في مسجد بيتها فتلك البقعة في حقها كمسجد الجماعة في حق الرجل لاتخرج منه الا لحاجة الانسان كذا في شرح المبسوط للامام السرخسي. (فتاوي عالمگيري/١/٢١١/الباب السابع في الاعتكاف، وايضاً حاشية الطحطاوي علي الدرالمختار/١/٤٧٣)۔

[5] واذا فسد الاعتكاف الواجب وجب قضاء ه.......سواء افسده بصنعه.......او بغير صنعه كالحيض .......الخ. (عالمگيري/١/ ٢١٣/الباب السابع في الاعتكاف)۔

## کوم جومات کې چې د جُمعې لمونځ نه کیږي هلته هم اعتکاف جائزدی

**سوال:** په کوم جومات کې چې د جُمعې لمونځ نه اداکیږي هلته اعتکاف کیدای شي اوکه نه؟

**جواب:** په جامع مسجد کې اعتکاف کول بهتردي، چې دجُمعې دلمونځ له پاره بهرتلل نه وي[1]،که په دویم جومات کې اعتکاف وکړي؛ نوجامع مسجدته دومره مخکې لاړشي چې دخطبې نه مخکې تحیة المسجد اوسنت وکړل شي،اودجُمعې نه فارغ شي نوفوراًدې دخپل اعتکاف والا جومات ته راشي،په جامع مسجد کې دې زیات نه ایساریږي،خو که هلته زیات ایسار شو نوهم ورسره اعتکاف نه فاسدیږي.[2]

## قرآن شریف نه مکمل کولو والا هم اعتکاف کولی شي

**سوال:** یوکس چاچې دقرآن پاک ختم مکمل کړی نه دی، یوڅوسپارې یې ویلي دي اوپریښې یې دي دځه مجبوري دوجې نه ،آیاهغه کس په اعتکاف کې کېناستی شي؟

**جواب:** ضرورکېناستی شي،اوهغه ته قرآن پاک هم مکمل کول پکار دي،په اعتکاف کې به ورته ددې موقعه هم ملاوشي.

## په یوجومات کې چې څومره کسان وغواړي اعتکاف کولی شي

**سوال:** آیا په یوجومات کې یواعتکاف کیدای شي، یادیونه زیات هم؟

**جواب:** په یوجومات کې چې څومره کسان وغواړي اعتکاف ته دې کېني که ټول محلې والا وغواړي نوهم کېناستی شي.

## معتکف په پوره جومات کې کېناستی او څملاستی شي

**سوال:** داعتکاف په حالت کې په کوم خاص ځای چېرته چې په کونج کې پرده لګول شوې وي کېناستل پکاردي، ایا د شپې یا ورځې که دهلته نه راووځي: نو د جومات د پکی لاندې

---

١ ]والاعتكاف في المسجد الحرام الفضل.......ثم المسجد الجامع. (فتاوي قاضي خان علي هامش الهندية، فصل في الاعتكاف/١/٢٢١/وايضاً: ردالمحتار/٢/٤١١/باب الاعتكاف/طبع ايچ ايم سعيد)۔

٢ ] ولا يخرج المعتكف من المسجد الا لحاجة لازمة شرعية كالجمعة......وياتي الجمعة حين تزول الشمس فيصلي قبلها اربعاً وبعدها اربعاً او ستاً ولايمكث اكثر من ذلك اما بعدها اربعاً او ستاً لان الآثار قد اختلفت بالسنة بعد الجمعة فكان هٰذا مبلغ سننها وقال ابوالحسن الكرخي رحمه الله تعالي وياتي الجمعة في مقدار ما يصلي....وركعتان تحية المسجد وعن محمد رحمه الله تعالي اذا كان منزله بعيداً من الجامع....وان قام في المسجد الجامع يوما وليلةً لاتفسد اعتكافه ويكره ذلك(فتاوي قاضي خان علي الهندية/١/٢٢١، ٢٢٢/طبع رشيديه)

څملاستی شي یانه؟ معتکف څه ته وایي هغه خاص ګوټ ته په کومه کې چې ناسته کیږي پاپوره جومات ته معتکف ویل کیږي؟دځینې عالمانونه مواوریدلي دي چې داعتکاف په دوران کې بغیر دضرورت نه دګرمې لرې کولوله پاره غسل کول هم درست نه دي،ایا داصحیح دي؟اوکه دمجبوري په حالت کې دجومات نه ووځي اوچاکس سره په خبروشي؛ نو آیا په داسې حالت کې به اعتکاف مات شي یانه؟

**جواب:** په جومات کې خاص ځای کوم چې دناستې له پاره مخصوص شوی په هغه کې ناسته څه ضروري نه ده،بلکې په پوره جومات کې دشپې یاورځې چېرته چې کېناستل اوویدۀ کیدای شي،دیخ والي حاصلولوله پاره دغسل په نیت سره دجومات نه وتل جائزنه دي[۱] البته ددې ګنجائش شته چې که چېرته داستنجا وغیره تقاضې له پاره دجومات نه بهرلاړشي نوداودس په ځای دې په بدن باندې دوه څلورلوټې اوبه هم واچوي،معتکف دضروري تقاضو نه پرته د جومات نه وتل پکارنه دي[۲] بغیردضرورت نه که یوساعت هم دجومات نه بهرپاتې شو: نو د امام صاحب رحمه الله په نزداعتکاف به یې مات شي اودصاحبینوپه نزدنه ماتیږي،دحضرت امام صاحب رحمه الله په قول کې احتیاط دی اودصاحبینوپه قول کې وسعت اوګنجائش دی.[۳]

## داعتکاف له پاره څادرونه لګول ضروري نه دي

**سوال:** ایا اعتکاف کې ناستې له پاره د څادرونو حجره شان چې جوړول ضروري دي یادهغې نه بغیرهم اعتکاف کیږي؟

**جواب:** څادرونه دمعتکف دتنهایي او آرام وغیره له پاره لګول کیږي ګني اعتکاف ددې نه پرته هم کیدای شي.[۴]

---

۱ ]باب الاعتکاف......فهواللبث في المسجد مع نية الاعتکاف کذا في النهاية.(الفتاوي الهندية/۱/۲۱۱/ طبع رشيديه، وايضاً: اللباب في شرح الكتاب، باب الاعتکاف/۱/۱۶۲/ طبع قديمي کتب خانه)۔

۲ ](وحرم عليه) اي علي المعتكف اعتكافاً واجباً......الخروج الا لحاجة الانسان كبول وغائط وغسل لو احتلم ولايمكنه الاغتسال في المسجد كذا في النهر. (قوله الا لحاجة الانسان) ولايمكث بعد فراغه من الطهور.......وليس كالمكث بعد ما لوخرج لها ثم ذهب لعيادة المريض او صلاة جنازة من غير ان يكون خرج لذٰلک قصداً فانه جائز كما في البحر عن البدائع. (الدرالمختار مع الردالمحتار/۲/٤٤٥/باب الاعتکاف، وايضاً في الحاشية الطحطاوي علي الدرالمختار/باب الاعتکاف/۱/٤٧٤، ٤٧٥/طبع رشيديه كوئته)۔

۳ ] فان خرج ساعة بلا عذر فسد لوجود المنافي اطلقه فشمل القليل والكثير وهٰذا عند ابي حنيفة وقالا لايفسد الا باكثر من نصف يوم وهو الاستحسان لان في القليل ضرورة كذا في الهداية. (البحرالرائق/۲/۳۲۶/باب الاعتکاف، وايضاً في الحاشية الطحطاوي علي الدر/باب الاعتکاف/طبع رشيديه)

٤ ] عن عائشة قالت: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا اراد ان يعتكف اي اذا نوي من اول الليل ان يعتكف وبات في المسجد صلي الفجر ثم دخل في معتكفه......وتاولوا الحديث بانه صلى الله عليه وسلم دخل المعتكف وانقطع وتخلي بنفسه فانه كان في المسجد يتخلي عن الناس ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

## د اعتکاف په دوران کې خبرې کول

**سوال:** د اعتکاف په دوران کې خبرې کول سهي دي او که نه؟ که سهي وي نو د خبرو نوعیت وښیئ!

**جواب:** اعتکاف کې دیني او دضرورت په اندازه دنیوي خبرې کول سهي دي.[1]

## د اعتکاف په دوران کې مطالعه کول

**سوال:** د اعتکاف په دوران کې د تلاوت کلام پاک نه پرته د سیرت او فقه سره متعلق د کتابونو مطالعه کیدلی شي؟

**جواب:** د ټولو دیني علومو مطالعه کیدای شي.[2]

## د اعتکاف په دوران کې قوالي اوریدل، تلویزون کتل او دفتري کارکول

**سوال:** مسئله داده چې زمونږ دخلکوجومات کوم چې په مهربان شوګر ملزټنډوواله یارضلع حیدرآباد کې واقع دی په دې جومات کې هرکال په رمضان المبارک کې زمونږدمل ریزیډنټ ډائریکټر صاحب (چې ظاهري طورسره ډیردیندارسړی دی)اعتکاف ته کښني،خو دهغوی د اعتکاف طریقه داده چې په کوم ګوټ کې کښینی هلته ګاوتکیوسره قالین اوټلیفون هم لګوي،چې داعتکاف دمکمل کیدوپورې هلته پروت وي.اوموصوف داعتکاف په دوران کې دټیلیفون په ذریعه تمام کاروباراودمل معاملات کنټرول کوي.ددې نه علاوه تمام دفتري کاروایي فائلونه وغیره جومات ته راغواړي اوپه هغې باندې نوټ وغیره لیکي،ددې نه علاوه موصوف ټیپ ریکارډ راووغواړي اوپه جومات کې پرې قوالي وغیره اوري،هرکله چې په قوالیانوکې سازونه وغیره هم شامل وي آیا په جومات کې ددې اجازت شته،چې قوالي واوریدل شي؟ددې نه علاوه موصوف جومات ته تلویزون سیټ هم راوغواړي چې په هغې ټیلی کاسټ کیدونکې تمام دینی پروګرامونه په ډیرشوق اوذوق سره ګوري.اوزموږ ددې موصوف

---

...بقیه د تیر مخ]..في موضع يستتربه عن اعين الناس كما ورد انه اتخذ في المسجد حجرة من حصير. (مرقاة المفاتيح/۲/۵۷۰/باب الاعتكاف/الفصل الثاني)۔

[1] لايتكلم الا بخير.....واما التكلم بغير خير فانه يكره لغيره المعتكف فما ظنك للمعتكف اه. وظاهره ان المراد بالخير هنا مالا اثم فيه فيشمل المباح.....الخ. (البحرالرائق/۲/۳۲۷/باب الاعتكاف). ولا بأس ان يتحدث بما لا اثم فيه كذا في شرح الطحاوي. (فتاوي عالمگيري/۱/۲۱۲/الباب السابع في الاعتكاف)۔

[2] التلاوة والحديث والعلم وتدريسه وسير النبي صلى الله عليه وسلم والأنبياء عليهم السلام واخبار الصالحين وكتابة امور الدين كذا في فتح القدير. (عالمگيري/۱/۲۱۲/الباب السابع في الاعتكاف).

سره ټول نوکران هم په خدمت کې موجودوي. زموږ د کالوني ډيرمونځ ګزارد موصوف د دې حرکتونو دوجې نه جومات ته مانځه له پاره هم نه راځي، ايا د دې لمونځ ګزارو دا فعل صحيح دی؟

**جواب:** داعتکاف اصل روح دادې چې دومره ورځې خاص دالله تعالی له پاره تيرې کړې. او ترخپل وس پورې تمام دنياوي کارونه بند کړل شي، بياهم د کومو کارونه نه بغيرچې ګزاره ګرانه وي دهغو کول جائزدي، خو جومات ته د دومره ورځوله پاره دفترجوړول بې ځايه خبره ده[۱]. او په جومات کې د ګانو بجانو آلات تلويزون وغيره کتل حرام دي چې نيکی برباد او ګناه لازم په شان دی، ستاسو ډائرکټر صاحب ته پکاردي چې اعتکاف کوي نوشاهانه نه بلکې فقيرانه دې کوي. او د محرماتونه دې ځان ساتي. ګنی داعتکاف دهغهٔ له پاره هيڅ فرض نه دی، دخدای کور دې معاف کړي، د دې تقدس دې نه پايمالوي.

## مُعتکف د جومات په کونج کې کېناستل اويوازې دسُستي لرې کولوله پاره غسل کول

**سوال:** ايا اداعتکاف په حالت کې معتکف (صرف دسستئ او بدن د دروندوالي لرې کولو له پاره دجومات په کونج دپاکي په حالت کې غسل کولی شي؟ اوايا د دې سره سنت اعتکاف ماتيږي؟ هرکله چې داغسل دجومات په حدودوکې دننه وي اوايادې د سره دجومات بې ادبی خونه کيږي؟

**جواب:** د غسل او اودس له پاره جومات ملوث کول جائزنه دي، که صحن پوخ وي او د هغهٔ ځای نه اوبه بهر ته وځي ؛ نو ګنجائش شته، چې په کونج کې کېني او غسل وکړي او بيا ځای صفا کړي.[۲]

## آيا په اعتکاف کې غسل کولی شو؟

**سوال:** په اعتکاف کې د غسل په باره کې څه احکامات دي؟ مهرباني وکړئ ټول معلومات په ثبوت سره واضح کړئ د کتابونو حوالې هم ضرور ورکړئ!

---

۱ ](واما محاسنه فظاهرة) فان فيه تسليم المعتكف كلية الي عبادة الله تعالي في طلب الزلفي وتبعيد النفس من شغل الدنيا التي هي مانعة عما يستوجب العبد من القربي واستغراق المعتكف او قاته في الصلاة اما حقيقة او حكماً لان المقصد الاصلي من شرعية انتظار الصلاة بالجماعات وتشبيه المعتكف نفسه بمن لا يعصون الله ما امرهم ويفعلون مايؤمرون وبالذين يسبحون الليل والنهار وهم لايسأمون. (فتاوئ عالمگيري/۱/۲۱۲/الباب السابع في الاعتكاف)۔

۲ ] فلو امكنه من غير ان يتلوث المسجد فلا بأس به بدائع اي بان كان فيه بركة ماء او موضع معد للطهارة او اغتسل في اناء بحيث لايصيب المسجد الماء المستعمل، قال في البدائع: فان كان بحيث يتلوث بالماء المستعمل يمنع منه، لان تنظيف المسجد واجب. (شامي/۲/۴۴۵/باب الاعتكاف/طبع ايچ ايم سعيد)۔

۲: بیت الخلاء او د اودس ځای د مسجد په حدود کې راځي او که نه؟ او موږ ته څومره حده پورې احتیاط کول پکار دي؟ په تفصیل سره بیان کړئ!

**جواب:** په اعتکاف کې واجب غسل کولی شئ، د یخ والی له پاره یا د سنت غسل له پاره د مسجد نه بهر وتل جائز نه دي.

۲: بیت الخلاء او د اودس ځایونه د مسجد په حدود کې داخل نه دي، دې ځایونو ته یوازې د حاجت له پاره تلل جائز دي.[1]

## د اعتکاف په دوران کې د علماء کرامو غیبت کول

**سوال:** په دې رمضان کې د روژې او اعتکاف په حالت کې رانه یو ګناه شوې ده، اصل کې په خبرو خبرو کې د خوراک څښناک ذکر راغی؛ نو زما د خولې نه ووتل چې دا لوی لوی ملایان څه ډېر زیات خوراک کوي، او د هغوی لویې لویې خیټې وي دا خو وه عام خبره، په دې کې د چا نوم شامل نه و چې خاص طور سره ستاسو نوم په ژبه باندې راغی چې تاسو هم په هغوی کې شامل یئ. د هغه وخت نه تراوسه پورې زړه بې قرار دی چې تاسو نه معافي وغواړم، تاسو نه د معافئي درخواست دی، او د کومو نورو علماء کرامو له پاره چې دا الفاظ استعمال شو د هغوی په باره کې د الله پاک نه د معافي طلب ګار یم.

**جواب:** دا عاجز بنده خو دومره ګناهګار دی چې تاسو کومې خبرې کړې دي د هغو نه شرم راځي، او کیدای شي چې تاسو ته معلومه نه وي چې زه خو د خپل عذر د وجې نه یو ډوډۍ هم نه شم خوړلی، په هر حال الله پاک دې ما هم معاف کړي او تاسو دې هم معاف کړي، تاسو اطمینان ساتئ چې زما د وجې نه به انشاء الله ستاسو مواخذه نه کیږي، خو دا خبره بیانول ضروري دي چې تاسو د علماء کرامو غیبت کولو سره خپل اعتکاف خراب کړ، په مسجد کې اعتکاف او د علماء کرامو غیبت !! ﴿انا لله وانا الیه راجعون﴾ الله پاک دې ما او تاسو او ټول لمونځ کونکي او معتکفین معاف کړي. والسلام

## آیا د جومات په خاص کونج کې اعتکاف کونکی بل ځای کیناستلی یا څملاستلی شي؟

**سوال:** زه د خپل کلي په مسجد کې اعتکاف کول غواړم، که زه د اعتکاف له پاره په مسجد کې یو ځای مخصوص کړم؛ نو آیا یوازې په هغه کونج کې کیناستل ضروري دي؟ او که د ضرورت په وخت په بل ځای کې هم کیناستلی یا څملاستلی شم؟ بله دا چې که بغیر د حاجت

[1] ولا يمكنه الاغتسال في المسجد......فلو امكنه من غير ان يتلوث المسجد فلا باس به. (حاشية ردالمحتار/۲/٤٤٥). وان خرج من غير عذر ساعة فسد اعتكافه في قول ابي حنيفة. (عالمگیری/۱/۲۱۲).

ضروریه نه د غسل په نیت د مسجد نه بهر لاړ شم؛ نو آیا اعتکاف به فاسد شي؟

**جواب:** د مسجد خاص ځای کوم چې د اعتکاف له پاره تجویز شوی وي، په هغې کې مقید کیدل څه ضروري نه دي، بلکې په پوره مسجد کې چې چرته غواړئ د ورځې یا د شپې کیناستلی او څملاستلی شئ. د یخوالي له پاره د غسل کولو په نیت د مسجد نه بهر وتل جائز نه دي،ی خو په دې کې ګنجائش شته چې کله د استنجاء وغیره د تقاضې له پاره بهر وتل وي؛ نو د اودس په ځای کې دوه څلور لوټې اوبه په بدن واړوه. معتکف ته د ضروري تقاضو نه پرته د مسجد نه بهر ایساریدل نه دي پکار.[1]

## په مسنون اعتکاف کې په مسجد کې د ننه حجامت

**سوال:** په مسنون اعتکاف کې په مسجد کې دننه حجامت جوړول سهي دي او که نه؟ بله دا چې د نامه نه لاندې ویښته اخیستل (استنجاء خانې ته تلو سره) جائز دي او که نه؟

**جواب:** د غیر ضروري ویښتو صفایي د اعتکاف نه مخکې کول پکار دي، په هر حال خط جوړول جائز دي، کېږه دې خوره کړې شي چې مسجد ګنده نه شي.[2]

## د معتکف له پاره د غسل حکم

**سوال:** زمونږ د محلې په مسجد کې دوه سړي اعتکاف ته ناست وو، د زیاتې ګرمي د وجې نه به هغوی د مسجد په غسل خانه کې غسل کولو، یو صاحب دا وویل چې داسې غسل کولو سره اعتکاف ماتیږي؟

**جواب:** د یخیدو له پاره د غسل په نیت تلل د معتکف له پاره جائز نه دي، خو دا کیدای شي چې کله یې د متیازو تقاضه وي؛ نو د متیازو نه چې فارغ شي، دوه څلور لوټې دې په بدن باندې واړوي، په څومره وخت کې چې اودس کیږي د هغې نه دې هم په کم وخت کې په بدن باندې اوبه اچولو سره راشي، الغرض د غسل په نیت د مسجد نه بهر تلل جائز نه دي، د طبعي ضرورت له پاره که ځي؛ نو په بدن باندې اوبه اچولی شي، او جامې دې هم په مسجد کې

---

[1] ](وحرم علیه) اي علي المعتکف اعتکافاً واجباً......الخروج الا لحاجة الانسان کبول وغائط وغسل لو احتلم ولا یمکنه الاغتسال في المسجد کذا في النهر. (قوله الا لحاجة الانسان) ولا یمکث بعد فراغه من الطهور......ولیس کالمکث بعد ما لو خرج لها ثم ذهب لعیادة المریض او صلاة جنازة من غیر ان یکون خرج لذلک قصداً فانه جائز کما في البحر عن البدائع. (الدرالمختار مع الردالمحتار/۲/۴۴۵، وایضاً في الحاشیة الطحطاوي علي الدر/باب الاعتکاف/۱/۴۷۴/طبع رشیدیه/کوئته)

[2] ] سئل ابوحنیفة رحمه الله تعالي عن المعتکف اذا احتاج الي القصد او الحجامة هل یخرج فقال: لا. (عالمگیري/۵/۳۲۰/ الباب الخامس في آداب المسجد والقبلة والمصحف وما کتب فیه شيء من القرآن.....الخ).

ويستلو سره ځي چې په غسل خانه کې د جامو ويستلو په مقدار هم ايسار نه شي.[1]

## له عذر پرته اعتکاف ماتونکی د عظيم دولت نه محروم شو مګر قضا نشته

**سوال:** که يوکس درمضان په آخري عشره کې اعتکاف له پاره کښني، مګربغيردځه عذرنه يا د عذر د وجې نه پاځي نوقضاپرې لازمه ده اوکه نه؟

**جواب:** درمضان شريف داخري عشرې اعتکاف شروع کولونه پس که په مينځ کې پاځي نوپه دې باره کې دې قولونه دي.

**اول:**.....دا چې د رمضان د آخرى عشرې اعتکاف کول سنت دي،که يوکس د امات کړي نو ددې قضا نشته. خو دا کمه ده چې ديو عظيم دولت نه محرومه پاتې شو؟ په عام کتابونوکې د اخيتارکړل شوی دی.

**دويم:**.....داچې نفل عبادت شروع کولوسره لازميږي اوچونکې دهرې ورځې اعتکاف کول يو مستقل عبادت دی ددې وجې نه دکومې ورځې اعتکاف يې چې مات کړ،يوازې دهغې ورځې قضالازمه ده، ډيرو برزګانودااختيارفرمائيلي ده.

**دريم:**.....داچې هغه د آخري عشرې داعتکاف التزام کړی و،چونکې هغه يې پوره نه کړ،ددې وجې نه دټولوورځوقضالازمه ده،دادشيخ ابن الهمام رايه ده.[2]

---

[1] (وحرم عليه) اي علي المعتكف اعتكافاً واجباً......الخروج الا لحاجة الانسان كبول وغائط وغسل لو احتلم ولايمكنه الاغتسال في المسجد كذا في النهر. (قوله الا لحاجة الانسان) ولايمكث بعد فراغه من الطهور.......وليس كالمكث بعد ما لوخرج لها ثم ذهب لعيادة المريض او صلاة جنازة من غير ان يكون خرج لذٰلک قصداً فانه جائز كما في البحر عن البدائع. (الدرالمختار مع الردالمختار/٢/٤٤٥/باب الاعتكاف، وايضا في الحاشية الطحطاوي علي الدرالمختار/باب الاعتكاف/١/٤٧٤، ٤٧٥/طبع رشيديه كونته)_

[2] ثم رأيت المحقق ابن الهمام قال: ومقتضي النظر لو شرع في المسنون: أعني العشر الاواخر بنيته ثم أفسده أن يجب قضاؤه تخريجا علي قول أبي يوسف في الشروع في نفل الصلاة ناويا أربعا لا علي قولهما اه: أي يلزمه قضاء العشر كله لو أفسد بعضه كما يلزمه قضاء أربع لو شرع في نفل ثم أفسد الشفع الاول عند أبي يوسف، لكن صحح في الخلاصة أنه لا يقضي إلا ركعتين كقولهما، نعم اختار في شرح المنية قضاء الاربع اتفاقا في الراتبة كالاربع قبل الظهر والجمعة، وهو اختيار الفضلي، وصححه في النصاب، وتقدم تمامه في النوافل، وظاهر الرواية خلافه، وعلي كل فيظهر من بحث ابن الهمام لزوم الاعتكاف المسنون بالشروع، وإن لزم قضاء جميعه أو باقيه مخرج علي قول أبي يوسف، أما علي قول غيره فيقضي اليوم الذي أفسده لاستقلال كل يوم بنفسه، وإنما قلنا: أي باقية بناء علي أن الشروع ملزم كالنذر وهو لو نذر العشر يلزمه كله متتابعا، ولو أفسد بعضه قضي باقيه علي ما مر في نذر صوم شهر معين. والحاصل أن الوجه يقتضي لزوم كل يوم شرع فيما عندهما بناء علي لزوم صومه، بخلاف الباقي لان كل يوم بمنزلة شفع من النافلة الرباعية وإن كان المسنون هو اعتكاف العشر بتمامه تأمل. (فتاويٰ شامي/باب الاغتكاف/٢/٤٤٤/طبع ايچ ايم سعيد)_

## د نذر اعتکاف که پوره نه شي نو څه کول پکار دي؟

**سوال:** ما يوه منښته(نذر) کړې وه چې که زما مراد پوره شو نو زه به اعتکاف ته کېنم، مګر ما داسې ونه شو کړای ،ما ته داووايئ چې زه ددې په بدله کې څه وکړم چې زما نذر پوره شي؟ باقي د دوو روژو نه نيولو په باره کې وفرمايئ چې په څومره فقيرانو باندې به ډوډۍ خوړل وي؟

**جواب:** تاچې دڅومره ورځو داعتکاف نذر کړی و هماغومره ورځې په اعتکاف کېناستل په تاباندې واجب دي[۱].اواعتکاف د روژې نه بغير نه کيږي،ددې وجې سره ورسره روژې نيول هم واجب دي[۲].ترڅو پورې چې ته دا واجب پوره نه کړې ستا په ذمه به وي اوهمدغه شان که بغير د کولو نه يې مړشوې نو د قدرت باوجود د روژو نه اداکولو سزا به هم تيروې.اوستا په ذمه د روژو فديه اداکول به هم لازم وي.[۳]

۲:.....دڅومره ورځو د روژو نذر چې دې کړې وه د هغومره ورځو روژې نيول ضروري دي،ددې فديه اداکيدای نه شي،خو که ته دومره بوډا شوې يې چې روژه نه شې نيولی يا داسې دائمي مريض يې چې د شفا اميد دې ختم شوی وي؛ نو ته د هرې روژې په بدله کې په چا محتاج باندې دوه وخته ډوډۍ وخوره،يا د صدقه فطر برابر مقدار کې غله يا نغدې روپۍ ورکړه.[۴]

---

۱ ] ومن اوجب علي نفسه اعتكاف ايام بان قال بلسانه عشرة ايام مثلاً لزمه اعتكافها بلياليها وكانت متتابعة..... الخ. (فتح القدير/۲/۱۱٤/باب الاعتكاف/طبع بيروت)_

۲ ]والصوم من شرطه عندنا.......ولنا قوله عليه الصلاة والسلام لا اعتكاف الا بالصوم. (فتح القدير /۲/۱۰۷/باب الاعتكاف)

۳ ] لان نحو المرض والسفر في عرضة الزوال فيجب القضاء وعند العجز بالموت تجب الوصية بالفدية. (شامي/۲/٤۲۷/باب مايفسد الصوم ومالا يفسده/طبع سعيد، فتح القدير/۲/۱۱٥/طبع بيروت)_

٤ ] المريض اذا تحقق اليأس من الصحة فعليه الفدية لكل يوم من المرض. (شامي/۲/٤۲۷)_

# ❖ د روژې متفرق مسائل ❖

## په رمضان کې د شپې د جماع د اجازې آیت نازلیدل

**سوال:** زمونږ په دفترکې یوصاحب وویل چې کله روژې فرض شوې وې نوورسره داشرط هم و چې په پوره رمضان شریف کې به ښځه خاوندصحبت نه کوي.مګر وروسته څه خلکودذې حکم خلاف ورزي وکړه،چې دهغې په وجه په حضور ﷺ باندې وحی نازله شوه اودماسخوتن نه پس پیشمنی پورې اجازت ورکړل شو،ددې صاحب ویناده چې داغلطي دحضرت عمرفاروق رضي الله عنه شوې وه،اوپه دې باندې وحی نازله شوه،ایاواقعي داغلطي دحضرت عمر رضي الله عنه شوې وه.

**جواب:** پوره رمضان کې دښځې خاوندپه اختلاط باندې دپابندي حکم خوکله هم نه و شوی، البته داحکم و چې دویده کیدونه مخکې خوراک څښاک کول اوصحبت کول جائزدي اویده کیدو سره روژه به شروع شي.اودبلې ورځې دروژه ماتي پورې به ددې پابندي لازم وي، ستاسو اشاره غالباً دې طرف ته ده.[1]

تاسوچې دحضرت عمر رضي الله عنه دکومې واقعې حواله ورکړې ده هغه صحیح ده.اوپه صحیح بخاری شریف کې ده[2].چې ددې قسمه واقعه دګڼو کسانوسره پیښه شوې وه،لیکن ددې واقعې سره د حضرت سیدناعمرفاروق رضي الله عنه یادنوروصحابه کرامو رضي الله عنهم باندې څه اعتراض کیدای نه شي، بلکې ددې حضراتویوعظیم فضیلت اوبزرګی ثابتیږي، څکه چې دې حضراتو ته الله تعالی قوت قدسیه ورکړی و او د الله تعالی په توفیق سره دضبط نفس نه یې کار

---

١ ] هذه رُخصة من الله تعالي للمسلمين، ورَفْع لما كان عليه الأمر في ابتداء الإسلام، فإنه كان إذا أفطر أحدهم إنما يحل له الأكل والشرب والجماع إلي صلاة العشاء أو ينام قبل ذلك، فمتي نام أو صلي العشاء حرم عليه الطعام والشراب والجماع إلي الليلة القابلة. فوجدوا من ذلك مَشقة كبيرة......فنزلت هٰذه الآية. (تفسير ابن كثير /۱/۴۴۹/ سورة البقره: ۱۸۷)، وفيه ايضاً عن عبد الرحمن بن أبي ليلي، قال: قام عمر بن الخطاب، رضي الله عنه، فقال: يا رسول الله! إني أردت أهلي البارحة علي ما يريد الرجلُ أهلهُ فقالت: إنها قد نامت، فظننتها تعْتلّ، فواقعتها، فنزل في عمر: ( أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَي نِسَائِكُمْ......الخ). (تفسير ابن كثير/۱/۵۴۱/طبع رشيديه كوئته/ تفسير قرطبي/۱/۳۱۴)۔

٢ ]عن البراء رضي الله عنه قال: كان أصحاب محمد صلي الله عليه وسلم إذا كان الرجل صائما فحضر الإفطار فنام قبل أن يفطر لم يأكل ليلته ولا يومه حتي يمسي وإن قيس بن صرمة الأنصاري كان صائما فلما حضر الإفطار أتي امرأته فقال لها أعندک طعام؟ قالت: لا ولكن أنطلق فأطلب لک وكان يومه يعمل فغلبته عيناه فجاءته امرأته فلما رأته قالت:خيبة لک،فلما انتصف النهار غشي عليه فذكر ذلک للنبي صلي الله عليه وسلم فنزلت هذه الآية: أحل لكم ليلة الصيام الرفث إلي نسائكم ، ففرحوا بها فرحا شديدا ونزلت: وكلوا واشربوا حتي يتبين لكم الخيط الأبيض من الخيط الأسود من الفجر. (بخاري/۱/۲۵۶/باب قول الله: احل لكم ليلة الصيام الرفث....الخ. الآية/ طبع نور محمد كراچي)۔

اخیستی شو، خو تاسو لږ شان سوچ وکړئ چې د حضور ﷺ په زمانه کې د داسې څه واقعې نه راپیښیدل او هم دغه قانون پاتې کیدل چې د ماسخوتن د مانځه نه پس خوراک څښاک او ښځې خواته تلل ممنوع دي، نو وروسته امت ته به څومره تنګي لاحقه شوې وه؟ دا دالله تعالی عنایت اورحمت و چې د حضور ﷺ په مبارک دورکې داسې واقعات راپیښ شول، چې د هغې په وجه د ټول امت له پاره اسانی پیدا شوې، د دې وجې نه دا حضرات لائق ملامت نه دي، بلکې د پوره امت محسنان دي.

دکوم آیت چې تاسو حواله ورکړې ده هغه د سوره بقرې آیت نمبر(۱۸۷) دی، په دې کې الله تعالی فرمایي:[1]

،، تاسو خلکو له پاره د روژې په شپه کې د خپلو ښځو سره ملاویدل حلال کړل شوي دي، هغوی ستاسو جامې دي او تاسو د هغوی، الله ته علم دی چې تاسو د خپل ذات سره خیانت کولو، نو الله تعالی په تاسو باندې عنایت وکړ او تاسو ته یې ستاسو غلطی معاف کړه.،،

دقرآن پاک اصل الفاظ تاسو په قرآن پاک کې ولولئ، ستاسو توجه صرف دې طرف ته کول غواړم چې الله تعالی د صحابه کرامو دا غلطي،، د خپل ذات سره خیانت،، سره تعبیر کړه او د هغوی توبه قبول ول، او د هغوی معاف کول، او په هغوی باندې نظر عنایت کولو اعلان کول یې وفرمایل چې د دې نه پس دا غلطي لائق ملامت نه ده.، بلکې د دوی د بزرګي او مقبولیت قطعي پروانه ده، امید دی چې دا مختصر شان اشاره به کافي وي، ګنی په دې مسئلې باندې دیو مستقل مضمون لیکلو ګنجائش شته، چې د هغې له پاره افسوس کوم چې وخت راته نه ملاویږي.

## روژه دار دې فضولیات پریږدي

**سوال:** هسې خو په رمضان المبارک کې د مسلمانانو لوی اکثریت روژې نیسي، خو څه خلک د روژې نیولو نه پس غلط حرکتونه کوي. مثلاً: چا روژه ونیوله او غرمه د یولس و بجو نه وا خله تر دوو بجو پورې یا د رې بجو نه وا خله تر پنځو بجو پورې سینماهال ته فلم کتو له پاره ولاړ، چا روژه ونیوله او ټوله ورځ ویده و، او چا روژه نیولو نه پس ټوله ورځ تاش، کیرم، یا څه نوره لوبه کوه، یا یې ټوله ورځ جاسوسي یا رومانوي ناول لوست او د دې ټولو خبرو د وجې نه هر کس بغیر د څه شرم الهي نه دا ووایي چې وروره څه اوکړ؟ آخر ټایم هم پاس کول دي، درې ګنټې فلم کتلو سره، ټوله ورځ تاش کولو یا ویده کیدو وغیره سره وخت تیریږي او د روژې پته نه لګیږي.

محترم: د روژې نیولو نه پس د روژې د وجې نه ګناه کولو نه دا بهتر به نه وي چې بالکل روژه ونه نیول شي؟

---

۱ ] احل لکم لیلة الصیام الرفث الی نسائکم هن لباس لکم وانتم لباس لهن، علم الله انکم کنتم تختانون انفسکم فتاب علیکم وعفا عنکم......الخ. (البقرة: ۱۸۷)۔

**جواب:** ستاسو دا نظریه خو صحیح نه ده چې روژه نیولو سره ګناه کولو نه دا بهتر دي چې روژه دې ونه نیول شي، ی... دا خبره د شریعت د حکمت خلاف ده. شریعت د روژه نیونکو نه دا مطالبه کوي چې هغوی دې د خپلې روژې حفاظت کوي. او کله چې هغوی د الله تعالی د رضا له پاره خپل خوراک څښاک پرېښې دی؛ نو دبې لذت ګناهونو نه دې هم ځان وساتي او د خپلې روژې ثواب دې نه ضائع کوي، مګر شریعت دا نه وايي چې کوم خلک د ګناهونو ارتکاب کوي، هغوی دې هډو روژه نه نیسي، تاسو چې د کومو امورو ذکر کړې دی دا د روژې د روح نه خلاف دي، روژه دار ته قطعي د دې پرهیز کول پکار دي، البته واقعه داده چې د رمضان المبارک معمولات او د روژې دا دابو د پابندي سره دا میاشت مبارکه تیره کړل شي، نو دبنده په ژوندکې انقلاب راتلی شي، دکوم طرف ته چې قرآن پاک د ,,**لعلکم تتقون**،، په وړوشان الفاظو سره اشاره کړې ده.
حضور ﷺ روژه دار ته دپرهیز ډیر تاکید فرمایلی دی، په یو حدیث کې دي چې ډیر په شپه کې دریدونکي داسې دي چاته چې د شوګیرې نه پرته نور هیڅ نه ملاویږي، او ډیر روژه دار داسې دي چاته چې یوازې دلوږې تندې نه پرته نور څه نه ملاویږي،،[۱]
په یو بل حدیث کې دی چې: کوم کس چې د دروغ ویلو نه او غلط کار نه نه منع کیږي؛ نو الله تعالی ته د هغه د خوراک څښاک پرېښودو هیڅ ضرورت نشته[۲]،، دامت بزرګانو د روژې ډیر زیات اداب بیان کړي دي د کومو خلاصه چې د حضرت شیخ مولانا محمد زکریا کاندهلوی رحمه الله په رساله ,,فضائل رمضان،، کې کتلی شئ، په رمضان المبارک که دا رساله او د دې حصه ,,اکابر کا رمضان،، ضرور مطالعه کول پکار دي.
**یادونه:**.....تاسو دلغویاتو په ضمن کې د ویده کیدو ذکر کړی دی، خو د روژې په حالت کې ویده کیدل مکروه نه دي، د دې وجې نه ستاسو د سوال دا الفاظ لائق د اصلاح دي.

## په روژه کې تلویزون کتل

**سوال:** په رمضان المبارک د روژه ماتې سره نژدې چې کوم خلک په تلویزون باندې مختلف پروګرامونه ګوري مثلاً: انګریزي فلمونه، د موسیقۍ پروګرامونه، وغیره نو آیا د دې سره په روژه باندې څه فرق نه پریوځي؟ هر کله چې زموږ په ځای اناونسران اکثر زنانه وي او په هر پروګرام زنانه هم ضروروي، په دې ضمن کې دا خبره چې مولانا صاحب د روژه ماتي په وخت کې په تلویزون باندې تقریر کوي او د مسلمانانو خویندې لوبه چې کله هغه ته ګوري؛ نو آیا د هغوی روژه به برقرار پاتې شي؟ او به څه طریقې سره قابل ګرفت نه وي؟

---

۱ ] عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: كم من صائم ليس له من صيامه الا الظمأ، وكم من قائم ليس له من قيامه الا السهر. (مشكوٰة/١٧٧/باب تنزيه الصوم/الفصل الثاني)۔
۲ ]عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من لم يدع قول الزور والعمل به فليس لله حاجة في ان يدع طعامه وشرابه. رواه البخاري. (مشكوٰة/١٧٦/باب تنزيه الصوم/الفصل الاول)۔

**جواب:** روژه نیولوسره دګناه کارکول،دروژې ثواب او فائدوې باطلوي[1].دتلویزون اصلاح خودعام خلکوپه وس کې نه ده،دکومو مسلمانانوپه زړونوکې چې دالله تعالی ویره ده هغوی دې په خپله ددې ګناه نه ځان بچ کړي.

## ایا د ماشوما نو روژه نیول ضروري دي؟

**سوال:** اکثر مور پلار ددولسوکالونه کم عمروالا بچی دروژې نیولونه منع کوي، ځکه که هغوی روژه ونیسي نوپه خاص طورسره لوږه تنده برداشت کولی نه شي. هر کله چې ماشومان شوقیه طور روژې نیولو باندې اصرارکوي، نوردا چې روژه په کوم عمرکې نیول پکاردي؟

**جواب:** لمونځ اوروژه دواړه په بالغانوباندې فرض دي[2].که دبلوغ علامات ظاهرشوي نه وي؛ نو پنځلس کاله پوره کیدوباندې بنده بالغ ګڼل کیږي[3].نابالغه ماشوم که دروژې برداشت کولی شي نوپه هغه باندې روژه نیول پکاردي.اوکه برداشت یې نه شي کولی منع کول درست دي.[4]

## د مازیګر او ماښام ترمینځه روژه نیول څنګه دي؟

**سوال:** زمایوه ملګرې دچاپه وینا باندې دمازیګراوماښام په مینځ کې په مختصرشان وخت کې روژه نیسي،چې دهغې وجه هغې دا وښودله چې مرګ نه پس کله فرښتې په مړي باندې څه داسې شی وخوروی چې دمړي له پاره باعث عذاب وي،کوم کس چې په دې دوران کې روژه نیسي هغه به دخوړولونه انکار وکړي ایا دا مختصر روژه دشریعت مطابق ده؟

**جواب:** شرعي روژه خودسهارنه واخله ترماښام پورې وي[5]،دمازیګر او ماښام ترمینځه روژه دشریعت نه ثابته نه ده.کومه وجه یې چې ښودل شوې ده داچاځانه نه وییلي دي داسې عقیده ساتل ګناه ده.[6]

---

۱ ]قال الطيبي: كل صوم لا يكون خالصاً لله تعالي ولا مجتنبا عن قول الزور والكذب والبهتان والغيبة ونحوهما من المناهي يحصل له الجوع والعطش له الثواب......الخ. (شرح الطيبي علي مشكوٰة المصابيح/٤/١٦٤)_

٢ ]اما شروطه فثلاثة انواع: شرط وجوبه الاسلام والعقل والبلوغ. (فتاويٰ عالمگيري/كتاب الصوم/١/١٩٥)

٣ ]فان لم يوجد فيهما شيء فحتي يتم لكل منهما خمس عشرة سنة به يفتي.....الخ.(درمختار مع الشامي/ ٦/١٥٣/ كتاب الحجر/فصل بلوغ الغلام بالاحتلام/طبع سعيد)_

٤ ] ويؤمر الصبي بالصوم اذا اطاقه (درمختار) وفي الشامية: قوله اذا اطاقه....قلت يختلف ذلک باختلاف الجسم واختلاف الوقت صيفا وشتاء والظاهرا نه يؤمر بقدر الاطاقة اذالم يطق جميع الشهر. (ردالمحتار علي الدر المختار/٢/٤٠٩)_

٥ ] هو.....امساک عن المفطرات........في وقت مخصوص وهو اليوم (درمختار) وفي الشامية: قوله وهو اليوم اي اليوم الشرعي من طلوع الفجر الي الغروب......الخ. (ردالمحتار علي الدرالمختار/٢/٣٧١/كتاب الصوم)_

٦ ] عن عائشة رضي الله عنها قالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

## د مازيګر نه تر ماښام پورې د روژې نيولو شرعي حيثيت

**سوال:** ځيني ښځې او سړي د مازيګر نه ماښام پورې روژه نيسي، او په دې دوران کې د خوراک څښاک دشيانوڅخه نه ځان ساتي، ددې فعل د شرعي حيثيت نه مو خبر کړئ چې د دې حقيقت څه دی؟

**جواب:** د مازيګر نه ماښام پورې د روژې هيڅ شرعي حيثيت نشته، شرعا دا روژه نه ده.[۱]

## د مازيګر او ماښام ترمينځه روژه او د لسم محرم روژه نيول څنګه دي؟

**سوال:** يوځل يوې صاحبې وفرمايل چې ماروژه نيولې ده،موږ ترې ته دتفصيل تپوس وکړ، نوهغې وويل چې روژه دمازيګرداذان نه واخله ترماښام اذان پورې ده،کله چې موږ دداسې روژې دوجودنه انکاروکړ،نوهغې ډيرزيات ورتلو اووېې ويل چې تاسوتعليم يافته ځنګليانې يئ،تاته داهم معلومه نه وه.

**جواب:** په شريعت محمديه کې خوهيڅ روژه دمازيګراوماښام تر مينځه نشته[۲]،ددې صاحبې چرته خپل شريعت دی زه خوددې نه بې خبره يم.

**سوال:** بياهغې مزيد وفرمايل چې دلسم محرم الحرام روژه نيول جائز نه دي،ځکه چې د شمر مور منبنته کړې وه چې شمرامام حسين رضي الله عنه شهيد کړي نوزهٔ به دلسم محرم روژه نيسم، اوهغې دلسم محرم روژه نيولې وه.

**جواب:** عاشورا دمحرم دلسم تاريخ نوم دی،د تيرو شويو انبياء دزمانې نه دا ورځ متبرکه راروانه ده. د اسلام په شروع کې ددې ورځې روژه فرض وه،بياوروسته ددې په ځای درمضان روژې فرض شوې،اود عاشورا روژه مستحب شوه[۳]،په هرحال ددې ورځې دروژې اودنورو

---

...بقيه د تير مخ]..من احدث في امرنا هٰذا ماليس منه فهو رد. متفق عليه. (مشكوٰة/باب العتصام بالكتاب والسنة/۱/۲۷). وعن جابر رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: اما بعد.......وشرالأمور محدثاتها وكل بدعة ضلالة. (مشكوٰة/كتاب الايمان/باب الاعتصام/بالكتاب والسنة/۱/۲۷/ طبع قديمي)_

۱ ]عن عائشة رضي الله عنها قالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من احدث في امرنا هٰذا ماليس منه فهو رد. (مشكوٰة/۱/۲۷/باب الاعتصام والسنة/الفصل الاول).

۲ ]عن عائشة رضي الله عنها قالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من احدث في امرنا هٰذا ماليس منه فهو رد. (مشكوٰة/۱/۲۷/باب الاعتصام والسنة/الفصل الاول)_

۳ ]عن عائشة رضي الله عنها قالت: كان يوم عاشوراء تصومه قريش في الجاهلية وكان رسول الله صلي الله عليه وسلم يصومه فلما قدم المدينة صامه وأمر بصيامه،فلما فرض رمضان ترک يوم عاشوراء فمن شاء صامه ومن شاء تركه(صحيح بخاري/باب صيام يوم عاشوراء/۱/۲۶۸/طبع قديمي/مختصرسنن ابي داؤد/۳/۳۲۲/طبع المكتبة الاثرية)

اعمالو د حضرت امام حسین رضی الله عنه سره هیڅ تعلق نشته، او ددې خاتون چې د شمرد مور کومه واقعه بیان کړې ده هغه د ځان نه ده.

## پنځه ورځې روژې نیول حرام دي

**سوال:** زمونږ په حلقه کې نن سبا ډیرې پټې پټې خبرې کیږي چې پنځه روژې حرامې دي.(په کال کې) (۱) د وړوکي اخترلومړۍ ورځ،(۲) دوړوکي اختردویمه ورځ،(۳) دلوی اختردورځې،(۴) دلوې اخترپه دریمه ورځ، حالانکه ترڅوپورې چې ماته پته ده دوړوکي اختردویمې ورځ روژه جائزده.اصل خبره واضحه کړئ!

**جواب:** دوړوکي اختردویمي ورځې روژه جائزده اولوې اختر ددریو واړو ورځو(ایام تشریق) روژه جائزنه ده،ګویا د پنځو ورځو روژه جائزنه ده. وړوکي اختر،لوی اختر،اوددې نه وروسته دایام تشریق.[۱]

## ایا امیرغریب اورشته داربا ندې د روژه ماتي کولوثواب برابردی؟

**سوال:** امیر،غریب،رشته دارپه دې دریوواړوکې دتولونه زیات فضیلت(ثواب)دچا دروژه ماتی دی؟

**جواب:** دروژه ماتي کولوثواب خویشان دی[۲].دغریب دخدمت اورشته دارسره داحسان کولوثواب جدادی.

## د حضور صلی الله علیه وسلم د روژه ماتي معمول

**سوال:** په رمضان المبارک کې به حضور صلی الله علیه وسلم په څه شي باندې روژه ماتی کولو؟

**جواب:** عمومًا کجورې سره.[۳]

---

۱ ] عن ابي سعيد الخدري رضى الله عنه قال: نهي رسول الله صلى الله عليه وسلم عن صوم يوم الفطر والنحر. متفق عليه. وعن نبشة الهذلي رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ايام التشريق ايام اكل وشرب وذكرالله. رواه مسلم. (مشكوٰة/باب صيام التطوع /۱۷۹/۱). والمكروه تحريماً كالعيدين (درمختار) قوله كالعيدين اي وايام التشريق نهر. (درمختار مع الشامي /۲/۳۷۵/كتاب الصوم)۔

۲ ]عن زيد بن خالد رضى الله عنه قال: قال رسول ا لله صلى الله عليه وسلم: من فطر صائماً او جهز غازياً فله مثل اجره. (مشكوٰة/۱/۱۷۵/باب الفصل الثاني)۔

۳ ] عن انس رضي الله عنه قال: كان رسول الله صلىٰ الله عليه وسلم يفطر قبل ان يصلي علي رطبات فان لم رطبات فتميرات فان لم تكن تميرات حسا حسوات من ماءٍ. رواه الترمذي وابوداؤد. (مشكوٰة/۱/۱۷۵)۔

## د تماکو د کاروکونکي د روژې حکم

**سوال:** زۀ دبیړیه (یوقسم سګریټ)کاریګریم،دبیړیه په کارکې تماکو استعمالیږي. څو کسانو ماته وویل چې ته په روژه کې داکار کوې،چونکې تماکونشي والا شی دی، لهذستاسوروژه ورسره مکروه کیږي،آیا داصحیح ده؟

**جواب:** دتماکوکارکولوسره روژه نه مکره کیږي ترڅوپورې چې دتماکو دوړه حلق ته دننه لاړه نه شي.[1]

## د روژه دارپه جومات کې ویده کیدل

**سوال:** ایادروژه داردسهاردلمانځه نه وروسته په جومات کې ویده کیدل جائزدي؟

**جواب:** .دغیرمتعکف په جومات کې ویده کیدل مکروه دي،کوم حضرات چې جوماتونوته ځي هغوی دې داعتکاف نیت کوي، ددې نه پس دویده کیدوګنجائش شته.[2]

## د روژې په حالت کې باربار غُسل کول

**سوال:** ایادروژې په حالت کې په کورکې ځوځله لامبل اوددې نه پرته په نهرکې لامبل ،خودنوروبدونه ځان ساتي،نو آیادروژې ثواب به پوره پوره ملاوشي؟

**جواب:** په روژه کې لامبلوسره څه نقصان نشته.،خو داسې انداز اختیارول چې دهغې سره دویرې اوپریشانی اظهارکیږي دحضرت امام رحمه الله په نزدباندې مکروه دي.[3]

## ناپاک کس که پیشمنی وکړي نو آیا روژه به وشي؟

**سوال:** که په چاباندې دشپې په دوران کې غسل واجب شي،نوهغه دجنابت په حالت کې پیشمنی کولی شي اوکه نه؟

**جواب:** دجنابت په حالت کې یې که پیشمنې وکړ؛نوروژه به یې اوشی،اوپه دې کې څه تردد نشته، خو بنده چې څومره زرکیدای شي پاکي دې حاصله کړي.[4]

---

۱ ] ولو دخل حلقه غبار الطاحونة او طعم الادوية او غبار الهرس واشباههم اوالدخان او ماسطع من غبار التراب بالريح او بجوافرالاواب واشباه ذلک لم يفطره(عالمگيري/۱/۲۰۳/الباب الرابع فيما يفسدوما لايفسد)

۲ ] يكره النوم والأكل في المسجد لغير المعتكف واذا اراد ذلک ينبغي ان ينوي الاعتكاف فيدخل.......الخ. (شامي/۲/۴۴۸/باب الاعتكاف/طبع سعيد)۔

۳ ] وكذا لاتكره......اغتسال للتبرد......الخ. (درمختار) وفي الشمامية (تحت قوله وبه يفتي) وكرهها ابو حنيفة لما فيها من اظهار الظجر في العبادة.....الخ. (شامي/۲/۴۱۹/ كتاب الصوم، وايضاً في فتاوي قاضي خان علي هامش الهندية/۱/۲۰۵/الباب الرابع فيما يفسد وما لا يفسد/كتاب الصوم)۔

۴ ] ومن اصبح جنبا او احتلم في النهار لم يضره كذا في محيط السرخسي. (هندية/۱/۲۰۰/كتاب الصوم)۔

## د ناپاکي په حالت کې روژه نیول

**سوال:** زه ناروغ یم، چې د هغې په وجه په میاشت کې درې څلور ځله ناپاکه پاتې کیږم. اوس تاسو ته ګزارش دی چې ایا زه د ناپاکي په حالت کې روژه نیولی شم؟ هرکله چې ما د یولمانځه په کتاب کې لوستلي و چې که ناپاکي د بیماري له وجې وي؛ نو اودس کول و سره لرې کیږي؟ تاسو راته داوفرمایئ چې ایا او دس کول و سره روژه نیولی شم؟ هسې خو زه روزانه غسل کوم، خو د روژې نیولو په وخت کې د سهار مانځه نه مخکې غسل کولی نه شم، امیدلرم چې تاسو به تسلي بخش جواب راکړئ!

**جواب:** د ناپاکي په حالت کې مخ لاس وینځل سره روژه نیول جائزدي، غسل دې وروسته وکړل شي. هیڅ نقصان په کې نشته.[۱]

**سوال:** که په چا باندې د شپې غسل واجب شو، - خو هغه نه سحر غسل وکړ او نه یې تو له ورځ وکړ، او روژه ماتی یې په دغه حالت کې وکړ، نو د داسې کس د روژې څه حکم دی؟

**جواب:** د روژې فرض خو به اداشي[۲]، خو بنده به د ناپاکي د وجې نه ګناهګاروی، په غسل کې دومره تاخیر کول چې لمونځ ورسره فوت شي سخته ګناه ده.[۳]

## د شوال شپږ روژو سره به د رمضان قضا روژې ادا نه شي

**سوال:** ایا د شوال شپږ روژې دویمې ورځې نه نیول پکاردي؟ (داختر شپږ روژې) روژه په هرحال کې په دویم تاریخ باندې نیول پکاردي؟ باقي روژې په پوره میاشت کې په څه ورځ هم نیول کیږي؟ د دې وضاحت هم وکړئ چې داروژې نیولو سره په رمضان کې قضا شوې روژې اداشي؟

**جواب:** دا مسئله چې په عوامو کې مشهوره ده چې: د شش عید له پاره د دویمې ورځې نه روژه نیول ضروري دي،، بالکل غلطه ده،، داختر د دومې ورځې نه روژه نیول ضروری نه دي، بلکه د اختر په میاشت کې، کله چې هم شپږ روژې ونیول شي، که پرله پسې ونیسئ یا په متفرق طور سره، پوره ثواب به درته ملاوشي، بلکې بعضې اهل علم خو داختر د دویمې ورځې نه روژه

---

۱ ] ولا بأس للجنب ان ینام......وان اراد ان یأکل او یشرب فینبغي ان یتمضمض ویغسل یدیه......الخ.
(هندیة/کتاب الطهارة/۱/۱۶/طبع رشیدیه)_

۲ ] ولا بأس للجنب ان ینام......وان اراد ان یأکل او یشرب فینبغي ان یتمضمض ویغسل یدیه......الخ.
(هندیة/کتاب الطهارة/۱/۱۶/طبع رشیدیه)_

۳ ] وعن علی رضی الله عنه قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: لاتدخل الملائکة بیتاً فیه صورة ولا کلب، ولاجنب. رواه ابو داؤد والنسائي (مشکوٰة/۱/۵۰، کتاب الطهارة/باب مخالطة الجنب/الفصل الثاني).
وفي المرقاة: (ولا جنب) اي الذي اعتاد ترک الغسل تهاوناً حتي یمر علیه وقت صلاة فانه مستخف بالشرع، لا اي جنب کان. (مرقاة المفاتیح شرح مشکوٰة المصابیح/۱/۳۳۵/طبع بمبئ هند)_

نیولوته مکروه ویلي دي، مګر صحیح دادی چې ددویمې ورځې نه هم شروع کولی شئ[1].دشوال شپږ روژې نیولوسره به درمضان قضاشوې روژې ادانه شي،بلکې هغه به ځانته نیول وي،ځکه چې دا دنفلی روژې دی اودرمضان فرض روژې دي،ترڅوپورې چې درمضان دقضاروژونیت ونکړلشي هغه به ادانه شي.[2]

## ښځې خپلې قضاء روژې په شوال کې نیولی شي خو د شوال د روژو ثواب به ورته نه ملاویږي

**سوال:** د رمضان په میاشت کې چې زموږ کومې روژې قضاء شي، هغه د شوال په شپږو روژو کې نیولې شو؟ یا که د شوال به بیلې نیسو او قضاء روژې وروسته؟

**جواب:** د ښځوچې کومې روژې قضاء شی، هغه په شوال کې هم نیولی شي، خو د شوال د شپږو روژو نیولو چې کوم فضیلت دی، هغه به په هغه صورت کې حاصلیږی چې کله د فرض روژو نه پرته د شوال شپږ نفلی روژې ونیسي.[3]

## داسې علاقه چې شپږ میاشتې ورځ او شپږ میاشتې شپه وي روژه څنګه و نیول شي؟

**سوال:** په دنیاکې یوځای داسې دی چې شپږ میاشتې شپه وی او شپږ میاشتې ورځ ، نو هلته به مسلمانان پوره روژې څنګه نیسي؟

**جواب:** هغوی به دخپل قریب ترین ملک چېرته چې دشپې ورځې نظام دمعمول مطابق وي دهغې دطلوع اوغروب په اعتبارسره روژې نیسي.[4]

---

١ ]وعن ابي يوسف كراهته متتابعاً لا متفرقا لكن عامة المتأخرين لم يرو به بأسا هٰكذا في البحر الرائق والاصح انه لا باس به كذا في محيط السرخسي. (عالمگيري/١/٢٠١/كتاب الصوم/كذا في الشامي/٢/٤٣٥)_

٢ ] وفي التنوير والشرط للباقي تثبيت النية وتعيينها (درمختار) وفي الشامية: والشرط للباقي من الصيام......وهو قضاء رمضان والنذر المطلق.......الخ. (شامي/٢/٣٨٠/ كتاب الصوم)_

٣ ] واذا نوي قضاء بعض رمضان ولاتطوع يقع عن رمضان في قول ابي يوسف رحمه الله تعالي وهو رواية عن ابي حنيفة رحمه الله تعالي كذا في الذخيرة. (عالمگيري/١/١٩٧/كتاب الصوم/الباب الاول في تعريفه وتقسيمه....الخ).

٤ ] قال الرملي في شرح المنهاج: ويجر ذٰلک فيما لومكثت الشمس عند قوم مدة...الخ. قال في امداد الفتاح قلت: وكذٰلک يقدر لجميع الآجال كالصوم والزكوٰة والحج والعدة وآجال البيع والسم والاجارة. وينظر ابتداء اليوم فيقدر كل فصل من الفصول الاربعة بحسب مايكون كل يوم من الزيادة والنقص كذا في كتاب الائمة الشافعية ونحن نقول بمثله اذا ضل التقدير مقول به اجماعا في الصلوات. (شامي/قبيل مطلب في طلوع الشمس من مغربها/١/٣٦٥)_

## پیشمني نه وروسته ویده کېدل

**سوال:** دپیشمنی کولونه وروسته ویده کېدل مکروه دي اوکه نه؟مااوریدلي دي چې د پیشمني نه وروسته ویده کېدل مکروه دي.

**جواب:** دپیشمني په آخري وخت کې خوراک کول مستحب دي[۱].اود پیشمنی نه پس ویده کېدل که دسهار دجمعې لمونځ دفوت کېدوویره وي نومکروه دي، ګنی نه دي.

## د لاوډ سپیکر په ذریعه د پیشمني او روژه ماتي اطلاع ورکول صحیح دي

**سوال:** زموږ په ښارکې درمضان په میاشت کې عمومًا دپیشمني په وخت کې په لاوډ سپیکرو باندې اعلان کیږي اوپه دې سلسله کې کله دقرآن پاک تلاوت هم کیږي چې خلک په صحیح وخت باندې د پیشمنی انتظام وکړای شي شرعاً ددې جوازشته؟

**جواب:** دپیشمنې اوروژه ماتي په وخت کې اطلاع ورکولوکې هیڅ نقصان نشته،لیکن په لاوډ سپیکر باندې دومره شورکول چې دعامو خلکو سکون وړسره بربادشي اوهغې سره یوکس په اطمینان سره لمونځ هم ونه کړای شي ناجائزدي.[۲]

## مؤذن دې روژه ماته کړي او اذان دې وکړي

**سوال:** موذن ته روژه ماتول او بیا اذان کول پکار دي ، که د اذان نه وروسته روژه ماتول پکاردي؟

**جواب:** روژه دې ماته کړی اواذان دې اوکړی.[۳]

## د عرب ملکونو نه په راتلو باندې د دیرشو نه زیاتې روژې نیول

**سوال:** که یوکس چې په عرب ملکونوکې کارکوي،اودرمضان روژې دعرب ملکونوپه حساب سره نیسي،یعنې دپاکستان نه دوه ورځې وړاندې روژې شروع شي،لهذاداکس درمضان په آخره کې په په رخصتي باندې پاکستان ته راځي،نوددغه کس اختربه زمونږ نه دوه ورځې مخکې وي؛ نودا کس داختردلمونځ په سلسله کې څه وکړي ایادې دپاکستانی وخت مطابق اختر وکړي، یادوه ورځې انتظار وکړي ځکه چې په پاکستان کې اختردوه ورځې پس دی؟

---

۱ ] ثم تأخیر السحور مستحب کذا في النهاية. (هندية/۱/۲۰۰/کتاب الصوم/الباب الثالث)۔

۲ ] لایقرأ جهراً عندا المشتغلین بالأعمال......الخ. (عالمګیري/۵/۳۱۶/طبع رشیدیه)۔

۳ ] هو لغة امساک عن المفطرات.......في وقت مخصوص وهو الیوم (درمختار) وفي الشامیة: قوله وهو الیوم اي الیوم الشرعي من طلوع الفجر الي الغروب.......والمراد بالغروب زمان غیبوبة جرم الشمس.......الخ. (ردالمهتار علي الدرالمکتار/۲/۳۷۱/کتاب الصوم/طبع ایچ ایم سعید)۔

**جواب:** داکس خو به اختر د پاکستان مطابق کوي او ترڅو پورې چې په پاکستان کې رمضان دی داکس دې روژې هم ونیسي، د دې دیرشو نه زیاتې روژې به په نفلوکې شماریږي.[۱]

## آیا پاکستان والا به هم د سعودی عرب په حساب روژې نیسي؟

**سوال:** د سعودی عرب او د پاکستان ترمینځه همیشه د یوې روژې فرق راځي، زمونږ دلته د یو عالم وینا ده چې چا د سعودی سره روژه و نه نیوله په هغه باندې کفاره واجب شوه او د نورو علماء کرامو وینا ده چې چونکې مونږ پاکستانیان یو، زمونږ رؤیت هلال کمیټۍ شته لهذا د هغوی د اعلان مطابق مونږ ته روژه نیول پکار دي. په دې حالت کې مونږ د سعودی عرب په لحاظ سره روژې ونیسو یا د پاکستان په لحاظ سره؟

**جواب:** زمونږ په ذمه زمونږ د حساب مطابق روژې لازم دي، د هغه مولوی صاحب په ذمه به د سعودي عرب په حساب سره روژې لازمې وی، آیا هغه مولوي صاحب لمونځونه هم د سعودي عرب په لحاظ سره کوي؟![۲]

## چې په سعودی عرب کې روژه شروع کړي او اختر په کراچۍ کې ولمانځي نو آیا زیاته روژه به نیسي؟

**سوال:** د زید دفتر په ظهران سعودي عرب کې دی، او مستقل رهائش یې په کراچۍ کې دی، هغوی روژه په سعودی عرب کې شروع کوي او اختر په کراچۍ کې کوي، په دې حساب سره کله یو دیرش او کله دوه دیرش روژې راشی، آیا هغوی په کراچۍ کې د دیرشو روژو په حساب سره افطار کولی شي حال دا چې میاشت ورځ دوه پس په نظر راځي؟ یا هغه ته تر هغه وخته پورې روژې نیول پکار دي ترڅو چې میاشت ښکاره شوې نه وی، د قرآن او حدیث په حوالې سره وضاحت وفرمایئ!

**جواب:** چونکې په کراچۍ کې رمضان وي، په دې وجه هغوی ته روژه خو نیول پکار دي، خو د هغوی زیاتې روژې به نفل شي.[۱]

---

۱ ] (تنبیه) لو صام رائي هلال رمضان واکمل العدة لم یفطر الا مع الامام لقوله علیه الصلاة والسلام: صومکم یوم تصومون، وفطرکم یوم تفطرون. رواه الترمذي. والناس لم یفطروا في مثل هٰذا الیوم فوجب ان لا یفطر. (ردالمحتار علي الدر المختار/مبحث في صوم یوم الشک/۲/۳۸۴/طبع سعید)۔

۲ ] (تنبیه) لو صام رائي هلال رمضان واکمل العدة لم یفطر الا مع الامام لقوله علیه الصلاة والسلام: صومکم یوم تصومون، وفطرکم یوم تفطرون. رواه الترمذي. والناس لم یفطروا في مثل هٰذا الیوم فوجب ان لا یفطر. (ردالمحتار علي الدر المختار/مبحث في صوم یوم الشک/۲/۳۸۴/طبع سعید)۔

## د رمضان په ختمیدو باندې چې کوم ملک ته ورسیږئ د هغه ځای پیروي کوئ

**سوال:** موږ په بحري جاز کې نوکران یو، تیرشوی رمضان زموږ په جده کې شروع شوی وه ، مختلف ملکونو ته د تلو نه پس موږ په دیرشمه ورځ د اندیا بنار "وزاګاپټم" ، ته ورسیدو ، هلته زموږ یو کم دیرشمه روژه وه، زموږ په ملګرو کې یو دوکسانو د صبا روژه ونیوله او اکثر ملګرو په جهاز کې بله ورځ اختر لمونځ وکړ، هرکله چې په دغه ښار کې په دغه ورځ دیرشمه روژه وه. دا راته ووایئ چې په موږ کې د چا موقف صحیح دی؟ موږ د دغې ورځې روژه نیول پکار وو یاد اختر لمونځ، لمونځ کول پکار و؟

**جواب:** دا صورت حال بې شمیره خلکو ته راپیښیږي چې پاکستان یا سعودي عرب وغیره کې ملکونو کې رمضان شروع کړي اود اخترنه مخکې پاکستان یاهندوستان ته راشي، د دې له پاره حکم دادی چې هغوی پاکستان یاهندوستان ته راشي نو ددې ځای د رمضان شمیر دې پوره کړي او یو دیرشمه روژه دې هم ونیسي دا زیاته روژه به ددوی په حق کې نفل وي، خو د پاکستان یا هندوستان د دیرشمې روژې په ورځ ددوی له پاره اختر کول جائز نه دي.

یو صورت ددې برعکس دا راپیښیږي چې ځینې خلق په پاکستان یاهندوستان کې د رمضان د شروع کیدو نه پس سعودي یا نورو ملکونو ته لاړشي. د هغوی اته ویشتمه روژه وی او هلته اختروي هغوی له پکاردی چې سعودي د مطلع مطابق اختر وکړي او کومه روژه چې پاتې شوې ده دا قضا دې وکړي.[2]

## د وړوکي اختر خوشحالي ولې لمانځل کیږي؟

**سوال:** د رمضان ختمیدو سره اختر ولې لمانځل کیږي؟

**جواب:** رمضان المبارک یو ډیر لوی نعمت دی او یو نعمت نه دی، بلکې د ډیر نعمتونو یوه مجموعه ده، د الله تعالی نیک بندګان په دې میاشت کې شپه ورځ عبادت کوي. د ورځې روژه نیسي او شپې قیام کوي او ذکر و تسبیح او کلمه درود شریف لولي، ددې وجې نه روژه دارته په روژې پوره کولو باندې ډیره زیاته خوشحالي ملاویږي په حدیث شریف کې فرمایل شوي دي چې روژه دارته دوه خوشحالۍ ملاویږي، یوه خوشحالي چې هغه ته د روژه ماتي په وخت کې

---

[1] (تنبیه) لو صام رائي هلال رمضان واکمل العدة لم یفطر الا مع الامام لقوله علیه الصلاة والسلام: صومکم یوم تصومون، وفطرکم یوم تفطرون. رواه الترمذي. والناس لم یفطروا في مثل هٰذا الیوم فوجب ان لا یفطر. (فتاوي شامي/مبحث في صوم یوم الشک/۲/۳۸٤).

[2] (تنبیة) لو صام رائي هلال رمضان واکمل العدة لم یفطر الا مع الامام لقوله علیه الصلاة والسلام: صومکم یوم تصومون، وفطرکم یوم تفطرون. رواه الترمذي. والناس لم یفطروا في مثل هٰذا الیوم فوجب ان لا یفطر. (فتاوي شامي/مبحث في صوم یوم الشک/۲/۳۸٤)_

ملاويږي اودويمه خوشحالي چې هغه ته په دخپل رب سره دملاويدو په وخت کې ملاويږي.[1]

همدغه وجه ده چې رمضان شريف ختم شي: نودهغې دويمه ورځ دوړوکي اختر ورځ شوه،هره ورځ خوبه يويوروژه ماتی کيده،او په هغې به خوشحالی وه.مګرعيدالفطردټولې مياشتې روژه ماتی شو،اوټولې مياشتې روژه ماتي په يوځای شو

نورقومونه خپل تهوارونه په لوبوټوکواوفضول کارونوکې تيروي. مګرپه اهل اسلام باندې خو الله تعالی خاص انعام دی چې دهغوی دخوشحالۍ ورځ هم دعبادت جوړه کړه. چنانچې د رمضان شريف په خيراوعافيت سره ختميدوباندې اوډيرپه شوق سره عبادات کولوله پاره الله تعالی درې عبادتونه مقرر وفرمايل: يوداخترلمونځ،دويم صدقه فطر،اودريم حج بيت الله.(حج اګرچې په ذی الحجه کې اداکيږي مګردرمضان ختيمدوسره يکم شوال نه دحج موسم شروع شي.)

## که روژه ماته شي نوبيا دې هم ټوله ورځ د روژه دارپه شان اوسيږي

**سوال:** ...ديوکس روژه ماته شوه،اياخوراک څښناک کولی شي؟

**جواب:** که په رمضان المبارک کې دچاروژه ماته شوه،نوبياهم دهغه له پاره دورځې څه خوراک څښناک کول پکارنه دي،ټوله ورځ دروژه داريه شان اوسيدل واجب دي.[2]

## د ناروغ تراويح اوروژه

**سوال:** که يوکس دناروغۍ له وجې نه درمضان المبارک روژې ونه نيولې شي نوهغه څه وکړي؟ اوداهم وفرمايئ چې دداسې کس د دتراويح به څه کيږي؟ هغه به تراويح کوي اوکه نه؟

**جواب:** کوم کس چې دناوغۍ له وجې دروژې نيولوطاقت نه لري؛ نوهغه ته دروژې نه نيولو اجازت شته،دتندرست کيدونه وروسته دې دغه قضاروژې ونيسي[3] اوکه بيماري داسې وي چې دهغې نه د رغيدو اميد نه وي؛ نودهرې روژې په بدله کې دصدقه فطر برابر صدقه ورکړي[4] اوکه دتراويح کولوطاقت لري نوضرورکول پکاردي. تراويح مستقل عبادت دی.دانه ده چې څوک روژې نيسي هغه دې تراويح کوي. ............[څلورم جلد ختم شو]...........

---

۱ ] وعنه (اي ابي هريرة رضی الله عنه).......للصائم فرحتان فرحة عند فطره وفرحة عند لقاء ربه.....الخ. (مشكوٰة/۱۷۳/كتاب الصوم/الفصل الاول)_

۲ ] وكذا كل من وجب عليه الصوم لوجود سبب الوجوب والأهلية ثم تعذر عليه المضي بان افطر متعمداً.......فانه يجب عليه الامساک.(شامي/مطلب في جواز الافطار بالتحري /۲/۴۰۸)_

۳ ]"فمن كان منكم مريضاً او علي سفر فعدة من ايام آخر". (البقرة: ۱۸۴).(ومنها المرض) المريض اذا خاف علي نفسه التلف او ذهاب عضو يفطر بالاجماع وان خاف زيادة العلة وامتداده فكذٰلک عندنا وعليه القضاء اذا افطر كذا في المحيط. (عالمگيري/۱/۲۰۷/ الباب الخامس في الاعذار التي تبيع الافطار)_

۴ ]"وعلي الذين يطيقونه فدية طعام مسكين". (البقرة: ۱۸۴). ومنها كبرالسن فالشيخ الفاني الذي لايقدر علي الصيام فيفطر ويطعم لكل يوم مسكيناً كما يطعم في الكفارة كذا في الهداية(عالمگيري/۱/۳۰۷/الباب الخامس)

### د اول جلد اجمالي فهرست

ایمانیات او عقائد، دتقدیر مسائل، محاسن اسلام، نبي کریم ﷺ نور دي که بشر، عقیده حیات النبي، انبیاء کرام سره ملاقات، دمعراج مسائل، په خوب کې نبي کریم لیدل، صحابه او صحابیات، حضرت حسین او یزید، داجماع او تقلید مسائل، د سنت او بدعت تعریف، مروجه میلاد، اصلاح مفاهیم، د ډارون نظریه اعتقاد او اسلام

### د دویم جلد اجمالي فهرست

دکفر، شرک او د ارتداد تعریف او احکام، قادیاني فتنه، کافرانو سره تعلقات، دختم نبوت عقیده او دعیسی علیه السلام نزول، دقیامت نښې، دګناهونو نه توبه، دبرزخ حالات، دجنت بحث، تعویذ کوډي او جادو، پیریان، رسومات او رواجونه، په اسلام کې دفال مسائل، متفرق مسائل، داودس مسائل دغسل مسائل، د اوبو احکام، دتیمم مسائل، دموزو مسائل، دحیض او نفاس مسائل، دنوکانو د رنګ کولو مسائل، بغیر د اودسه نه دعا او اذکار کول، دنجاست مسائل، دمانځه مسائل، دجماعت مسائل.

### د دریم جلد اجمالي فهرست

دجماعت متعلق باقي مسائل، دآذان او اقامت مسائل، دمانځه شرطونه، دمونځ ادا کولو طریقه، دلاؤډ سپیکر مسائل، دصف جوړولو مسائل، د امام مسائل، دمقتدي مسائل، په کورکې مونځ کول، دمانځه نه پس دعا او اذکار، دمسبوق اولاحق مسائل، دبنځو دمانځه مسائل، دمعذور احکام، د وترو مونځ، د سنت مونځ ادا کول، دمسافر مونځ، دجمعې مونځ

### د خلورم جلد اجمالي فهرست

دخطبو متعلق باقي مسئلې، داخترونود مونځ مسائل، دتراویحو مسائل، نفلي مونځونه دسجده تلاوت مسائل، دمانځه متفرق مسائل، اوراد او وظائف، دمړي حکمونه، د اندامونو پیوندکاري، دجنازې مونځ، دقبرونو زیارت، ایصاب ثواب کول، دقرآن کریم فضائل او مسائل، دروژې فضائل او مسائل، د رویت هلال مسائل، د اعتکاف مسائل، دتکبیرات تشریق مسائل

### د پنځم جلد اجمالي فهرست

دزکاة مسائل، دعشر مسائل، دصدقه فطر مسائل، دنظر مسائل، نفلي صدقه، دفقیرانو متعلق مسئلې، دحج او عمرې فضیلت او فرضیت، په حرامو پیسو حج کول، دعمرې مسائل، دحج بدل مسائل، دمحرم نه پرته حج کول، دقربانۍ مسائل، دحاجی دقرباني مسائل، مدینې منوره ته حاضري، دعقیقې مسائل، دښکار مسائل، دترخې، لرې او د هګو حکم، دسپي ساتلو مسائل

### د شپږم جلد اجمالي فهرست

دکوژدن مسائل، دنکاح طریقه، شرعي مهر، دطلاق مسائل، د واده نه مخکې طلاق، د طلاق اقسام، خلعه کول، دحاملې طلاق، دظهار مسائل، دنکاح دتنسیخ مسائل، طلاق نه انکار کول، دعدت مسائل، داولاد تربیتي حق، غیرمسلمو سره کاروبار کول، معاملاتو کښې دهوکه کول، ذخیره کول، بیانه ورکول، دحصو کاروبار کول، دمضاربت مسائل، کور، زمکه او دکان په کرایه ورکول

### د اووم جلد اجمالي فهرست

دکور او ځمکې په کرایه ورکولو باقی مسئلې، دقسطونو کاروبار، دقرض مسئلې، امانت، رشوت، داخستلو او خرڅولو متفرق مسئلې، معاملات، دسود حکم، دبینک نه سود اخستل، دسود دې پیسو مصرف، دبینک نوکري، دبیمه کمپنی مسئلې، جواري (قمار) کول، د باند حکم، کمیشن، دمیراث مسائل، لونړه له میراث محرومول، دوصیت مسائل، دجهاد او شهید حکمونه، دسیاست مسائل.

### د اتم جلد اجمالي فهرست

دپردې مسائل، اخلاقیات، سلام او مصافحه، د تعلیم مسائل، ددین تبلیغ مسئلې، د تصوف مسائل، دخوب حقیقت او تعبیر، دنومونو سره متعلق مسائل، دږیرې مسائل، جسماني وضع قطع، دجامو متعلق مسائل، دخوراک او څکاک شرعي احکام، لوبې کول، موسیقي او ګډا، فلم کتل، د تصویر حکم، خانداني منصوبه بندی، د نعتونو متعلق مسائل، دمور پلار او خپلوانو سره تعلقات